# مظاهر حق جدید

## د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

دوهم جلد

**تالیف**

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

**تزئین اوترتیب**

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)


**خانګړتیاوي**

١ : حدیثونه د اعراب سره.

٢: تحت لفظي ترجمه.

٣: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل .

**مباحث**

کتاب الصلوة


صداقت کتبخانه

بسم الله الرحمن الرحيم

# مظاهر حق

(د مشکٰوة المصابیح پښتو شرحه)

**تاليف:** نواب محمدقطب الدين خان دهلوي رحمه الله

**ترتيب او تزئين:** مولاناعبدالله جاويد غازي پوري (فاضل ديوبند)

**خپرندوی:** صداقت خپرندويه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعيد

**تصحيح کوونکي:** بسم الله رحيمي، مولوي عبدالكريم كريمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ:** ۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

**د خپرونو لړ:** ۱۸۳

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځايونه:**

---

**صداقت خپرندويه ټولنه**-کندهار

اوله ناحيه، نوی سړک- کريم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندويه ټولنه- ارگ بازار- قلم او کتاب مارکېټ ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴ .

**کابل:** صداقت خپرندويه ټولنه،کوټه سنگي مينه يار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی**. **هلمند** :تاج منور خپرندويه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندويه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتيکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# د مظاهر حق دوهم جلد فهرست

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَابُ الصَّلٰوةِ

## د لمانځه بیان

صلوة په لغت کي دعاء ته وايي او د شریعت په اصطلاح کي صلوة يو څو خاصو خبرو او کارو ته وايي چي د هغه پيل د تکبير څخه او ختم يې پر سلام باندي کيږي ، د صلوة دمادې د اشتقاق په باره کي يو څو قولونه نقل کيږي :

امام نووي رحمة الله عليه د مسلم په شرح کي ويلي دي چي د صلوة ماده اشتقاق (صلوين) ده چي د سرين (کوناټو) دواړو هډوکو ته وائي ،په لمانځه کي ددې دواړو هډوکو درکوع او سجدې په وخت کي زيات حرکت وي نو په دې وجه لمانځه ته صلوة ويل سوي دي .

ځيني عالمان وايي چي صلوة په اصل کي د مصلی څخه اخيستل سوی دی ددې معنی ده کوږ لرګی په اور ګرمولو سره سيده کول ، نو لمونځ ته صلوة ځکه وائي چي د انسان په مزاج کي د نفس اماره په وجه کوږ والي وي هرکله چي يو سړي لمونځ کوي نو دالله پاک دعظمت او بيري د ګرمی په وجه چي هغه په عبادت کي دانتهائي قرب خداوند په وجه حاصليږي هغه کوږوالي ختموي . ګويا مُصلي يعني (لمونځ کونکی ) دهغه مادې اشتقاق له مخه دخپل نفس اماره دعظمت خداوندي او هيبت ګرمي سره ګرمونکي سو . نوکوم سړی چي د لمانځه په حرارت سره ګرم سو او د هغه کوږ والي دلمانځه په وجه ليري سو نو هغه ته دآخرت د اور يعني دوزخ څخه دګرميدو ضرورت پاته نه سو .ځکه چي د الله پاک څخه دا اميد دی چي هغه خپل د غه بنده چي هغه په دنيا کي دلمانځه پابندي وکړه او يو داسي حرکت يې نه وکړ چي د عذاب خداوندي موجب وي نو هغه به په اورکي نسي اچول کېدلای .

ددې اصطلاحي تعريف څخه وروسته په دې پوه سه چي لمونځ داسلام هغه لوی رکن او ستن ده چي د هغې د ارزښت او عظمت په باره کي دامير المؤمنين حضرت علي کرم الله وجهه دا تاثر نقل سوی دی چي هرکله به د لمونځ وخت راغلی نو دده مبارک رنګ به بدل سو خلکو پوښتنه وکړه چي امير المؤمنين : ستا دا څه حالت دی فرمائي چي اوس ددې امانت [1] داداء

[1] - دا اشاره ده دې قرآني آيت ته : انا عرضنا الامانة على السماوات والارض والجبال فابين ان يحملنها واشفقن.... .

کولو وخت راغلی دی چي الله تعالی خپل آسمانونو غرونو او مځکي ته پیښ کړی وو او هغو ټولو د دې امانت داخیستلو څخه وبیرېدل او انکاريي وکړ. احیاء العلوم

دلمانځه په تاکید اوفضائلو د قرآن مجید مخونه ډک دي.. لمونځ ادا کولو اود هغه پابندي کولو لپاره چي په کومه سختۍ سره حکم سوی دی هغه خپله ددې عبادت د ارزښت او فضیلت دلیل دی،د ایمان څخه وروسته تر ټولو زیات پر لمانځه باندي زور ورکړل سوی دی.

د قرآن کریم دا یو څو آیاتونه ولولئ :

إِنَّ الصَّلاَةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا ۱۰۳. سورة النساء

ژباړه : بیشکه پر مؤمنانو باندي لمونځ پر خپل وخت باندي فرض دي .

حَافِظُواْ عَلَى الصَّلَوَاتِ والصَّلاَةِ الْوُسْطَى . سورة البقرة ۲۳۸

ژباړه : پابندي کوئ د لمنځونه په خاصه توګه د منځني (مازدیګر) دلمانځه .

اِنَّ الْحَسَناتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ

ژباړه: ښېله شکه نیکۍ (یعني لمونځ) انسان د بدو او خرابو کارو څخه ساتي .

إِنَّ الصَّلاَةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاء وَالْمُنكَرِ وَلَذِكْرُ اللَّهِ أَكْبَرُ . سورة عنکبوت ۳۶

ژباړه : بېشکه لمونځ د بدو او خرابو کارونو څخه انسان ساتي او بیشکه د الله تعالی د ذکر لویه مرتبه او لوی اثر دی .

په هر حال لمونځ یو داسي غوره او محبوب عبادت دی چي د هغه دبرکتونو او او سعادتونو څخه يې د هیڅ نبي شریعت نه دی محروم کړي ، د حضرت آدم علیه السلام څخه تر نبي آخر زمان ﷺ پوري د ټولو رسولانو پر امت باندي لمونځ فرض وو.لیکن د لمانځه په کیفیت اوتعین کي د هر امت لپاره تغیر کیدی، د رسول الله ﷺ پر امت په ابتداء رسالت کي دوه وخته لمونځ فرض وو یو د لمر ختلو مخکي او یو د لمر ډوبیدو مخکي، د هجرت څخه یو نیم کال مخکي چي رسول الله ﷺ په معراج کي د ذات حق تعالي جل مجده دقربت حقیقي عظیم او افضل ترین شرف تر لاسه کړ نوپر دې مقدس او با سعادت موقع باندي د پنځه وخته لمونځ دغه لویه او عزتمنده تحفه هم ورته وسپارل سول . د سهار، ماپښین ،مازدیګر،ماښام او ماخستن ددې پنځه وخته لمنځونو فریضه یوازي ددې امت امتیازي خصوصیت دی .د مخکي پر امتونو یوازي د سهار لمونځ فرض وو او پر چا د ماپښین او پر چا د مازدیګر. د اسلام په ټولو عباداتو کي یوازي لمونځ هغه عبادت دی چي تر ټولو افضل او اعلی مقام ورته حاصل

دی پر دې اتفاق دی چې لمونځ د اسلام لوی رکن دی بلکه که داسې وويل سي چې د اسلام دار او مدار پر دې عبادت دی نو مبالغه به نه وي.

پر هر عاقل بالغ مسلمان باندې پنځه وخته لمونځ فرض عين دی. امير وي که فقير وي، ناروغ وي که روغ، مقيم وي که مسافر، هر يوه ته پنځه وخته په هغه آدابو او شرائطو او طريقه سره چې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ دلمانځه په اړه ښودلې ده د الله ﷻ په دربار کې حاضري ورکول او د خداوند قدوس عظمت او لوئي او خپله بې کسي او لاچاري او د عجز او غريبی ښکاره کول ضروري ده، تردې چې کوم وخت په ميدان جنګ کې چې د جنګ شغلې خيږي او ښځه تر ټولو څخه زياته او سخت درد کې اخته وي. بيا هم ورته دلمانځه پرېښودل جائز نه دي بلکه دهغه په ادا کولو کې دتاخير کولو هم اجازت نسته تردې که د يوې ښځی د ماشوم دپيدا کېدو پر وخت د ماشوم يو برخه دهغې دخاص برخې څخه را ووځي. که څه هم وينه وتلې وي نو هغه وخت هم هغې ته دلمانځه کولو امر سوی دی او په لمانځه کې توقف کول جائز[1] نه دي.

کوم سړی چې دلمانځه د فرضيت څخه انکار وکړي، هغه کافر دی. او د هغه پرېښودونکی دګناه کبيره مرتکب، فاسق او فاجر دی، بلکه ځيني جليل القدر صحابه کرام مثلا حضرت عمر فاروق ؓ وغيره لمونځ پرېښودونکي ته کافر وائي. د امام احمد رحمة الله عليه هم دا مذهب دی، امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليه په لمانځه پرېښودلو سزا دځټ وهلو قائل دي، امام اعظم رحمة الله عليه که څه هم هغه د کفر قائل نه دی مګر د هغوی په نزد هم د لمانځه پرېښودونکي لپاره سخته سزا ده.

د دې سره سم د لمانځه په اړه هغه ټول احاديث ذکر کيږي، چې د هغه څخه دلمانځه د ارزښت او عظمت او د هغه د فضيلت څرګندونه کيږي او د لمانځه چې کوم احکام او فضائل دي دهغو ثبوت کيږي.

[1] - علم الفقه ۱۲.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۱۸﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ: الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ وَالْجُمُعَةُ إِلَى الْجُمُعَةِ وَرَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ

پنځه لمنځونه او د يوې جمعې څخه تر بلي جمعې پوري او د رمضان څخه تر بل رمضان پوري

مُكَفِّرَاتٌ لِمَا بَيْنَهُنَّ إِذَا اجْتُنِبَ الْكَبَائِرَ . رواه مسلم

هغه ګناهونه رژوي چي د دې په منځ کي وي په دې شرط چي د لويو ګناهو څخه ځان وساتي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۲۰۹، رقم: ۱٦– ۲۳۳.

**تشريح** :د حديث مطلب دادی که يو سړی په پابندي سره پنځه وخته لمونځ وکړي د جمعي لمونځ په پوره آداب سره ادا کړي او همداسي د روژي شريفي روژې ونيسي نو د دې په مينځ کي چي کوم کوچني ګناهونه صادر سوي دي هغه ټول ختميږي البته کبيره ګناهونه نشي بخښل کيدای، هو که الله پاک وغواړي نو هغه هم معاف کولای سي .

دلته يو معمولي اشتباه پيدا کيږي چي هره ورځ په پنځه وخته لمنځونو کي ټول ګناهونه معاف کيږي نو بيا دا جمعه وغيره کوم ګناهونه ختم کوي؟ د دې شبهې دفعه کولو لپاره ملا علي قاري رحمة الله عليه فرمائي چي په دې ټولو کي د ګناهونو معاف کولو او ختمولو صلاحيت دی . که ګناه صغيره وي ،نو دا درې سره ختموي کنې په هغه کي د هر يوه په بدله کي بې شميره نيکۍ ليکل سوي دي چي د هغه په وجه په درجو کي لوړوالی راځي .

شيخ عبد الحق رحمة الله عليه فرمائيلي دي چي دغه درې سره صغيره ګناهونو لپاره کفاره دي او د هغو د ختمولو صلاحيت لري او که په هغو کي يو د ګناه کفاره جوړه نه سي ،نو دوهم کفاره کيږي،مثلا په لمانځه کي د کمي او د نقصان په وجه که هغه لمونځ د ګناهولپاره کفاره جوړه نسي نو جمعه هغه ختموي او په جمعه کي هم که د يوې کمۍ په وجه د کفاره کيدو صلاحيت پاته نسي نو بيا روژه د هغه لپاره کفاره کيږي او که ټول د کفاره کيدو صلاحيت لري نو د دا ټولو يو ځاي کيدو سره ګناوي ټوله په بنه ډول ختموي او د کفارې د زياتوب باعث کيږي . د

دې مثال داسې دی لکه د يو څو ډيوو که په يو ځاي کې يوه ډيوه وي نو تياره به ختمه سي او رڼا به کمه وي او که ډيوې زياتې وی نو نور او رڼا به په هغه حيثيت سره زياته وي .

﴿۵۱۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَنَّ نَهْرًا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تاسو ليدلی دی چې وياله وي

بِبَابِ أَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ هَلْ يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ

د يو چا په دروازه کې او هغه هره ورځ پنځه ځله په هغه کې غسل کوي نو ايا د هغه پر بدن به خيري پاته سي ،

قَالُوا لَا يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ قَالَ فَذٰلِكَ مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ يَمْحُو اللّٰهُ

صحابه کرامو عرض وکړ چې د هغه پر بدن به په داسې حالت کې هيڅ خيره پاته نه سي نو رسول الله ﷺ وفرمايل : د پنځو لمونځونو هم دا کيفيت دی الله تعالی معافوي

بِهِنَّ الْخَطَايَا . متفق عليه

ددې له کبله (کوچني) ګناهونه . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۱۱، رقم: ۵۲۸، ومسلم ۱\ ۴۶۲، ۴۶۳، رقم: ۲۸۳ - ۶۶۷.

---

﴿۵۲۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ إِنَّ رَجُلاً أَصَابَ مِنِ امْرَأَةٍ قُبْلَةً فَأَتَى النَّبِيَّ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې يو سړي د يوې ښځي څخه مچه واخيستل ، نو هغه راغلی نبي کريم ﷺ ته

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى ( وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ

او د پيښې څخه يې خبر کړ ، نو الله تعالی دا آيت نازل کړ : واقم الصلوة طرفي النهار

وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ) فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ

و زلفا من الليل....) يعني ته د ورځي په دواړو طرفونو كي سهار او مابنام او څو ساعته د شپې لمونځ قائم ساته بېشكه نيكۍ بدۍ ليري كوي ، هغه سړي وويل اې د الله رسوله !

اللهِ أَلِيْ هٰذَا ؟ قَالَ لِجَمِيْعِ أُمَّتِيْ كُلِّهِمْ . وفي رواية لِمَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ أُمَّتِيْ .

**متفق عليه**

ايا دا حكم زما لپاره دى؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د ټول امت لپاره دى ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي كوم سړي چي زما په امت كي په دې عمل وكړ د هغه لپاره دا حكم دى . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۸، رقم: ۵۲۶، ومسلم ۴\۲۱۱۶، رقم: ۴۲- ۲۷۶۳.

**تشريح** : د كوم چا چي دا واقعه ده چي هغه يوه پردۍ ښځه مچ كړل او د هغه نوم ابو ليسير رضي الله عنه وو، ترمذي د هغه يو روايت نقل كړى دى چي په هغه كي راوړي چي ماته يوه ښځه د خرما اخيستلو لپاره راغله،ما هغې ته وويل چي زما په كور كي تر دې ښه خرما ده هلته ورسه او وه يې كوره، نو هغه زما سره زما كورته راغله هلته زه د شيطان په فريب كي راغلم او د جذبات په غالبيدو سره مي د هغه ښځي سره مچه وغيره وكړل هغې زما پر دې ناوړه رويه باندي زما په تنبيه كولو سره وويل د الله بنده د الله جل جلاله د قهر څخه وبيرېږه نو د الله جل جلاله د بيري څخه زما زړه وربيدى ، او زه ډير شرمنده او مخ توربدو سره د رسالت په دربار كي حاضر سوم نو د رسالت په دربار كي چي كومه معامله وسوه هغه په دغه حديث كي ذكر سوې ده .

په آيت كريمه كي (طرف النهار) يعني د ورځي د اول او د آخـــري څخه د ورځي ابتدائي برخه او انتهائي برخه مراد ده .ددې مطلب دا سو چي د ورځي د اولي برخي څخه فجر (سهار) لمونځ او آخري برخي څخه د ماپښين او مازديگر لمونځ مراد دى. همدارنگه د (زلفا من الليل ) يعني د شپې څو ساعته څخه د مابنام او ماخستن لمونځ مراد دى . همدارنگه اوس به ددې آيت كريم مطلب دا وي چي سهار،ماپښين، مازديگر ،مابنام او ماخستن به لمونځ كوي ځكه نيكي يعني لمنځونه بدي ختموي .

﴿۵۲۱﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّي أَصَبْتُ حَدًّا فَأَقِمْهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي يو سړى حاضر سو او عرض يې وكړ چي اې د الله رسوله ! ما يو داسي كار وكړ چي پر هغه حد واجب دى نو تاسو حد جاري كړئ

عَلَيَّ قَالَ وَلَمْ يَسْئَلْهُ عَنْهُ وَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ فصلى مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

پر ما باندي ، د راوي بيان دی چي رسول الله ﷺ د هغه څخه هیڅ پوښتنه ونه کړل او د لمانځه وخت راغلی هغه سړي د رسول الله ﷺ سره لمونځ ادا کړ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلٰوةَ قَامَ الرَّجُلُ فَقَالَ

کوم وخت چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو هغه سړی ودرېدی او عرض يې وکړ چي

يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أَصَبْتُ حَدًّا فَأَقِمْ فِيَّ كِتٰبِ اللّٰهِ قَالَ اَلَيْسَ قَدْ صَلَّيْتَ مَعَنَا

اې د الله رسوله ! ما د حد وړ جرم کړی دی تاسو د کلام الهي سره سم پر ما حکم وکړئ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايا تا زموږ سره لمونځ نه وکړ ؟

قَالَ نَعَمْ قَالَ فَإِنَّ اللّٰهَ قَدْ غَفَرَ لَكَ ذَنْبَكَ أَوْ حَدَّكَ . متفق عليه

هغه وويل: هو ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : الله ﷻ ستا ګناه يا ستا حد و بخښي .بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) ١٢\ ١٣٣ ، رقم: ٦٨٢٣ ، ومسلم ٤\ ٢١١٧ ، رقم: ٤٤- ٢٧٦٤.

**تشريح** : دلته دا مه ګڼئ چي د هغه سړي الفاظ اصبت احدا (يعني زما څخه دا سي کار سوي دی ) چي پر هغه حد واجب دی، د دې څخه دا معلوميږي چي هغه يو داسي کبيره ګناه مثلا غلا وغيره کړې وه چي پر هغه حد واجبېږي،او رسول اللهﷺ هغه ته د لمانځه زيري واوروی، نو د دې څخه دا ثابته سوه چي د لمانځه په وجه کبيره ګناه هم بخښل کيدای سي .

بلکه د دې مطلب دادی چي د هغه څخه يو داسي ګناه صغيره سوې ده چي په حقيقت کي خو داسي نه وه چي پر هغه حد جاري سوی وای، مګر هغه سړي د (صحابيت ) پر عظيمه مرتبه وو ، چيري چي په معمولي ګناه سره هم د الله ﷻ د بيري زړه لړزيږي او يو معمولي معصيت هم د زړه او دماغ هر کونج ته ځي ،ځکه هغه دا ګمان وکړ چي زما څخه يو داسي کار سوی دی چي په هغه کي د شريعت له مخي حد جاري سي نو هغه د رسالت و دربار ته په راتلو سره داسي ذکر وکړ چي د هغه څخه په ښکاره معلوميده چي د هغه څخه واقعي يو داسي لويه ګناه سوې ده چي د يو سختي سزا يعني د حد مستوجب ( لايق ) دی يا داسي وويل سي چي حد څخه د هغه مراد تعزير (سزا ) وه

رسول الله ﷺ د هغه سړي څخه د هغه ګناه حقيقت ځکه نه وپوښتي چي رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه معلومه سوې وه چي هغه سړي څه ډول ګناه کړې ده ځکه رسول الله ﷺ چي هغه ته د ګناه د بخښنې زيرى ورکړى نو د خپل ځان څخه يې دا فيصله نه وه کړې ، بلکه څه وخت چي رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه الله تعالى وښودل چي د ده ګناه داسي ګناه نه ده چي پر هغه حد جاري کړل سي بلکه داسي ګناه ده چي د لمانځه په ذريعه معاف سوې ده نو رسول الله ﷺ هغه ته دا زيرى ورکړ.

﴿۵۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن مسعود ﷜ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه:

أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ قَالَ الصَّلَاةُ عَلَى وَقْتِهَا قُلْتُ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ ثُمَّ بِرُّ

د الله ﷻ په نزد تر ټولو غوره کوم عمل دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : پر خپل وخت لمونځ کول ، ما بيا پوښتنه وکړه چي تر دې وروسته کوم عمل غوره دی؟ . رسول الله ﷺ وفرمايل : نيکي کول

الْوَالِدَيْنِ قُلْتُ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ ثُمَّ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنِي بِهِنَّ

د مور او پلار سره ، ما بيا پوښتنه وکړه چي تر دې وروسته کوم عمل، رسول الله ﷺ وفرمايل د الله په لاره کي جهاد کول، ابن مسعود ﷜ وايي دا خبري ما ته رسول الله ﷺ وفرمايلې

وَلَوِ اسْتَزَدْتُهُ لَزَادَنِي. متفق عليه

او که ما نوري پوښتلي وای نو ده مبارک به نوري هم را ته ښودلي وای . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۹/۱۲، رقم ۵۲۷ ومسلم ۱/۹۰، رقم: ۱۳۹ – ۸۵.

**تشريح** : په دې پوه سئ چي د غوره او افضل اعمالو په باره کي مختلف احاديث نقل سوي دي .د دې حديث څخه دا معلوميږي چي د الله تعالى په نزد د ټولو څخه غوره او محبوب اعمال دا دري دي خو په نورو حديثونو کي مذکور دي چي د اسلام بهترين او افضل اعمال دا دي چي (غريبانو او مسکينانو باندي ) ډوډي وخوري، د اسلام تبليغ وکړلای سي او په شپه کي هغه وخت چي خلک په آرام سره په بسترو کي په خواږه خوب بيده وي د الله تعالى عبادت اولمونځ وکړلای سي .

همداسي په ځينو حديثونو كي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل تر ټولو بهترين او افضل عمل دادې چي خلک ستا د ژبي او ستا د لاس څخه يعني تكليف څخه محفوظ وي .د ځينو حديثونو څخه دا معلوميږي چي افضل عمل د الله ﷻ ذكر دى .

په هر حال همداسي په نورو حديثونو كي د نورو عملونو په باره كي فرمايل سوي دي ، چي دا اعمال بهترين او افضل دي .

نو اوس په دې ټولو حديثو كي به تطبيق داسي وي چي دا به وويل سي چي رسول الله ﷺ د هر يوه د رضا او شوق او د هغه د مزاج سره سم جواب وركړى دى، يعني چا چي د بهترين عمل په باره كي پوښتنه وكړه هغه ته يې هغه عمل وښودى چي د هغه وړيې وګڼلو او څه چي د هغه د فطرت او مزاج او دهغه د حال مناسب معلوم سول، دا بالكل داسي دى څرنګه چي موږ اكثر د يو خاص شي په باره كي يو وخت ووايو چي دا فلانى شى خو تر ټولو ښه دى، حال دا چي په زړه كي يې د هغه د ښه والي او فضيلت په باره كي دا خيال نه وي چي دا شى به په هر وخت او هر حال كي او د هر يوه لپاره تر ټولو غوره وي ،بلكه په زړه كي يې دا خيال وي چي دا شى په يو خاص وخت كي ښه او غوره دى نه چي هر وخت مثلا د خاموشي او سكوت معامله ده ،چيري چي مناسب وي ويلاي سي چي د سكوت يا د چوپتيا څخه افضل هيڅ شى نسته .

مقصد دا چي رسول الله ﷺ هر عمل ته د حال او مقام سره سم افضل فرمايلي دي .مثلا د اسلام په ابتداء كي جهاد د خلكو د حال مناسب وو، ځكه جهاد يې وفرمايلو چي دا تر ټولو بهترين او افضل عمل دى . يا همداسي يو سړى يا يو جماعت ئې وږي او برباد وليدى نو هغوى د مرستي او اعانت په وجه صدقه او خيرات طرف ته خلكو ته رغبت وركړ او وه يې فرمايل چي صدقه غوره عمل دى يا لمونځ د حق تعالى د قرب حقيقي ذريعه كيدو په وجه تر ټولو زيات ښه او غوره عمل وګرځوى . په هر حال په دې كي هر عمل د افضل ويلو وجهي او حيثيتونه مختلف دي .د هر يوه وجه او حيثيت پر خپل ځاي تر بلي افضل او اعلىٰ دى .

﴿۵۲۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْعَبْدِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ و فرمايل : د (مسلمان) بنده

وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلاَةِ . رواه مسلم .

او كفر تر منځ پريښودل دلمانځه دي . (يعني لمونځ يې پرده ده) . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم ۱\ ۸۸، رقم: ۳۴- ۸۲.

**تشريح** : دلته د (بين) لفظ محذوف دی يعني په دغه حديث كي دا عبارت پټ دی چي :تترك الصلواة وصلت بين العبد المسلم وبين الكفر : د دې مطلب دا سو چي لمونځ د مومن بنده او كفر په مابينځ كی په مثال د ديوال دی، چي بنده د دې په وجه كفر ته نسي رسيدلاي خو هر كله چي لمونځ پريښول سي نو داسي دي لكه د مابينځ ديوال چي وغورځـــــول سي، نو لمونځ پريښودل به د دې خبري سبب وي چي لمونځ پريښودونكی مسلمان كفر ته رسيږي .

په هر حال دا حديث د لمانځه پريښودونكي لپاره سخت تهديد (ګوابنه) دی . او په دې كي دې ته اشاره ده چي هغه سړی چي لمونځ پريږدي دا ممكنه ده چي هغه كافر سي هر كله چي هغه د كفر او اسلام په مابينځ كي ديوال ختم كړو ،نو ګويا هغه د كفر حد ته رسيدلی دی او هر كله چي هغه د كفر حد ته ورسيدی،نو كيدای سي چي دا لمونځ ترک كول هغه فسق وفجور او د الله ﷻ څخه په بغاوت او سركښی زړه ور كړي چي هغه د كفرپه دائره كي داخل كړي .

دا په پيل كي ښودل سوي دي چي د لمانځه پريښودونكي په باره كي د علماؤ مختلف اقوال دي اصحاب ظواهر خپله دا وايي چي لمونځ پريښودونكی كافر كيږي ،حضرت امام مالک او حضرت امام شافعي رحمة الله عليهما وايي چي د لمونځ پرېښودونكی كه څه هم نه كافر كيږي مګر د دې سركښی او بغاوت په وجه د دې وړ دی چي د هغه غاړه پرې كړل سي . د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي كوم سړی لمونځ پريږدي د هغه سړی وهل او په بندي خانه كي اچول واجب دي تر داسي وخته چي دی لمونځ پيل كړي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۵۲۴﴾: عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

خَمْسُ صَلَوَاتٍ افْتَرَضَهُنَّ اللّٰهُ تَعَالٰى مَنْ أَحْسَنَ وُضُوءَهُنَّ وَصَلَّاهُنَّ

پنځه لمنځونه دي چي الله ﷻ فرض كړي دي، كوم سړی چي د دې لمونځونو لپاره ښه اودس وكړي او ادا كړي دغه لمونځونه

لِوَقْتِهِنَّ وَأَتَمَّ رُكُوعَهُنَّ وَخُشُوعَهُنَّ كَانَ لَهُ عَلَى اللهِ عَهْدٌ أَنْ يَّغْفِرَ لَهُ وَمَنْ

پر خپل وخت او ركوع يې په ښه ډول ادا كړي او د زړه په حضور سره يې ادا كړي د هغه لپاره د الله جل جلاله وعده ده چي هغه به بخښي او څوک چي

لَّمْ يَفْعَلْ فَلَيْسَ لَهُ عَلَى اللهِ عَهْدٌ إِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ وَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ .

رواه أحمد وأبو داود وروى مالك والنسائي نحوه .

داسي ونه كړي د هغه لپاره د الله هيڅ وعده نسته كه هغه بخښي او كه عذاب وركوي . احمد، ابوداؤد، مالک او نسائي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۳۱۷ وابوداؤد ۱\ ۲۹۵، ۲۹۶، رقم: ۴۲۵، والامام مالك في الموطا ۱\ ۱۲۳، رقم: ۱۴ والنسائي ۱\ ۲۳۰، رقم: ۴۶۰.

**تشريح** : دا حديث شريف ددې خبري دليل دی چي لمونځ پرېښودونكی كافر نه دی بلكه د گناه كبيره مرتكب كيږي . د گناه كبيره د مرتكب په باره كي هم په دې ځان پوه كول پكار دي چي هغه دادی چي پر الله تعالى باندي دا واجب نه دي چي مرتكب كبيره ته عذاب وركړي بلكه ددې دارومدار د هغه پر خوښي دی ،كه وغواړي په عذاب كي به يې اخته كړي او كه وغواړي په خپل فضل او كرم سره به يې وبخښي، همدارنگه په دې هم پوهيدل پكار دي چي د گناه كبيره مرتكب يعني كونكی به هميشه په دوږخ كي نه وي بلكه د الله په حكم سره به هغه چي څومره وخت لپاره په دوزخ كي واچول سي د هغه وروسته هغه خپله سزا پوره كولو سره جنت كي د داخليدو مستحق سي ،داهل سنت والجماعت دا مذهب دی .

﴿۵۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوامامة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

صَلُّوا خَمْسَكُمْ وَصُومُوا شَهْرَكُمْ وَأَدُّوا زَكَاةَ أَمْوَالِكُمْ وَأَطِيعُوا ذَا أَمْرِكُمْ

خپل پنځه لمنځونه كوئ او د (رمضان) د مياشتي روژې نيسئ د خپل مال زكوة ادا كوئ او د خپل حاكم اطاعت كوئ

تَدْخُلُوا جَنَّةَ رَبِّكُمْ . رواه أحمد والترمذي .

او تاسو به د خپل رب په جنت کي داخل سئ . احمد او ترمذي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٥\٢٥١، ٢٦٢، والترمذي ٢\٥١٦، رقم: ٦١٦.

**تشريح** : د حاکم څخه مراد پاچا، امیر او مشر دی .ددې مطلب دادی چي مسلمانانو ته دا پکار ده چي د خپل باچا او امیر د حکمو تابعداري او د هغوی د امر اطاعت وکړي مګر په دې کي يو شرط دی چي د اطاعت او فرمانبرداری دا حکم به تر هغه وخته پوري وي چي د هغوی يو حکم لا به د شریعت څخه وتلی نه وي او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د فرمان خلاف نه وي، که داسي وي چي امیران او پاچاهان د شریعت د حدودو څخه تجاوز وکړي او يا غلط احکام ورکړي يا داسي امر وکړي چي د قرآن او سنت خلاف وي،نو بيا يوازي دا نه چي د هغوی اطاعت او فرمانبرداري ضروري نه ده بلکه داسي پاچهان او امیران په صحيح لاره راوستلو او هغوی د قرآن او سنت پر بنود ل سوو لارو باندي په تلو او د هیواد او قوم چلولو لپاره مجبور کړل سوي دي .

او يا د حاکم څخه مراد علماء دي چي قرآن، سنت او د اسلامي شريعت د علم خاوندان چي هر کله مسلمانانو ته يو شرعي حکم ورکړی،او هغوی دين او شريعت طرف ته راوبلي نو د هغوی پيروي پر هر مسلمان باندي لازمه ده . همدارنګه د حاکم څخه هر هغه سړی مراد کيدای سي چي د يو کار لپاره حکم او کار ساز ټاکل سوي وي يعني که يو مسلمان يو سړی خپله په يو معامله کي حاکم او رهبر مقرر کړي نو د هغه لپاره ضروري ده چي هغه د هغه حاکم رهبر مشورې ومني او هغه چي کوم صحيح حکم ورکړي د هغه پابندي لازمه ده .

﴿۵۲۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول ﷺ وفرمايل :

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرُوْا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِيْنَ وَاضْرِبُوْهُمْ

کله چي ستاسو ماشومان د اوو کالو سي نو هغوی ته د لمانځه کولو حکم ورکوئ او وهئ يې

عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِيْنَ وَفَرِّقُوْا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ . رواه أبو داود

چي لمونځ کوي کله چي د لسو کالو سي او د هغوی د خوب ځايونه سره جلا کړئ . ابوداؤد

وكذا رواه في شرح السنة عنه، وفي المصابيح عن سبرة بن معبد.

او همدا رنګه په شرح السنة او مصابيح کي د سبرة بن معبد څخه.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۳۳۴، رقم: ۴۹۵، البغوي في شرح السنة ۲\ ۴۰۶، رقم: ۵۰۵. مصابيح السنة ۱\ ۲۵۳، رقم: ۴۰۰.

**تشريح** : د دې حديث په ذريعه مسلمانانو ته حکم ورکول کيږي چي کله د هغوی ماشومان د اوو کالو سي نو د هغه وخت څخه دي دوی ته د لمانځه تاکيد ورکړي چي کله دی په کم عمري کي پر لمانځه کولو عادت سي او هرکله چي هغه بالغ کيدو ته نژدې سي يعني هغه د لسو کالو سي نو که يي د هغوی د ويلو او اوريدلو سره لمونځ نه کوی نو هغوی ته په تاکيدا و وهلو سره لمونځ کول پکار دي او څرنګه چي په دې عمر کي د لمانځه کولو تاکيد ضروري دی همدا سي هغوی ته د لمانځه شرائط وغيره ورښودل هم پکار دي چي هغوی ته ورسره ورسره د لمونځ کولو صحيح طريقه معلومه سي.

د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي ماشوم کله د غه عمر ته ورسيږي نو بيل بيل يې بيده کول پکار دي که دوه وروڼه، خور او ورور يا دوه نا بلده هلک او انجلۍ په يوه بستره کي بديږي نو په دې عمر کي د هغوی بسترې جلا کول پکار دي او دا پکار دي چي دوی يو ځاي بيده نه سي.

﴿۵۲۷﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَهْدُ الَّذِيْ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه عهد

بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمُ الصَّلاَةُ فَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ كَفَرَ . رواه أحمد والترمذي و النسائي وابن ماجه.

چي زموږ او د منافقانو په منځ کي دی هغه لمونځ دی چا چي لمونځ پرېښود ی هغه کافر سو . احمد، ترمذي، نسائي او ابن ماجه

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ۵\ ۳۴۶ والترمذي ۵\ ۱۵، رقم: ۲۶۲۱، والنسائي ۱\ ۲۳۱، ۲۳۲، رقم: ۴۶۲ وابن ماجه ۱\ ۳۴۲، رقم: ۱۰۷۹.

**تشريح** : ددې مطلب دادی چي زموږ او د منافقانو تر مينځ د امن او امان معاهده (تړون) سوې ده چي موږ به هغوی نه قتلوو او د اسلام احکام به هغوی نه نافذ کوي نو ددې وجه داده چي هغوی به لمونځ کوی په جماعت کي به حاضريده او د اسلام د نورو ظاهري احکامو د تابعداری کولو په وجه مسلمانانو سره مشابهت لري نو چاچي لمونځ چي په ټولو عبادتونو کي غوره عبادت دی پرېښودی نو هغه د کافر په ډول سو نو مسلمانانو ته دا پکار ده چي هغوی د لمونځ په پرېښودلو سره کفر ظاهر نه کړي همداسي د دې جملې (فقد کفر) معنی دا سوه چي چا لمونځ پريښودی هغه کفر څرګند کړ .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۵۲۸﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي يو سړی رسول الله ﷺ ته راغلی

وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي عَالَجْتُ امْرَأَةً فِي أَقْصَى الْمَدِينَةِ وَإِنِّي أَصَبْتُ

او ويې ويل: اې دالله رسوله ! ما د مدينې پر غاړه د يوې ښځي سره ملاعبت (تر غاړه کېدل) وکړل او زه ورسېدم

مِنْهَا مَا دُونَ أَنْ أَمَسَّهَا فَأَنَا هَذَا فَاقْضِ فِيَّ مَا شِئْتَ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ لَقَدْ

د هغې سره ماسيوا د صحبت تر حده زه حاضريم کوم حد (شرعي سزا) چي تاسو پر ما جاري کول غواړئ ، عمر رضی اللہ عنہ ورته وويل:

سَتَرَكَ اللهُ لَوْ سَتَرْتَ نَفْسَكَ قَالَ وَلَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا

الله جل جلاله ستا پرده پټه کړې وه (غوره وه) چي تا هم خپل عيب پټ کړی وای ، عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ وايي چي رسول الله ﷺ د هغه هيڅ جواب ورنه کړ

وَقَامَ الرَّجُلُ فَانْطَلَقَ فَأَتْبَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلاً فَدَعَاهُ

هغه سړی ولاړ سو او روان سو ، رسول الله ﷺ د هغه رابللو لپاره يو سړی واستوی هغه راغلی

وَتَلاَ عَلَيْهِ هَذِهِ الآيَةَ: وَ أَقِمُ الصَّلاَةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ

نو رسول الله ﷺ د هغه په مخكي دا آيت تلاوت كړ: و اقم الصلوة .. (سهار او مابنام او د شپې په څه برخه كي لمونځ كوه په تحقيق سره

الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ . فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ

نيكي بدۍ رژوي دا د نصيحت منونكي لپاره نصيحت دی) په ناستو خلكو كي يوه سړي وويل:

الْقَوْمِ يَا نَبِيَّ اللَّهِ هَذَا لَهُ خَاصَّةً قَالَ بَلْ لِلنَّاسِ كَافَّةً. رواه مسلم

اې د الله رسوله ! دا حكم د دې سړي لپاره دی يا د ټولو لپاره ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د ټولو خلكو لپاره دی .مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۱۱۶– ۲۱۱۷، رقم: ۴۲– ۲۷۶۳.

**د لغاتو حل**: (عالجت): أي داعبتها وزاولت منها ما يكون بين الرجل والمرأة غير أني ما جامعتها. (لوبي مني ورسره وكړې).

**تشريح** : ددې باب په اول فصل دريم حديث كي هم ددې آيت په باره كي ښودل سوي دي چي د ورځي اول څخه سهار او آخر څخه ماپښين او مازديگر مراد دی همداسي د شپې څو ساعته مابنام او ماخستن مراد دي، ابن حجر رحمة الله عليه ليكلي دي په اول فصل كي همداسي په حديث ۳ كي تير سوي دي هغه خو د يو سړي (ابو اليسير) واقعه ده او دغه حديث چي دلته ذكر سوی دی دا د يو بل صاحب واقعه ده نو كيدای سي چي دغه آيت هم د هغه سړي د پاره په دوهم وار نازل سوی وي، خو محققينو ليكلي دي چي تعدد واقعه سره دا نه لازميږي چي آيت هم مكرر نازل سوي وي او نه دا حديث پر دغه دلالت كوي بلكه رسول الله ﷺ هغه آيت چي د مخكي سړي په باره كي نازل سوی وو د سند په توگه د دې سړي په مخ كي تلاوت كړ.

﴿۵۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ زَمَنَ الشِّتَاءِ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي كريم دباندي راووتی د يخ په فصل (ژمي) كي

وَالْوَرَقُ يَتَهَافَتُ فَأَخَذَ بِغُصْنَيْنِ مِنْ شَجَرَةٍ قَالَ فَجَعَلَ ذَلِكَ الْوَرَقُ يَتَهَافَتُ

چي د ونو پاڼي رژېدلې رسول الله ﷺ د يوې وني ښاخ ونيوی او د هغه څخه پاڼي راتوی سوې

قَالَ فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ قُلْتُ لَبَّيْكَ يَارَسُوْلَ اللهِ قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لِيُصَلِّي

رسول الله ﷺ وفرمايل : اې ابوذره ! ما ووېل: لبيک اې د الله رسوله ! نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل : هر كله چې مسلمان بنده خاص د الله ﷻ لپاره لمونځ كوي

الصَّلاَةَ يُرِيْدُ بِهَا وَجْهَ اللهِ فَتَهَافَتُ عَنْهُ ذُنُوْبُهُ كَمَا يَتَهَافَتُ هٰذَا الْوَرَقُ

نو د هغه ګناهونه داسې رژېږي لكه څرنګه رژېږي دغه پاڼې

عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ . رواه أحمد

د دغې درختې څخه. احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۷۹.

**د لغاتو حل**: (يتهافت) : اي طفق الورق من الغصنين يتساقط تساقطا سريعا (رالوېږي).

**تشريح** : خالص د الله ﷻ لپاره د لمونځ كولو مطلب دادى چې لمونځ چا ته د ښودلو يا يو بل مقصد لپاره و نه كړل سي بلكه يوازې او يوازې د خپل پروردګار د خوشحاله كېدو او فرمانبردارۍ او د هغه د رضا د طلب لپاره وكړل سي.

﴿۵۳۰﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت زيد بن خالد الجهني رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ صَلَّى سَجْدَتَيْنِ لاَ يَسْهُوْ فِيْهِمَا غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . رواه أحمد

چا چې دوه ركعته لمونځ وكړ او خطا نه سو نو الله ﷻ به د هغه ټول مخكني ګناهونه معاف كړي. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۹۴.

﴿۵۳۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت كوي چې

أَنَّهُ ذَكَرَ الصَّلاَةَ يَوْمًا فَقَالَ، مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَتْ لَهُ نُوْرًا وَبُرْهَانًا وَنَجَاةً يَّوْمَ

رسول الله ﷺ یوه ورځ د لمانځه یادونه وکړه او وه یې فرمایل: څوک چي د لمانځه ساتنه کوي دا لمونځ به د هغه لپاره د نور سبب وي د پوره ایمان دلیل به وي او خلاصون به وي په ورځ

الْقِيَامَةِ وَمَنْ لَّمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا لَمْ تَكُنْ لَّهُ نُوْرٌ وَّلَا بُرْهَانًا وَّلَا نَجَاةً وَكَانَ

د قیامت او څوک چي د لمانځه ساتنه نه کوي نو د هغه لپاره به نه د نور سبب وي نه د پوره ایمان او نه د بخښني ذریعه او هغه به وي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَعَ قَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ. رواه أحمد والدارمي والبيهقي في شعب الإيمان

د قیامت په ورځ د قارون، فرعون، هامان او ابی بن خلف سره وي. احمد، دارمي او بیهقي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۱۶۹، والدارمي ۲\۳۹۰، ۲۹۱، رقم: ۲۷۲۱، والبيهقي في شعب الايمان، رقم: ۲۶۲۲.

**تشريح**: د لمانځه د ساتني مطلب دادی چي لمونځ په ښه توګه او پوره پابندي سره کوي، قضائي (ناغه) پکښې نه وي د لمانځه ټول فرائض، واجبات، سنتونه او مستحبات اداء کړل سي همداسي کله چي یو سړي لمونځ کوي نو ویل کیدای سي چي هغه د لمانځه ساتنه وکړه او د ذکر سوي ثواب حقدار به وي، او کوم سړي چي د دې برعکس عمل اختیار کړي چي نه لمونځ په ترتیب او پابندۍ سره کوي او نه د لمانځه د فرائضو، واجباتو، سنتو او مستحباتو رعایت کوي نو د هغه په باره کي به وویل سي چي هغه د دې شیانو د پریښودلو په وجه د پورتني عذاب ور به وي.

فکر کول پکار دي چي د لمانځه پابندي او پر دي همیشتوب اختیارولو څومره تاکید دی ځکه په دې کي کوتاهي کول په اصل کي د الله تعالی عذاب او د خپلي بربادۍ دعوت ورکول دي او دا هم خیال ساتل پکار دي چي هرکله د لمانځه محافظت نه کولو باندي دومره سزا ده چي د داسي سړي حال به د مذکوره خلکو په شان لعین او د بد بخت کفارو سره د کیدو خبر ورکول سي نو د هغه سړي به څه حال وي چي لمونځ پریږدي اویو وخت هم د الله تعالی په مخکي سجده نه کوي.

د قارون او فرعون په شان مشهور لعنتي او بد بخت خو ټول پیژني، هامان د فرعون وزیر وو، ابی بن خلف هغه مشهور مشرک دی چي د رسول الله ﷺ ځاني دښمن وو، او رسول الله

ﷺ په جنګ احد کي په خپل لاس مبارک سره هغه د مرګ په کنده کي غورځولو سره جهنم ته رسولی وو، له دې کبله دا لعین ته د امت په بد بختو کي تر ټولو ځخه زیات بد بخت ویل کیږي.

په آخر کي په دې خبره هم پوه سئ چي په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده چي کوم سړی د لمانځه ساتنه کوي یعني په پوره اخلاص او ټولو فرائضو، واجباتو، سننو او مستحباتو سره لمونځ همیشه په پابندي سره کوي، نو په قیامت کي به هغه د انبیاء کرام، صدیقین، شهداء او صلحاء سره ملګري وي.

الله تعالی دي موږ ټولو ته د لمانځه د پابندۍ او پوره ذوق او شوق سره ادا کولو توفیق راکړي چي موږ ټول د دې سعادت ځخه برخه من سو.

﴿۵۳۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيْقٍ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن شقیق رضي الله عنه ځخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ اصحابو به

وَسَلَّمَ لَا يَرَوْنَ شَيْئًا مِّنَ الْأَعْمَالِ تَرْكُهُ كُفْرٌ غَيْرَ الصَّلَاةِ. رواه الترمذي.

د یوه عمل پرېښودل کفر نه باله پرته د لمانځه ځخه. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۵، رقم: ۲۶۲۲.

**تشريح**: دلته چي په وضاحت سره دا فرمایل سوي دي چي د صحابه کرامو رضي الله عنهم پرته د لمانځه ځخه یو بل عمل پرېښودل کفر نه ګڼی نو په دې کي د دې خبری دلیل دی چي د صحابه کرامو په نزد نه یوازي دا چي لمونځ پرېښودل د ډیري سختی ګناه خبره وه بلکه دا یې کفر ته نژدې بلل.

﴿۵۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ أَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ أَنْ لَا تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَّإِنْ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه ځخه روایت دی چي ما ته زما ملګري (رسول الله ﷺ) دا وصیت کړی دی چي ته هیڅوک د الله جل جلاله سره شریک مه نیسه که ځه هم

قُطِعْتَ وَحُرِّقْتَ وَلَا تَتْرُكْ صَلَاةً مَّكْتُوْبَةً مُّتَعَمِّدًا فَمَنْ تَرَكَهَا مُتَعَمِّدًا فَقَدْ

ستا بدن ټوټې ټوټې سي او ته په اور کي و سوزول سې او فرض لمونځ په قصد سره مه پرېږده ځکه چي چا فرض لمونځ پرېښودی په قصد سره نو په تحقیق سره

بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ وَلَا تَشْرَبِ الْخَمْرَ فَإِنَّهَا مِفْتَاحُ كُلِّ شَرٍّ . رواه ابن ماجه

د هغه څخه د اسلام ذمه خلاصه ده او ته شراب مه څښه ځکه چي دا د ټولو خرابيو کيلي ده. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۳۹، رقم: ۴۰۳۴.

**تشريح** : رسول الله ﷺ ابو درداء رضي الله عنه ته د اصل خبري تعليم ورکړ که ته ټوټه ټوټه او سوځل کيږې نو هم شرک مه کوه کنې د جبر په حالت کي هر کله چي غاړه د توري په مخ کي وي نو په زړه کي د ايمان او يقين پوره دولت آخستي ژبي سره کلمه کفر اداء کول جائز دي د ( ذمه بري کيدو ) مطلب دادی چي کوم سړی قصدا لمونځ پريږدي نو هغه داسي دی لکه د اسلام د يو لوی او بنيادي قانون او حکم څخه چي بغاوت وکړي چي د هغه په وجه د اسلام عهد د هغه څخه ختم سو او هغه د اسلام د دائرې څخه خارج سو د دې مطلب د وضاحت کولو وروسته به وويل سي چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد د لمانځه لپاره پرېښودو لپاره د سختي زورونې او تنبيه لپاره دی.

او يا د ذمې وتلو څخه مراد دادی چي د ايمان راوړلو او د اسلام اطاعت قبلولو په وجه اسلام د هغه د ځان او مال د حفاظت کولو ضمانت چي اخيستی وو په اسلامي رياست کي هغه ته امان حاصل وو اوس هغه د لمانځه د پرېښودو په وجه د اسلام د امان او ضمانت څخه ووتی، شرابو ته يې د ټولو خرابيو کيلي ځکه فرمايلې ده چي شراب په بنيادي توګه سره د انسان زړه او دماغ او ذهن او فکر بالکل بيکاره کوي او ختموي يې د هغه نتيجه داسي چي شراب څښونکی سړی چي د نشې په وجه د خپل عقل څخه لاس په سر سي نو د دنيا ټولي خرابۍ د هغه څخه واقع کيدل پيل سي دا وجه ده چي شراب ته ام الخبائث يعني د خبائثو مور ويل سوې ده .

==========

# بَابُ الْمَوَاقِيْتِ (د لمانځه د وختونو بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۳۴﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَقْتُ الظُّهْرِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَانَ ظِلُّ الرَّجُلِ كَطُولِهِ مَا لَمْ يَحْضُرُ الْعَصْرُ

د ماپښين وخت هغه دی چي زوال وسي او د سړي سايه د هغه د قد برابر سي تر څو پوري چي د مازديگر وخته را نه سي

وَوَقْتُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَصْفَرَّ الشَّمْسُ وَوَقْتُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ

او د مازديگر وخت هغه دی چي تر دې څخه وروسته وي بيا تر هغه وخته پوري چي لمر ژړ سي او د ماښام وخت تر هغه وخته پوري دی چي تر څو پوري شفق غائب نه سي

وَوَقْتُ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ الْأَوْسَطِ وَوَقْتُ صَلَاةِ الصُّبْحِ مِنْ طُلُوعِ

او د ماخستن لمونځ تر نيمي شپې پوري دی او د سهار د لمانځه وخت د ختلو څخه

الْفَجْرِ مَا لَمْ تَطْلُعْ الشَّمْسُ فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ فَأَمْسِكْ عَنِ الصَّلَاةِ فَإِنَّهَا

د صبح صادق تر هغه وخته پوري چي لمر نه وي راختلی نو هر كله چي لمر را وخيږي نو د لمانځه څخه منعه سئ ځكه چي لمر

تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ. رواه مسلم

د شيطان د دوو ښكرو په منځ كي راوزي .مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۴۲۷، رقم: ۱۷۳- ۶۱۲ و ۱۷۴- ۶۱۲.

**تشريح**: د دې څخه مخكي چي د حديث د تشريح كولو سره د لمانځه د وختونو په باره كي عرض وكړل سي مناسب معلوميږي چي د هغه په يو څو اصطلاحي الفاظو معنی بيان كړل سي

چي په هغه د پوهیدو وروسته به مقصد ته په رسیدو کي ډیره آساني وي .
زوال : د لمر کښته کیدو ته زوال وایي چي ز موږ په اصطلاح کي غرمې ته ویل کیږي .
اصلي سایه : دا هغه سایې ته وایي چي د زوال په وخت کي باقي پاته کیږي دا سایه د هر ښار په اعتبار مختلف وي چیري لویه وي او چیري کوچنۍ وي او چیري بالکل نه وي لکه په مکه معظمه او په مدینه منوره کي .
د زوال او اصلي سایې د پیژندلو آسانه ترتیب دادی چي یو سیده لرگی پر اواره مځکه باندي ښخ کړي او تر کوم ځایه چي د هغه سایه ورسیږي پر هغه ځاي باندي یوه نښه جوړه کړي بیا وگوري چي هغه سایه چي د هغه نښي څخه څومره لیري ځي یا شاته پاته کیږي که مخکي ځي نو په دې پوه سه چي اوس لا زوال نه دی سوی او که چیري وروسته ځي نو زوال وسوا و که چیري یو ډول هم نه وي نو دې ته استواء وایي مثال :د اصلي سایي څخه ماسوا چي د هرشي سایه د هغه دوچنده سي، مثال دوهم : د اصلي سایي څخه ماسوا چي د هر شي سایه د هغه څخه دو چنده سي
ددې په اصطلاحي تعریفونو باندي د پوهیدو وروسته اوس د حدیث خوا ته راسئ رسول الله ﷺ د لمانځه د وختونو په اړه تر ټولو وړاندي د ماپښین ذکر کړی دی د دې وجه داده چي جبرائیل علیه السلام د لمانځه د وخت د تعلیم په اړه تر ټولو وړاندي رسول الله ﷺ ته دا لمونځ ورکړی وو د دې وجه داده چي د ماپښین لمانځه ته نماز پیشین ویل سوي دي .
د ماپښین د لمانځه اول وخت هغه وخت پیل کیږي هر کله چي د آسمان په مابینځ کي لمر مغرب طرف ته لږ شان مائل وي چي هغه ته زوال وایي او د دې آخري وخت هغه دی هر کله چي د سړي سایه د هغه د طول برابر پرته د اصلي سایه سي د اصلي سایې په باره کي دا ښودل سوي دي چي دا هغه سایه ده چي د زوال په وخت وي یعني پر اکثرو ځایو باندي هر کله چي لمر پر سر باندي نه راځي نو هلته بالکل د غرمې وخت د هر شي لږ سایه وي هغه سایه پریښودو سره تر څو پوري چي د یوه شي د طول برابر سایه وي د ماپښین وخت به پاته وي
ما لم یحضر العصر ( د مازدیگر تر وخت راتلو پوري ) دا جمله په اصل کي د اولي جملې تاکید دی هر کله چي یوه مثل ته سایه ورسیده نو د ماپښین وخت ختم سو او د مازدیگر وخت پیل سو، ددې جملې مطلب د مخکي د جملي سره اداء سوی وو ، هو دومره خبره نوره ویل کیږي چي دا جمله د هغه شي دلیل دی چي د ماپښین او مازدیگر وخت پیل کیږي د آخري وخت خبره داده چي تر څو پوري لمر ژړ سوی نه وي د مازدیگر وخت بلا کراهیته پاته وي په حدیث کي دې

ته اشاره ده البته ددې وروسته تر لمر پټيدو پورې د جواز وخت پاته دی.

اوس سوال دا پيدا کيږي چې د لمر د ژړوالي څخه څه مراد دی؟ نو ځيني حضرات دا وايي چې د لمر د ژړيدو څخه دا مراد دی چې د لمر ټکی دومره بدله سي چې هغه ته د کتلو سره سترګې نه بريښي ځينو حضراتو ويلي دي چې ددې مطلب دادی چې د لمر شعاع پر ديوال وغيره باندې ولوږي نو په هغه کې تغير راسي.

په دې خبره هم پوه سئ چې امام شافعي رحمة الله عليه، امام مالک رحمة الله عليه، امام احمد رحمة الله عليه او صاحبين رحمة الله عليهما (يعني امام ابو يوسف او امام محمد) او د امام زفر رحمة الله عليه مذهب دادی چې د ماپښين وخت تر يوه مثله پورې پاته وي تر دې وروسته د مازديګر وخت پيل کيږي د دې حضراتو دليل دا حديث دی چې د هغه څخه دا معلوميږي چې د ماپښين آخري وخت تر يو مثل پورې وي

او کوم چې د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه تعلق دی د يو روايت سره سم د هغه هم هغه مذهب دی کوم چې د جمهورو علماؤ دی بلکه ځيني حضراتو خو دا ليکلي دي چې د امام اعظم رحمة الله عليه فتوی هم پر دې مذهب ده، در مختار د ډيرو کتابونو په حواله دې مذهب ته ترجيح ورکړې ده خو د دوی مشهور مذهب دادی چې د ماپښين وخت تر دوه مثله پورې وي د دوی دلائل په هدايه وغيره کې مذکور دي

په هر حال علماء په دې سلسله کې يوه صفا او سيده لار ښودلې ده، هغوی وايي مناسب داده چې د ماپښين لمونځ خو په يوه مثل کې دننه دننه وکړل سي او د مازديګر لمونځ دوه مثل څخه وروسته وکړل سي چې دواړه لمنځونه بيله اختلافه ادا سي، د ماښام وخت د لمر لوېدو وروسته پيل کيږي او تر شفق غائب کېدو پورې ختميږي، د اکثرو امامانو په نزد شفق هغه سرخي (سوروالي) ته وايي چې د لمر لوېدو وروسته ښکاره کيږي د اهل لغت وينا هم داده مګر د امام اعظم رحمة الله عليه او د علماؤ د يو بلې ډلې قول دادی چې شفق د هغه سپين والي نوم دی چې د سوروالي د ختميدو وروسته ښکاره کيږي

د اهل لغت او نورو امامانو د وينا سره سم د امام اعظم رحمة الله عليه يو قول دا هم دی چې شفق د سوروالي نوم دی، په شرح وقايه کې فتوی پر دې قول مذکوره ده، نو د احتياط غوښتنه داده چې د ماښام لمونځ د سوروالي د پټيدو څخه مخکې وکړل سي او د ماخستن لمونځ د سپين والي د پټيدو وروسته ادا کړل سي چې دواړه لمنځونه بيله اختلافه اداء سي.

د ماخستن په باره کې مختار مذهب او فيصله داده چې وخت د شفق کيدو څخه وروسته

پيل کيږي او تر نيمي شپې پوري بلا کراهت پاته وي البته د جواز وخت د طلوع فجر څخه مخکي پوري دي، د سهار د لمانځه وخت د صبح صادق د راختو څخه وروسته پيل کيږي او د لمر پر راختلو باندي ختميږي ، په ظاهره خو د حديث څخه دا معلوميږي چي طلوع صبح صادق څخه وروسته تر لمر ختو پوري ټول وخت د سهار د لمانځه لپاره غوره دی مګر ځيني حضرات وايي چي د سهار لمونځ مختار وخت تر ښه رڼا پوري دی د دې څخه وروسته د جواز وخت دی.
د لمانځه د وختونو په تفصيل باندي د پوهيدو څخه وروسته اوس د حديث شريف د آخري جملې په مطلب باندي هم پوه سئ :
ارشاد يې فرمايلی دی کله چي لمر راوخيژي نو د لمانځه څخه منعه سئ ځکه چي لمر د شيطان د دواړو ښکرونو په مينځ کي راخيژي ، د دې مطلب دا نه دی چي د لمر راختلو ځای د شيطان دواړه ښکرونه دي چي لمر د هغه څخه دننه راخيژي بلکه ددې مطلب خپله يو روايت ښودلی دی چي د لمر ختلو وخت شيطان د لمر مخته په راتلو سره ودريږي او خپل سر لمر ته نژدې کوي همداسي د لمر د ډوبيدو وخت کوي د هغه ددې طرز عمل سبب دادي چي کوم خلک د لمر عبادت کوي او د هغه مخته سجده کوي د دې کفارو ددې طرز عمل په ذريعه هغه دا ګمان کوي چي دا خلک زما عبادت کوي همداسي هغه خپل د تابعدارانو په ذهن کي دا خبره کښينوي چي دا خلک د لمر مخکي سجده نه کوي بلکه په حقيقت کي زما عبادت کوي او زما په مخ کي تندی پر مځکه ايږدي ځکه رسول الله ﷺ خپل امت ته ددې خبري حکم ورکړی دی چي په دې وختونو کي دي هغوی لمونځ نه کوي چي د مسلمانانو عبادت د شيطان د عبادت کونکو د عبادت په وختونو کي نه وي

﴿۵۳۵﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ اِنَّ رَجُلاً سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه

عَنْ وَقْتِ الصَّلاَةِ فَقَالَ لَهُ صَلِّ مَعَنَا هٰذَيْنِ يَعْنِي الْيَوْمَيْنِ فَلَمَّا زَالَتِ الشَّمْسُ

د لمونځونو د وختونو په اړه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دا دوې ورځي زموږ سره لمونځ وکړه، کله چي لمر پر زوال سو

أَمَرَ بِلاَلاً فَأَذَّنَ ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الظُّهْرَ ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ

نو رسول الله ﷺ حضرت بلال رضی اللہ عنہ ته حكم وركړ ،هغه آذان وكړ بيا يې هغه ته حكم وركړ هغه تكبير (اقامت) وكړ رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ ادا كړ، بيا رسول الله ﷺ د مازديګر د تكبير حكم وكړ نو رسول الله ﷺ د مازديګر لمونځ ادا كړ كوم وخت چي لمر

مُرْتَفِعَةٌ بَيْضَاءُ نَقِيَّةٌ ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْمَغْرِبَ حِينَ غَابَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ أَمَرَهُ

پورته او صاف وو، د هغه وروسته يې د ماښام حكم وكړ كوم وخت چي لمر غائب سو بيا يې حكم وركړ هغه ته

فَأَقَامَ الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ الْفَجْرَ حِينَ طَلَعَ الْفَجْرُ

نو هغه اقامت وكړ د ماختستن د لمانځه كوم وخت چي شفق غائب سو ، رسول الله ﷺ بيا د سهار د لمانځه حكم وركړ كله چي سهار سو

فَلَمَّا أَنْ كَانَ الْيَوْمُ الثَّانِي أَمَرَهُ فَأَبْرَدَ بِالظُّهْرِ فَأَبْرَدَ بِهَا فَأَنْعَمَ أَنْ يُبْرِدَ بِهَا

بيا دوهمه ورځ سوه نو رسول الله ﷺ د ورځي تر يخېدو پوري د انتظار حكم وكړ چي ورځ ښه يخه سوه نو رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ هغه وخت وكړ

وَصَلَّى الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ أَخَّرَهَا فَوْقَ الَّذِي كَانَ وَصَلَّى الْمَغْرِبَ قَبْلَ

او د مازديګر لمونځ يې هغه وخت وكړ كله چي لمر پر آخري لوړوالی وو (يعني په آخر وخت كي يې لمونځ وكړ) او د ماښام لمونځ يې ادا كړ مخكي تر

أَنْ يَغِيبَ الشَّفَقُ وَصَلَّى الْعِشَاءَ بَعْدَمَا ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ وَصَلَّى الْفَجْرَ

غائبېدو د شفق او د ماختستن لمونځ يې د شپې د دريمي برخي تيريدو وروسته ادا كړ او د سهار لمونځ يې ادا كړ

فَأَسْفَرَ بِهَا ثُمَّ قَالَ أَيْنَ السَّائِلُ عَنْ وَقْتِ الصَّلَاةِ فَقَالَ الرَّجُلُ أَنَا يَا رَسُولَ

په ښه رڼا كي ، بيا يې وفرمايل : د لمانځه د وختونو پوښتنه كونكی چيري دی؟ هغه سړي وويل اې د الله رسوله ! زه حاضر يم،

اللهِ قَالَ وَقْتُ صَلَاتِكُمْ بَيْنَ مَا رَأَيْتُمْ . رواه مسلم

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ستا د لمانځه وخت هغه دى چې د دې دواړو ورځو د وختونو په منځ كې دى . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم ۱\۴۲۸، رقم: ۱۷۶- ۶۱۳.

**تشريح** :د پوښتنه كونكي مطلب دا وو چې د لمنځونو د وختونو په اړه دانبودل سوي دي چې د لمانځه اول وخت څه دى رسول الله ﷺ هغه ته د لمنځونو وختونه په ژبه ښودلو پر ځاي زيات غوره دا وګڼل چې هغه ته يې په عملي توګه وښي چې وختونه د هغه په ذهن كې كښيني ځكه نو رسول الله ﷺ هغه ته د لمانځه اول او آخر دواړه وختونه ښودلو لپاره په اوله ورځ خو لمنځونه اول وخت كې وركړل او په دوهمه ورځ يې په آخر وخت كې وركړل .

په حديث كې اول د ماپښين ذكر سوى دى چې كله لمر زوال سي نو رسول الله ﷺ بلال ﷺ ته د اذان كولو حكم وركړ، هغه اذان وكړ. بيا رسول الله ﷺ د اقامت حكم وكړ د هغه څخه وروسته د مازديګر ذكر سوى دى مګر نه خو د مازديګر د وخت ذكر سوى دى او نه د مازديګر او د هغه وروسته د اذانونو ذكر سوى دى د دې وجه داده چې دا مشهور دي .

په دوهمه ورځ رسول الله ﷺ د ماپښين په يخيدو سره لمونځ وركړ، يعني د اولي ورځي په مقابله كې په دوهمه ورځ د ماپښين لمونځ يي دومره په زنډ سره وركړ چې د ګرمي شدت او سختي تللې وه، د مازديګر لمونځ رسول الله ﷺ د تاخير په مقابله كې زيات په زنډ سره يعني دوه مثل څخه وروسته وكړ مګر د اولي ورځي د زنډ مطلب دادى چې د مازديګر په لمانځه كې په اوله تاخير وسو بلكه د دې مطلب دادى چې د ماپښين د لمانځه څخه زنډ سوى وو .

په دوهمه ورځ رسول الله ﷺ ټول لمنځونه په زنډ سره يعني په آخري وختونو كې ادا كړل څرنګه چې اوس ذكر وسو مګر رسول الله ﷺ د ماخستن لمونځ تر آخر وخته پوري زنډولى وو نو په هغه سره به خلكو ته تر ډيره وخته پوري د ويښ پاته كيدو په وجه تكليف او پريشاني وه اوكه رسول الله ﷺ د ماخستن څخه مخكې بيده كيدى نو مناسب نه وه ځكه چې د ماخستن څخه مخكې بيده كيدل مكروه دي .

د حديث د آخري جملې مطلب دادى چې تا په دغه دوو ورځو كې زموږ سره په لمونځ كولو وليدل چې د لمنځونو اول وخت كوم دى او آخري وخت كوم دى، نو د پيل څخه تر پايه پوري اول وخت هم دى، اوسط هم او آخر وخت هم دى، د دې په مينځ كې چې ته كله غواړې لمونځ كولاى سې، د آخر وخت څخه مراد وخت مختار دى نه چې وخت جواز ځكه د لمنځونو كوم آخرې وخت

رسول الله ﷺ بیان فرمایلی دي د هغه څخه وروسته هم د لمانځه وخت پاته وي مگر هغه وخت جوازوي وخت مختار نه وي.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

﴿۵۳۶﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَمَّنِي

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ماته امامت راکړ

جِبْرِئيلُ عَلَيْهِ السَّلَام عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ فَصَلَّى بِيَ الظُّهْرَ حِيْنَ زَالَتِ الشَّمْسُ

جبرائیل علیه السلام کعبې ته نژدې دوه ځله یعني ما ته یې دوې ورځي لمونځ راکړ، ما ته یې د ماپښین لمونځ راکړ کوم وخت چي د لمر زوال سوی وو

وَ كَانَتْ قَدْرُ الشِّرَاكِ وَ صَلَّى بِيَ الْعَصْرَ حِينَ صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَ ظِلِّهِ وَ

او اصلي سایه د تسمې د چپلکي په ډول وه، او ما ته یې د مازدیگر لمونځ راکړ کله چي د هر شي سایه (د اصلي سایې څخه پرته) د هغه برابر سوه او

صَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ حِينَ أَفْطَرَ الصَّائِمُ وَصَلَّى بِيَ الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ وَ

ما ته یې د ماښام لمونځ راکړ کوم وخت چي روژه دار روژه ماتوي او ما ته یې د ماخستن لمونځ راکړ کوم وخت چي شفق غائب سو او

صَلَّى بِيَ الْفَجْرَ حِينَ حَرُمَ الطَّعَامُ وَالشَّرَابُ عَلَى الصَّائِمِ فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ صَلَّى

ما ته یې د سهار لمونځ راکړ کوم وخت چي پر روژه دار خوراک او څښاک حرام سي، کله چي دوهمه ورځ سوه نو ما ته یې لمونځ راکړ

بِيَ الظُّهْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ وَ صَلَّى بِيَ الْعَصْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ

د ماپښین کوم وخت چي د هر شي سایه د هغه برابر سوه او د مازدیگر لمونځ یې راکړ کوم وخت چي سایه د هر

شَيْءٍ مِثْلَيْهِ وَ صَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ حِيْنَ اَفْطَرَ الصَّائِمُ وَ صَلَّى بِيَ الْعِشَاءَ اِلٰى ثُلُثِ

شي دوچنده سوه او د مابنام لمونځ يې راكړ كوم وخت چي روژه دار روژه ماتوي او د ماخستن لمونځ يې د اولي دريمي برخي

اللَّيْلِ وَصَلَّى بِيَ الْفَجْرَ فَأَسْفَرَ ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيَّ جِبْرِيلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ هٰذَا وَقْتُ

د شپې پوري راكړ او د سهار لمونځ يې راكړ كله چي سهار ښه ځلانده سو، بيا جبرائيل عليه السلام ما ته متوجه سو او وه يې فرمايل: اې محمده! دا وخت

الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ وَالْوَقْتُ مَا بَيْنَ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ. رواه ابوداؤد والترمذي

ستا څخه مخكي د انبياؤ وو او ستا د لمانځه وخت د دې دوو وختو په منځ كي دى. ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۲۷۴، رقم: ۳۹۳، والترمذي ۱\ ۲۷۸– ۲۸۰، رقم: ۱۴۹.

**د لغاتو حل**: (الشراک): أي: مثل شراک النعل، وهو أحد سيور النعل الذي على وجهها.

**تشريح** : د ځاي او وخت په اعتبار اصلي سايه مختلف وي او په ځينو ځايو كي خو اصلي سايه زياته وي او په ځينو ځايو كي كمه وي او په ځينو ځايو ځيني وخت اصلي سايه بالكل نه وي څرنګه چي په مكه معظمه كي په نولسم سرطان سايه بالكل نه وي ځكه چي رسول الله ﷺ د اولي ورځي د ماپښين د لمانځه په باره كي فرمايلي دي چي حبرائيل عليه السلام په اوله ورځ ماته د ماپښين لمونځ هغه وخت راكړ كله چي په دغه ورځو كي په مكه معظمه كي اصلي سايه د څپليو د تسمو د پلنوالي برابر وه كه څه هم ماپښين اول وخت وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۵۳۷﴾: عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ أَخَّرَ الْعَصْرَ شَيْئًا فَقَالَ

د حضرت ابن شهاب [۱] رضي الله عنه څخه روايت دى چي عمر بن عبدالعزيز د مازديګر لمونځ لږ ناوخته وكړ نو وويل

۱ – نوم يې محمد بن عبدالله بن شهاب دى، د زهري په نسبت سره مشهور دى، نوموړي يو جليل القدر تابعي دي او د رمضان المبارک په مياشتي كي په كال (۱۲۴هـ) كي وفات سوى دى. ۱۲۰

لَهُ عُرْوَةُ أَمَا إِنَّ جِبْرِيلَ قَدْ نَزَلَ فَصَلَّى إِمَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ده ته عروة : جبرائيل علیه السلام راغلی او هغه رسول الله ﷺ ته لمونځ ورکړ ،

فَقَالَ لَهُ عُمَرُ اعْلَمْ مَا تَقُولُ يَا عُرْوَةُ فَقَالَ سَمِعْتُ بَشِيرَ بْنَ أَبِي مَسْعُودٍ

عمر بن عبد العزيز ورته وويل: څه چي ته وايي په هغه ځان پوه کړه اې عروه، عروه وويل ما د بشر بن مسعود څخه اوريدلي دي

يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه وايي چي ما د ابو مسعود رضی الله عنه څخه اوريدلي دي او هغه وويل چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

يَقُولُ نَزَلَ جِبْرِيلُ فَأَمَّنِي فَصَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ

چي فرمايل يې: جبرائيل علیه السلام راغلی او هغه زما امامت وکړ نو ما د هغه سره لمونځ وکړ بيا ما د هغه سره لمونځ وکړ

ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ يَحْسُبُ بِأَصَابِعِهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ. متفق عليه

بيا ما د هغه سره لمونځو کړ بيا ما د هغه سره لمونځ وکړ بيا ما د هغه سره لمونځ وکړ رسول الله ﷺ به داسي فرمايل او پر خپلو ګوتو يې حساب کاوه يعني پنځه لمنځونه . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\۳۰۵،۳۰۶، رقم: ۳۲۲۱ و مسلم ۱\۴۲۵، رقم: ۱۶۶- ۶۱۰

**تشريح**: د حضرت عروه رحمة الله عليه دا مقصد وو چي عمر بن عبد العزيز ته دا ياد کړي چي د جبرائيل عليه السلام د امامت په باره کي چي کوم حديث راغلی دی چي هغه رسول الله ﷺ ته په اوله ورځ په اول وخت کي لمنځونه ورکړي وه نو د دې څخه دا معلومه سوه چي لمنځونه په اول وخت کي ادا کول افضل دي ځکه تاسو په دې وخت په لمانځه کي تاخير وکړی که دا تاخير زيات نه وو د فضيلت سعادت ولي ترک کړ، عمر بن عبد العزيز رحمة الله عليه چي په جواب کي دا وويل چي اې عروه لږ په فکر سره خبره کوه دا څه وايې؟ د دې څخه د هغه مطلب دا وو چي د رسول الله ﷺ احاديث بيانول يو معمولي خبره نه ده بلکه دا يو ډير اهم او عظيم الشان شی دی په حديث بيانولو کي د احتياط ضرورت دی او حديث بغير د يو سند څخه بيانول نه دي

پکار ځکه په فکر سره حديث بيانوه او په سند سره يې بيانوه
د حضرت عروه رحمة الله عليه د جلالت شان او رفعت علم او وفضل تقاضا خو دا وه چي د هغه سره يي دا ډول خبره نه واى کړې مګر د روايت حديث عظمت شان سره سم ځکه دې طرف ته يې د هغه توجه راوګرځول بيا عروه رحمة الله عليه هم د روايت حديث د هغه د عظمت سره سم د عمر بن عبد العزيز توجه ګرځول نه يوازي دا چي د خپل علم او فضل خلاف يي ونه ګڼل ، بلکه د خپل خير او برکت ګڼلو سره سره په منتبه شو او د حديث پوره سند بيانولو سره د خپل قوت حفظ او ذهانت اظهار کولو سره دا خبره يي واضح کړل چي زه کومه خبره کوم هغه د معمولي درجې نه ده بلکه د هغې د صداقت زه يقيني علم لرم ځکه چي دا هغه روايت دى چي ما د بشير رحمة الله عليه څخه اوريدليدى او هغه د يو جليل القدر صحابي ابو مسعود رضي الله عنه څخه اوريدلى دى او هغه خپله د رسول اللهﷺ د ژبي مبارکي څخه اوريدلى دى، په دې حديث کي راوي د لمانځه وختونه نه دي بيان کړي ددې وجه داده چي مخاطب ته د وختونو پوره تفصيل معلوم وو ځکه دلته خو يوازي واقعه بيان کړل سوې ده هو په نورو روايتو کي د وختونو تفصيل هم بيان سوى دى .

﴿۵۳۸﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّهُ كَتَبَ إِلٰى عُمَّالِهِ إِنَّ أَهَمَّ أُمُوْرِكُمْ عِنْدِي

د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دى چي هغه خپلو واليانو ته وليکل چي زما په نزد ستاسو په کارونو کي تر ټولو مهم کار

الصَّلَاةُ فَمَنْ حَفِظَهَا وَحَافَظَ عَلَيْهَا حَفِظَ دِيْنَهُ وَمَنْ ضَيَّعَهَا فَهُوَ لِمَا سِوَاهَا

لمونځ دى نو چا چي د لمانځه ساتنه وکړه نو هغه د خپل دين ساتنه وکړه او چا چي لمونځ ضائع کړ هغه هر څه ضائع کړل ،

أَضْيَعُ ثُمَّ كَتَبَ أَنْ صَلُّوا الظُّهْرَ إِذَا كَانَ الْفَيْءُ ذِرَاعًا إِلٰى أَنْ يَّكُوْنَ ظِلُّ أَحَدِكُمْ

تر دې وروسته عمر بن الخطاب رضي الله عنه وليکل د ماپښين لمونځ کوئ هر کله چي سايه اصلي وي تر هغه وخته پوري چي ستاسو سايه ستاسو

مِثْلَهُ وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ بَيْضَاءُ نَقِيَّةٌ قَدْرَ مَا يَسِيْرُ الرَّاكِبُ

د قد برابر وي او د ماز دیگر لمونځ کوئ تر هغه وخته پوري چي لمر لوړ او سپین وي په اندازه د هغه چي مزل کوي سپور

فَرْسَخَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٌ قَبْلَ مَغِيبِ الشَّمْسِ وَالْمَغْرِبَ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ وَالْعِشَاءَ

دوه فرسخه یا درې فرسخه مخکي تر ډوبیدو د لمر او د ماښام لمونځ کوئ د لمر لوېدو څخه وروسته او د ماخستن لمونځ کوئ

إِذَا غَابَ الشَّفَقُ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ

هر کله چي شفق ولاړ سي بیا د دریمي برخي تر شپې پوري ، کوم سړی چي بیده سي (د ماخستن دلمانځه څخه مخکي) نو بیدیدې دي نه سي

عَيْنُهُ فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ وَالصُّبْحُ وَالنُّجُومُ بَادِيَةٌ مُشْتَبِكَةٌ . رواه مالك

د هغه سترگي او څوک چي بیده سي د هغه سترگي دي بیدې نه سي او څوک چي بیده سي د هغه سترگي دي بیدې نه سي (دا ښیرا ده) او د سهار لمونځ کوئ هر کله چي ستوري ښکاره او گڼ وي .مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱-۶-۷، رقم: ۶.

**د لغاتو حل**: (بادية): اى ظاهرة (ښکاره) . (مشتبكة): أي مختلطة (گڼ او ډېر) .

**تشريح**: لمونځ د دين ستن او بنیاد دی، لمونځ هغه عبادت دی چي څوک د بدیو څخه منعه کوي او د نیکۍ او سعادت پر لاریي روانوي ځکه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وفرمایل چا چي د لمانځه ساتنه وکړه لکه هغه چي د دين د ټولو کارونو ساتنه وکړه، او داسي یې وفرمایل چي چا لمونځ ضايع کړي يعني لمونځ یې بالکل نه وکړ اوکه وه یې هم کړي د شرائطو او واجباتو یې لحاظ ونه کړ نو هغه د لمانځه څخه پرته د نورو واجباتو او مستحباتو او ديني امورو ډېر زيات ضائع کونکی دی ځکه چي لمونځ د عباداتو اصل دی، هر کله چي د هغه خیال ونه ساتي نو د هغه څخه د دين د نورو امورو خيال ساتلو او په هغه د عمل کولو څه امید کیدای سي، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا حکم چي د ماپښین لمونځ یو گز سایه کیدو وخت یعني ددې څخه سمدستي وروسته چي هغه د ماپښین اول وخت دی کوه هغه ځایو لپاره دی چیري چي اصلي سایه دومره قدر وي څرنګه چي مخکي ښودل سوي دي که اصلي سایه د ځایو او وخت په

اعتبار وي نو چيري خو زياته وي او چيري کمه . حضرت عمر رضي الله عنه د ماخستن تر لمانځه مخکي بيده کيدونکي په باره کي درې ځله ښيرا په تاکيد اوتهديد سره کړې ده د هغه مطلب دادی چي ماخستن ځخه مخکي لمونځ کولو پرته چي کوم سړی بيده سي الله پاک دي د هغه د سترګو خوب نصيب نه کړي يعني هغه دي بې آرامي او بې قراري کي اخت وي

حضرت ابن حجر شافعي رحمة الله عليه فرمايي چي ددې ځخه دا معلومه سوه چي د ماخستن دلمانځه ځخه مخکي بيده کيدل حرام دي مګر د حنفيه په نزد دا حکم پر تفصيل باندي محمول دی يعني که د يو لمانځه وخت پيل کيدو ځخه مخکي بيده سي او هغه ته دا خبره نه وي معلومه چي زه به د لمانځه تر آخره وخته پوري بيده يم نو د هغه لپاره بيده کيدل جائز نه دي او که د هغه پر ځان کامل اعتماد وي چي زه به پرته د ويښېدو ځخه داسي وخت راپورته سم چي په وخت کي دننه دننه به پوره لمونځ وکړم نو د هغه لپاره به بيده کيدل جائز وي.

پورتنی حکم د وخت پيل کيدو ځخه وروسته د بيده کيدو په اړه دی مګر د وخت د پيل کيدو ځخه مخکي د بيده کيدو په باره کي هم د علماؤ اختلاف دی ځيني حضرات وايي چي د دې په باره کي به هم هغه اول تفصيل کيږي او ځيني حضرات وايي چي د وخت د پيل کيدو ځخه مخکي بيده کيدل مطلق حرام نه دي ځکه چي هيڅ سړي د وخت پيل کيدو ځخه مخکي د لمانځه لپاره نه مکلف کيږي .

﴿۵۳۹﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ قَدْرُ صَلاَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ځخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ د لمانځه اندازه

وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فِي الصَّيْفِ ثَلاَثَةَ أَقْدَامٍ إِلٰى خَمْسَةِ أَقْدَامٍ وَفِي الشِّتَاءِ خَمْسَةَ

د ماپښين په ګرمۍ کي د درو قدمونو ځخه تر پنځو قدمونو پوري او په يخ (ژمي) کي د پنځو

أَقْدَامٍ إِلٰى سَبْعَةِ أَقْدَامٍ . رواه أبو داود والنسائي .

قدمونو ځخه تر اوو قدمونو پوري وه. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۲۸۲، ۲۸۳، رقم: ۴۰۰ والنسائي ۱\ ۲۵۰، ۲۵۱، رقم: ۵۰۲.

**تشريح**: په دواړو موسمونو کي ددې فرق وجه داده چي د يخ په موسم کي اصلي سايه زياته وي او د ګرمۍ په موسم کي اصلي سايه کمه وي په خاصه توګه په حرمين کي دا دواړه وختونه

برابر دي ، دا حديث په هر صورت د زوال څخه وروسته د ماپښين د لمانځه په زنګولو باندي دلالت کوي د قد څخه مراد د هر سړي د قد اوومه برخه ده په دې اعتبار د هر سړي د قد طول د هغه اوه قدمه برابر وي د هر شي طول اووه قدمه مقرر (۱) دی .

==========

# بَابُ تَعْجِيْلِ الصَّلٰوةِ

## په تلوار د لمانځه کولو بيان

د الله تعالی ارشاد دی: (:فاستبقو الخيرات) يعني په نيکيو کي تلوار وکړئ، د آيت څخه دا معلومه سوه چي د لمانځه په باره کي اصل دادی چي دغه دي ژر يعني په اول وخت کي ادا کړل سي مګر په دومره خبره پوه سئ چي د آيت مفهوم خو دادی چي د نيکۍ په ټولو کارو کي چي په هغه کي لمونځ هم شامل دی تلوار کول مناسب او غوره دي خو د کومو واقعو لپاره چي شرح ليکونکو د تاخير حکم فرمايلی دی هلته بيا تاخير کول اعلی او غوره دي.

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد لمنځونه په اول وخت کي اداء کول مطلقا مستحب دي خود امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد دلته څه تفصيل دی هغه فرمايي د يخ په موسم کي خود ماپښين لمونځ په اول وخت کي کول پکار دي مګر د ګرمۍ په موسم کي د ماپښين په يخېدو سره لمونځ کول پکار دي همداسي د سهار لمونځ په هر موسم کي په رڼا کي کول پکار دي او د مازديګر لمونځ هم په تاخير سره کول پکار دی خو په دې کي دومره تاخير نه وي چي لمر متغير سي لمنځونه په تلوار سره د کولو مقصد دادی چي د هغه د اول وخت مخکي نيمه برخه کي ادا کړل سي

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۴۰﴾: عَنْ سَيَّارِ بْنِ سَلَامَةَ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَ اَبِيْ عَلٰى اَبِيْ بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ

د حضرت سيار بن سلامة څخه روايت دی چي زه او زما پلار ابو ذر اسلمي ته ورغلو

[1] د دې حديث د تشريح څخه وروسته مصنف رحمة الله عليه يو جدول نقل کړی دی چي هغه بوجوه طوالت نقل کولای نسي نن صبا د هغې څخه استفاده ممکنه نه ده .

فَقَالَ لَهُ كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ فَقَالَ

زما پلار د هغه شخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ به فرض لمونځ څنګه کاوه ؟هغه وويل:

كَانَ يُصَلِّي الْهَجِيْرَ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْاُوْلٰى حِيْنَ تَدْحَضُ الشَّمْسُ وَيُصَلِّي الْعَصْرَ

د ماپښين لمونځ چي هغه ته تاسو لومړی وایاست د لمر د زوال سره به یې کاوه او د مازدیګر لمونځ به یې هغه وخت کاوه

ثُمَّ يَرْجِعُ اَحَدُنَا اِلٰى رَحْلِهٖ فِيْ اَقْصَى الْمَدِيْنَةِ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَنَسِيْتُ مَا قَالَ

چي د لمونځ کولو شخه وروسته به په موږ کي یو څوک راستنېدی او د ښار آخري غاړي ته به رسیدی نو لمر به روښانه او صاف وو ، د سیار بیان دی چي زما شخه هېر سوه هغه چي ابو هريره رضي الله عنه وويل

فِي الْمَغْرِبِ وَكَانَ يَسْتَحِبُّ اَنْ يُؤَخِّرَ الْعِشَاءَ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْعَتَمَةَ وَكَانَ يَكْرَهُ

د ماښام د لمانځه په اړه او ابو هريرة رضي الله عنه وويل چي رسول الله ﷺ به د ماخستن لمونځ چي هغه ته تاسو عتمه وایاست زنډ خوښوی او مکروه یې ګڼل

النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيْثَ بَعْدَهَا وَكَانَ يَنْفَتِلُ مِنْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ حِيْنَ يَعْرِفُ

بېدېدل د ماخستن شخه مخکي او خبري کول وروسته یې او د سهار لمونځ به رسول الله ﷺ هغه وخت کاوه چي پېژندی به

الرَّجُلُ جَلِيْسَهٗ وَ يَقْرَءُ بِالسِّتِّيْنَ اِلَى الْمِائَةِ وَفِيْ رِوَايَةٍ وَ لَا يُبَالِيْ بِتَاْخِيْرِ

سړی خپل ملګري او رسول الله ﷺ به د سهار په لمانځه کي د شپېتو آیاتونو شخه تر سلو آیاتو پوري ويل او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ به هیڅ پروا نه کول په ځنډ کي

الْعِشَاءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ وَلَا يُحِبُّ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيْثَ بَعْدَهَا. متفق عليه

د ماخستن د لمانځه په اولي دريمي برخي د شپې او د ماخستن د لمانځه مخکي بېدېدل به یې ښه نه ګڼل او همدا سي د ماخستن د لمانځه وروسته خبري کول یې هم نه خوښول . بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۲۲، رقم: ۵۴۱، ومسلم ۱\ ۴۴۷، رقم: ۲۳۵- ۲۴۷ و: ۲۳۶- ۶۴۷ و: ۲۳۷- ۷۴۷.

**د لغاتو حل:** (الهجير): هي صلاة الظهر، سميت كذلک لانها تصلي في الهاجرة وهي اشتداد الحر في نصف النهار. (د ماپښين لمونځ). (تدحض): تزول. (زائل كيږي)

**تشريح:** دلته د ماپښين د لمانځه په باره كي چي كم وخت ذكر سوى دى د هغه څخه په ښكاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به د يخ په موسم كي د ماپښين لمونځ په اول وخت كي كوى ځكه چي دا قولا او فعلا ثابت سوې ده چي رسول الله ﷺ به د ګرمۍ په موسم كي د ماپښين په پخيدو سره لمونځ ادا كوي.

عتمه هغه تاريكۍ ته وايي چي د شفق د پټيدو وروسته راسي، مخكي په عربو كي عتمه به يې ماختستن ته ويل مګر وروسته رسول الله ﷺ خلك منعه كړل چي ماختستن ته دي عتمه نه ويل كيږي، د تاخير (زنډ) څخه دا مراد دى چي رسول الله ﷺ به د ماختستن لمونځ تر دريمي برخي د شپې پوري په تاخير كولو سره كوى، رسول الله ﷺ به د ماختستن د لمانځه وروسته د دنيا خبري كول نه خوښول او د دې مقصد دادى چي د اعمالو خاتمه پر عبادت او ذكر الله باندي كيدل پكار دي ځكه چي خوب په شان د مرګ دى.

په شرح السنه كي نقل دي چي د ماختستن د لمانځه كولو څخه مخكي بيده كيدو ته اكثرو علماؤ مكروه ويلي دي او ځينو حضراتو د بيده كيدو اجازه وركړې ده، د حضرت عمر رضي الله عنه په باره كي ويل سوي دي چي هغه به د ماختستن څخه مخكي بيده كيدى او د ځينو علماؤ په نزد يوازي په روژه كي تر ماختستن مخكي بيده كيدل جائز دي.

حضرت امام نووي رحمة الله عليه فرمايي كه د خوب غلبه وي او دا بيـــــره نه وي چي د ماختستن دلمانځه په وخت كي د بيده كيدو بيره نه وي نو بيده كيدل مكروه نه دي، د ماختستن وروسته په خبرو كي بوختيا ته د علماؤ يو ډلي مكروه ويلي دي، د سعيد ابن مسيب رضي الله عنه په باره كي هم نقل سوي دي چي هغه به ويل زما په نزد د ماختستن د لمانځه كولو څخه پرته بيده كيدل غوره نه دي چي د ماختستن د لمانځه څخه وروسته يو سړى خبري اتري او په دنياوي خبرو كي مشغول سي.

ځيني علماء د ماختستن څخه وروسته د علم د خبرو كولو اجازه وركړې ده همداسي د ضرورت او حاجت په اړه يا د كورنۍ او ميلمنو سره د خبرو كولو اجازه هم وركړې ده.

(ملا علي قاري رحمة الله عليه).

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله علیه فرمايي چي دا دواړه شیان نه دي جائز، يعني که يو سړی د ماخستن د لمانځه څخه مخکي د سستی او کهالۍ په وجه د نشاط او تازګۍ حاصلولو لپاره بیده کیدل غواړي نو د هغه لپاره جائز دي همداسي د ماخستن د لمانځه څخه وروسته داسي خبري کول چي ضروري وي او بې معنی نه وي جائز دي

﴿۵۴۱﴾: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ سَأَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ

د حضرت محمد بن عرو بن الحسین بن علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي

اللهِ عَنْ صَلٰوةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ

د رسول الله ﷺ د لمانځه کیفیت څنګه وو؟ هغه وويل چي رسول الله ﷺ به د زوال کېدو سره د ماپښین لمونځ کاوه

وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَالْمَغْرِبَ إِذَا وَجَبَتْ وَالْعِشَاءَ إِذَا كَثُرَ النَّاسَ عَجَّلَ

او د مازديګر لمونځ به يې هغه وخت کاوه چي لمر به ځلانده وو او د ماښام لمونځ به يې هغه وخت کاوه چي لمر به ولوېدی او ماخستن لمونځ به يې هغه وخت کاوه کله چي به ډير خلک يو ځای سول نو ژر به يې کاوه

وَإِذَا قَلُّوا أَخَّرَ وَالصُّبْحَ بِغَلَسٍ . متفق علیه

او کله چي به خلک لږ وه نو لږ په ځنډ سره به يې کاوه او د سهار لمونځ به يې په تیاره کي کاوه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۷، رقم: ۵۶۵، ومسلم ۱\۴۴۶، رقم: ۲۳۳-۶۴۶.

**د لغاتو حل**: (اذا وجبت): ای اذا سقطت الشمس (چي کله لمر ولويږي).

**تشريح**: د ماخستن د لمانځه په باره کي دلته وضاحت سوی دی چي کله به خلک زيات راغلل نو لمونځ به يې ژر کوی او که خلک به کم راغلل نو په ځنډ سره به يې کوی د دې څخه دا معلومه سوه چي د جماعت د زياتوالي په وجه لمونځ په اول وخت کي په ځنډ کولو سره جائز دی بلکه مستحب دی، علماء دا ليکي چي امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه او د هغوی پیروانو په اول

وخت کي د لمانځه کولو التزام ځکه نه دی کړی چي په ځنډ سره لمونځ کولو کي په جماعت کي زیاتوب کیږي نه دا چي د دې حضراتو په نزد افضل نه دی بلکه اول وخت خو به په هر صورت کي افضل وي مګر ځیني خارجي عوارض لکه د جماعت کثرت وغیره په وجه زنډ غوره دی.
د سهار لمونځ په تیاره کي د کولو په وجه په ښکاره دا معلومیږي چي صحابه رضي الله عنهم به ټوله شپه د خوب پر ځاي په ذکر او عبادت کي د مشغولیدو په وجه د سهار د وختونو په مسجد کي موجود وو ځکه چي رسول الله ﷺ به د جماعت د کثرت په وجه لمونځ ژر کوی.
په پای کي په دې خبره باندي پوه سئ چي د دې حدیث څخه دا بالکل نه ثابتیږي چي رسول الله ﷺ مستقلا په تیاره کي د سهار لمونځ کوی او که ځیني وختونه دا ومنل هم سي نو دا ثابته ده چي خپله رسول الله ﷺ د سهار لمونځ په رڼا کي د کولو حکم ورکړی دی او د حنیفه په نزد د فعل په مقابله کي امر یعني حکم ته ترجیح ورکول سوې ده.

﴿۵۴۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره د ماپښین لمونځ کاوه

بِالظَّهَائِرِ سَجَدْنَا عَلٰى ثِيَابِنَا اتِّقَاءِ الْحَرِّ. متفق علیه و لفظه للبخاري

نو د ګرمي څخه د خلاصون لپاره به مو پر خپلو جامو سجده کول. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۲-۲۳، رقم: ۵۴۲ و مسلم: ۱\۴۳۳، رقم: ۱۹۱-۶۲۰.

**تشریح**: د حنفیه په نزد لمونځ کونکی پر خپل اغوستو کالو باندي سجده کولای سي ځکه دا حضرات دا حدیث د خپل مذهب په دلیل وړاندي کولو سره وایي چي د دې څخه دا معلومه سوه چي لمونځ کونکي ته پر خپلو اغوستو کالو باندي لمونځ کول صحیح دي، د شوافع حضراتو په نزد پر داسي کالو باندي چي د لمونځ کونکي په ښورېدو سره حرکت کوي سجده کول جائز نه دي ځکه دا حضرت د دې حدیث دا تاویل کوي چي صحابه کرامو پر جامو باندي سجده کول هغه به د هغوی پر بدن نه وه بلکه د ګرمي څخه د ساتني په وجه هغه به یې پر جلا فرش باندي اچول.
دا حدیث مصنف په مشکوات باب تعجیل الصلواة کي نقل کړی دی چي دا خبره واضحه سي چي په مځکه د ګرمي د تاو څخه په اول وخت کي وي نو د دې څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د ګرمي په موسم کي د ماپښین لمونځ په اول وخت کي کوی حال دا چي دا

خبره د دې حديث څخه معلوميږي چي ډير واره بلکه د زياتي ګرمۍ په موسم کي د اول وخت په نسبت وروسته زياته ګرمي وي.

﴿۵۴۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اشْتَدَّ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي سخته وي

الْحَرُّ فَاَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ بِالظُّهْرِ فَاِنَّ شِدَّةَ

ګرمي نو لمونځ په يخ کي کوئ او د بخاري په يوه روايت کي د ابو سعيد څخه دا الفاظ نقل دي چي د ماپښين لمونځ د يخ په وخت کي کوئ ځکه سختي

الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ وَاشْتَكَتِ النَّارُ اِلٰى رَبِّهَا فَقَالَتْ يَا رَبِّ اَكَلَ بَعْضِي بَعْضًا

د ګرمۍ د جنهم تونښ دی او رسول الله ﷺ وفرمايل: دوږخ خپل رب ته شکايت وکړ او عرض يې وکړ چي زما ځيني برخي ځيني برخي خوري

فَأَذِنَ لَهَا بِنَفَسَيْنِ نَفَسٍ فِي الشِّتَاءِ وَنَفَسٍ فِي الصَّيْفِ أَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ

نو الله تعالى ورته د دوو ساه اخيستو اجازه ورکړه يوه ساه په يخ کي او يوه ساه په ګرمي کي هر کله چي تاسو وينئ سختي د

الْحَرِّ وَأَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الزَّمْهَرِيرِ. متفق عليه . و رواية للبخاري فاشد ما تجدون من الحر فمن سمومها واشد ما تجدون من البرد فمن زمهريرها.

د ګرمۍ او يخ نو دا هغه دوې ساوي دي. (بخاري او مسلم) د بخاري په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د ګرمي په وخت کي چي تاسو کومه سختي وينئ هغه د دې (دوږخ) د ګرمۍ د ساه له کبله ده او په يخ کي چي کومه سختي وينئ هغه د دې د يخي ساه له کبله ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۱۵، رقم: ۵۳۳ وفي ۲\ ۱۸ رقم: ۵۳۶، ومسلم: ۱\ ۴۳۰، رقم: ۱۸۰- ۶۱۵.

**تشريح**: پروردګار ته د دوږخ اور دا شکايت وکړ چي زما ځيني شغلې ځيني خوري، دا کنايه ده دا جزايي اور د کثرت او په خپلو کي اختلاط څخه، يعني د اور شغلې دومره زياتي وي او

دومره شدت سره وي چي په هغه کي هره يوه دا غواړي چي دوهمه شغله ختمه کړي او د هغه ځاي خپله ونيسي نو پروردگار عالم هغه ته د دوو ساه آخيستو اجازه ورکړه، د ساه څخه مراد شغله فناء کول او د هغه د دوږخ څخه د باندي وتل دي څرنگه چي ساه اخستونکی ساه اخلي نو هوا د باندي راوځي.

په هر حال داسي وخت سره ددې چي مشقت ډير وي د لمونځ کولو څخه منعه سوې ده ځکه چي په داسي وخت کي هر کله چي د گرمۍ دومره شدت وي نو زړه او دماغ د تاو په وجه بې آرامه وي او د خشوع، سکون او اطمينان څخه حاصليږي چي د لمانځه روح ده دلته په عقلي توگه سره يو څو اشکاله (شکونه) پيدا کيږي چي د هغو وضاحت کول ضروري دي :

اول اشکال (شک) دا پيدا کيږي چي دا خبره ثابته سوې ده چي د گرمۍ او يخ شدت د مځکي حرکت عرض البلد د لمر په وجه وي ځکه دا څرنگه ويلاي سو چي د گرمي شدت د دوږخ د توښ څخه وي.

ددې اول جواب خو دادی چي دلته د دوږخ توښ د گرمۍ د تاو سبب ښودل سوی دی نه دا چي د اصلي گرمۍ، پر دې دا اعتراض نسي کيداي چي د گرمۍ او يخ شدت هم د لمر د نژدې والي په وجه دي ځکه چي د دې باوجود کيدای سي چي دوږخ ساه په هغه کي نور شدت پيدا کوي ددې څخه انکار د ريښتوني خبر راوړونکی ﷺ د خبر ورکولو سره د طريقه اسلام خلاف دی.

دوهم جواب دادی چي دومره خبره خو فيصله ده چي د مځکي د حرارت علت د لمر په مقابله او د هغه د شعاع پريوتل دي اودا هيڅ چيري نه ده ثابته سوې چي لمر دوږخ نه دی نو کيدای ي چي ز موږ د نظام دوږخ دا وي چي هغه ته موږ لمر وايو ځکه چي په لمر کي د داو کمي او زياتي او د گرمۍ صفت دومره دی چي د دوزخ ټوله صفات په دې منطبق کيدای سي او که دا ثابته هم سي چي لمر دوږخ نه دی نودا هم بالکل ليري او ناممکن نه ده چي دوږخ جلا وي او د هغې د گرمي اثر پر مځکه پريوځي

دوهم اشکال دا پيدا کيږي چي دوږخ شکايت څرنگه وکړ ځکه چي د دوزخ ژبه نسته او بېله ژبي د مدعا اظهارول څرنگه کولای سي ددې جواب دادی چي څرنگه د ژبي لپاره تلفظ ضروري نه دی همداسي د تلفظ لپاره ژبه هم ضروري نه ده ځکه چي د اکثرو حيوانانو ژبه وي خو هغوي تلفظ نه کوي همداسي ډير شيان داسي دي چي د هغوی ژبه نه وي مگر خبري کوي نو دا اشکال چي پرته د ژبي څخه خبري کول نا ممکن دي د کم فهمۍ خبره ده که څوک دا پوښتنه وکړي چي په ژبي سره خبره ولي کولاي سي ددې څخه د اوريدو کار ولي نسي

آخيستلاي، په ستر ګو سره ليدل او په غوږو سره اوريدل ولي کولای سي په دې سره خبري ولي نه کوي هر کله چي ټول اعضاء په ښکاره د يوې مادې څخه جوړ دي چي نطفه ده نو د هر يوه قوت د تخصيص په وجه د يو خاص شي سره ده
نو ددې جواب به دا ورکوو چي دا د جوړونکي رب قدرت دی چي خبري کول د ژبي سره خاص کړل سوي دي او کتل د ستر ګو سره او اوريدل د غوږو سره کنه دا ټول اعضاء دغو ښي يوه برخه کيدو کي برابر دي بالکل همداسي دلته به دا هم ويلاي سي چي آيا دجوړونکي رب دا قدرت نسي کيداي چي هغه خپل يو مخلوق ته د وينا قوت ورکړي او د حکماؤ يو جماعت خو دا هم وايي چي اجرام فلکيه کي نفوس دی او په هغوی کي دا احساس او ادراک قوت دي نو په دې صورت کي خبري کول څه بعيد يعني ليري نه دي، دريم اشکال دا پيدا کيږي چي دوزخ ساه درلودونکی نه دی هغه ساه څرنګه اخيستلاي سي، د دې جواب دادی چي په دوږخ کي د نفس کيدو څخه هيڅ مانع نه دی او هر کله چي د پورتني بحث څخه د هغه تکلم ثابت کيدای سي نو په ساه آخيستو کي څه اشکال پيدا کيږي
څلورم اشکار دادی چي د اور د يخي ساه اخيستو څه معنی ده؟ ددې مختصر جواب دادی چي د اور څخه مراد د دوزخ اور دی او په هغه کي يوه طبقه زمهرير هم ده.
پنځم اشکال دا پيدا کيدای سي چي ددې حديث د مفهوم سره سم خو پکار دا وه چي د سخت يخ په موسم کي په سهار کي هم په تاخير سره د لمانځه کولو حکم ورکړل سوی دی حال دا چي داسي نه ده او د دې جواب دادی چي په يخ کي په سهار کي د لمر ختو پوري دومره شدت سره وي که تر لمر ختو پوري په لمانځه کي ځنډ کوي نو هلته به وخت ختم کيدی.
په هر حال ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي د ګرمۍ په موسم کي د ماپښين لمونځ په تاخير سره کول مستحب دي د دې وجه داده چي خپله صحابه کرامو رضي الله عنهم د ګرمۍ په موسم کي د ماپښين په يخولو سره کوی، د بخاري په يوه روايت کي نقل سوي دي چي صحابه کرامو به د ماپښين لمونځ په ځنډ سره يعني د ماپښين په يخولو سره کوی ترڅو چي د غونډيانو سايه به پر مځکه پريوتل او په دې ټول پوهيږي چي غونډۍ خپرې ورې پرتې وي ځکه د هغو سايه پر مځکه ډيره وروسته پريوځي، په خلاف د اوږدو شيانو مثلا مينار وغيره چي د هغو سايه ژر پريوځي.
په ځينو روايتونو کي نقل سوي دي چي صحابه کرامو رضي الله عنهم به د ماپښين لمونځ لپاره د ديوالونو په سايو کي تلل . د ديوالونو په باره کي تحقيق هم سوی دی چي هغه وخت

دیوالونه په عامه توګه سره اوه اوه (شرعي) ګزه وه نود هغو په سایه کي تلل به هغه وخت په کار وه هر کله چي لمر ډیر لاندي وو ځیني حضراتو د تاخیر حد نیم وخت مقرر کړی دی یعني څه علماء دا وایي چي د ګرمۍ په موسم کي د ماپښین لمونځ نیم وخته تاخیر کولو سره اداء کول پکار دي ځیني شوافع حضرات د حدیث څخه ثابت سوی ابراد یعني لمونځ په یخولو سره ادا کولو محمل وخت زوال ښیي، یعني د هغوی وینا داده چي ددې ابراد مقصد د ماپښین په لمانځه کي دومره تاخیر نه دی کوم چي حنفیه ښیي بلکه ددې مطلب دادی چي څه وخت د استواء د سختي ګرمۍ څخه د ځان ساتني لپاره د زوال په وخت کي د ماپښین لمونځ وسي، ددې حضراتو دا تاویل نه یوازي داچي بعید ازمفهوم یعني د پوهیدو څخه لیري دی بلکه د مشاهدې خلاف هم دی ځکه چي د وخت استواء په مقابله کي د زوال په وخت کي د ګرمۍ شدت کي د کمي راتلو خیال خلاف تجربه او مشاهده دی په هدایه کي ذکر سوي دي چي په کومو ښارونو کي چي د ګرمۍ شدت د لمر یو مثل سایې ته د رسیدو په وخت کي وي هلته خو د ابراد مقصد هغه وخت حاصلیدای سي هر کله چي لمونځ یو مثل سمدستي څخه وروسته اداء کړای سي حاصل دا چي د ماپښین لمونځ په ابراد کي یعني یخولو په باره کي ډیر زیات حدیثونه راغلي دي چي د هغو څخه په اتفاق دا ثابتیږي چي په ګرمۍ کي د ماپښین لمونځ په یخولو سره افضل او غوره دی تر څو پوري د حدیث حباب رضی الله عنه تعلق دی چي په هغه کي روایت دی چي موږ رسول الله ﷺ ته د ګرمۍ په موسم کي د غرمې یعني سختي ګرمۍ د شدت په باره کي شکایت وکړ نو رسول الله ﷺ زموږ خواست قبول نه کړ، ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ ته د ګرمۍ په موسم کي د ماپښین د لمانځه د زنډولو خواست کړی وو ځکه چي رسول الله ﷺ هغه قبول نه کړ که هغومره ځنډ وسي نو د لمونځ وخت به ووځي امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي چي ابراد رخصت دی او هغه هم د ټولو لپاره نه بلکه د هغو خلکو لپاره دی چي دجماعت لپاره مسجد ته په تللو کي د سختۍ او محنت سره مقابله کوي ، کوم خلک چي یوازي لمونځ کوي یعني بیله جماعته یا خپل د همسایه او د محلې مسجد ته د لمانځه لپاره راځي د هغوی لپاره زما په نزد دا ښه ده چي په اول وخت کي تاخیر ونه کړي دا قول د ظاهر حدیث خلاف دي ځکه چي ددې اتباع نسي کیدای . امام ترمذي رحمة الله علیه یو حدیث نقل کړی دی چي د هغه څخه دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ په سفر کي هم سره ددې چي ټول به یو ځای وه د ابراد حکم فرمایه، او امام ترمذي فرمایي کوم سړی چي د ګرمۍ د شدت څخه د ساتني لپاره د ماپښین لمونځ په ځنډ سره کولو لپاره وایي د هغه مذهب د اتباع سنت په وجه اولی او افضل دي.

﴿۵۴۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ

د انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د مازديگر لمونځ هغه وخت کاوه چي لمر به

مُرْتَفِعَةٌ حَيَّةٌ فَيَذْهَبُ الذَّاهِبُ إِلَى الْعَوَالِي فَيَأْتِي الْعَوَالِيَ وَالشَّمْسُ

لوړ او ځلانده وو ، تلونکي به عوالي (د ښار څخه دباندي ابادي) ته تلل او لمر به

مُرْتَفِعَةٌ وَبَعْضُ الْعَوَالِيْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ عَلٰى اَرْبَعَةِ اَمْيَالٍ اَوْ نَحْوِهِ. متفق عليه

لوړ وو او د عوالي ځيني برخي د مديني څخه څلور ميله يا ددې شاوخوا وې. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۲۸، رقم: ۵۵۰، ومسلم ۱\۴۳۳، رقم: ۱۹۲– ۶۲۱.

**تشريح** : عوالي د عاليه جمعه ده د مديني منوري د ښار څخه دباندي څو کلي وه هغه ته عوالي ويل کېدل او مسجد بني قريظه هم دې خوا ته دی .

﴿۵۴۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دا د منافق لمونځ دی چي د مازديگر لمونځ په آخر وخت کي کوي

يَجْلِسُ يَرْقُبُ الشَّمْسَ حَتّٰى إِذَا صُفَرَّتْ وَ كَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ قَامَ

ناست وي انتظار کوي تر دې چي لمر ژړ سي او د شيطان په دواړو ښکرو کي راسي نو ودريږي

فَنَقَرَهَا أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللّٰهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلاً. رواه مسلم

او څلور مښکي وهي هغه په دې کي ډير لږ د الله ذکر کوي . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۱\۴۳۴، رقم: ۱۹۵– ۶۲۲.

**تشريح** : د مښکه وهلو مطلب دادی چي هغه پرته د ارامتيا او سکون څخه همداسي په تلوار تلوار سجدې کوي لکه څرنگه چي مرغان په مښکه وهلو سره دانې راټولوي، د مازديگر په لمانځه کي سجدې خو اته دي مگر دلته څلور واره فرمايل سوي دي چي هغه په اوله سجده کولو کي سر په ښه طريقه کښېته نه کړ، نو دا داسي دي چي دواړي سجدې د يوې سجدې په حکم کي راغلې يا دواړي سجدې د يوه رکن په اعتبار کولو سره پر ځای د اتو د څلور شمير

فرمایلی دی . لته یوازي د مازدیگر د لمانځه ذکر سوی دی د نورو لمنځو ذکر نه دی سوی د دې وجه داده چي دا منځنی لمونځ دی او هسي خو هم په ټولو لمنځو کي د ارکان او آداب لحاظ نه ساتل بده خبره ده مګر د نورو لمنځو په نسبت دا لمونځ په اطمینان او سکون نه کول ډیره زیاته بده خبره ده .

مولانا مظهر رحمة الله علیه فرمایي: کوم سړي چي د مازدیگر لمونځ تر لمر ژړ کیدو پوري و ځنډوی نو هغه خپل ځان د منافقینو په شان ځرګند کړ ځکه چي منافق د لمانځه د صحت او تکمیل هیڅ خیال نه ساتي هغه یوازي په ظاهري توګه سره د مسلمان جوړیدو د الزام څخه د ساتني په باره کي لمونځ کوي او هغه ته په لمانځه کي د دومره زیات ځنډ پروا نه وي ځکه چي هغه ته د اجر او ثواب ضرورت نه وي نو مسلمان ته پکار ده چي هغه د منافقینو عملا او فعلا مخالفت کولو سره د مازدیگر لمونځ په مختار وخت کي کوي .

﴿۵۴۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

اَلَّذِيْ تَفُوْتُهُ صَلاَةُ الْعَصْرِ فَكَأَنَّمَا وُتِرَ أَهْلُهُ وَمَالُهُ . متفق علیه

د کوم چا څخه چي د مازدیگر لمونځ قضا سي د هغه حالت داسي دی لکه د هغه اهل او عیال، مال او دولت چي لوټ سو . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۰، رقم: ۵۵۲، ومسلم ۱\ ۴۳۵، رقم: ۲۰۰- ۶۲۶.

**د لغاتو حل**: (وُتِرَ): سُلِب و اُخِذ (واخیستل سي).

**تشریح**: مطلب دادی د کوم سړي چي د مازدیگر لمونځ قضا سي نو هغه داسي دی لکه د هغه چي کور، کورنۍ، مال او اولاد هر څه ختم سول، یا په هغه کي کمي راغلل نو څرنګه چي یو سړی د خپل کورنۍ د تباهۍ او بربادۍ او د مال او سامان د تاوان څخه بیریږي .مخکي هم دا ښودل سوې ده چي دلته یوازي د مازدیگر د لمانځه د ذکر کولو وجه داده چي دا لمونځ منځنی لمونځ دی د دې پریښودل د نورو لمنځونو د پریښودلو په مقابله کي زیاته سخته ګناه ده .

﴿۵۴۷﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَكَ

د حضرت بریدة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي قضا کړ

صَلاَةُ الْعَصْرِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ . رواه البخاري .

د مازديگر لمونځ هغه خپل عمل ضائع کړ . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۱، رقم: ۵۵۳ وفي ۲\٦٦، رقم: ۵۹۴.

**تشريح**: ددې حديث څخه په ښکاره توګه دا معلومېږي چي کوم سړي د مازديگر لمونځ پرېښودی د هغه ټوله نيک اعمال برباد سول حال دا چي داسي نه ده ځکه چي د ټولو اعمالو د بربادۍ خو يوازي د هغه سړي په برخه کي راځي چي مرتد وي نو ددې مطلب دادی چي کوم سړی د مازديگر لمونځ پرېږدي نو ددې لمانځه په وجه هغه ته چي کوم اجر او ثواب تر لاسه کيدی او د هغه په نيکيو کي چي کمي او زياتوب کيدی د هغه څخه محروم سو، يا دا چي د هغه د ورځي په اعمالو کي چي کوم کمال هغه ته د مازديگر د لمونځ په وجه هغه ته تر لاسه کيدی هغه ټول ضائع سوه په هغه سره د هغه په اعمالو کي کمي واقع سوه.

د حنيفه په نزد په مرتد کيدو سره ټول اعمال باطل کيږي د هغه په نزد د مرګ قيد نسته تر داسي وخته که پر يو سړي باندي حج واجب وي او هغه د حج وروسته مرتد سو بيا وروسته الله تعالي هغه ته هدايت وکړ او هغه په اسلام کي داخل سو نو هغه به حج دوهم وار کوي د معتزلوو په نزد په کبيره ګناه کولو سره اعمال باطل کيږي. والله اعلم.

﴿۵۴۸﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيَ الْمَغْرِبَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى

د رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ به د رسول الله ﷺ سره د ماښام لمونځ ادا کوی

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْصَرِفُ أَحَدُنَا وَإِنَّهُ لَيُبْصِرُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِ . متفق عليه

نو په موږ کي چي به څوک بيرته ستنېدی نو هغه به د خپل غشي د غورځېدو ځای ليدی . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۰، رقم ۵۵۹، ومسلم ۱\۴۴۱، رقمګ ۲۱۷- ٦۳۷.

**تشريح**: ددې مطلب دادی چي موږ خلکو به د رسول الله ﷺ سره د ماښام لمونځ داسي په اول وخت کي کوئ چي د لمانځه کولو سره د بيرته راتلو وروسته که يو سړي به غشي وويشتی نو هغه به دا ليدلای سول چي هغه غشی په کوم ځای کي ومونښتی.

په هر حال د ټولو علماؤ په نزد په اتفاق سره د ماښام لمونځ په اول وخت کي اداء کول مستحب دي.

﴿۵۴۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانُوْا يُصَلُّوْنَ الْعَتَمَةَ فِيْمَا بَيْنَ أَنْ يَّغِيْبَ الشَّفَقَ إِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ الْأَوَّلُ. (متفق عليه)

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ او صحابه كرامو به د ماخستن لمونځ د شفق د غائب كېدو وروسته تر دريمي برخي د شپې پوري كوى. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۴۷، رقم: ۸٦۴، ولم نجده عند مسلم.

**د لغاتو حل**: (العَتَمَة): العشاء (ماخستن).

**تشريح**: د دې تر مخه دا ښودل سوي دي چي مخكي به په عربو كي خلكو عشاء (ماخستن) ته عتمه ويل نو رسول الله ﷺ چي عشاء ته د عتمه ويلو څخه منعه وكړل نو بيا دا نوم ترك كړل سو مگر دلته بي بي عائشې رضي الله عنها ماخستن ته عتمه ويلي دي نو د دې وجه دا كيداى سي چي تر دغه وخته پوري بي بي عائشې رضي الله عنها ته دا معلومه نه وه چي رسول الله ﷺ عشاء ته د عتمه ويلو څخه منعه فرمايلې ده، د عشاء (ماخستن) د وخت په اړه داهم ښودل سوي دي چي د شپې تر دريمي برخي پوري مختار وخت دى او د سهار د راختلو څخه مخكي مخكي پوري د جواز وخت وي.

﴿۵۵۰﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ الصُّبْحَ

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به د سهار لمونځ هغه وخت كوى چي

فَتَنْصَرِفُ النِّسَاءَ مُتَلِّفعَاتٍ بِمُرُوْطِهِنَّ مَا يُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ. متفق عليه

(د لمانځه كولو وروسته) به ښځي په پرده كي بيرته ستنېدې نو د تيارې له كبله به هيڅا هغوى نه پيژندلې. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۴۹، رقم: ۸٦۷، ومسلم ۱\۴۴٦، رقم: ۲۲۲- ۶۴۵.

**د لغاتو حل**: (متلفعات): اى مستترات وجوههن وابدانهن (په پرده كي). (بمروطهن): المِرط: كساء من صوف او خزيؤتزر به وقيل الجلباب، وقيل الملحفة. مرقات. (چادري).

﴿۵۵۱﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَزَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ

حضرت قتاده د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ او زيد بن ثابت رضي الله عنه

تَسَحَّرَا فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ سُحُوْرِهِمَا قَامَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى

دواړو پيشلمی وکړ د پيشلمي څخه تر فراغت وروسته رسول الله ﷺ ودرېدی لپاره

الصَّلاَةِ فَصَلَّى . قُلْنَا لِأَنَسٍ كَمْ كَانَ بَيْنَ فَرَاغِهِمَا مِنْ سُحُوْرِهِمَا وَدُخُوْلِهِمَا

د سهار د لمانځه او لمونځ يې وکړ ، موږ د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي د پيشلمي کولو او د سهار د لمانځه په منځ کي څومره وخت وو؟

فِي الصَّلاَةِ ؟ قَالَ قَدْرُ مَا يَقْرَأُ الرَّجُلُ خَمْسِيْنَ آيَةً . رواه البخاري

هغه وويل يوازي دومره وخت چي يو سړی پکښې پنځوس آياتونه تلاوت کړي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۵۴، رقم: ۵۷۶.

**تشريح**: علامه توربشتي رحمة الله عليه فرمايي چي: دلته د وخت کومه اندازه بيان سوې ده په هغه سره عامو خلکو ته عمل کول جائز نه دي ځکه چي د رسول الله ﷺ دا عمل د الله تعالی د لوري څخه د خبر کېدو وروسته وو، دوهم دا چي رسول الله ﷺ خو د دين په معامله کي معصوم من الخطاء (د ګناهو څخه پاک) وو چي په ديني معامله کي لږ تصور نسي کيدای او ښکاره ده چي دا مرتبه د هرچا چيري په برخه کيدای سي.

﴿۵۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ لِي رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ أَنْتَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل ستا به څه حال وي

إِذَا كَانَتْ عَلَيْكَ أُمَرَاءُ يُمِيْتُوْنَ الصَّلاَةَ أَوْ يُؤَخِّرُوْنَ عَنْ وَقْتِهَا قُلْتُ فَمَا تَأْمُرُنِي

هغه وخت چي پر تا داسي حاکمان يا سرداران مسلط سي چي لمونځونه مړه کوي او يا يې په زنډ سره کوي، ابوذر رضي الله عنه وايي چي ما عرض وکړ نو بيا تاسو د هغه وخت لپاره څه حکم راکوئ؟

قَالَ صَلِّ الصَّلاَةَ لِوَقْتِهَا فَإِنْ أَدْرَكْتَهَا مَعَهُمْ فَصَلِّ فَإِنَّهَا لَكَ نَافِلَةٌ . رواه مسلم

رسول الله ﷺ وفرمايل: ته لمونځ پر وخت کوه که ته د دوی سره لمونځ کوې نو دوهم ځل يې ورسره وکړه او دا به ستا لپاره نفل وي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۴۴۸، رقم: ۲۳۸.

**تشریح** : د حدیث الفاظ (او کانوا یؤخرون عن وقتها) کي په لفظ د (او) کي د راوي شک دی یعني د حدیث یو راوي ته شک سوی دی چي د هغه څخه مخکي راوي لفظ یمیتون ویلی دی که یؤخرون هسي خو د معنی په اعتبار په دواړو کي هیڅ فرق نسته، د حدیث خلاصه داده چي هغه وخت به ته څه کوې هر کله چي ته دا وویني چي کوم سړی ستا حاکم او سردار وي په لمانځه کي سستي او کهالي کوي لمونځ پر خپل اول وخت کي نه کوي غیر مختار تاخیر کوي او هغه ستاسو حاکم وي ځکه ته به پر هغه قادر نه یې چي د هغه څخه مخالفت کولو سره پر سیده لار ایې سم کړې تا ته به دا بیره وي که لمونځ د هغه سره کوې نو د اول وخت لمونځ کولو فضیلت د لاس څخه وځي او که د هغه مخالفت کوې نو نه یوازي دا چي د هغه د خوا څخه د تکلیف رسیدو بلکه د جماعت فضیلت څخه محروم کیدو بیره به هم وي نو ابو ذر رضی الله عنه د داسي موقع لپاره حکم هم وپوښتی چي هر کله داسي وخت راسي نو ما ته څه طریقه اختیارول پکار دي؟

پر دې باندي رسول الله ﷺ هغه ته سیده لار وښودل چي کله داسي وخت وي نو کم تر کمه ته خپل لمونځ پر صحیح وخت ادا کوه بیا د هغه وروسته که په اتفاق سره د هغوی په لمانځه کي د ګډون کولو موقع هم وي نو د هغوی سره هم لمونځ کوه ستا دا لمونځ به نفل سي همداسي به بیا یو په دوه ثواب وي، د دې څخه دا معلومه سوه که یو امام په لمانځه کي زنډ وکړ نو مقتدیانو ته دا پکار ده چي هغوی خپل لمونځ په اول وخت کي اداء کړي بیا وروسته د امام سره دي هم لمونځ وکړي چي داسي د وخت او جماعت دواړو فضیلت ترلاسه کړي، مګر په دې پوهیدل پکار دي چي دا حکم یوازي د ماپښین او ماخستن په باره کي دی ځکه چي په سهار او مازدیګر کي خو د فرض ادا کولو وروسته نفل لمونځ کول مکروه دي او درې رکعته نفل مشروع نه دی ځکه په ماښام کي هم دا طریقه اختیاریدلای سي.

او کوم چي د حدیث د اطلاق تعلق دی نو په دې اړه به وویل سي چي دا د ضرورت په وجه دی چي د امیرانو او حکامو سره لمونځ نه کول او د هغوی خلاف کولو کي فتنه او فساد کي د اخته کیدو بیره وه ځکه رسول الله ﷺ د ماپښین او ماخستن قید و نه لګوی چي د مکروهاتو مخنیوی ددې څخه غوره دی چي فتنه او فساد پیدا کړای سي بیا په داسي موقع باندي مکروهات هم مباح کیږي، په پای کي په دې خبره باندي هم پوه سئ چي رسول الله ﷺ ابو ذر رضی الله عنه ته دا فرمایلي وه هغه یوازي د وړاند ویني په توګه یې نه وه فرمایلي بلکه په اصل کي رسول الله ﷺ د معجزې په توګه یې د راتلونکي پیښېدو حالاتو وړاند وینه فرمایلې وه،

پوهيدونکي خلک پوهيږي چي د بني اميه په دور کي دا وړاند وينه په پوره صداقت سره صحيح سوه چي د هغه زمانې امراء او حاکمان به په لمانځه کي ډېره سستي کول او لمونځ به يې د مختار وخت څخه په ځنډ سره کوی.

﴿۵۵۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَدْرَكَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي ونيسي

رَكْعَةً مِنَ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ وَمَنْ أَدْرَكَ

د سهار يو رکعت د لمر ختلو څخه مخکي نو هغه لکه د سهار لمونځ چي وکړاو چا چي ونيوی

رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الْعَصْرَ. متفق عليه

د مازديگر يو رکعت د لمر لوېدو څخه مخکي ونيوی نو هغه د مازديگر لمونځ تر لاسه کړ.
بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) : ۲\۵۶، رقم: ۵۷۹، ومسلم ۱\ ۴۲۴، رقم: ۱۶۳- ۶۰۸.

**تشريح** : د مسئلې صورت دادی چي مثلا يو سړی د مازديگر لمونځ کولو لپاره بالکل په اخر وخت کي ودريدی اوس هغه لا يو رکعت لمونځ کړی ووچي لمر ډوب سو همداسي يو سړي د سهار لمونځ کولو لپاره بالکل په آخري وخت کي ودريدی چي د يوه رکعته وروسته لمر راوختی نو ددې حديث له مخي د دواړو لمنځونه صحيح سوه.

مګر په دې مسئلې کي د علماؤ اختلاف دی د اکثرو علماؤ په نزد ددې حديث سره سم د لمر ختو او کښېنته کيدو پر وجه د سهار او مازديگر لمونځ نه باطل کيږي مګر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او د هغوی متبعين فرمايي چي د مازديگر لمونځ خو په دغه صورت کي صحيح دی چي د لمر د کښېنته کيدو په وجه د مازديگر لمونځ نه باطل کيږي مګر د سهار په باره کي به معامله بالکل مختلف وي په دې توګه چي د لمر ختلو څخه مخکي د سهار لمونځ باطل کيږي همداسي دا حديث به د امام اعظم رحمة الله عليه خلاف وي ځکه د دې جواب دا ورکول کيږي چي د دغه حديث او د نورو حديثونو په مينځ کي چي د هغه څخه دا ثابتيږي چي د لمر ختلو او کښېنته کيدو په وخت کي لمونځ که نفل وي او که فرض کول ممنوع دي، په دغه دواړو حديثونو کي ټکر واقع کيږي ځکه موږ د اصول فقه ددې قاعدې سره سم چي هر کله په دوو

حديثونو کي تعارض واقع سي نو د حديث طرف ته رجوع کول پکار دي او هر کله چي په دوو آياتونو کي تعارض وي نو د قياس مرسته اخيستل پکارده پر قياس باندي عمل څه دي قياس ددې حديث حکم ته د مازديگر په لمانځه کي ترجيح ورکړه او حديثونه نهي د سهار په لمونځ کي ترجيح ورکړه او د دې وجه داده چي د فجر مخکي هرکله چي لمونځ پيل کيږي نو د هغه د صفت کمال سره واجب کيږي چي د هغه تقاضا داده چي ځرنګه ابتداء صفت کمال سره ثابته سوې ده همداسي اختتام هم په صفت کمال سره يعني په وخت کي دننه وي خو هرکله چي يو رکعت څخه وروسته لمر راوختی نو ددې مطلب داسو چي د وخت ختميدو په وجه په لمانځه کي تاوان پيدا سو نو دا لمونځ چي په کوم صفت کمال سره واجب سوی وو هغسي اداء نه سو نو ګويا پوره لمونځ باطل سو .

ددې بر عکس په مازديګر کي دوهم شکل دی هغه دا چي د مازديګر په لمانځه کي تر لمر پريوتو پوري پوره وخت کامل نه وي يعني تر څو پوري چي لمر ژړ نسي تر هغه وخته پوري خو وخت مختار يا خو وخت کامل وي خو لمر تر ژړيدو وروسته په آخر کي وخت مکروه کيږي نو د مازديګر لمونځ هر کله چي وخت بالکل په اخر کي يعني وخت ناقص کي پيل کيږي نو د هغې مطلب به دا وي چي د هغه ابتداء وخت ناقص کي وسوه ځکه د هغې وجوب هم په صفت تاوان سره وسو نو د هغه اختتام هرکله چي د لمر په ډوبيدو باندي وي نو دا به وويل سي چي د لمر د ډوبيدو سره په لمونځ کي د تاوان پيدا کيدو په وجه لمونځ فاسد نه سو ځکه ځرنګه چي د هغه ابتداء په ناقص وخت کي سوې ده همداسي د هغه انتهاء هم په ناقص وخت کي وسوه ګويا په کوم صفت سره چي لمونځ واجب سوی وو په هغه صفت سره يعني ناقص ادا سو .

د کومو حديثو څخه چي معلوميږي چي د لمر ختلو اولمر کښيته کيدو او نصف النهار (زوال) په وخت کي لمونځ کول ممنوع دي د هغه په باره کي امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي چي د دې حديث تعلق د نوافل سره دی يعني که يو سړي په دغه درو وختونو کي نفل لمونځ کول غواړي نو د هغه لپاره به دا جائزه نه وي البته په فرض لمنځونو کي به په دغه درې سره وختونه کي هم جائز وي مګر د حديث الفاظ د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب تائيد نه کوي ځکه چي په حديث کي د فرض او نفل هيڅ تخصيص نه دی سوی بلکه په عامه توګه سره د ټولو لمنځونو په باره کي ويل سوي دي نود دې په باره کي که د يوه لمونځ تخصيص کيږي نو دا به وويل سي چي دا حديث د ښکاره منشاء او مفهوم سراسر خلاف دی .

ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي ددي حديث د اولي جملې مطلب دادی چي کوم سړي د

لمر ختلو څخه مخکي د سهار لمونځ یو رکعت وکړ نو بېشکه هغه د لمونځ وخت تر لاسه کړ که څه هم هغه وخت د لمانځه مناسب نه وو مګر بیا هغه وخت د لمونځ مناسب ځکه شو چي د یوه رکعت مقدار وخت په هر حال باقي پاته سوی وو نو هغه لمونځ به د هغه سړي لپاره لازم وي.

﴿۵۵۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَدْرَكَ أَحَدُكُمْ

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چي څوک ونیسي

سَجْدَةً مِّنْ صَلاَةِ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَلْيُتِمَّ صَلاَتَهُ وَإِذَا أَدْرَكَ

د مازدیګر یو رکعت د لمر لوېدو څخه مخکي نو هغه ته پکار دي چي خپل لمونځ پوره کړي او څوک چي ونیسي

سَجْدَةً مِّنْ صَلاَةِ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَلْيُتِمَّ صَلاَتَهُ. رواه البخاري

د سهار یو رکعت د لمر ختلو څخه مخکي نو هغه باید خپل لمونځ پوره کړي. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۷ - ۳۸، رقم: ۵۵۶.

**تشریح**: هغه ته پکار ده چي خپل لمونځ پوره وکړي، حنفیه خو ددې جملې مطلب داسي بیانوي چي هغه دي خپل لمونځ راوګرځوي یعني د هغه قضاء دي وکړي او د شوافع په نزد هغه معنی ده چي ددې څخه په مخکي حدیث کي ذکر سوې ده.

﴿۵۵۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَسِيَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د چا څخه چي هېر سي

صَلاَةً اَوْ نَامَ عَنْهَا فَكَفَّارَتُهَا اَنْ يُصَلِّيَهَا إِذَا ذَكَرَهَا وَفِيْ رِوَايَةٍ لاَ كَفَّارَةَ لَهَا

لمونځ یا بیده سي نو د هغه بدله داده چي کله هم ورپه یاد سي نو سمدستي دي یې وکړي، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي نه سته کفاره د غه لره

إِلاَّ ذٰلِكَ. متفق علیه

مګر دا چي و یې کړي. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۷۰، رقم: ۵۹۷، ومسلم ۱\۴۷۷، رقم: ۳۱۵ - ۶۸۴.

**تشريح**: كه د يوه سړي څخه لمونځ كول هير سي يا د لمانځه په وخت كي داسي غافله بيده سي چي د لمانځه وخت تير سي او لمونځ ونه كړي نو د هغه كفاره يوازي داده چي كله هم ورته را ياد سي يا كله هم د خوب څخه راپورته سي نو قضاء لمونځ دي وكړي دانه چي ځرنګه بغير عذر څخه هم د كفارې په توګه څو لمنځونه كول پر ذمه سي يا صدقه وغيره وركول پر ذمه سي، ابن ملك رحمة الله عليه فرمايي چي د دې حديث څخه دا خبره ثابتيږي چي كوم لمونځ د كولو څخه پاته سي هغه چي كله ور ياد سي د هغه په كولو كي تاخير كول نه دي پكار.

﴿۵۵۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيْطٌ إِنَّمَا التَّفْرِيْطُ فِي الْيَقْظَةِ فَإِذَا نَسِيَ أَحَدُكُمْ صَلاَةً أَوْ

د خوب په حالت كي د لمانځه څخه ناخبره كېدو سره د خوب له كبله څه قصور نسته البته د ويښي په حالت كي قصور سته هر كله چي په تاسو كي د يو چا څخه لمونځ هير سي يا

نَامَ عَنْهَا فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا فَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالىٰ قَالَ (وَأَقِمِ الصَّلاَةَ لِذِكْرِيْ).

رواه مسلم

بيده سي نو كوم وخت چي ور په ياد سي سمدستي دي يې وكړي لكه چي الله تعالى فرمايي : (زما د ياد لپاره لمونځ ادا كړه). مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۴۷۳، رقم: ۳۱۱- ٦٨١.

**تشريح**: مطلب دادی كه يو سړي د لمانځه مخكي په غافل كيدو سره بيده سي نو په هغه حالت كي دي د لمانځه د تاخير او قصور نسبت بيده كيدونكي ته نه كيږي ځكه چي هغه د خوب بيده كيدو كي مكلف نه دی بلكه مجبور دی البته هغه ته د قصور نسبت به د ويښي په حالت كي كيږي چي هغه داسي طريقه ولي اختيار كړل چي د هغه په وجه هغه د لمانځه كولو پرته بيده سي مثلا د وخت تر مخه بيده سو نو په دې كي د هغه خطا ده همداسي هغه داسي كارونه وكړل چي د هيري سبب وي مثلا په پريوتو يا د سطرنج په لوبه يا داسي نور كارونو كي بوخت سي چي د هيري باعث وي نو په دې كي د هغه قصور دی.

د آيت مطلب دادی چي د لمانځه يادول په منزله د الله جل جلاله د يادولو دي ځكه د لمانځه

يادول الله جل جلاله دخپل يادولو سره وفرمايل كله چي ما يادوى يعني لمونځ چي هركله تاسو ته راياد سي چي هغه زما د يادولو سبب دي نو كوئ يې، ځيني حضرات وايي چي (لذكري) معنى ده چي كله درته لمونځ راياد كړم نو هغه وخت لمونځ كوئ ستاسو څه قصور نه دى.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

﴿۵۵۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا عَلِيُّ ثَلَاثٌ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې علي! په درو شيانو كي

لَا تُؤَخِّرْهَا الصَّلَاةُ إِذَا أَتَتْ وَالْجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ وَالْأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفُؤًا. رواه الترمذي.

زنډ كول نه دى پكار ۱: يو خو د لمانځه په ادا كولو كي چي كله يې وخت سي ۲: دويم. په جنازه كي چي كله تياره سي ۳: او دريم د بې خاونده ښځي په نكاح كي هر كله چي د هغې سيال خاوند پيدا سي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱\۳۲۰، رقم: ۱۷۱.

**تشريح**: رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته په درو كارونو كي د زنډ نه كولو نصيحت فرمايلى دى اول خو د لمانځه په باره كي يې وفرمايل چي كله د لمانځه مختار وخت سي نو په هغه كي تاخير كول نه دي پكار بلكه تر ټولو تر مخه لمونځ كوئ د هغه وروسته بل كار كوئ دوهم د جنازې په باره كي فرمايلي دي چي كوم وخت جنازه تياره سي نو د هغې په لمانځه او ښخولو كي قطعا تاخير نه دى پكار، اشرف علي رحمة الله عليه قول د علامه طيبي شافعي نقل كوي چي ددې څخه دا معلومه سوه چي د جنازي لمونځ په مكروه وختونو يعني لمر ختلو، لمر كښته كيدو او د زوال په وخت كي كول مكروه نه دي هو كه صورت داسي وي چي جنازه د دغه وختونو څخه مخكي راسي نو بيا په دغه وختونو كي به لمونځ كول مكروه دي داده سجده تلاوت هم حكم دي په هر حال د دې درو مكروه وختونو څخه پرته په ټولو وختو كي حتى چي د سهار څخه مخكي او وروسته او د مازديگر دلمانځه وروسته هم دا دواړه شيان يعني د جنازې لمونځ او سجده تلاوت مكروه نه دي.

دریم شی رسول الله ﷺ دا وفرمایه چې د بې خاونده ښځې کفو یعني هم قوم سړی چې کله پیدا سي نو د هغه سره په نکاح کولو کې تاخیر کول نه دي پکار .

(ایّم) بې خاونده ښځې ته وایي که هغه پیغله وي یا مطلقه یعني طلاقه سوې او یا کونډه وي خو علامه طیبي فرمایي چې ایم هغه ښځې ته وایي چې د هغه زوج (یعني جوړه) نه وي که څه هم هغه سړی وي یا ښځه او ښځه که څه هم ثیب[1] وي او پېغله وي

د کفو مطلب دادی چې سړی په هغه ټولو صفتونو کې د ښځې هم مثله (برابر) وي، هغه اوصاف دادي : یو نسب دوهم اسلام دریم حریت یعني ازادي څلورم دیانت پنځم مال شپږم کسب. په دې ځای کې د حدیث مناسبت یو تکلیفي صورت حال ته د مسلمانانو توجه گرځول ضروري ده نن صبا دا عام رواج جوړ سوی دی چې د انجونو واده په ډېر زنډ سره کیږي اکثر زنډ خو د نوي تهذیب د پیروي او د رسم او رواج د پابندۍ نتیجه ده دا شی نه یوازي دا چې د پیغمبر رسول الله ﷺ د حکم او فرمان خلاف دی بلکه د انجونو د فطرت او د هغوی د جذباتو ختمولو سره پر هغوی د ظلم برابر دی د دې نتائج چې نن سبا په کوم انداز سره مختهراځي د هغه څخه هر سړی ښه خبر دی چې د زنا لعنت عام سوی دی د بې حیایي او بې غیرتۍ دور دی او اخلاق او کردار ډېر راکښته سوي دي ، بیا نه یوازي داچې د پیغلو انجونو په واده کې تاخیر کیږي بلکه که یوه ښځه د خاوند په وفات یا طلاق په وجه کونډه کیږي نو د هغې دوهمه نکاح ډېر عیب گڼل کیږي همداسي د هغې خواري (بې چاري) ټول جذبات او خواهشات په ختمیدو سره د هغې ټوله ژوند په نا امیدۍ، غم درد او حسرت او بې کیفي کې تیر یږي .

په دې خو تقریبا ټول پوهیږي چې د ټولو اهل سنت والجماعت په اتفاق سره دا عقیده ده چې کوم سړی د معمولي سنت څخه هم انکار وکړي یا د هغه تحقیر یعني سپکاوی وکړي نو هغه کافر کیږي او په دې ټول خلک پوهیږي چې د ښځې نکاح کول د پیغمبر اسلام ﷺ هغه عظیم او مشهور سنت دی چې د هغه تاکید د بې شمیره حدیثونو څخه ثابت دی مگر افسوس دی چې مسلمانان چې د اسلام دعوه کوي د رسول الله ﷺ ذات اقدس سره د محبت اقرار کوي د رسول الله ﷺ په دې سنت باندي په پابندي سره د عمل کولو جذبه نه لري دا څومره د تعجب خبره ده چې یو سړی خو د خپل مجبورۍ په وجه د انجونو په واده کې ځنډ کوي څوک د نوي

---

[1] یعني هغه ښځه چې د هغې نکاح سوې وي مگر خاوند یې مړ سوی وي یا طلاق یې ورکړی وي یا پیغله ناواده کړې انجلۍ وي.

تهذيب او فيشن سره د دې نيک بختۍ څخه ځان محرومه کوي او ځيني خلک د پيغور او ملامتيا د خوف څخه د کونډې سره د واده کولو انکار کوي ګويا هغه د خلکو پيغور او ملامتيا د رسول الله ﷺ په حکم او سنت باندي ترجيح ورکوي حال دا چي د هوښيارتوب تقاضا داده چي هغه د خلکو دغه پيغور او خبري د ځان لپاره باعث د سعادت او قابل د فخر وګڼي چي د انبياء عليهم السلام او د الله ﷻ د نيک بندګانو پر ښه کارونو باندي هميشه خلکو پيغور او خبري کړي دي مګر هغه خلکو د الله ﷻ په حکم، اطاعت، فرمانبردارۍ او نيکو کارونوکي هيڅ کله کوتاهي يا قصور نه دی کړی.

دلته د يو بزرګ په زړه پوري حکايت واورئ: ويل کيږي چي يو بزرګ د خپل لور نکاح د يو مريد سره چي د هغه انجلۍ مناسب او وړ وو وکړل او په دې يې هيڅ څوک خبر نه کړل حال دا چي د خپل ښځي څخه يې هم دا خبره پټه ساتلې وه وروسته چي د هغه ښځي ته دا معلومه سوه نو په جذبه کي سوه او هغه ته يې وويل چي تا د دې خبري هم خيال نه وساتی چي ستا په دې چم کولو سره ستا پزه پرې کيدای سي او بيا څرنګه چي د هغو ناقص العقل ښځو عادت دی هغه بزرګ ته يې ډير بد او رد وويل هغه بزرګ دا وګڼل چي د ښځو سره په دې باره کي څه ويل د خپل عقل خرابول دي نو دی هم پټه خوله سو بيا د باندي راغلی د مريدانو څخه يې پوښتنه وکړه چي ولي وړونو زما پر مخ هم پزه سته يا نه هغوی په تعجب سره وويل چي هو ولي نسته، هغه ورته وويل زما ښځه وايي چي زما پزه پريکړه سوه، ددې څخه د دوی مطلب داوو چي سړي ته دا پکار ده چي په نيک کار کولو کي د چا د پيغور او ملامتيا خيال نه وساتي ځکه چي په حقيقت کي کومه خبره خرابه نه وي هغه د چا په وينا سره نه خرابيږي او نه د هغه کارکونکي پر ذات او شخصيت درواغ لګيدلای سي.

حضرت مولانا شاه عبد القادر رحمة الله عليه ددې آيت (و انکحو الايامي) په ضمن کي ددې حديث ترجمه داسي کړې ده چي:

رسول الله ﷺ وفرمايل (اې علي رضي الله عنه په درو کارونو کي تاخير مه کوه اول د فرض لمانځه په اداکولو کي هرکله چي د هغه وخت سي دوهم په جنازه کي چي موجود سې دريم د کونډې ښځي په نکاح کي هر کله چي د هغې د ذات او مرتبې سړی مړ سي او کوم سړی چي پر کونډې باندي د دوهم خاوند عيب لګوي نو پوه سه چي د هغه ايمان سلامت نه دی او کومه مينځه يا غلام چي نيک وي يعني د واده څخه وروسته د هغوی د مغرور کيدو خوف نه وي او تاسو ته باور وي چي دا نيک بخت دي د واده څخه وروسته به زموږ کار نه پريږدي نو د هغوی هم نکاح کوئ.

﴿۵۵۸﴾: وَعَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْوَقْتُ الْأَوَّلُ مِنَ الصَّلَاةِ رِضْوَانُ اللّٰهِ وَالْوَقْتُ الْآخِرُ عَفْوُ اللّٰهِ . رواه الترمذي

په اول وخت کي د لمانځه ادا کول د الله د رضا سبب دی او په آخري وخت کي د الله تعالی د معافی سبب دی. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۱\۳۲۱، رقم: ۱۷۲.

**تشريح** د اول وخت څخه مراد اول مختار وخت دی او ددې قيد لګولو ضرورت داسي وسو چي د حنفيه په نزد په ځينو لمنځونو کي ځنډ کول لکه د سهار لمونځ او په ګرمۍ کي د ماپښين لمونځ په ځنډ کولو سره کول مستحب دی نو دا لمنځونه مستثنی دي ځکه چي د دې اول وخت مختار نه دي بلکه په دې کي ځنډ مختار دي

د آخر وخت څخه مراد مکروه وخت دی مثلا د مازديګر په لمانځه کي د لمر په بدليدو يا د ماخستن په لمانځه کي وخت د نيمي شپې څخه زيات تيريدل ددې جملې مطلب دادی چي په آخر وخت کي د لمانځه فرضيت خو په هر حال اداء کيږي چي د هغه په وجه هغه وخت په لمانځه کونکي د لمانځه د پريښودلو د ګناه څخه ژغورل کيږي او پر هغه به څه مواخذه نه وي .

﴿۵۵۹﴾: وَعَنْ أُمِّ فَرْوَةَ قَالَتْ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْأَعْمَالِ

د حضرت ام فروة څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي کوم عمل

أَفْضَلُ ؟ قَالَ الصَّلَاةُ لِأَوَّلِ وَقْتِهَا . رواه أحمد والترمذي وأبو داود . وقال الترمذي لا يروى الحديث إلا من حديث عبد الله بن عمر العمري وهو ليس بالقوي عند أهل الحديث .

تر ټولو غوره دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : په اول وخت کي لمونځ ادا کول ،(احمد ، ترمذي) ترمذي په دې کي دا هم ليکلي دي چي دا حديث پرته د عبد الله بن عمر عمري د حوالې څخه څه بله لار نه پيدا کيږي چي نه دی قوي په نزد د اهل حديث

**تخریج:** الامام احمد في مسنده ٦\ ٣٧٤، ٣٧٥، ٤٤٠، وابوداؤد: ١\ ٢٩٦، رقم: ٤٢٦، والترمذي ١\ ٣١٩، ٣٢٠، رقم: ١٧٠.

**تشریح:** مطلب دادی چي تر ایمان وروسته افضل عمل دادی چي لمونځ د هغه په اول وخت کي په جماعت سره اداء سي، د کتاب الصلوات پنځم نمبر حدیث په تشریح کي ښودل سوې ده چي د ښه اعمالو په اړه ډیر زیات حدیثونه راغلي دي چي په هغه کي مختلف اعمالو ته افضل اعمال ویل سوي دي او هغه هر یو پر خپل خپل ځای او د مناسبت په وجه یقینا افضل دي.

دلته بیا هم پوه سئ چي په نورو حدیثونو کي کومو اعمالو ته افضل ویل سوي دي نو هلته فضلیت اضافي مراد دی یعني ځیني اعمال په ځیني حیثیث سره افضل دي او ځیني اعمال ته د نورو وجهو او حیثیت سره پر نورو اعمالو باندي فضیلت حاصل دی مګر لمونځ علي الاطلاق په ټولو وجهو تر ایمان وروسته تر ټولو اعمالو غوره او اشرف دی.

ترمذي ددې حدیث په باره کي ویلي دي چي د دې راوي یو ازي یو یعني عبد الله بن عمر عمري دي او هغه هم د محدثینو په نزد قوي نه دی د عبد الله بن عمري په باره کي غالبا مخکي هم د یو حدیث په تشریح کي ښودل سوي دي چي دی د حضرت عمر رضي الله عنه د کورنۍ څخه دی ځکه ورته عمري ویل سوي دي د نسب لړۍ یې داده: عبد الله بن عمر حفض بن عاصم بن عمر فاروق، په هر حال د ترمذي د ویلو مقصد دادی چي دا حدیث د صحت مرتبې ته نسي رسیدلای حال دا چي نورو حضراتو ویلي دي چي دا حدیث صحیح دی.

﴿۵۶۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صلاةً

د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ تر آخره وخته پوري هیڅکله لمونځ

لِوَقْتِهَا الْآخِرِ مَرَّتَيْنِ حَتّٰى قَبَضَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى. رواه الترمذي.

په آخري وخت کي دوهم ځل نه دی کړی. ترمذي

**تخریج:** سنن الترمذي ١\ ٣٢٨، رقم: ١٧٤.

**تشریح:** د بي بي عائشې صدیقې رضي الله عنها د ارشاد مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به لمنځونه په هغه مختار وختوونو کي کول په مکروه وختونو کي به یې نه کول یوازي یو وار د بیان جواز لپاره رسول الله صلي الله علیه وسلم په اخري وخت کي کړي وو تر هغه برخي پوري لمونځ جائز کیدای سي، معلومیږي چي بي بي عائشې رضي الله عنها هغه لمونځ نه دی

شميرلى كوم چي رسول الله ﷺ د جبرائيل عليه السلام په ملگرتيا كي په اخر وخت كي د لمانځه كولو اتفاق سوى وو همدا سي يو وار رسول الله ﷺ يو پوښتنه كونكي ته يوه ورځ په اول وخت كي او يوه ورځ په اخر وخت كي لمونځ كولو سره ښودلې وه دا هم بي بي عائشې رضي الله عنها نه دى شميرلى ځكه چي دا پر تعليم باندي محمول دى .

﴿۵۶۱﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَزَالُ

د حضرت ابو ايوب رضی الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : همېشه به

أُمَّتِيْ بِخَيْرٍ أَوْ قَالَ عَلَى الْفِطْرَةِ مَا لَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ إِلٰى أَنْ تَشْتَبِكَ النُّجُوْمُ . رواه أبو داود . ورواه الدارمي عن العباس .

زما امت د خير په حالت كي وي يا دا الفاظ رسول الله ﷺ وفرمايل چي زما امت به هميشه پر دين فطرت وي تر څو پوري چي هغوى د ماښام په لمانځه كي ځنډ نه كوي .يعني دومره ځنډ چي راښكاره سي ستوري .ابوداؤد او دارمي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۲۹۱، رقم: ۴۱۸، سنن الدارمي ۱\ ۲۹۷، ۲۹۸، رقم: ۱۲۱۰.

**تشريح** : ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي د ماښام په وخت كي يوازي په ستورو ليدو سره كراهيت نه راځي البته ستوري په ګڼ كيدو سره چي ځليدل پيل سي نو بيا وخت مكروه كيږي رسول الله ﷺ يو وار د ماښام لمونځ په ځنډولو سره كړى وو او هغه هم د بيان جواز لپاره كنه رسول الله ﷺ به هميشه په اول وخت كي د ماښام لمونځ ادا كوى .

﴿۵۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلاَ أَنْ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه چيري

أَشُقَّ عَلٰى أُمَّتِيْ لَأَمَرْتُهُمْ أَنْ يُّؤَخِّرُوا الْعِشَاءَ إِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفِهِ . رواه أحمد والترمذي وابن ماجه .

ما پر خپل امت مشكل نه ګڼلاى نو ما به دا حكم كړى واى چي د ماخستن لمونځ د شپې تر دريمي برخي پوري و ځنډول سي

**تخريج:** الامام احمد في مسنده: ۲\ ۲۵۰، ۴۳۳، والترمذي ۱\ ۳۱۰، ۳۱۱، رقم: ۱۶۷، وابن ماجه ۱\ ۲۲۶، رقم: ۶۹۱.

﴿۵۶۳﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتِمُوا بِهٰذِهِ الصَّلَاةِ فَإِنَّكُمْ قَدْ فُضِّلْتُمْ بِهَا عَلٰى سَائِرِ الْأُمَمِ وَلَمْ تُصَلِّهَا أُمَّةٌ قَبْلَكُمْ . رواه أبو داود .

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو د (ماخستن په لمانځه کي) زنډ کوئ ځکه چي تاسي بيشکه بهتر کړل سوي ياست په دې لمانځه سره پر (ټولو) نورو امتونو او نه دي کړي يو امت مخکي تر تاسي دا لمونځ (ماخستن) . ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۲۹۲- ۲۹۳، رقم: ۴۲۱.

**تشريح:** ددې څخه مخکي په باب المواقيت دريم نمبر حديث کي تير سوي دي چي رسول الله ﷺ ته جبرائيل عليه السلام د پنځو وختونو لمونځ ورکړو او دا يې ورته وويل چي (هذا وقت الانبياء من قبلک ) ددې څخه خو دامعلوميږي چي تيرو انبياء عليهم السلام هم د ماخستن لمونځ کوی کوم حديث چي دلته ذکر سوی دی د هغه څخه دا معلوميږي چي د ماخستن لمونځ يوازي پر دې امت فرض دی پر مخکنيو امتونو باندي فرض نه وو محدثينو په دې دواړو حديثونو کي دا تطبيق کړی دی چي په مخکنيو امتونو کي د ماخستن لمونځ به يوازي پيغمبر او رسول کوی ځکه چي دا لمونځ د هغوی پر امت واجب نه وو څرنګه چي د ځينو علماؤ د قول سره سم د تهجد لمونځ پر رسول الله ﷺ باندي واجب وو او د رسول الله ﷺ پر امت واجب نه دی ځکه د جبرائيل عليه السلام د ارشاد (هذا وقت الانبياء) څخه پر مخکنو امتونو باندي د ماخستن وجوب ثابت نه سو بلکه ددې مفهوم داسو چي دا لمونځ به انبياء عليهم السلام کوی او په دې حديث کي چي دا وفرمايل سوه چي مخکنيو انبياء عليهم السلام هم د ماخستن لمونځ نه کوی بلکه ددې مفهوم داسو چي دا لمونځ د مخکنيو امتونو خلکو نه کوی بلکه دا لمونځ ددې امت د خلکو سره خاص دی همداسي په دې دواړو حديثو کي هيڅ اختلاف پاته نه سو په آخر کي په دې خبره باندي پوه سئ چي هذا وقت الانبياء من قبلک کي دا الفاظ هذا څخه د فجر وخت اسفار ته اشاره ده چي پر خلاف د نورو وختونو په دې کي ټول انبياء عليهم السلام شريک دي .

﴿۵۶۴﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ أَنَا أَعْلَمُ بِوَقْتِ هٰذِهِ الصَّلَاةِ صَلَاةِ

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د دې لمانځه وخت ښه پيژنم يعني لمونځ

الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْهَا لِسُقُوْطِ الْقَمَرِ لِثَالِثَةٍ . رواه أبو داود والدارمي .

د ماخستن، رسول الله ﷺ به د شپې د دريمي برخي د سپوږمۍ د ډوبېدو په وخت كي كاوه .
ابوداؤد او دارمي

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱\ ۲۹۱، رقم: ۴۱۹، والدارمي ۱\ ۲۹۸، رقم: ۱۲۱۱.

**تشريح** : د دريمي شپې سپوږمۍ د شپې تقريبا پنځمه برخه كي لوېږي همداسي دا حديث هم پر دې خبره دلالت كوي چي د ماخستن لمونځ په ځنډ كولو سره مستحب دی د ماخستن لمونځ ته دوهمه عشاء ځكه ويل سوي دي چي ډير واره ماښام ته هم عشاء ويل سوي دي د دې اعتبار څخه دا دوهم عشاء سو .

﴿۵۶۵﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَسْفِرُوْا بِالْفَجْرِ فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ . رواه الترمذي وأبو داود والدارمي وليس عند النسائي فإنه أعظم للأجر .

د سهار لمونځ په رڼا كي كوئ ځكه چي په رڼا كي د دې كول لوی اجر لري . ترمذي، ابوداؤد او دارمي

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱\ ۲۹۴، رقم: ۴۲۴، والترمذي ۱\ ۲۸۹، رقم: ۱۵۴، والنسائي ۱\ ۲۷۲، رقم: ۵۴۸ والدارمي ۱\ ۳۰۰-۳۰۱، رقم: ۱۲۱۷.

**تشريح** : د دې حديث څخه د ښكاره الفاظو څخه دا معلوميږي چي د سهار لمونځ په رڼا كي كول پكار دي لكه د حنفيوو ښكاره مذهب هم دادی چي د سهار د لمانځه شروع او ختم دي دواړه په رڼا كي وي مګر امام طحاوي (چي د حنفي مذهب يو جليل القدر امام دی) فرمايي چي په اول كي په (غلس) يعني تياره كي پكار ده او ختم يې په رڼا كي ، د دې طريقه داده چي

قرائت دومره اوږد کړي چي په ويلو ويلو سره رڼا سي ، له دې وجه علماء فرمايي چي د امام طحاوي رحمة الله عليه دا تاويل ښه او احسن دی ځکه چي په دې سره په ټولو حديثونو کي مطابقت پيدا کيږي چي په هغه کي ځيني علماء خو پر تياره باندي دلالت کوي او د ځينو څخه دا معلوميږي چي په رڼا کي لمونځ کول افضل دي څرنګه ددې حديث څخه دا معلومه سوه .

په دي حديث کي د يو دوهم تطبيق وجه خپله يو حديث هم په دې شرح السنة کي نقل سوی دی د هغه څخه دا معلوميږي چي په دې اړه به د موسم اعتبار وي يعني د يخ په موسم کي به په تياره کي لمونځ کول غوره وي او د ګرمۍ په موسم کي به په رڼا کي لمونځ کول غوره وي د حديث الفاظ دادي :

قال معاذ بعثني رسول الله صلى الله عليه وسلم الى اليمن فقال اذا كان في الشتاء فغلس بالفجر واطل القراءة قدر ما يطيق الناس ولا تملهم واذا كان في الصيف فاسفر بالفجر فان الليل قصير والناس نيام فامهلم حتى ادركوا يعني الصلوة

ترجمه: حضرت معاذ رضي الله عنه وايي چي کله زه رسول الله صلى الله عليه وسلم يمن ته وليږلم نو دا يې راته وفرمايل چي کله د يخ موسم سي نو د سهار لمونځ په تياره کي کوه او قرائت اوږد وايه (مګر دومره) چي پر خلکو باندي بوج نه وي چي هغوی تنګ نسي او هر کله چي د ګرمۍ موسم سي نو د سهار لمونځ په رڼا کي کوه ځکه چي د ګرمۍ شپې د کوچنۍ کېدو په وجه خلک بيده وي ځکه هغوی ته دومره موقع ورکړه چي هغوی په لمانځه کي ګډون وکړئ .

په هر حال د حنفيه علماؤ په نزد د سهار د رڼا حد دادی چي تر لمر ختو پوري دومره وخت وي چي په هغه کي قرائت مسنون د ځلويښت څخه تر شپيته يا سلو اياتونو پوري ترتيل د قرآن شريف داسي ويل چي هر ټکی او هر لفظ خپل مخرج په ښه طريقه او خيال سره ولولي او د لمانځه وروسته که په پاکي کي څه خلل معلوم سي نو تر لمر ختو مخکي مخکي اودس او دا ذکر سوي طريقې باندي اعاده يعني دوهم وار لمونځ کول ممکن سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

﴿۵۲۶﴾: عَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي الْعَصْرَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د مازديګر لمونځ ادا کړ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تُنْحَرُ الْجَزُورُ فَتُقْسَمُ عَشَرَ قِسَمٍ ثُمَّ تُطْبَخُ فَنَأْكُلُ لَحْمًا

بيا به مو اوښ حلال کړ بيا مو لس ځايه وويشئ بيا به غوښه پخه سول نو موږ به خوړل غوښه

نَضِيجًا قَبْلَ مَغِيبِ الشَّمْسِ. متفق عليه

پخه تر لمر لويدو مخکي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۵\۱۲۸، رقم: ۲۴۸۵ ومسلم ۱\۴۳۵، رقم: ۱۹۸- ۶۲۵.

**تشريح**: ددې حديث څخه په ښکاره خو دا معلوميږي چي د مازديګر لمونځ ژر يعني يو مثل سايه رسيدو وخت يا تر دې لږ وروسته وکړل سي څرنګه چي د ائمة ثلاثه (درو امامانو) او صاحبينو مذهب دادی او د يوه روايت سره سم د امام اعظم رحمة الله عليه هم دا مذهب دی او د ځينو حضراتو فتوی هم داده چي د مازديګر لمونځ دوه مثل سايه پوري وي د هغوی د طرف څخه به ددې حديث دا تاويل کيږي چي کيدای سي چي د ګرمۍ په موسم کي داسي کيږي ځکه چي هغه وخت ورځ لويه وي ، او ابن همام رحمة الله عليه د هدايې په شرح کي ليکلي دي که چيري د مازديګر لمونځ د لمر متغير کېدو څخه مخکي وکړل سي نو تر لمر لوېدو پوري په پاته وخت کي د تير سوي حديث په ډول عمل په آساني سره کيدای سي ، کوم خلک چي د اميرانو او حکامو سره ډوډۍ پخونکي ماهرين په سفر کي پر ډوډۍ پخولو باندي ليدلي وي نو هغوی به دا ليري نه ګڼي.

《۵۶۷》: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ مَكَثْنَا ذَاتَ لَيْلَةٍ نَنْتَظِرُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوه شپه موږ د رسول الله ﷺ انتظار کاوه

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ فَخَرَجَ إِلَيْنَا حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ

د ماخستن د لمانځه لپاره، رسول الله ﷺ راغلی کوم وخت چي د شپې دريمه برخه تيره سوې وه

أَوْ بَعْدَهُ فَلَا نَدْرِي أَشَيْءٌ شَغَلَهُ فِي أَهْلِهِ أَوْ غَيْرُ ذَلِكَ فَقَالَ حِينَ خَرَجَ إِنَّكُمْ

بلکه د دې وروسته هم موږ ته څرګنده نه وه چي رسول الله ﷺ په کور کي په يو کار بوخت وو يا ددې پرته بل څه سبب وو ، رسول الله ﷺ چي موږ ته راورسيدی نو وه يې فرمايل : تاسو

لَتَنْتَظِرُونَ صَلاَةً مَا يَنْتَظِرُهَا أَهْلُ دِينٍ غَيْرُكُمْ وَلَوْلاَ أَنْ يَثْقُلَ عَلَى أُمَّتِي

دلمانځه انتظار کوی بل هيڅ اهل مذهب ستاسو څخه پرته ددې لمانځه انتظار نه کوي که زما په امت کي دا امر مشکل نه واى

لَصَلَّيْتُ بِهِمْ هَذِهِ السَّاعَةَ ثُمَّ أَمَرَ الْمُؤَذِّنَ فَأَقَامَ الصَّلاَةَ وَصَلَّى. رواه مسلم

نو ما به په دغه وخت کي په دوى لمونځ کولاى بيا يې مؤذن ته حکم وکړ بيا اقامت وسو او لمونځ يې وکړ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۴۴۲، رقم: ۲۲۰- ۶۳۹.

**تشريح**: مطلب دادى چي ستاسو ماسوا د هيڅ دين خلک يعني يهود او نصارى د ماختن د لمانځه انتظار نه کوي ځکه چي دا لمونځ خو يوازي د دې امت سره خاص فرمايل سوى دى او يو بل امت ته نه دى نصيب سوى نو تاسو دا وخت هرکله چي د ارام وخت دى پر خپل نفس باندي واک راوړلو سره او مشقت وړلو سره د لمانځه چي څومره زيات انتظار کوئ هغومره زيات ثواب به ورکول کيږي.

ددې حديث څخه دا ثابته سوه چي د ماختن لمونځ د شپې په دريمه برخه کي کول غوره دى څرنګه چي د امام اعظم رحمة الله عليه مذهب دى مګر کوم چي د رسول الله ﷺ د عمل تعلق دى نو دا ثابته ده چي هر کله د صحابه کرامو د جماعت اکثر برخه به په اول وخت کي جمع کيده نو رسول الله ﷺ به په اول وخت کي لمونځ کوى او کوم حضرات چي به لمانځه ته په ځنډ سره جمع کيدل هغوى به په ځنډ سره لمونځ کوى د امام احمد رحمة الله عليه مذهب دادى چي کوم لمونځ کونکي په اول وخت کي جمع سي هغوى دي په اول وخت کي لمونځ وکړي او کوم چي په ځنډ سره جمعه سوه هغوى به په ځنډ سره لمونځ ادا کوي.

﴿۵۶۸﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به

يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ نَحْوًا مِنْ صَلاَتِكُمْ وَكَانَ يُؤَخِّرُ الْعَتَمَةَ بَعْدَ صَلاَتِكُمْ شَيْئًا وَكَانَ يُخِفُّ الصَّلاَةَ. رواه مسلم

ستاسو د لمنځو په شان لمونځ کاوه البته د ماخستن په لمانځه کي به يې لږ زنډ کاوه او مختصر لمونځ به يې کوی . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۴۴۵، رقم: ۲۲۷- ۶۴۳.

**تشريح** : د منعه کېدو سربېره حضرت جابر رضي الله عنه ماخستن ته عتمه ځکه ويلي دي چي شايد تر دې وخته پوري هغه ته د نهي حکم معلوم نه وويا دا نوم په اهل عرب کي د مخکي څخه پيژندل سوی دی ځکه هغه ته په دې سوچ سره چي په دې نوم سره به خلک دا لمونځ په ښه طريقه سره وپيژني دې ته عتمه وويل .

په هر حال دا حديث هم پر دې خبره په صراحت سره دلالت کوي چي د ماخستن لمونځ په ځنډ سره کول افضل او مستحب دي د مختصر لمونځ کولو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به کوچني کوچني سورتونه ويل مگر علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي کوچني کوچني سورتونه هغه وخت ويل کله چي امامت به يې کوی او د ضعيف او کمزورو خلکو رعايت به يې په نظر کي وو او هسي هم دا خبره د اکثريت په اعتبار فرمايل سوې ده ځکه چي دا هم ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ د مابنام په دوو رکعتو کي سورت اعراف هم ويلی دی او زه خو وايم چي د رسول الله ﷺ دومره لوی لوی سورتونو ويلو کي هم په خلکو کي داسي کيف او سرور محسوس کيدی چي اوږد قرائت به هم هغوی ته آسان معلوميدی او د شوق له کبله د اوږده قرائت به زيات غوښتونکي وه د دې پر خلاف د نورو خلکو په امامت کي دا خبره حاصليدل مشکل دي .

﴿۵۶۹﴾:وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ صَلَّيْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره لمونځ ادا کړ

صَلَاةَ الْعَتَمَةِ فَلَمْ يَخْرُجْ حَتّٰى مَضٰى نَحْوٌ مِّنْ شَطْرِ اللَّيْلِ فَقَالَ خُذُوْا

د ماخستن لمونځ ، رسول الله ﷺ د کور څخه هغه وخت تشريف راوړ چي د شپې نيمايي نژدې تيره سوې وه ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَقَاعِدَكُمْ فَأَخَذْنَا مَقَاعِدَنَا فَقَالَ إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا وَأَخَذُوْا مَضَاجِعَهُمْ

پر خپل خپل ځای ناست اوسئ نو موږ پر خپل خپل ځای کښينستلو بيا رسول الله ﷺ وفرمايل

بېشکه خلکو لمونځ وکړ او خپلو خپلو بسترو ته ولاړل

وَإِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوا فِي صَلاَةٍ مَا انْتَظَرْتُمُ الصَّلاَةَ وَلَوْلاَ ضُعْفُ الضَّعِيفِ وَسَقَمُ

مګر تاسو دلمانځه انتظار کوئ ستاسو دا ټول وخت په لمانځه کي شمېرل کیږي که ما ته د کمزوري د کمزورۍ او د ناروغ

السَّقِيمِ لَأَخَّرْتُ هٰذِهِ الصَّلاَةَ إِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ . رواه أبو داود والنسائي .

د ناروغۍ اندېښنه نه وای نو ما به په دې لمانځه کي د شپې تر نیمايي پوري زنډ کولای . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱\ ۲۹۳، رقم: ۴۲۲، والنسائي ۱\ ۲۶۸، رقم: ۵۳۷.

**تشريح** : څرنګه چي مخکي د رسول الله ﷺ ارشاد ذکر سوی دی چي د مسلمانانو څخه پرته د بل هيڅ دين خلک د ماخستن د لمانځه انتظار نه کوي ددې ارشاد په رڼا کي د حديث الفاظ نورو خلکو ته په لمونځ کولو سره خپلي خپلي بسترې سنبال کړي دي تشريح به دا کيږي چي د بل دين خلکو مثلا يهود او نصارى خو د مابنام په لمونځ کولو سره يا د خپل مذهب مطابق عبادت کولو سره خپلو خپلو بسترو ته په تللو سره د خوب غيږ ته رسيدلي دي خو ستاسو په نصيب کي ددې لمانځه سعادت او فضيلت د تکميل له کبله د لمانځه په انتظار کي ناست ياست او تاسو خپل ارام خپل خوب هرڅه د خپل پروردګار د عبادت په انتظار کي قربان کړي دي ځکه ستاسو پروردګار به هم ددې محنت او مشقت صله داسي تاسو ته درکړي چي ستاسو ددې انتظار يوه يوه لحظه به عبادت او باعث د سعادت جوړه کړي، په دې توګه چي ستاسو څومره وخت په انتظار کي تير سوی دی يا چي څومره وخت تيريږي نو پوه سئ چي هغه په لمانځه کي تير سوی دی يا تيريږي يعني څومره ثواب چي د لمانځه کولو حاصليږي هغومره ثواب به ددې انتظار کولو هم درته حاصليږي .

يا ددې جملې به دا مطلب وي چي د نورو سيمو مسلمانان چي په دې مسجد کي حاضر نه دي د ماخستن د لمانځه په کولو سره بيده سوي دي او تاسو تر اوسه پوري د ماخستن د لمانځه په انتظار کي ناست ياست همداسي د هغو مسلمانانو په مقابله کي تاسو د زيات ثواب او فضيلت حقدار جوړيږئ دا معنى د وروستني الفاظو ( و انکم لن تزالو الخ ) سره ډيره نژدې او مناسب دي . په هر حال دا حديث هم پر دې خبره دلالت کوي چي د ماخستن په لمانځه کي تر

نيمي شپې پوري ځنډ جائز دی بلکه د عبادت په اړه د زيات محنت او مشقت کولو په وجه مستحب او افضل دی.

﴿۵۷۰﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلْمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدُّ تَعْجِيلاً

د حضرت ام سلمة ﷞ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به ډېر تلوار کوی

لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ وَأَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيلاً لِلْعَصْرِ مِنْهُ. رواه أحمد والترمذي

د ماپښين په لمانځه کي تر تاسو او تاسو د مازديګر په لمانځه کي تر رسول الله ﷺ زيات تلوار کوئ. احمد او ترمذي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٢٩، والترمذي ١\٣٠٢، ٣٣، رقم: ١٦١.

**تشريح**: د بي بي ام سلمه رضي الله عنها مقصد د سنت پر پيروي باندي خلکو ته رغبت ورکول او متوجه کول دي چي هر ځاي او په هره موقع باندي د رسول الله ﷺ په پيروي کولو کي چي د مازديګر په لمانځه کي ځنډ کول مستحب دي څرنګه چي د امام اعظم رحمة الله عليه مذهب دی.

﴿۵۷۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ الْحَرُّ

د حضرت انس ﵁ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په ګرمۍ کي

أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ وَإِذَا كَانَ الْبَرْدُ عَجَّلَ. رواه النسائي.

په يخ کي لمونځ کوی (د ماپښين) او په يخ کي به يې ژر لمونځ ادا کوی. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ١\٢٤٨، رقم: ٤٩٨.

**تشريح**: د ماپښين د وخت په اړه په حديثونو کي چي دا تعارض دی چي د ځينو حديثونو څخه خو دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به د ماپښين لمونځ په ځنډ سره کوی او د ځينو حديثونو څخه دا معلوميږي چي ژر به يې کوی په دې حديث سره دا تعارض (ټکر) ختميږي په دې ډول چي د ګرمۍ په موسم کي به رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په ځنډ سره کوی او د يخ په موسم کي به يې ژر کوی.

﴿۵۷۲﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ إِنَّهَا سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ بَعْدِي أُمَرَاءُ يَشْغُلُهُمْ أَشْيَاءُ عَنِ الصَّلَاةِ

زما څخه وروسته به ستاسو سرداران داسي وي چي د هغوی کارونه به هغوی پر وخت د لمانځه څخه منعه کوي

لِوَقْتِهَا حَتَّى يَذْهَبَ وَقْتُهَا فَصَلُّوا الصَّلَاةَ لِوَقْتِهَا . فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

تر دې چي د لمانځه مستحب وخت به ولاړ سي په دې زمانه کي به تاسو خپل لمونځ پر خپل وخت کوئ ، يو سړي عرض وکړ اې دالله رسوله !

أُصَلِّي مَعَهُمْ ؟ قَالَ نَعَمْ . رواه أبو داود

ايا زه د هغوی سره لمونځ کوم ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هو . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۰۱، رقم: ۴۳۳.

﴿۵۷۳﴾: وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ وَقَاصٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت قبيصه بن وقاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَكُونُ عَلَيْكُمْ أُمَرَاءُ مِنْ بَعْدِي يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ فَهِيَ لَكُمْ وَهِيَ عَلَيْهِمْ

زما څخه وروسته به ستاسو سرداران داسي وي چي لمونځ به په ځنډ سره کوي هغه لمونځ ستاسو لپاره ګټور دی او د هغوی لپاره وبال ،

فَصَلُّوا مَعَهُمْ مَا صَلُّوا الْقِبْلَةَ . رواه أبو داود .

تاسو د هغوی سره لمونځ کوئ تر څو پوري چي هغوی د قبلې په لور لمونځ کوي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۰۱-۳۰۲، رقم: ۴۳۴.

**تشريح**: مطلب دادی که تاسو د مستحب وخت فضيلت حاصلولو له کبله د هغوی د لمانځه څخه مخکي لمونځ وکړئ او بيا د هغه څخه وروسته د هغوی سره هم لمونځ ادا کړئ نو دا دوهم

لمونځ به ستاسو لپاره نفل سي چي د هغه په وجه به تاسو ته ډير زيات ثواب حاصليږي او كه د هغوی د لمانځه څخه مخکي يې ونه کړئ بلکه د هغوی سره يو ځاي لمونځ وکړئ نو ددې په باره کي به پر تاسو څه نيوکه نه وي ځکه چي د هغوی سره په مکروه وخت کي ستاسو لمونځ کول به د فتنې د خوف او فساد د دفعي په غرض وي.

همدارنګه د وبال مطلب دادی چي هغه لمونځ به د هغوی لپاره د مواخذې يعني پوښتنه کولو باعث وي چي هغوی په مختار وخت کي لمونځ ادا کولو باندي قادر وه نو د وخت څخه په ځنډ کولو سره غير مطلوب وخت کي لمونځ ولي وکړ او بيا دا چي د دنيا امور هغوی د عقبی د امورو د سرته رسولو څخه منعه کړل چي يقينا هيڅ مسلمان لپاره مناسب نه دي.

﴿۵۷۴﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ أَنَّهُ دَخَلَ عَلٰى عُثْمَانَ وَهُوَ

د حضرت عبيد الله بن عدي بن الخيار څخه روايت دی چي هغه حضرت عثمان رضي الله عنه ته ورغلی کوم وخت چي هغه

مَحْصُوْرٌ فَقَالَ إِنَّكَ إِمَامُ عَامَّةٍ وَنَزَلَ بِكَ مَا تَرٰى وَيُصَلِّيْ لَنَا إِمَامُ فِتْنَةٍ

په محاصره کي وو او ورته يې وويل: ته د ټولو خلکو امام يې او س پر تا هغه مصيبت نازل دی چي په هغه کي ته اخته يې او په دې وخت کي د اهل فتنه امام موږ ته لمونځ راکوي

وَنَتَحَرَّجُ . فَقَالَ اَلصَّلَاةُ أَحْسَنُ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ فَإِذَا أَحْسَنَ النَّاسُ

او موږ دا ګناه ګڼو، حضرت عثمان رضي الله عنه وفرمايل: لمونځ د انسان په ټولو اعمالو کي غوره دی هر کله چي خلک نيکي کوي

فَأَحْسِنْ مَعَهُمْ وَإِذَا أَسَاؤُوْا فَاجْتَنِبْ إِسَاءَتَهُمْ . رواه البخاري.

نو ته هم د هغوی سره په نيکي کي ګډون کوه او کله چي بدي کوي نو خپل ځان د هغوی د بدی څخه ساته. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۱۸۸، رقم: ۶۹۵.

**تشريح**: د فتنې او فساد د امام څخه مراد د سرکښانو مشر دی چي د هغه نوم کنانه بن بشير وو د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي د خلکو په نيکيو کي خو شريک کيږي يعني که هغوی

نیک کار کوي نو تاسوهم د هغوی سره نیک کار کوئ البته د هغوی په بدی کي مه شریک کیږئ او لمونځ کول خو نیک عمل دي ځکه د سرکښانو په مشر پسي تاسو لمونځ کولای سي دا د کبیره گناه خبره مه گڼئ، د حضرت عثمان رضي الله عنه ددې ارشاد څخه هغوی د عدل، انصاف، حلم او بردبارۍ پرصفت باندي رڼا اچوي چي د هغوی په یوه داسي موقعه چي باغیانو د خپل ظلم او ستم په انتها کولو سره هغوی یې په یو ځای کي محاصره کړي وه او پرهغوی باندي یې تکلیفونه او پریشانیاني راوستلي وې مگر حضرت عثمان رضي الله عنه هغه وخت هم د هغوی نیکي او خیر د بغض او انتقام له مخي په بدی سره تعبیر نه کړ بلکه هغه ته یې ښه وویل.

دا ارشاد پر دې هم دلالت کوي چي په هر نیک او بد سړي پسي لمونځ کول جائز دي څرنگه چي د اهل سنت و الجماعت مذهب دی.

=======

# بَابُ فِيْ فَضَائِلِ الصَّلٰوةِ

## د لمانځه د فضائلو بیان

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۷۵﴾: عَنْ عُمَارَةَ ابْنِ رُوَيْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمارة [۱] بن رویبة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما درسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واوریدل

يَقُولُ لَنْ يَلِجَ النَّارَ أَحَدٌ صَلَّى قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا يَعْنِي الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ. رواه مسلم

چي فرمایل یې: هغه سړي به هیڅکله په اور کي داخل نه سي چي د لمر ختلو او لوېدلو څخه مخکي لمونځ کوي یعني د سهار او مازدیگر لمونځ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۴۴۰، رقم: ۲۱۳- ۶۳۴.

---

۱ – د حضرت عمیره رویبه زوی د قبیله بن حشیم بن ثقیف څخه دی او کوفي دی ۱۲.

**تشريح** : مطلب دادی چي کوم سړی دا دواړه لمنځونه په پابندي سره کوي هغه به دوږخ ته نه داخليږي په ښکاره خو دا حديث په دا خبره دلالت کوي چي کوم سړی پر دغه دواړو لمنځونو هميشتوب کوي هغه به د نورو لمنځونو په پريښودو يا د نورو ګناهونو کولو په وجه په دوزخ کي نسي داخليداي حال دا چي د جمهور علماؤ په نزد دا خبره ثابته ده چي لمنځونه د صغيره ګناهونو کفاره خو جوړيږي مګر د کبيره ګناهونو نه دي .علامه طيبي رحمة الله عليه ددې حديث توجيه داسي بيان کړې ده چي د سهار وخت په عامه توګه سره د آرام وخت وي همداسي د ماښام وخت د تجارت وغيره د مشغوليت وي نو کوم سړی چي ددې دوو موانعو لمنځود دغه دواړو لمنځونو پابندي کوي نو د هغه حال په ژبه ددې خبري اظهار کوي چي هغه په نورو اعمالو کي هم زياتي کونکی نه دی لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: ( ان الصلوة تنهى عن الفحشاء والمنكر) بيشکه لمونځ د بې حيايي او خرابو خبرو څخه منعه کوي، نو په دې وجه هغه به د بخښني په سعادت سره ونازول سي او په دوږخ کي به نسي اچول کيدای. او ښکاره خبره داده چي د حديث څخه ددې دواړو لمنځونو د فضيلت او عظمت په بيان کي مبالغه مراد ده چي ددې دواړو لمنځونو فضيلت او عظمت ددې خبري غوښتونکی دی چي ددې ساتونکی سړی به په دوږخ کي نسي اچول کيداي او سربيره ددې چي الله تعالی د بندګانو پر هر عمل باندي جزاء او سزاء ورکوي خو هغه چي وغواړي نو ددې دواړو لمنځونو د اداء کولو په وجه هغه ګناه چي د سړي څخه سوې وي و بخښل سي .

﴿۵۷۶﴾: وَعَنْ أَبِي مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى

د حضرت ابوموسى ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي ادا کړل

الْبَرْدَيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ .(متفق عليه)

د يخ په وخت کي دوه لمنځونه هغه به په جنت کي داخليږي (يعني د سهار او مازديګر يا سهار او ماخستن لمونځ) . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۵۲، رقم: ۵۷۴، ومسلم ۱\ ۴۴۰ رقم: ۲۱۵- ۶۳۵.

**د لغاتو حل** : (البردَين): اراد صلاة الصبح والعصر، لبرد الهواء فيهما بالنسبة الى وسط النهار.

﴿۵۷۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرتِ ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَتَعَاقَبُونَ فِيكُمْ مَلاَئِكَةٌ بِاللَّيْلِ وَمَلاَئِكَةٌ بِالنَّهَارِ وَيَجْتَمِعُونَ فِي صَلاَةِ

ستاسو سره د شپې او د ورځي ملائكي ځي راځي او دا ملائكي يو ځاى كيږي

الْفَجْرِ وَصَلاَةِ الْعَصْرِ ثُمَّ يَعْرُجُ الَّذِينَ بَاتُوا فِيكُمْ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَهُوَ

د سهار او مازديگر په لمونځو كي هغه ملائكي چي ستاسو سره وې كله چي بيرته ولاړي سي نو دهغوى څخه د هغوى رب پوښتنه كوي حال دا چي رب

أَعْلَمُ بِهِمْ كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِي فَيَقُولُونَ تَرَكْنَاهُمْ وَهُمْ يُصَلُّونَ وَأَتَيْنَاهُمْ وَهُمْ يُصَلُّونَ. متفق عليه

د هغو څخه زيات پوهېدونكى دى چي تاسو زما بندګان په كوم حال كي پرېښودل هغوى وايي موږ هغوى د لمانځه په حالت كي پرېښودل او كوم وخت چي موږ هغوى ته ورغلو نو هغه وخت يې هم لمونځ كوى . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۳، رقم: ۵۵۵، ومسلم: ۱\۴۳۹، رقم: ۲۱۰- ۶۳۲.

**تشريح**: د ارشاد مطلب دادى چي د بندګانو اعمال ليكلو او هغه الله تعالي ته د رسولو لپاره د ملائكو دوې ډلي د بندګانو سره ملګري وي يوه ډله د ورځي اعمال ليكي بيا د مازديگر وروسته په ستنېدو سره د الله تعالى په دربار كي خپل رپورټ وړاندي كوي دوهمه ډله د شپې د اعمالو رپورټ وړاندي كوي نو په ورځ او شپه كي دوه وختونه داسي دي چي هركله دا دواړه ډلي جمع كيږي يو وار خو د سهار په وخت كي كله چي د شپې ملائكي بيرته ځي او د ورځي ملائكي د خپل وظيفې په پوره كولو سره بيرته ځي او همدارنګه دغه دواړي ډلي د مازديگر په وخت كي سره يو ځاى كيږي چي كله د ورځي ملائكي خپله وظيفه ادا كړي نو بيرته ولاړي سي او د شپې ملائكي پر خپل كار باندي حاضريږي .

حال دا چي الله تعالي عالم الغيب والشهادت دى او د هغه علم د ځمكي او اسمانونو د ذره ذره را چاپيره دى هغه د ځمكي او اسمانونو د اوسيدونكو يو يو عمل ښه پيژني مګر كله

چي ملائكي د بندګانو د اعمالو رپورټ په اخيستو سره د هغه په دربار كي حاضريږي نو هغه به پوښتنه وكړي چي هركله تاسو د خپل وظيفې په پوره كولو سره بيرته راځئ نو دا وښياست چي هغه وخت زما بندګانو څه كول او د هغه دا پوښتنه كول نعوذ بالله د علم حاصلولو لپاره نه وي بلكه د دې سوال دا مقصد دی چي د ملائكو په وړاندي د خپلو بندګانو د فضيلت او بزرګۍ څرګندول پكاردي ځكه چي الله تعالی دې دنيا ته كوم وخت چي انسان راليږل وغوښتل او آدم عليه السلام د پيدا كولو اراده يې وكړه نو ملائكو الله تعالي ته وويل چي اې پروردګاره ته داسي مخلوق پيدا كول غواړې چي په دنيا كي فتنه او فساد وينه تويولو او غلا وغير بازار ګرم كړي او بيا هغوی د خپل غوره والي او لويي په ښكاره كولو سره ويلي وه چي ستا د عبادت لپاره خو موږ كافي يو او موږ ستا عبادت او بندګي كولای هم سو .

نو الله تعالی د هغوی څخه په دغه سوال كولو سره هغوی ته دا څرګندول غواړي چي وګورئ د كوم مخلوق په باره كي چي ستاسو دا خيال وو چي هغوی به په دنيا كي د فتنې او فساد خپرولو نه پرته بل هيڅ كار نه كوي اوس تاسو خپله وليدل چي هغوی زما عبادت څومره په پابندي سره په شوق او ذوق سره كوي په هر حال ددې حديث په ذريعه رسول الله ﷺ مسلمانانو ته دا شوق وركوي چي دوی په دوو وختونو كي هميشه په پابندي سره لمونځ كوي چي هغه ملائكي ستاسو ښه او غوره اعمال وړاندي كوي او خداوند قدوس ﷻ ستاسو فضيلت او لويي همداسي د ملائكو په وړاندي څرګندوي .

﴿٥٧٨﴾: وَعَنْ جُنْدُبِ الْقَسْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جندب القسري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ صَلَّى صَلاَةَ الصُّبْحِ فَهُوَ فِي ذِمَّةِ اللَّهِ فَلاَ يَطْلُبَنَّكُمُ اللَّهُ مِنْ ذِمَّتِهِ بِشَيْءٍ

چا چي د سهار لمونځ وكړ هغه د الله ﷻ په عهد او ذمه دارۍ كي دی له دې كبله تاسو ته پكار دي چي خپل ځان په داسي حال كي وساتي چي الله ستاسو څخه د خپل عهد او ذمه دارۍ پوښتنه ونه كړي

فَإِنَّهُ مَنْ يَطْلُبْهُ مِنْ ذِمَّتِهِ بِشَيْءٍ يُدْرِكْهُ ثُمَّ يَكُبَّهُ عَلَى وَجْهِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ .

رواه مسلم ، وفي بعض نسخ المصابيح القشيري بدل القسري .

ځكه چي الله تعالی خپل عهد د چا څخه وغواړي نو هغه به بيا هغه پيدا كوي او هغه به پړمخی

په اور کي غورځوي . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۴۵۴، رقم: ۲۶۲- ۶۵۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم سړی د سهار لمونځ وکړي هغه د الله تعالی په عهد او امان کي دی نو مسلمانانو ته دا پکار ده چي هغوی د داسي سړي سره بد چلن ونه کړي، هغه قتل نه کړي د هغه څخه مال په زوره وانخلي د هغه غيبت ونه کړي او د هغه بې عزتي ونه کړي که چا د هغه سره بدچلن وکړ يا د هغه سره يې يو داسي رويه اختيار کړه چي د هغه ځان او مال يا عزت ته تاوان وي نو ددې مطلب به دا وي چي هغه د الله تعالی په عهد او امان کي خلل واچوی نو الله تعالي به د داسي سړي څخه سخته مواخذه وکړي او د کوم بد نصيبه چي الله تعالی په سزا سره ونيسي نو د هغه لپاره به د نجات هيڅ ذريعه نه وي ، او يا د عهد او امان څخه مراد لمونځ دی چي د سهار په لمانځه کولو سره الله تعالی دنيا او آخرت کي د امن ۃرکولو وعده کړې ده نو مسلمانانو ته دا پکارده چي هغوی د سهار لمونځ هيڅکله قضاء نه کړي کنه د هغوی او پروردګار په مينځ کي چي کوم عهد دی هغه به مات سي چي پر هغه به الله تعالی مواخذه کوي او د هغه د مواخذې څخه د ساتني هيڅ څوک زړه نه سي کولای .

﴿۵۷۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ يَعْلَمُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : که چيري څرګنده سي

النَّاسُ مَا فِي النِّدَاءِ وَالصَّفِّ الْاَوَّلِ ثُمَّ لَمْ يَجِدُوا إِلاَّ أَنْ يَسْتَهِمُوا عَلَيْهِ

خلکو ته چي په اذان کولو کي څومره ثواب دی او د مسجد په اول صف کي د درېدلو څومره ثواب دی نو هغوی به د نه تر لاسه کولو په صورت کي

لاَسْتَهَمُوا وَلَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِي التَّهْجِيرِ لاَسْتَبَقُوا إِلَيْهِ وَلَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِي

په قرعه اندازي (پچه کولو) سره هغه تر لاسه کړي او که دا ورته څرګنده سي چي د ماپښين د لمانځه لپاره د وختي تللو څومره ثواب دی نو هغوی به په ځغاسته ورځي او که ورته معلوم سي

الْعَتَمَةِ وَالصُّبْحِ لَاَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا . متفق عليه

د ماخستن او سهار د لمانځه فضيلت نو هغوی به د دې لمنځو لپاره پر کوناتو ښکېدو سره راځي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۹۶، رقم: ۶۱۵، ومسلم: ۱\۳۲۵، رقم: ۱۲۹- ۴۳۷.

**د لغاتو حل**: (التهجير): هنا هو المسارعة الى الطاعة وليس من الهاجرة. (تلوار كول).

**تشريح**: كه د تهجير معنى دا واخيستل سي د كوم د معنى څخه چي په ښكاره دا معلوميږي يعني د ماپښين د لمانځه لپاره په تلوارسره راتلل نو ددې فضيلت اړه به د ګرمۍ څخه پرته د نورو موسمونو د ماپښين د لمانځه سره وي ځكه چي د ګرمۍ په موسم كي د ماپښين لمونځ د يخ په وخت كي كول مستحب دی بيا د تهجير معنى به د طاعت په لور تلوار كول وي او ځينو حضراتو ددې معنى د جمعې د لمانځه لپاره په غرمه كي تلل هم ليكلي دي. والله تعالى اعلم د كوناټو په زور راتلو مطلب دادی كه يو سړی پر پښو تللو طاقت نه لري نو ددې لمانځه فضيلت حاصلولو لپاره همداسي په ښكېدو به راځي لكه څرنګه چي معذور او ضعيف خلك راځي.

﴿۵۸۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ صَلٰوةٌ اَثْقَل

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هيڅ يو لمونځ درووند نه دئ

عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ مِنَ الْفَجْرِ وَالْعِشَاءِ وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَا فِيْهِمَا لَاَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا.

متفق عليه

پر منافقانو باندي د سهار او ماختستن تر لمونځو كه هغوی ته د دې فضيلت معلوم سي نو د كوناټو په ښكېدو به ورځي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۱۴۱، رقم: ۶۵۷ ومسلم ۱\ ۴۵۱- ۴۵۲، رقم: ۲۵۲-۶۵۱.

**تشريح**: د منافقانو په مزاج كي د عبادت په اړه سستي ډېره وي او بيا كوم لمنځونه چي هغوی كوي هغه هم د خپل ځان د ژغورني لپاره كوي او د دې لپاره يې كوي چي نورو خلكو ته دا وښيي چي زه خو عبادت كوم، بزرګ يم، د سهار او ماختستن دواړه وختونه داسي دي چي اول خو د ارام او استراحت او د خوب لذت حاصلولو او د يخ په موسم كي يخ وي دوهم دا چي په دې وختونو كي د تياري په وجه خلك يو څوك ډېر كم پيژني ځكه دا دواړه لمنځونه پر بد بختانو باندي ډېر بد لګيږي نو دا حديث دې ته اشاره كوي چي مخلص او صادق مومنانو ته دا پكار ده چي هغوی ددې خصلت څخه ځان وساتي چي د منافقينو سره مشابهت ونه لري.

﴿۵۸۱﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى

د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي ادا کړي

الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا قَامَ نِصْفَ اللَّيْلِ وَمَنْ صَلَّى الصُّبْحَ فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا صَلَّى اللَّيْلَ كُلَّهُ. رواه مسلم

د ماخستن لمونځ په جماعت سره وکړي هغه لکه د نيمي شپې عبادت چي وکړ او چا چي د سهار لمونځ په جماعت سره وکړ هغه لکه ټوله شپه چي عبادت وکړي . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱/ ۴۵۴، رقم: ۲۶۰-۶۵۶.

**تشريح** : که د حديث ښکاره الفاظو ته وکتل سي نو د هغه څخه دا ثابيتږي چي د سهار د لمانځه ثواب د ماخستن د لمانځه تر ثواب زيات دی ځکه نو ويل سوي دي چي د ماخستن لمونځ په جماعت سره کونکی تر نيمي شپې پوري د لمونځ کوتکي برابر دی او د سهار لمونځ په جماعت سره کونکی د ټولي شپې د لمونځ کونکي برابر دی .

يا ددې مطلب به داوي چي کوم سړی د ماخستن لمونځ په جماعت سره کوي نو هغه تر نيمي شپې پوري د لمانځه کولو اندازه ثواب تر لاسه کوي او بيا چي د سهار لمونځ په جماعت سره ادا کړي نو هغه د پاته نيمي شپې د لمانځه کولو اندازه ثواب تر لاسه کوي همداسي د دواړه لمونځونه په کولو سره د ټولي شپې عبادت کونکي د ثواب حقدار سو .

﴿۵۸۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

تَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلَاتِكُمُ المغرب قال و تقول الاعراب هي

صحرائي خلک دي ستاسو د مابنام پر لمانځه غلبه تر لاسه نه کړي د راوي بيان دي چي صحرايي خلکو به د مابنام لمانځه ته

لَا الْعِشَاءُ وقال لَا تَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلَاتِكُمُ الْعِشَاء فَإِنَّهَا فِي

د ماخستن لمونځ وايه او نبي کريم ﷺ وفرمايل چي صحرائي خلک چيري ستاسو د ماخستن د

لمانځه پر نوم غلبه تر لاسه نه کړي دد ې لمانځه نوم

كِتَابِ اللهِ الْعِشَاءُ وَإِنَّهَا تُعْتِمُ بِحِلَابِ الْإِبِلِ . رواه مسلم

د الله ﷻ په کتاب کي عشاء (ماخستن) دی دې صحرایانو به د اوښانو د شېدو د لوښلو په سبب زنډ کوی . مسلم .

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\ ۴۴۵، رقم: ۲۲۹- ۶۴۴.

**تشريح** : د صحرائي خلکو څخه مراد د جاهليت د ورځو خلک دي چي مغرب ته به يې عشاء ويل او عشاء ته به يې عتمه ويل نو رسول الله ﷺ صحابه کرام منعه کړل چي دا نوم دي نه اخلي ځکه چي په دې کي د دوی غالب کېدل لازميږي که د دې خلکو ايښودل سوی نوم استعمال کړئ نو د دې به دا مطلب وي چي تاسو د هغوی ژبه خپل ژبه وګرځول، ٠له دې کبله هغوی به پر تاسو غالب سي نو تاسو هغه نوم استعمالوئ کوم چي په قرآن کريم او حديث کي ذکر سوی دی يعني مغرب او عشاء (ماښام او ماخستن) .

په څرګنده خو د دې منعه تعلق د صحرائي خلکو سره دی چي هغوی غالب نسي مګر په حقيقت کي د دې نهي تعلق د ټولو مسلمانانو سره دی چي هغوی د دې لمنځونو د نومونو په اړه د صحرائي خلکو موافقت ونه کړي چي پر مسلمانانو باندي د هغوی غالب کيدل لازم نسي .

د دې څخه دا خبره هم معلومه سوه چي مسلمانانو ته دا پکار ده چي هغوی خپله ژبه او خپل کلام د شريعت د کلام سره سم وواييي او کومي خبري چي د کفارو کلام وي د هغه څخه بايد موږ پرهيز وکړو .

د نهي او علت د نهي بيانولو وروسته (فانها تعتم بحلاب الابل) کي رسول الله ﷺ عشاء ته د عتمه ويلو د وجهي هم ارشاد فرمايلی دی (تعتم) په صحيح روايت کي په صيغه معروف سره دی او دا ښودل سوي دي چي عتمه تاريکۍ ته وايي د دې مطلب دا سو چي هغه صحرائي خلکو به د اوښو د شيدو لويشلو په وجه عشاء يې په تياره کي کول په دې توګه چي هغوی په د شفق د پټيدو وروسته به يې عشاء کول په يو دوهم روايت کي لفظ تعتم په صيغه مجهول سره مذکور دی چي د هغه معنی به دا وي چي د اوښو د شيدو لوښلو په وجه د ماخستن لمونځ به يې په تياره کي کوی .

په هر حال د جاهليت په زمانه کي عربو عتمه تاريکۍ ته ويل هر کله چي د اسلام مقدسه رڼا د عربو مځکه د کفر او شرک د تيارو څخه پاکه کړل او لمنځونه مشروع سوه نو د دې نامه څخه

مسلمانان منعه کړل سول او د اهل جاهلیت د مشابهت په وجه دا نوم مکروه وګرځول سو دا مخکي هم څو ځايه ښودل سوي دي چي په کومو روايتونو کي پر ځاي د عشاء عتمه لفظ راغلی دی هغه روايتونه به ددې نهي څخه مخکي وي.

《۵۸۳》: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْخندق

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د خندق په ورځ وفرمايل:

حبسونا عَنِ الصَّلَاةِ الْوُسْطَى صَلَاةِ الْعَصْرِ مَلَأَ اللّٰهُ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا.

متفق عليه.

کافرانو موږ د منځني لمونځ يعني د مازديګر د لمانځه څخه بند کړو الله تعالی دې د دوی کورونه او قبرونه د اور څخه ډک کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۱۹۵، رقم: ۴۵۳۳، ومسلم: ۱\ ۴۳۷، رقم: ۲۰۵- ۶۲۷.

**تشريح**: د خندق غزا ته غزوه احزاب هم وايي چي په څلورم يا پنځم هجري کال کي سوې ده دې جنګ ته غزوه خندق ځکه وايي چي ددې غزا پر موقع د سلمان فارسي رضي الله عنه د مشورې مطابق د دشمنانو څخه د ساتني په وجه د مدينې څخه شاوخوا کنده وکښل سول په خندق کيندلو کي د ټولو مسلمانانو سره خپله رسول الله ﷺ موږ او زموږ مور او پلار دي پر قربان سي هم بنفس نفيس شريک وو څرنګه چي نور مخلص مومنان ټوله ورځ وږي تږي پاته کيدو سره د الله د دين حفاظت او د خپل محبوب پيغمبر د مشن کاميابۍ لپاره په دې محنت او مشقت مصروف وه همداسي رسول الله ﷺ هم ډير لوی لوی تکليفونه زغملو سره مصائب او رنج اخيستلو سره د لوږې په وجه پر نس د دوو کاڼو تړلو سره د يخ سخته پريشاني او په مځکه کيندلو سره د ډبرو راکښلو سخت محنت زغملو سره خپل جان نثار ملګرو سره خندق کيندی.

په دې جنګ کي د تردد او غشي ويشتلو په وجه د رسول الله ﷺ څخه څلور لمنځونه قضاء سوي وه چي په هغه کي د مازديګر لمونځ فضليت ښکاره کولو لپاره يې دا ښېرا وکړه د هغې مطلب داوو چي څرنګه دې کفارو او مشرکينو زموږ لمنځونه په قضاء کولو سره موږ سخت روحاني تکليف او په اذيت کي مبتلا کړي يو الله دي وکړي چي دوی هم د دنيا او آخرت په سخت عذاب کي مبتلا سي يو معمولي شان فکر انديشه دلته واقع کيدای سي چي د جنګ

احد پر موقعه باندي هر کله چي د کفارو د طرف څخه بې انتها تکليف رسولای سو رسول الله ﷺ هلته ښيرا نه وه کړې د دې څه وجه وه ؟

د دې مختصر جواب دادی چي په جنګ احد کي د رسول الله ﷺ د ذات اقدس معامله وه هلته د رسول الله ﷺ د شان رحمت تقاضا وه چي د خپل نفس په معامله کي د چا لپاره ښيرا و نه کړي خو دلته د لمانځه سوال وو چي د هغه تعلق د رسول الله ﷺ د ذات سره نه وو بلکه حقوق الله سره وو ځکه رسول الله ﷺ ښيرا وفرمايل . .

ددې حديث څخه دا ثابته سوه چي (صلوة وسطی) د مازديګر لمانځه ته وايي د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمة الله عليه څخه ډير جليل القدر حضرات، امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او د امام احمد وغيره قول دادی چي د قرآن شريف آيت کريمه (حافظوا على الصلوات والصلوة الوسطى) يعني تاسو د ټولو لمنځو او د مينځني لمانځه ساتنه کوئ، د وسطی څخه د مازديګر لمونځ تاسو مراد کولای سي چي دا مازديګر ته وايي .

او کوم چي ددې خبري تعلق دی چي په دغه ټاکلو کي د ډيرو صحابه کرامو او تابعينو اختلاف راغلی دی نو په دې وجه په ښکاره دا معلوميږي .

تر هغه وخته پوري هغه حضراتو د رسول الله ﷺ په هغه حديث کي چي په راتلونکي فصل کي به راسي د خپل اجتهاد او رايي په وجه په تعين کي اختلاف کوی نو ددې حديث د صحت څخه وروسته دا متعين سو چي ددې څخه مراد د مازديګر لمونځ دی . والله اعلم.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۵۸۴﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابن مسعود او سمرة رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةُ الْوُسْطٰى صَلَاةُ الْعَصْرِ . رواه الترمذي .

درمياني لمونځ د مازديګر لمونځ دی . ترمذي

**تخريج** : سنن الترمذي ۱\۳۴۰، رقم: ۱۸۱.

**تشريح** : صلوة الوسطی يعني منځني لمونځ ،د مازديګر لمونځ ځکه ويل کيدای سي چي دا لمونځ د ورځي د دوو لمنځونو يعني سهار او ماپښين او د شپې دوه لمنځونه يعني د ماښام او

ماخستن په مابينځ کي راځي .

﴿۵۸۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالٰى (إِنَّ

حضرت ابوهريرة رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه د دې آيت په تفسير کي (ان

قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا) قَالَ تَشْهَدُهُ مَلَائِكَةُ اللَّيْلِ وَمَلَائِكَةُ النَّهَارِ .

رواه الترمذي .

قران الفجر...) فرمايي چي د سهار په لمانځه کي د شپې ملائکي او د ورځي ملائکي حاضريږي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۲۸۲، رقم: ۳۱۳۵.

**تشريح**: (ان قرآن الفجر) الآيت معنی داده چي قرائت قرآن فجر دی او ددې څخه مراد د سهار لمونځ دی، قرآن يې ځکه ورته ويلي دي چي قرائت د لمانځه يو رکن دی لکه څرنګه چي په ځينو ځايو کي لمانځه ته رکوع يا سجده ويل سوي دي .

په هر حال د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي په دې آيت کريمه کي د مشهود څخه مراد دادی چي د بندګانو د ورځي او شپې اعمال ليکونکي ملائکي دې لمانځه ته حاضريږي لکه څرنګه چي ددې باب په دريم نمبر حديث کي ددې تفصيل بيان سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

﴿۵۸۶﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ وَعَائِشَةَ قَالَا اَلصَّلَاةُ الْوُسْطٰى صَلَاةُ الظُّهْرِ .

رواه مالك عن زيد والترمذي عنهما تعليقا .

د حضرت زيد بن ثابت او عائشة (رض) څخه روايت دی چي درمياني لمونځ د ماپښين لمونځ دی . مالک او ترمذي

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۳۹، رقم: ۲۷ والترمذي ۱\ ۳۴۱، ۳۴۲، رقم: ۱۸۲.

**تشريح**: بي بي عائشې رضي الله عنها او حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه (صلوة وسطی) څخه د ماپښين لمونځ ځکه مراد اخيستی دی چي دا لمونځ د ورځي په درميانه برخه کي ادا کيږي .

﴿۵۸۷﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي

د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به ادا کوی

الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ وَلَمْ يَكُنْ يُّصَلِّيْ صَلاَةً أَشَدَّ عَلٰى أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د ماپښين لمونځ وختي او په صحابه کرامو کي به په هغه ټولو لمنځو کي د ماپښين تر لمانځه زيات سخت هيڅ لمونځ نه وو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا فَنَزَلَتْ (حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلاَةِ الْوُسْطٰى) وَقَالَ إِنَّ

نو دا آيت نازل سو : (حافظوا على الصلوات.....) د ټولو لمونځو او په خاص ډول د درمياني لمانځه ساتنه کوئ، زيد بن ثابت وايي

قَبْلَهَا صَلاَتَيْنِ وَبَعْدَهَا صَلاَتَيْنِ. رواه أحمد وأبو داود.

د درمياني لمانځه ځخه دوه لمنځونه مخکي دي او دوه وروسته دی. احمد او ابوداؤد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۸۳، وابوداؤد ۱\۲۸۸ رقم: ۴۱۱.

**تشريح**: د حديث د آخري برخي ځخه د راوي مقصد دادی چي د درمياني لمونځ ځخه مراد د ماپښين لمونځ دی نو په ښکاره دا معلوميږي چي د حضرت زيد رضي الله عنه دا ثابتول چي د منځني لمونځ ځخه مراد د ماپښين لمونځ دی نو دا د هغه خپل ذاتي اجتهاد دی ځکه د هغه قول د رسول الله ﷺ د حديث سره مخالف نه دی ځکه چي رسول الله ﷺ خو په صراحت سره فرمايلي دي چي د درمياني لمانځه ځخه مراد د مازديګر لمونځ دی.

﴿۵۸۸﴾: وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ عَلِيَّ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ وَعَبْدَ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ كَانَا

د حضرت مالک رضي الله عنه ځخه روايت دی چي علی بن ابي طالب رضي الله عنه او عبدالله بن عباس رضي الله عنه

يَقُوْلاَنِ اَلصَّلاَةُ الْوُسْطٰى صَلاَةُ الصُّبْحِ. رواه في الموطأ. ورواه الترمذي عن ابن عباس وابن عمر تعليقا

ويل چي د رمياني لمونځ د سهار لمونځ دی. مؤطا او ترمذي.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱۳۹، رقم: ۲۸، سنن الترمذي ۱\۳۴۲، رقم: ۱۸۲.

**تشريح**: دا هم د دې دواړو حضراتو ذاتي اجتهاد دی چي دغه حضراتو ته به د رسول الله ﷺ حديث نه وي رسيدلی ځکه دوی د احتمال په توګه وايي چي د درمياني لمانځه څخه مرا د سهار لمونځ دی، که څه هم حضرت ماروي رحمة الله عليه چي د شوافع د امامانو څخه شميرل کيږي دا وضاحت کړی دی چي امام شافعي رحمة الله عليه دا صراحت کړی دی چي د سهار لمونځ درمياني لمونځ دی نو ددې صحيح احاديث ليدو چي د هغه څخه په صراحت ثابته ده چي د مازديگر لمونځ درمياني لمونځ دی دا خيال کيدای سي چي شافعي مذهب به هم داوي ځکه چي امام شافعي رحمة الله عليه دا وصيت کړی وو که تاسي يو داسي حديث عملي کوئ چي د هغه خلاف ما حکم ورکړی وي نو زما صحيح مذهب هغه وګڼئ کوم چي د صحيح حديث څخه ثابت وي او زما اول حکم پر ديوال وغورځوئ.

﴿۵۸۹﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ

د حضرت سلمان رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل يې:

غَدَا إِلَى صَلَاةِ الصُّبْحِ غَدَا بِرَايَةِ الْإِيْمَانِ وَمَنْ غَدَا إِلَى السُّوْقِ غَدَا بِرَايَةِ إِبْلِيْسَ. رواه ابن ماجه.

کوم سړی چي د سهار لمانځه ته ځي هغه لکه د ايمان بيرغ چي وړي او کوم سړی چي بازار ته ځي هغه لکه د ابليس بيرغ چي وړي. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۷۵۱، رقم: ۲۲۳۴.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث د الله تعالي د لښکر او د شيطان د لښکر بيانولو لپاره مثال دی چي کوم سړی د سهار د لمانځه کولو لپاره سهار وختي د مسجد طرف ته روان وي نو ګويا چي هغه د ايمان بيرغ پورته کړ او د شيطان سره د جنګ کولو لپاره راغلی څرنګه چي غازيان او مجاهدين د دښمنان اسلام سره د جهاد لپاره اسلامي بيرغ اخيستی دی نو د سهار په وخت کي د سها ر دلمانځه لپاره تلونکی سړی د الله تعالي د لښکر يو فرد وي او کوم سړی چي د سهار په وخت کي د دنيا د حاصلولو لپاره د بازار طرف ته ځي نو هغه د شيطان د لښکر يو فرد دی په دې توګه چي هغه د الله تعالی د حکم خلاف ورزی کولو

سره د شیطان پیروي او د تابعداری بیرغ پورته کولو سره د هغه شان وشوکت زیاتوي.
مگر په دې پوه سئ چي دا مثال د هغه سړي په اړه دی کوم چي د سهار لمونځ او وظیفه کولو ځخه پرته بازار ته ځي.
هو کوم سړی چي د لمانځه، تلاوت او وظیفې ځخه د فارغه کېدو وروسته د حلال رزق د طلب کولو او د خپل کورنۍ لپاره د رزق حاصلولو په وجه بازار ته ځي نو هغه به ددې تمثیل له مخي د شیطان د لښکر فرد نه وي بلکه د الله تعالی د لښکر فرد به وي.

==========

# بَابُ الاَذَانِ ( د اذان بیان )

په لغت کي د اذان معنی خبر ورکول دي او د شریعت په اصطلاح کي په خاصو الفاظو سره په خاصو وختونو کي د لمانځه د وخت خبر ورکولو ته اذان وایي ددې تعریف ځخه هغه اذان خارج دی کوم چي د لمانځه ځخه پرته د نورو کارو لپاره مسنون کړل سوی دی ځرنگه چي د ماشوم د زېږیدني وروسته د هغه په غوږ کي د اذان او اقامت کلمات ویل کیږي. او همداسي د هغه سړي په غوږ کي اذان کول مستحب دی چي په یو تکلیف کي اخته وي یا هغه ته د مرگي وغیره مرض وي یا د چا چي عادتونه خراب سوي وي که هغه انسان وي او که حیوان.
حضرت دیلمي رحمة الله علیه روایت کوي چي حضرت علي کرم الله وجهه وفرمایل چي یوه ورځ رسول الله ﷺ زما په غمجن لیدو سره راته وفرمایل اې ابن ابي طالب! زه تا غمجن وینم نو ته خپل اهل بیت کي یو چا ته حکم ورکړه چي هغه ستا په غوږ کي اذان ووایي چي په هغه سره ستا غم ختم سي حضرت علي ﷺ فرمایي ما د رسول الله ﷺ د ارشاد سره سم عمل وکړ نو د رسول الله ﷺ خبره مبارکه صحیح ثابته سوه او دا روایت حضرت علي ﷺ پوري نقل کونکي هر راوي ویلي دي چي موږ دا طریقه وفرمایله نو تجربه ثابته سوه همداسي حضرت دیلمي رحمة الله علیه د حضرت علي کرم الله وجهه ځخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د چا عادتونه چي خراب سوي یي که هغه انسان وي یا حیوان نو د هغه په غوږ کي اذان وکړئ.
په هر حال د فرضو لمنځو لپاره اذان کول سنت مؤکده دی چي خلک د لمانځه پر وخت په مسجد کي راجمع سي او لمونځ وکړي، د اذان د مشروعیت په اړه مشهور او صحیح دا دی چي د اذان د مشروعیت ابتداء د عبد الله ابن زید انصاري ﷺ او حضرت فاروق ﷺ هغه خوب دی چي د هغه تفصیل به په راتلونکو حدیثونو کي راسي.

ځيني حضرات وايي چي د اذان خوب حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه ليدلی وو او امام غزالي رحمة الله عليه فرمايي چي لسو صحابوو ته په خوب كي د اذان تعليم وركړل سوی وو بلكه ځني حضرات وايي چي خوب ليدونكي څورلس صحابه وه.

د ځينو محققينو علماؤ قول دادی چي د اذان مشروعيت خپله د رسول الله ﷺ د اجتهاد په نتيجه كي سوی دی‌چي د هغه طرف ته د معراج په شپه كي يوې ملائكي رهنمايي كړې وه حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي رسول الله ﷺ د معراج په شپه كي چي عرش ته ورسيدی او سراير ده عزت پوري چي د كبريايي حق جل مجده محل خاص دی ورسيدی نو د هغه ځايه يوه ملائكه راووتل رسول الله ﷺ د حضرت جبرائيل عليه السلام څخه پوښتنه وكړه چي دا ملائكه څوک ده؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل په هغه الله دي مي قسم وي چي تاسي يې په حق سره راليږلي ياست د ټول مخلوق څخه زيات قريب ترين درګاه عزت ته زه يم مګر زما د پيښداكېدو څخه تر اوسه ما دا ملائكه هيڅ كله نه ده ليدلې نو هغه ملائكي وويل الله اكبر الله اكبر يعني الله ډير لوی دی الله ډير لوی دی د پردې د شا څخه اواز راغلی چي زما بنده رښتيا وايي انا اكبر انا اكبر يعني زه ډير لوی يم زه ډير لوی يم د دې وروسته هغه ملائكي د اذان نور كلمات ذكر كړل.

د دې روايت څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د اذان كلمات د صحابه كرامو د خوب څخه هم مخكي د معراج په شپه كي اوريدلي وه، علماء ليكي چي په دې اړه د محقق دا فيصله ده چي رسول الله ﷺ د اذان كلمات د معراج په شپه كي اوريدلي دي مګر د دې كلماتو د اذان كولو لپاره حكم نه وو سوی داوجه ده چي رسول الله ﷺ به په مكه كي پرته د اذان كولو څخه لمونځ اداكوی تر دې چي مدينې منورې ته يې تشريف راوړ او هلته يې د صحابه كرامو سره مشوره وكړه نو ځينو صحابه كرامو په خوب كي دا كلمات واوريدل د هغه وروسته وحي هم راغلې چي كوم كلمات يې په اسمان واوريدل اوس هغه به پر مځكه د اذان كولو لپاره مسنون كړل سي، والله اعلم.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۹۰﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ ذَكَرُوا النَّارَ وَالنَّاقُوسَ فَذَكَرُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي خلكو (د لمانځه د وخت معلوملو لپاره) د يهود او نصارا د اور او ناقوس يادونه وكړه

فَأُمِرَ بِلَالٌ أَنْ يَّشْفَعَ الْأَذَانَ وَأَنْ يُّوتِرَ الْإِقَامَةَ . قال إسماعيل فذكرته لأيوب . فقال إلا الإقامة . متفق عليه

نو رسول الله ﷺ بلال رضي الله عنه ته حكم وكړ چي د آذان كلمې دوه دوه ځله ووايي او يو يو ځل تكبير وايي .بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ٢\٧٧، رقم: ٦٠٣، ومسلم ١\٢٨٦، رقم: ٣ - ٣٧٨.

**تشريح** : كله چي رسول الله ﷺ مدينې منورې ته هجرت وكړ او هلته د مسلمانانو په شمير كي زياتوالى راغلى او مسجد جوړ سو نو رسول الله ﷺ د صحابه كرامو سره مشوره وكړه چي د لمانځه د وخت د اعلان لپاره يو داسي شى ټاكل پكار دى چي ټول خلك به پر وخت په مسجد كي حاضريږي او په جماعت سره لمونځ وكړلاى سي نو ځينو صحابه كرامو دا مشوره وركړه چي د لمانځه پر وخت به پر يو لوړ ځاى باندي اور بلوو نو خلك به هغه ويني او لمانځه ته به حاضر سي د ځينو دا رايه سوه چي د ناقوس (زنګ) ږغول پكار دي چي خلك هغه واوري او لمانځه ته حاضر سي .

بلي خو اته ځينو د نظر خاوندانو صحابه كرامو د مشورې په اړه عرض وكړو چي اور خو يهوديان د خپل عبادت په وخت كي بلوي همداسي نصارى د خپل عبادت په وخت كي د اعلان لپاره ناقوس وهي نو موږ ته دا دواړي طريقې اختيارول نه دي پكار چي د يهودو او نصارى سره ورته والى راسي نو د دې څخه پرته يو بله طريقه اختيارول پكار دي .

خبره معقوله وه ځكه نو پرته د يوې پريكړې څخه مجلس پاى ته ورسيدى او صحابه كرامو رضي الله عنهم خپل خپل كورو ته راغلل يو مخلص صحابي عبد الله ابن زيد رضي الله عنه چي وليدل چي رسول الله ﷺ په دې اړه ډير فكر مند دى او څه ښه طريقه يې مخته نه راځي نو ډير پريشانه سو د هغه د زړه خواهش وو چي دا مسئله په يو طريقه ژر تر ژره فيصله كول پكار دي چي د رسول الله ﷺ فكر ليري سي نو په دې سوچ كي كور ته راغلي بيده سو په خوب كي يې وليدل چي يوه ملائكه دده په مخكي اذان وايي .

په ځينو روايتونو كي دي چي عبد الله بن زيد رضي الله عنه وفرمايل چي هغه وخت زه بالكل بيده نه وم بلكه د خوب په حالت كي وم او په ځينو روايتونو كي دي چي هغه وفرمايل كه د بد ګماني خوف نه وي نو ما به ويلي واى چي زه هغه وخت بيده نه وم په دې وجه ځيني علماء دا واقعه پر

حال او کشف باندي محمول کړې ده چي ارباب باطن ته د بيدارۍ په حالت کي واقع کيږي.

په هر حال عبدالله ابن زيد چي سهار راپورته سو نو د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او خپل خوب يې بيان کړ، رسول الله ﷺ وفرمايل بيله شکه دا خوب صحيح دی او وه يې فرمايل چي بلال د ځان سره کړه او هغه ته دغه کلمات د کوم چي تا ته په خوب کي ښوونه سوي ده هغه ته يې وروښيه ځکه چي د هغه آواز ستا تر آواز لوړ دی.

نو هر کله چي دواړو هغسي اذان وکړ او د حضرت بلال آواز ښار ته ورسيدی نو حضرت عمر فاروق په منډه راغلی او عرض يې وکړ اې د الله رسوله! په هغه ذات مي دي قسم وي چي تاسو يې په حق سره را استولي ياست او س چي کوم کلمات ادا کړل سوي دي ما هم په خوب کي دا کلمات اوريدلي دي د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ د الله تعالی شکر ادا کړ. ويل کيږي چي په هغه شپه څورلسو صحابه کرامو همداسي خوب ليدلی وو.

ناقوس د نصاری په نزد د عبادت په وخت کي د خبرو په اړه استعماليدی او د هغه شکل دا رو چي خلکو به يو لوی په يو کوچني لرګی وهی د هغه څخه به چي کوم آواز پيدا کيدی هغه به د عبادت د وخت اعلان وو.

د يهوديانو په باره کي خو دامشهوره ده چي هغوی به د خپل عبادت په وخت کي ښکر وهئ د اور بلولو ذکر يوازي د حضرت انس په دغه حديث کي ذکر سوی دی او په يو بل روايت کي د دې تذکره نسته، د دې څخه دا معلوميږي چي د يهوديانو دوې ډلي وې. يوې ډلي به ناقوس وهئ، او دويمي ډلي به اور بلوی، دغه د حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د آذان کلمې د شروع د الله اکبر څخه ماسوا جفت دي او د اقامت کلمې طاق دي لکه څرنګه چي د صحابوو او تابعينو اکثره د علم خاوندان امام زهري، امام مالک، امام شافعي. امام اوزاعي. امام اسحاق او د امام محمد رحمهم الله دغه قول او مذهب دی ليکن د امام ابوحنيفة رحمه الله. د دوی د مقلدينو په نزد د آذان او اقامت دواړو کلمات جفت دي. د دوی دليل به وروسته راسي.

﴿۵۹۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ مَحْذُوْرَةَ قَالَ أَلْقٰى عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو محذوره [۷] څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به ښودی ما ته

[۷] - د نوموړي نوم سمره بن معبر دی او په ابو محذوره کنيت سره مشهور دی. نوموړي هجرت نه دی کړی. نوموړی مؤذن وو او په مکه مکرمه کي کي وفات سوی دی.

التَّأْذِيْنَ هُوَ بِنَفْسِهِ فَقَالَ قُلْ اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ أَشْهَدُ أَنْ

آذان پخپله، رسول الله ﷺ به فرمایل : ووایه : الله ډیر لوی دی الله ډیر لوی دی، الله ډیر لوی، الله ډیر لوی ، زه شاهدي ورکوم چي

لاَّ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ

د الله جل جلاله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته، زه شاهدي ورکوم چي د الله جل جلاله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته ، زه شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله جل جلاله رسول دی ، زه شاهدي ورکوم چي

مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ . ثُمَّ تَعُوْدُ فَتَقُوْلُ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلَهَ

محمد ﷺ د الله جل جلاله رسول دی.، بیا یې وفرمایل هغه جملې بیا دوهم ځل ووایه کومې چي دي مخکي ویلي وې . نو ته به وایې چي اشهد ان لااله الاالله، اشهد ان لااله

إِلاَّ اللهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ حَيَّ عَلَى

الا الله، اشهد ان محمدا رسول الله، اشهد ان محمدا رسول الله، راسئ

الصَّلاَةِ حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ . اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ . رواه مسلم .

لمانځه ته، راسئ لمانځه ته، راسي د خلاصون په لور، راسئ د خلاصون په لار، . الله ډیر لوی دی الله ډیر لوی دی، لااله الاالله ، د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته . مسلم .

**تخريج :** صحيح مسلم ۱\۲۸۷، رقم: ٦– ۳۷۹.

**تشريح :** د الله اکبر معنی داده چي د الله تعالی ذات ددې څخه ډیر اعلی دی چي یو سړی د هغه د کبریایي او عظمت حقیقت وپیژني یا دا چي الله تعالی ددې حیثیت څخه ډیر لوی دی چي د هغه ذات طرف ته د هغه شیانو نسبت وکړلای سي کوم چي د هغه د عظمت او بزرګۍ مناسب نه دي یا ددې معنی به دا وي چي الله تعالی رب العزت تر ټولو شیانو لوی دی .

په آذان او تکبیر کي په لفظ د الله اکبر کي د راء حرف ساکن وي، او امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه ،امام شافعي رحمة الله عليه، امام احمد رحمة الله عليه اود جمهورو علماؤ په

نزد دا كلمه په اذان كي په اول وار څلور واره ويل كيږي او د امام مالك رحمة الله عليه په نزد دوه واره ويل كيږي، ددې كلمې څلور واره په ويلو كي دا نكته ده چي ګويا دا حكم دى په څلور كونجه دنيا كي جاري او ساري دي او عناصر اربعه څخه مركب دنفس انساني د خواهشاتو د تزكيه لپاره ډير موثر دى، د حي على الفلاح معنى داده چي تاسو د هرمكروه شي څخه بيل سئ او هر ښه شي ته راسئ، ځينو حضراتو ويلي دي چي د فلاح معنى د بقاء ده يعني هغه شي ته راوځغلئ چي د عذاب څخه د خلاصون ذريعه ده او د ثواب د حاصليدو سبب وي او په آخرت كي د بقاء ذريعه وي او هغه شى لمونځ دى، د امام شافعي رحمة الله عليه او امام مالك رحمة الله عليه په نزد په اذان كي ترجيح يعني شهادتونه دوه واره ويل سنت دي د ترجيح شكل داوي چي مخكي شهادتين دوه واره په كرار اواز سره وويل سي بيا دوه واره په لوړ اواز سره ددې حضراتو دليل دا حديث دى .

علماء حنفيه فرمايي چي دا تكرار يوازې د حضرت ابو محذوره رضي الله عنه د ښوونې لپاره وو نه چي د تشريع لپاره يعني په اول وار ابو محذوره رضي الله عنه چي شهادتين په كرار اواز سره وويل نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل چي دا كلمات بيا اداء كړه او په لوړ اواز سره يې اداكړه په دې اړه د حضرت ابو محذوره رضي الله عنه يو بل روايت هم نقل سوى دى .

او د حضرت عبد الله ابن زيد رضي الله عنه په حديث كي هم چي د اذان په باب كي د اصل حيثيت لري ترجيح نسته همداسي د حضرت بلال رضي الله عنه چي د اذان كونكو سردار دى نه د هغه په اذان كي او نه د ابن ام مكتوم رضي الله عنه په اذان كي چي په مسجد نبوي كي يې اذان كوى او نه د سعد قرظ په اذان كي چي د مسجد قباء مؤذن وو ترجيح منقول ده بيا داچې په دې اړه حضرت ابو محذوره رضي الله عنه سره كومه واقعه پيښه سوې ده د هغې څخه هم دا ثابتيږي چي دا تكرار د شهادتين د تعليم لپاره دى .

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

﴿۵۹۲﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ الْأَذَانُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي د اذان

وَسَلَّمَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَالْإِقَامَةُ مَرَّةً مَرَّةً غَيْرَ أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ قَدْ قَامَتِ

دوې دوې کلمې وې او د اقامت یوه یوه مګر په اقامت کې به قدقامت

الصَّلاَةُ قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ . رواه أبو داود والنسائي والدارمي .

الصلوة دوه ځله ويل کيدی . ابوداؤد ، نسائي او دارمي

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱\ ۳۵۰، رقم: ۵۱۰، والنسائي ۲\ ۲۱، رقم: ٦٦٧، والدارمي ۱\ ۲۹۰، رقم: ۱۱۹۳.

**تشريح** : ابن عمر رضي الله عنهما چي دا فرمايلي دي چي د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کي به د اذان کلمات دوه دوه واره ويل کيده ددې څخه دا مراد دی چي په اول سر کي الله اكبر به يې څلور وار ه وايه او په آخر کي به يې لااله الا الله يو وار ويل ددې دواړو کلماتو څخه ماسوا پاته کلمات به يې دوه دوه واره ويل .

په اقامت کي څرنګه چي د قدقامت الصلوة استثنى سوې ده همداسي د تکبير يعني الله اكبر هم مستثنى کول مناسب ده ځکه چي تکبير هم بيله اختلافه په اول او آخر کي مکرر دی .

﴿۵۹۳﴾ : وَعَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَهُ الْأَذَانَ تِسْعَ

د حضرت ابومحذوره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ هغه ته د آذان نولس

عَشَرَةَ كَلِمَةً وَالْإِقَامَةَ سَبْعَ عَشَرَةَ كَلِمَةً . رواه أحمد والترمذي وأبو داود والنسائي والدارمي وابن ماجه .

کلمې او د اقامت اووه لس کلمې وښودلې . احمد ، ترمذي ، ابوداؤد ، نسائي ، دارمي او ابن ماجه

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۳\ ۴۰۹، وابوداؤد ۱\ ۳۴۲، رقم: ۵۰۲، والترمذي ۱\ ۳٦۷، رقم: ۱۹۲، والنسائي: ۲\ ۴، رقم: ٦۲۹، وابن ماجه ۱\ ۳۵، رقم: ۷۰۹ والدارمي: ۱\ ۳۹۲، رقم: ۱۱۹۷.

**تشريح** : په حنفي مذهب کي د اذان پنځلس کلمات دي خو په دې حديث کي نولس ذکر سوي دي د دې وجه داده چي نولس کلمات په ترجيح سره دي څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دی او په دوهم نمبر حديث کي ښودل سوي دي چي د حنفيه په ترجيح تعليم باندي محمول دي هغه مشروع نه دی .

د تکبير (اقامت) اووه لس کلمات ښودل سوي دي په دې توګه چي د ترجيح څلور کلمات په جلا کولو سره او دوه کلمات قد قامت الصلوة په زياتولو سره د تکبير کلمات اوولس سوه د

تکبیر کلمات په تعین کي د حنفیه له خوا څخه دا حدیث د دلیل په توګه مخته کیږي .
ددې څخه مخکي حدیث چي په هغه کي د امام شافعي رحمة الله علیه د مذهب مطابق د تکبیر د کلماتو تعداد یوولس ثابتیږي که صحیح دي نو په دې حدیث سره منسوخ دي .

﴿۵۹۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ عَلِّمْنِيْ سُنَّةَ الْأَذَانِ قَالَ فَمَسَحَ مُقَدَّمَ

د حضرت ابو محذوره رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله ! ما ته د آذان طریقه و ښیه ، د راوي بیان دی چي د دې په اوریدو سره رسول الله ﷺ د ابو محذوره

رَأْسِهِ قَالَ تَقُوْلُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ تَرْفَعُ بِهَا صَوْتَكَ ثُمَّ

پر تندي لاس را تیر کړ او بیا یې وفرمایل په لوړ آواز سره ووایه . الله اکبر الله اکبر الله اکبر الله اکبر ، دغه الفاظ په لوړ آواز ووایه ، بیا

تَقُوْلُ أَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ

ووایه اشهد ان لااله الاالله اشهد ان لااله الاالله اشهد ان محمدا رسول الله اشهد ان محمدا رسول

اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ تَخْفِضُ بِهَا صَوْتَكَ ثُمَّ تَرْفَعُ صَوْتَكَ

الله ، اشهد ان محمدا رسول الله ، د مخکي آواز څخه لږ کراریې ووایه بیا په لوړ آواز سره

بِالشَّهَادَةِ أَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا

د کلمه شهادت تکرار وکړه اشهد ان لااله الاالله اشهد ان لااله الاالله اشهد ان محمدا

رَّسُوْلُ اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ

رسول الله اشهد ان محمدا رسول الله ، د دې وروسته دا کلمات حی علي الصلوة حي علي الصلوة حي

عَلَى الْفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ فَإِنْ كَانَ صَلَاةُ الصُّبْحِ قُلْتَ اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِّنَ

علی الفلاح حي علی الفلاح ووایه که د سهار لمونځ وي نو دا الفاظ هم ووایه الصلوة خیر من

النَّوْمِ اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ اَللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ. رواه أبو داود

النوم الصلوة خير من النوم (لمونځ تر خوب غوره دی) د دې وروسته دوه ځله الله اکبر او يو ځل لااله الاالله و وايه. ابوداؤد،

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۴۰، رقم: ۵۰۰.

**تشريح**: فمسح مقدم راسه: معنی يا خو هغه دي چي د ترجمې څخه ښکاره دي چي رسول الله ﷺ د ابو محذوره رضی الله عنه پر سر خپل لاس مبارک کښيښنودی چي د هغه برکت د ابو محذوره رضی الله عنه ته ورسيدی او ددين خبري ياد وساتي په يوه صحيح نسخه کي دا الفاظ داسي دي (فمسح راسي) يعني رسول الله ﷺ زما په سر خپل لاس مبارک کښيښنودی نو دا الفاظ د هغه معنی تائيد کوي کوم چي په ترجمه کي تير سوي دي يا ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ په اتفاقي توګه خپل لاس مبارک پرخپل سر باندي کښېښودی، راوي پوره واقعه د نقل کولو په غرض سره د دې تذکره هم راوړې ده.

په هر حال ددې اولي ترجمې چي توجيه سوې ده چي په کومو حديثو کي اذان د شهادتين د تکرار ذکر سوی دی هغه پر تعليم محمول دی نو هغه توجيه په ښکاره ددې حديث خلاف ده نو بهتره داده چي دا وويل سي چي په دې اړه موږ هم ډيرو روايتونو ته ترجيح ورکړې ده چي په هغه کي د ترجيح ذکر نه دی سوی د ابو محذوره رضی الله عنه روايت دی چي د هغه څخه دا ترجيح ثابته ده د هغه مخکي دي او هغه حديثونه چي په هغه کي ترجيح مذکوره نه ده هغه وروسته وي ځکه د ابو محذوره رضی الله عنه روايت دی او په روايتونو سره منسوخ دي. والله اعلم.

د الصلوة خير من النوم مطلب دادی چي د شوق او ذوق خاوندان او په عشق خداوندي سره د مينو خلکو په نزد د لمانځه لذت او خوند د خوب د لذت او خوند څخه په څو درجو غوره دی.

﴿۵۹۵﴾: وَعَنْ بِلاَلٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تُثَوِّبَنَّ فِيْ شَيْءٍ

د حضرت بلال رضی الله عنه څخه روايت دی چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل: تثويب (دوهم ځل اګاه کول) مه کوه په هيڅ شي کي

مِنَ الصَّلَوَاتِ إِلاَّ فِيْ صَلاَةِ الْفَجْرِ. رواه الترمذي وابن ماجه وقال الترمذي أبو إسرائيل الراوي ليس هو بذاك القوي عند أهل الحديث.

د لمونځونو څخه مګر د سهار په لمانځه کي، نو د سهار په آذان کي د حي على الفلاح وروسته الصلوة خير من النوم ويل تثوب دي. ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۱\ ۳۷۸، رقم: ۱۹۸، وابن ماجه ۱\ ۲۳۷، رقم: ۷۱۵.

**د لغاتو حل**: (التثويب): هو قول المؤذن في اذان الفجر: الصلوة خير من النوم. (مرقات).

**تشريح**: (تثويب) هغه خبر وَي چي د هغه تر مخه يو اعلان سوى وي او د هغه غرض او د هغه تر مخه اعلان غرض يو وي مثلا اول اعلان څخه د خلكو د لمانځه لپاره بلل مقصود وي نو د دې اعلان څخه هم دا مقصد دي چي د تثويب څو قسمونه دي يو خو دا چي د سهار په اذان كي الصلوة خير من النوم ويل دا تثويب د دې لپاره دى چي يو وار خو حي على الصلوة په ويلو سره خلك د لمانځه لپاره وبلل سي بيا دوهم وار الصلوة خير من النوم سره خلك خبر كړل سي دا تثويب د رسول الله ﷺ په زمانه كي رواج وو او مسنون دادي، بيا د هغه وروسته د كوفې علماء د اذان او تكبير درمياني وقفه كي حي على الفلاح، حي على الفلاح ويل رواج كول د هغه وروسته د هرې طبقې خلكو د خپل خپل عرف مطابق څه نه څه طريقه د تثويب په طور رواج كړل سي خو دا ټول تثويبونه د سهار د لمانځه لپاره رواج سول ځكه چي د سهار په وخت كي د خوب او غفلت وخت وي.

بيا په آخر كي متاخرين علماؤ د ټولو لمنځونو لپاره تثويب رواج كړى او دې ته يې په ښه نظر وكتل حال دا چي د مقدمينو په نزد دا مكروه دي ځكه چي دا حدث او بدعت دى، د حضرت علي رضي الله عنه څخه هم د دې انكار په دې توګه منقول دى چي يو سړى په تثويب ويلو سره حضرت د هغه په باره كي وفرمايل چي اخرجوا هذا المبتدع من المسجد يعني دا بدعتي سړى د مسجد څخه دباندي راوباسئ.

د حضرت عمر رضي الله عنه په باره كي نقل سوي دي چي هغه يوه ورځ په مسجد كي د مؤذن څخه په غير فجر كي تثويب كول واوريدل نو د مسجد څخه دباندي راووتى او نورو ته يې هم وويل د دې سړي په مخكي مه اوسئ دباندي راووځي ځكه چي دى بدعتي دى.

﴿۵۹۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِبِلَالٍ إِذَا أَذَّنْتَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ بلال رضي الله عنه ته وفرمايل: كوم وخت چي ته آذان كوې

فَتَرَسَّلْ وَإِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ وَاجْعَلْ بَيْنَ أَذَانِكَ وَإِقَامَتِكَ قَدْرَ مَا يَفْرُغُ الْآكِلُ

نو په كراره كراره يې كوه (ډير په تلوار يې مه كوه) او هر كله چي اقامت كوې نو په تلوار تلوار

يې كوه او د آذان او اقامت په منځ كي دومره فاصله ساته چي فارغ سي خوړونكى

مِنْ أَكْلِهِ وَالشَّارِبُ مِنْ شُرْبِهِ وَالْمُعْتَصِرُ إِذَا دَخَلَ لِقَضَاءِ حَاجَتِهِ وَلاَ تَقُوْمُوْا

د خوراک څخه او چښونكى د چښاک څخه او قضاء حاجت كوونكى د حاجت څخه فارغ سي او تر هغه وخته لمانځه ته مه دريږه

حَتّٰى تَرَوْنِيْ. رواه الترمذي وقال لا نعرفه إلا ن حديث عبد المنعم وهو إسناد مجهول

تر څو پوري چي ما ونه وينې. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱\ ۳۷۳، ۳۷۴، رقم: ۱۹۵و ۱۹۶.

**د لغاتو حل**: (فترسل): اى تمهل وافصل الكلمات بعضها عن بعض بسكنة خفيفة. (فاحذر): اى اسرع وصل الكلمات من غير درج ولادمج.

**تشريح**: د آذان په كراره كراه ويلو سره مطلب دادى چي د اذان كلمات يو د بل څخه جلا كولو سره او په لږ سكتي سره په كراره كراره اداء كوئ؟

علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي ددې مطلب دادى چي د اذان د كلماتو په ادا كولو كي دومره زنډ كول چي كلمات بغير كشولو د حد څخه تجاوز نه دي واضح وويل سي په دې وجه د مؤذنانو لپاره تاكيد دى چي هغوى د اذان د كلمات په ادا كولو كي د احتياط څخه كار واخلي او د قواعد سره سم اذان وكړي چي د غلطيو كړنه ونسي ځكه چي ځيني غلطۍ داسي دي چي د هغه په قصدا كولو سره د كفر حد ته رسيدلاى سي لكه د اشهد الف په مد سره ادا كول چي دا استفهام كيږي او د هغه معنى دا كيږي چي ايا زه ګواهي وركړم الخ - يا په الله اكبر كي په مد كشولو سره (كبار) ويل چي دا لفظ د كبر جمع كيږي چي د هغه معنى ده د طبلې راځي چي د هغې يوه خوله وي او د دائرې په شكل كي وي يا همداسي پر اله باندي وقف كول او د الله څخه ابتداء كول.

د حديث د آخري جملې مطلب دادى هر كله چي مؤذن د تكبير لپاره ودريږي نو تر څو پوري چي ته مسجد ته راتلونكي ونه وينې د لمانځه لپاره مه دريږه ځكه چي د امام د راتلو څخه مخكي دريدل خامخا تكليف وړل دي چي د هغه هيڅ فائده نسته غالبا رسول الله ﷺ به د

لمانځه ورکولو لپاره خپل حجرې مبارکي ته هغه وخت تلی کله چي به مؤذن تکبير پيل کړ او هر کله چي مؤذن په تکبير ويلو سره حي علي الصلوة ته رسيدلی وو نو رسول الله ﷺ به هغه وخت په محراب کي داخل سوي وو په دې وجهِ زموږ امامانو دا ويلي دي چي کله مؤذن تکبير پيل کړي او حي علي الصلوة ته ورسيږي نو امام او مقتديانو ته يې اوريدل پکار دی او کله چي مؤذن قد قامت الصلوة ته ورسيږي نو لمونځ پيل کول پکار دي .

﴿۵۹۷﴾: وَعَنْ زِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ قَالَ أَمَرَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت زياد بن الحارث الصدائي رضی الله عنه څخه روايت دی چي ما ته رسول الله ﷺ حکم وکړ چي

وَسَلَّمَ أَنْ اِذِّنْ فِيْ صَلاَةِ الْفَجْرِ فَأَذَّنْتُ فَأَرَادَ بِلاَلٌ أَنْ يُّقِيْمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ

د سهار آذان وکړه ما آذان وکړ بيا بلال رضی الله عنه د اقامت اراده وکړه نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَخَا صُدَاءٍ قَدْ أَذَّنَ وَمَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيْمُ .

رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه .

ستا ورور صدايي آذان کړی دی او کوم سړی چي آذان وکړي هغه دي اقامت هم وکړي .
ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۵۲، رقم: ۵۱۴، والترمذي ۱\ ۳۸۳، ۳۸۴، رقم: ۱۹۹ وابن ماجه: ۱\ ۲۳۷، رقم: ۷۱٦.

**تشريح**: اخاء صداء يعني د صدايي د ورور څخه مراد زياد ابن حارث صدايي دی په عربو کي دا قاعده وه چي کوم سړي به د کومي قبيلې سره تعلق درلودی هغه ته به يې د هغه قبيلې ورور ويل، د امام شافعي په نزد ددې حديث مطابق غير مؤذن له تکبير کول مکروه دي د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد مکروه نه دي ځکه چي دا ثابته ده چي اکثر به ابن مکتوم رضی الله عنه اذان کوی او بلال رضی الله عنه به اقامت کوی د امام صاحب په نزد په دې خبره محمول دي که غير مؤذن اقامت ويل غواړي نو د مؤذن څخه دي اجازه واخلي که مؤذن ته د بل چا اقامت کول خوښ نه وي نو بيا غير مؤذن ته اقامت ويل مناسب نه وي .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دریم فصل)

﴿۵۹۸﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ الْمُسْلِمُونَ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يَجْتَمِعُونَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی کوم وخت چي مسلمانانو هجرت وکړ مدینې ته راغلل نو یو ځای به سول

فَيَتَحَيَّنُونَ الصَّلَوَاتِ وَلَيْسَ يُنَادِي بِهَا أَحَدٌ فَتَكَلَّمُوا يَوْمًا فِي ذٰلِكَ فَقَالَ

وخت به یې اندازه کوی او یو وخت به یې ټاکی او د هغه لپاره یو څوک اعلان کونکی نه وو، یوه ورځ پر دې مشوره وکړل سوه نو وویل

بَعْضُهُمْ اَتَّخِذُوا نَاقُوسًا مِثْلَ نَاقُوسِ النَّصَارٰى وَقَالَ بَعْضُهُمْ قَرْنًا مِثْلَ

ځینو چي د نصاراوو په ډول ناقوس واخلئ ، ځینو وویل چي ښکر واخلئ لکه

قَرْنِ الْيَهُودِ فَقَالَ عُمَرُ اَوَلَا تَبْعَثُونَ رَجُلاً يُنَادِي بِالصَّلَاةِ فَقَالَ رَسُولُ

د یهودو ښکر، حضرت عمر رضي الله عنه وویل یو سړی دي و ټاکل سي چي د لمانځه بلنه ورکوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بِلَالُ قُمْ فَنَادِ بِالصَّلَاةِ . متفق عليه .

بلاله ! ودریږه او د لمانځه اعلان وکړه . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري ۲\ ۷۷، رقم: ۶۰۴، ومسلم: ۱\ ۲۸۵، رقم: ۱– ۳۷۷.

**تشريح**: رسول الله صلی الله علیه وسلم چي بلال رضي الله عنه ته د اعلان کولو لپاره کوم حکم ورکړی وو د هغه به دا مطلب وي چي کله د لمانځه وخت سي نو پر یو لوړ ځای د دریدو سره ( الصلوة جامعت ) ددې اواز د اوریدو سره به خلک به د لمانځه لپاره حاضریږي نو د منادي څخه مراد د لمانځه لپاره صرف اعلان کول دي نه چي ددې شرعي منادي یعني اذان مراد دی په دې توجیه سره د مخکنیو حدیثونو تطبیق کیږي چي مخکي په یو مجلس کي په دې بحث مباحثه وسوه نو عبد الله بن زید رضي الله عنه د اذان خوب ولیدی او رسول الله صلی الله علیه وسلم یا خو د وحي د راتلو څخه مخکي یا د خپل اجتهاد څخه کار اخستلو سره د عبد الله بن زید رضي الله عنه د خوب مطابق اذان مشروع وفرمایه .

﴿۵۹۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهٖ قَالَ لَمَّا أَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبد الله بن زيد بن عبد ربه رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله رسول الله ﷺ حکم وکړ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاقُوْسِ يَعْمَلُ لِيُضْرَبَ بِهٖ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلَاةِ طَافَ بِيْ وَأَنَا

د ناقوس وهلو (يعني اراده يې وکړه) چي د هغه په وهلو سره خلک د لمانځه لپاره يو ځای کړي ما ته په خوب کي يو سړی څرګند سو

نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ نَاقُوْسًا فِيْ يَدِهٖ فَقُلْتُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ أَتَبِيْعُ النَّاقُوْسَ قَالَ وَمَا

چي د هغه په لاس کي ناقوس وو ما په خوب کي د هغه څخه پوښتنه وکړه اې د الله بنده ! ايا ته دا ناقوس پلورې ؟ هغه وويل:

تَصْنَعُ بِهٖ فَقُلْتُ نَدْعُوْ بِهٖ إِلَى الصَّلَاةِ قَالَ أَفَلَا أَدُلُّكَ عَلٰى مَا هُوَ خَيْرٌ مِّنْ ذٰلِكَ

ناقوس څه کوې ؟ ما ورته وويل موږ په دې سره خلک لمانځه ته رابولو نو هغه راته وويل ايا زه تا ته داسي شی نه وښيم چي ددې څخه غوره وي ؟

فَقُلْتُ لَهٗ بَلٰى قَالَ فَقَالَ تَقُوْلُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ إِلٰى آخِرِهٖ وَكَذَا الْإِقَامَةَ فَلَمَّا أَصْبَحْتُ

ما ورته وويل هو، نو هغه وويل الله اکبر الله اکبر ... الخ، او همداسي تکبير (اقامت)، کله چي سهار سو

أَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهٗ بِمَا رَأَيْتُ فَقَالَ إِنَّهَا لَرُؤْيَا

نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او خپل خوب مي ورته بيان کړ رسول الله ﷺ وفرمايل: بېله شکه دغه خوب

حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ فَأَلْقِ عَلَيْهِ مَا رَأَيْتَ فَلْيُؤَذِّنْ بِهٖ فَإِنَّهٗ أَنْدٰى

حق دی که الله جل جلاله وغواړي ، ته د بلال سره و دريږه او څه چي دي په خوب کي ليدلي دي هغه ورته وښيه او هغه دي آذان وکړي ځکه چي د هغه آواز ستا تر آواز لوړ دی،

صَوْتًا مِّنْكَ فَقُمْتُ مَعَ بِلَالٍ فَجَعَلْتُ أُلْقِيْهِ عَلَيْهِ وَيُؤَذِّنُ بِهٖ قَالَ فَسَمِعَ بِذٰلِكَ

نو زه د بلال سره ودريدم او هغه ته مي د آذان کلمې و ښوولې او هغه به آذان کوی ، راوي بيان کوي کوم وخت چي واورېدل دغه الفاظ

عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَهُوَ فِيْ بَيْتِهِ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ وَيَقُوْلُ يَارَسُوْلَ اللهِ وَالَّذِيْ

حضرت عمر رضی اللہ عنہ په خپل کور کي نو په څادر کشولو سره د کور څخه د باندي راووتی او رسول الله ﷺ ته يې عرض وکړ: په هغه ذات دي مي قسم وي

بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَقَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ مَا أُرِيَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چي تاسو يې په حق سره رالېږلی ياست ما هم داسي خوب ليدلی دی لکه څرنگه چي عبدالله ته ښودل سوی دی نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ . رواه أبو داود والدارمي وابن ماجه إلا أنه لَمْ يذكر الإقامة .

وقال الترمذي هذا حديث صحيح لكنه لم يصرح قصة الناقوس .

الحمد لله (الله تعالی لره ټول تعريفونه دي) . ابوداؤد ، دارمي او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۳۷ ، ۳۳۸ ، رقم: ۴۹۹ ، والدارمي ۱\ ۲۸۶ ، ۲۸۷ ، رقم: ۱۱۸۷ ، وابن ماجه ۱\ ۲۳۲ ، ۲۳۳ ، رقم: ۷۰۶ ، والترمذي ۱\ ۳۵۸ ، ۳۵۹ ، رقم: ۱۸۹ .

**تشريح** : دحديث د لومړنۍ برخي مطلب دا نه دی چي نبي کريم ﷺ د ناقوس په ږغولو امر کړی وو بلکه دلته د حکم مطلب دادی چي کله په دې اړه صحابه کرامو مشوره وکړل او يوه مناسبه پريکړه ذهن ته نه راغلل نو نبي کريم ﷺ د ناقوس وهلو د حکم اراده وکړل ، ليکن الله جل جلاله د عبدالله بن زيد رضی اللہ عنہ د خوب په ذريعه ددغه حکم نوبت نه راوستئ ، او دغه حديث د حنفيه د مذهب تاکيد کونکی دی چي د هغه څخه دا ثابتيږي چي د اقامت او اذان په کلماتو کي څه فرق نسته لکه څرنگه چي د اذان د کلماتو په پيل کي الله اکبر الله اکبر او په آخر کي لااله الا الله دوه دوه واره ويل کيږي همداسي د اقامت کلمې هم دوه دوه واره ويل کيږي البته په اقامت کي يوازي د قد قامت الصلوة اضافه ده چي په اذان کي نسته .

د حضرت عبدالله رضی اللہ عنہ د خوب په اوريدو سره رسول الله ﷺ د هغه تصديق وکړ چي دا خوب رښتيا دی اوس ددې تصديق تعلق به يا د وحي سره وي چي الله تعالی د وحي په ذريعه د هغه خوب د رښتيا کولو خبر ورکړی وو ځکه چي رسول الله ﷺ هغه ته حق وو ايه ، يا رسول الله

ﷺ د خپل اجتهاد په وجه هغه خوب ربښتيا وګڼئ او دلته د رسول الله ﷺ انشاء الله ويل د برکت او د اظهار طمانيت په توګه وه نه دا چي د شک په توګه، د اذان د آواز په اوريدو سره حضرت عمر رضی اللہ عنہ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او دا يې وويل چي ما هم داسي خوب ليدلی وو کيدای سي چي هغوی دا خبره هغه وخت کړې وي کله چي هغوی ته دا معلومه سوې وي چي دا اذان د عبد الله بن زيد رضی اللہ عنہ د خوب په نتيجه کي ويل سوی دی يا هغوی ته ددې خوب علم د مکاشفې په توګه سوی وي، امام نووي رحمة الله عليه فرمايي په دې حديث کي دا مسئله راوځي چي د مؤذن په لوړ اواز او خوش اوازه کېدل مستحب دي ، په پای کي په دې خبره ځان پوه کړئ چي د آذان مشروعيت په دوهمه هجري سنه کي سوی دی ليکن د ځينو علماؤ تحقيق دی چي اذان د هجرت په اول کال پيل سوی دی .

﴿۶۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ

د حضرت ابوبكرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره ووتلم لپاره د لمانځه

الصُّبْحِ فَكَانَ لَا يَمُرُّ بِرَجُلٍ إِلَّا نَادَاهُ بِالصَّلَاةِ أَوْ حَرَّكَهُ بِرِجْلِهِ . رواه أبو داود

د سهار نو کوم سړی چي به په لاره کي يو ځای کيدی رسول الله ﷺ به هغه د لمانځه لپاره رابللی (او که به بيده وونو په خپل پښه سره به يې) د هغه پښه ښورول . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۴۹، رقم: ۱۲۶۴.

**تشريح** : د دې حديث څخه دا معلومه سوه که يو سړی د لمانځه پر وخت بيده وي نو د هغه د لمانځه لپاره وېښول جائز دي که څه هم په اواز ورکولو سره يې بيداره کړي يا يې وښوروي .

﴿۶۰۱﴾: وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ الْمُؤَذِّنَ جَاءَ عُمَرَ يُؤَذِّنُهُ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ فَوَجَدَهُ

حضرت مالک رضی اللہ عنہ ته دا حديث رسيدلی دی چي مؤذن حضرت عمر رضی اللہ عنہ ته راغلی چي د سهار د لمانځه خبر ورکړي، مؤذن حضرت عمر رضی اللہ عنہ

نَائِمًا فَقَالَ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ فَأَمَرَهُ عُمَرُ أَنْ يَّجْعَلَهَا فِيْ نِدَاءِ الصُّبْحِ .

رواه في الموطأ .

بيده پيدا کړی نو وه يې ويل د خوب څخه لمونځ غوره دی ، حضرت عمر رضی اللہ عنہ حکم وکړ چي دا

کلمه د سهار په آذان کي ګډه کړه . مؤطا

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۷۲، رقم: ۸.

**تشريح** : په ښکاره خو ددې حديث څخه دا معلوميږي چي د سهار د لمانځه په اذان کي (الصلوة خير من النوم) کلمه حضرت عمر ﷛ اضافه کړې ده حال دا چي داسي نه ده، د سهار په اذان کي دا کلمه ويل خو د پيل څخه مسنون وه ددې حديث توجيهات سوي دي مګر زيات مناسب او بهترين توجيه داده چي کله مؤذن حضرت عمر رضي الله عنه په بيده ليدلو سره دا کلمه وويل نو هغه ته ډيره ګرانه پريوتل او وه يې فرمايل چي دا کلمه دي د سهار په اذن کي شامله کړل سي يعني دا کلمه د سهار په اذان کي ويل مناسب دي او په هغه وخت کي تاته دا کلمه ويل پکار ده د اذان څخه پرته د بيده سړي د بيداره کولو لپاره هم دا کلمه استعمالول مناسب نه ده .

﴿۶۰۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ سَعْدٍ مُّؤَذِّنِ رَسُوْلِ اللهِ

د حضرت عبدالرحمن بن سعد بن عمار بن سعد د رسول الله ﷺ مؤذن روايت کوي چي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَمَرَ

ما ته زما پلار سعد او هغه د خپل پلار عمار څخه دا حديث روايت کړی دی او عمار د سعد څخه چي رسول الله ﷺ حکم وکړ

بِلَالًا أَنْ يَّجْعَلَ أُصْبُعَيْهِ فِيْ أُذُنَيْهِ قَالَ إِنَّهٗ أَرْفَعُ لِصَوْتِكَ . رواه ابن ماجه .

بلال ﷛ ته چي د آذان کولو په وخت کي خپلي ګوتي په غوږو کي دننه کړي دا به ستا آواز ډير لوړ کړي. ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۱\۲۳۶، رقم: ۷۱۰.

**تشريح** : حضرت سعد ﷛ صحابي دی او د رسول الله ﷺ له خوا په مسجد قباء کي مؤذن وو د رسول الله ﷺ تر وفات پوري يې په مسجد کي اذان کوی د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته حضرت بلال ﷛ په مسجد نبوي کي اذان کول پريښودل او شام ته ولاړی نو حضرت ابو بکر ﷛ سعد ﷛ مسجد قباء ته په رابللو سره په مسجد نبوي کي د اذان کولو په خدمت مامور کړ چي د خپل ژوند آخري لحظې يې په دغه سعادت درلودونکي خدمت کي تيري کړې د حضرت سعد

زوی حضرت عمار تابعي رضي الله عنه مقبول دی او د هغه د زوي يعني د سعد د لمسي نوم هم سعد دی او دده زوی حضرت عبد الرحمن مسطور دی همداسي د عمار رضي الله عنه پلار حضرت سعد رضي الله عنه د هغه د زوی سعد رضي الله عنه نيكه سو.

دا حديث عبدالرحمن د خپل نيكه حضرت سعد رضي الله عنه څخه نقل كړی دی او هغه د خپل پلار عمار رضي الله عنه څخه نقل كړی دی چي تابعي دی او هغه د خپل محترم پلار حضرت سعد رضي الله عنه څخه اوريدلی دی چي د صحابيت په سعادت سره برخمن د ، د ابيه او جده دواړو ضميرونه د ابي لفظ ته راجع دي.

د دې حديث څخه معلومه سوه چي د آذان په وخت كي ګوتي په غوږونو كي ځكه نيول كيږي چي د آذان آواز زيات لوړ سي او په دې كي كيدای سي حكمت داوي چي په غوږونو كي په ګوتو اچولو سره لوړ آواز د مؤذن په غوږونو كي راسي ځكه نو هغه په ددې هڅه كوي چي څومره كيدای سي ښه په زور سره آذان وكړي.

=========

# بَابُ فَضْلِ الأَذَانِ وَ اِجَابَةِ الْمُؤَذِّنِ

## د اذان فضيلت او د آذان كوونكي جواب

اذان د الله تعالى د اذكارو څخه يو لوی ذكردی په دې كي د توحيد او رسالت په شهادت سره اعلان كيږي په دې كي د اسلام شان او شوكت ښكاره كيږي ددې وجه داده چي د اذان كولو فضيلت او ددې ثواب ډير زيات دی ددې عنوان سره سم هغه حديثونه ذكر كيږي چي د هغو څخه به معلومه سي چي اذان كول په حقيقت كي د بركت او سعادت څخه خپل لمن ډكول دي.

اوس په دې كي كلام دی چي ايا اذان كول زيات افضل دي يا امامت كول؟ نو مختار او معتمد قول دادی چي كه چيري يو سړي ته دا يقين وي چي هغه به د امامت پوره حقوق پر ځای كوي نو هغه ته امامت كول افضل دي كنه نو په دا صورت كي د هغه لپاره اذان كول به اعلى وي.

، د علماؤ په دې معامله كي اختلاف دی چي ايا رسول الله ﷺ هم اذان كړی دی كه يا ؟ كه څه هم په يوه حديث كي وارد دي چي رسول الله ﷺ اذان كړی دی خو ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ په حكم وركولو سره اذان كړی دی دا حكم داسي تعبير كړل سوی دی څرنګه چي په محاوره كي ويل سوي دي چي فلانی بادشاه قلعه جوړه كړه حال دا چي هغه په خپل لاس سره

قلعه نه جوړوي د دار قطني رحمة الله عليه په يوه روايت كي د دې هم وضاحت سته چي رسول الله ﷺ د اذان كولو حكم وركړى وو او خپله يې اذان نه دى كړى . والله اعلم .

د اذان جواب وركول واجب دي كه تر څو يوسړي په يو ځاي كي اذان وركړي نو په دې شكل كي به حرمت د اول لپاره وي يعني كه چيري د مختلفو سيمو د مسجدو اذان واوري نو يوازي د خپل مسجد د مؤذن جواب وركول به واجب وي او كه څوک د اذان په وخت په مسجد كي ناست وي نو د هغه لپاره د اذان جواب واجب نه دى ځكه چي په دې صورت كي خو هغه ته اجابت فعلي حاصل دى په دې مسئله كي د علماؤ اختلاف دى چي قرآن ويونكى سړى دي د اذان جوا ب وركړي كه يا؟ په دې مسئله كي مختار قول دادى چي هغه دي د اذان جواب نه وركوي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

﴿۶۰۳﴾: عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

د حضرت ماوية رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما درسول الله ﷺ اوريدلي دي چي فرمايل يې :

اَلْمُؤَذِّنُونَ أَطْوَلُ النَّاسِ أَعْنَاقًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه مسلم

آذان كونكي خلک به د قيامت په ورځ لوړو غاړو والا وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۲۹۰، رقم: ۱۴- ۳۸۷.

**تشريح** : د لوړي غاړي معنى په تعين كي مختلفه ده ځيني حضرات وايي چي ددې معنى داده چي كوم خلک په دنيا كي اذن كوي هغوى به د قيامت په ورځ ډير زيات ثواب والا او مرتبې والا خلک وي ځيني علماء وايي چي مؤذن به د قيامت په ورځ سردار وي ځني حضرات وايي ددې معنى داده چي د قيامت په ورځ به مؤذن د ډير زيات ثواب اميد وار وي ځكه چي كوم سړى د كوم شي د حصول اميد لري هغه په غاړه لوړولو سره هغه شي ته ګوري همداسي په ميدان حشر كي چي تمام خلک د حساب اوكتاب په وجه په غم او فكر كي وي نو مؤذن به په ارام او راحت سره ددې خبري منتظر وي چي اوس به په جنت كي د داخلې حكم ورته وركړل سي، ځينو حضراتو ددې معنى داهم بيان كړې ده چي د قيامت په ورځ به مؤذنانو ته د الله تعالى په دربار كي د قرب او عزت مقام حاصل وي .

﴿۶۰۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نُوْدِيَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي آذان کيږي

لِلصَّلَاةِ أَدْبَرَ الشَّيْطَانُ لَهُ ضُرَاطٌ حَتَّى لَا يَسْمَعَ التَّأْذِينَ فَإِذَا قُضِيَ التَّأْذِينُ

د لمانځه لپاره نو شيطان پر شا تښتي او د هغه د ګوز آواز خيژي چي د آذان آواز د هغه غوږو ته ونه رسي کوم وخت چي آذان ختم سي

أَقْبَلَ حَتَّى إِذَا ثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ أَدْبَرَ حَتَّى إِذَا قُضِيَ التَّثْوِيبُ أَقْبَلَ حَتَّى يَخْطُرَ

نو بيرته راسي بيا چي اقامت کول کيږي نو مخ پر شا تښتي او د اقامت ختمېدو وروسته بيا راسي چي د انسان په زړه کي وسوسه اچوي .

بَيْنَ الْمَرْءِ وَنَفْسِهِ يَقُولُ لَهُ اذْكُرْ كَذَا وَاذْكُرْ كَذَا لِمَا لَمْ يَكُنْ يَذْكُرُ حَتَّى

او هغه ته هغه شيان ور يادوي چي په ياد يې نه وي

يَظَلَّ الرَّجُلُ لَا يَدْرِي كَمْ صَلَّى. رواه البخاري

تر دې چي د سړي څخه هير سي چي څو رکعاته لمونځ يې کړی وو . بخاري .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۸۴- ۸۵، رقم: ۶۰۸ ومسلم ۱\ ۲۹۱- ۲۹۲، رقم: ۱۹-۳۸۹.

**تشريح** : ځيني وايي چي د شيطان ګوزونه اچول حقيقتا وي ځکه چي هغه هم جسم لري ځکه داسي کيدل د تعجب خبره نه ده څرنګه چي پر خره باندي بار زيات سي نو هغه هم د وزن د زياتوالي په وجه ګوزونه اچوي همداسي پر شيطان باندي هم دا آذان ډير دروند وي او هغه ګوزونه اچوي .

ځيني حضرات وايي چي کله اذان پيل کيږي نو شيطان يو اواز وکاږي چي غوږ ډکوي او د هغه څخه دده مقصد داوي چي وانه وريدل سي د اواز د خرابۍ بيانولو لپاره دلته په ګوزونو اچولو سره تعبير کړل سوی دی .

د انسان او د هغه د زړه په مينځ کي د خطرو پيدا کيدو مطلب دادی چي شيطان د لمونځ کونکي او د هغه د زړه په مينځ کي وسوسې او خطرې حائل کوي او د هغه زړه د دنيا د خبرو طرف ته لګوي چي په لمانځه کي د زړه د حضور دولت ورپه برخه نسي .

كه څوک دا پوښتنه وکړي چي د دې څه وجه ده چي شيطان د قران کريم د قرائت او د لمانځه څخه نه تښتي مگر د آذان څخه تښتي؟ ددې جواب دا کيداى سي چي الله تعالى د اذان په کلماتو کي داسي هيبت او عظمت ايښى دى چي شيطان په خوف او بيره کي اخته کوي.

﴿۶۰۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لاَ يَسْمَعُ مَدٰى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَّلاَ إِنْسٌ وَلاَ شَيْءٌ إِلاَّ شَهِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري.

پيريانان، انسانان او نور شيان چي د مؤذن آواز اوري نو د قيامت په ورځ به د دې شهادت کوي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۸۷-۸۸، رقم: ۶۰۹.

**تشريح**: مدٰى معنى انتهاء يعني آخر، د آواز انتها داده چي د هغه آواز په غوږو کي راځي او دا معلومه نسي چي اواز کونکى څه وايي دلته اګر که دا معنى کافي ده چي د مؤذن اواز تر کومه ځايه پوري رسيږي الخ - مګر مدى په معنى د انتهاء ذکر کولو سره دې ته اشاره مقصد وه چي د چا په غوږو کي د اذان صرف بنګ پريوځي هرکله چي هغوى د مؤذن د ايمان ګواهي ورکوي نو هغه خلک خو په طريقه اولى ګواه وي چي د مؤذن نژدې وي او اذان د نژدې څخه نه اوري. علماء ليکي چي په حقيقت کي ددې حديث څخه مؤذنانو ته ترغيب ورکول مقصد دي چي اذان په ډير لوړ اواز سره کوي چي د هغوى د ايمان ګواهي ورکونکي زيات سي.

﴿۶۰۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعْتُمُ الْمُؤَذِّنَ فَقُوْلُوا مِثْلَ مَا يَقُوْلُ ثُمَّ صَلُّوا عَلَيَّ فَإِنَّهُ

کله چي تاسو د آذان الفاظ واورئ نو کوم الفاظ چي هغه وايي تاسو هم هغه وايا ست بيا پر ما درود وواياست ځکه

| |
|---|
| مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلاَةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا ثُمَّ سَلُوا اللّٰهَ لِي الْوَسِيلَةَ فَإِنَّهَا |
| كوم څوک چي پر ما يو ځل درود وايي نو ددې په سبب به الله ﷻ پر هغه لس ځله رحمت نازلوي ، بيا د الله څخه زما لپاره وسيله و غواړئ |
| مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لاَ تَنْبَغِي إِلاَّ لِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ وَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَنَا هُوَ فَمَنْ |
| چي په جنت کي يو ځای دی او دا ځای د الله ﷻ د بندګانو څخه د يوه بنده لپاره دی او زه اميد لرم چي هغه سړی به زه يم نو کوم څوک چي |
| سَأَلَ لِي الْوَسِيلَةَ حَلَّتْ لَهُ الشَّفَاعَةُ . رواه مسلم |
| زما لپاره وسيله طلب کړي د هغه لپاره زما شفاعت حلال دی . مسلم . |

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۱\۲۸۸ – ۲۸۹، رقم: ۱۱ – ۳۸۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي کله مؤذن اذان وکړي نو تاسو هم د مؤذن سره د اذان کلمې دوهم وار واياست البته کوم کلمات چي داسي دي چي دوهم واريې ويل نه دي پکار بلکه د هغو په جواب کي نور کلمات ويل پکار دي چي د هغه تفصيل به په راتلونکو حديثونو کي راسي لکه د سهار په اذان کي چي مؤذن ( الصلوة خير من النوم ) ووايي نو د هغه په جواب کي ( صدقت وبررت وبالحق نطقت ) يعني تا رښتيا وويل او د خير کثير مالک سوې او تا رښتيا خبره وکړه– ويل پکار دي . وسيله په اصل کي هغه شي ته وايي چي د هغه په ذريعه يو مطلوبه شی حاصل کړل سي او د هغه په وجه سره د مطلوبه شي قرب حاصل وي د جنت د يو خاص او اعلی درجې نوم وسيله ځکه دی چي کوم سړي په هغه کي داخل سي هغه ته د باري تعالی قرب حاصليږي او د هغه د ديدار سعادت ميسر کيږي او کوم فضيلت او بزرګي چي دغه درجو والا ته حاصليږي هغه نورو درجو والا ته نسي تر لاسه کيدای .

د رسول الله ﷺ ارجوا يعني زه اميد لرم فرمايل د عاجزۍ او انکسارۍ په توګه دي ځکه چي رسول الله ﷺ د ټول جهان څخه افضل او غوره دی دا درجه يقينا د رسول الله ﷺ لپاره ده بل څوک ددې درجې څه ډول وړ کيدای سي نو ددې لفظ تاويل به داوي چي دا يقين نه بلکه کنايه ده چي دا درجه به ماته حاصليږي .

﴿٦٠٧﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي ووايي

الْمُؤَذِّنُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ فَقَالَ أَحَدُكُمُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ ثُمَّ قَالَ أَشْهَدُ

مؤذن الله اكبر الله اكبر نوتاسو هم داسي واياست ، بيا كله چي مؤذن ووايي: اشهد

أَنْ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا

ان لااله الاالله نو تاسو هم داسي واياست او بيا كله چي هغه ووايي اشهدان محمدا

رَسُولُ اللّٰهِ قَالَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ قَالَ

رسول الله نو تاسو يې هم داسي واياست بيا چي هغه حی علي الصلوة وايي نو تاسو

لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللّٰهِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ قَالَ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ

لاحول ولاقوة الا باالله واياست بيا چي هغه حي علي الفلاح وايي نو تاسو لاحول ولاقوة

إِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ قَالَ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ ثُمَّ قَالَ لاَ إِلٰهَ

الا باالله واياست بيا چي هغه الله اكبر الله اكبر وايي نو تاسو هم الله اكبر الله اكبر واياست او بيا
كله چي هغه لااله

إِلاَّ اللّٰهُ قَالَ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ مِنْ قَلْبِهِ دَخَلَ الْجَنَّةَ . رواه مسلم

الاالله ووايي نو تاسو هم د زړه په صداقت سره وواياست لااله الاالله ، نو په جنت کي به داخل
سئ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١\٢٨٨ - ٢٨٩، رقم: ١٢ - ٣٨٥.

**تشريح**: دلته (الله اكبر) د مختصر والي لپاره دوه واره ذكر سوی دی چي د پوهيدونكي لپاره دوه واره ويل يې كافي دي ځكه شهادتين يعني اشهد ان لااله الا الله او اشهد ان محمد رسول الله هم يوازي يو وار ذكر سوي دي، لاحول ولا قوة الا باالله : معنی يې داده چي د بديو څخه د ژغورني او د ښه كارونو كولو قوت د الله تعالى په لاس كي دی هركله چي مؤذن حي على

الصلوة او حي على الفلاح ووايي هغه خلک د لمانځه لپاره بولي نو د هغه په جواب کي دا کلمه ويونکی ګويا دا ښکاره کوي چي دا يو لوی کار او زبردست فرض د اداکولو معامله ده، زه يو کمزوراو عاجزه بنده يم زما د قوت او طاقت څه مجال چي د دې ذمه دار وي چي د اداء کولو وړ او لائق وي داخو يوازي د الله تعالی په مرسته او نصرت سره کيږي چي موږ دا امر عظيم پوره کوو او د لمانځه لپاره د راتلو طاقت او قوت د الله تعالی په مرسته سره کيږي نو الله تعالی زموږ مرسته کوي او موږ د لمانځه لپاره راځو .

امام نووي رحمة الله عليه فرمايي هر کله چي مؤذن اذان کوي نو د هغه ويل سوي کلمات همغسي دوهم واروېل يعني د هغه جواب ورکول مستحب دي البته حيعلتين يعني حي على الصلوة او حي على الفلاح په جواب کي لاحول ولا قوة الا بالله ويل پکار دي پر ځينو ځايو باندي ځيني حضرات د حي على الصلوة او حي على الفلاح په جواب کي ماشاء الله کن ولم يشاء لم يکن وايي دا غلط او د مسنون طريقې خلاف دی .

د اذان جواب هر اوريدونکي ته پکار دي که څه هم په اوداسه کي وي يا بې اودسه که جنوب وي يا حائض په دې شرط چي په جواب ورکولوکي يو شی مانع نه وي مثلا په بيت الخلاء کي يا جماع کوي يا لمونځ کوي يا بل يو مانع وي نو په هغه وخت کي دي جواب نه ورکوي مګر د هغه لپاره ضروري ده چي د هغه کارو څخه د فارغه کېدو ورسته د اذان د کلمو جواب ورکړي .

د زړه په صدق سره ويلو يا خو لاحول ولا قوة الا بالله سره دی چي دا کلمه د زړه په صدق سره وويل سي او په ښکاره توګه هم دا مفهوم کيږي چي ددې تعلق پوره د اذان سره دی .

په جنت کي خو به ټول مسلمانان داخليږي که څه هم هغوی د عذاب څخه پرته داخل سي يا د عذاب وروسته، دلته په جنت کي د داخليدو څخه مراد دادی چي داسي سړی چي د اذان جواب د زړه په صدق سره ورکوي يعني په ژبي سره خو دا کلمې اداء کوي او په زړه کي ددې کلمو پر صداقت پوره اعتقاد لري نو هغه به د خلاصون تر لاسه کونکو خلکو سره په جنت کي داخليږي .

﴿۶۰۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ حِيْنَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي ووايي هغه وخت

يَسْمَعُ النِّدَاءَ اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا

چي آذان واوري (يعني د اذان وروسته دا دعاء وكړي) اللهم رب ..... الخ ژباړه: اې دديې
پوره دعاء پرودرګاره او د قائم لمونځ پرودرګاره ته محمد ته وركړه

الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَا الَّذِيْ وَعَدتَّهُ حَلَّتْ لَهُ شَفَاعَتِيْ

وسيله او بزرګي او مقام محمود ته يې ورسوه چي د هغه تا وعده كړې ده ، نو د هغه لپاره حلال
سو زما شفاعت

يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه البخاري .

د قيامت په ورځ . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۹۴، رقم: ۶۱۴.

**تشريح** : دلته آذان په دعاء سره تعبير كړل سوى دى ددې وجه داده چي آذان خلك لمونځ او د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذكر ته رابولي، لمانځه ته قائمه ځكه ويل سوي دي چي لمونځ هميشه تر قيامته پوري قايم او دائم وي په دې دعا كي والفضيلة څخه وروسته والدرجة الرفيعة الفاظ هم ويل كيداى سي مګر دا په يو روايت كي نه دي راغلي،مقام محمود د شفاعت تظمي مقام دى او دا به هغه مقام وي چيري چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د قيامت په ورځ د ګناه كارانو د شفاعت كولو لپاره دريږي .

د حشر په ميدان كي به هري خواته د نفسي نفسي عالم وي د الله تعالى مخلوق به د حساب او كتاب په پريشانيو كي اخته وي او ټول خلك به هلته د سختيو په وجه حيران او سرګردان وي نو يو په بل پسي به ټول انبياء عليهم السلام ته د شفاعت لپاره ورسي خو هغوى ټول به د هيبت او دهشت په وجه د شفاعت جرائت ونه كړلاى سي او وايي به چي رسول الله ﷺ ته ورسئ ځكه چي د هغوى مخكني او وروستني ټول ګناهونه معاف سوي دي هغوى د مخلوق خدا د شفاعت حقدار دى ټول خلك به د رسول الله ﷺ په خدمت كي د حاضريدو سره په ژبه د رسول الله ﷺ تعريف وي او حق تعالى به هم د رسول الله ﷺ تعريف كوي وګوره شان محمديت پوره پروه ظهور به وي او ټول مخلوق به د رسول الله ﷺ عظمت او غوره والي ته د فخر په نظر ګوري .

(وعدته) يعني د هغه چي دي ورسره وعده كړې ده، د دې څخه دې آيت شريف ته اشاره ده .

عَسَى أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا

ژباړه : اميد دى چي ستا پروردګار به تاسو ته په مقام محمود كي ځاى دركړي .

يعني الله تعالی به ډير ژر تا د شافع محشر جوړولو سره په مقام محمود کي ودروي او دا هغه عزت او کرامت د چي په انسانانو کي د رسول الله ﷺ څخه پرته د بل چا په برخه نه دی ځکه چي پر رسول الله ﷺ باندي زيات عبادت او د شپې بيداره کول فرض سوي دي .

دلا بسوزي تو کار ها بکند　　　　دعائي نيم شب دفع صد بلا بکند

د بيهقي په روايت کي په دغه دعاء کي د وعدته څخه وروسته انک لاتخلف الميعاد ، يعني بيشکه ته وعده خلافي نه کوې ، الفاظ هم مذکور دي ځيني خلک ددې څخه مخکي يا ارحم الراحمين هم وايي حال دا چي په حديث کي ددې يادونه نسته .

﴿۶۰۹﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُغِيرُ إِذَا طَلَعَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به (پر کفارو) هغه وخت حمله کول کله چي به ځلانده سو

الْفَجْرُ وَكَانَ يَسْتَمِعُ الْأَذَانَ فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا أَمْسَكَ وَإِلاَّ أَغَارَ فَسَمِعَ رَجُلاً يَقُولُ

سهار او د آذان اوريدو ته به يې غوږ ونيوی، د اذان انتظار به يې کوی که آذان به يې واوريدی نو د حملې څخه به منعه سو که به يې اذان وا نه وريدئ نو حمله به يې کول پر دښمن ، يوه ورځ چي رسول الله ﷺ د حملې لپاره تلی نو وايې وريدل چي يو سړی وايي

اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْفِطْرَةِ ثُمَّ

الله اكبر الله اكبر ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : دا سړی پر اسلام دی ، بيا

قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

هغه سړي وويل اشهد ان لااله الاالله ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجْتَ مِنَ النَّارِ فَنَظَرُوا إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ رَاعِي مِعْزًى. رواه مسلم

ته د دوږخ څخه ووتې ، صحابه کرامو چي هغه سړي ته وکتل نو هغه يو شپون وو . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۲۸۸، رقم: ۹- ۳۸۲.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ عادت مبارک داوو چي کله به يې پر دښمنانو د حملې کولو لپاره تشريف راوړ نو دا خيال به يې ساتی چي د سهار وخت سي نو ددې خبري به په ښه طريقه اندازه

ولګیږي چي پر کومي سیمي باندي حمله وکړل سي په هغه کي مسلمانان دي که کافران، څرنګه چي د حضرت انس ﷺ د اشارې څخه معلومیږي چي رسول الله ﷺ به په سهار کیدو باندي د اذان انتظار کوی پر کومه سیمه چي به یې حمله کول که چیري د هغه څخه به د اذان اواز راغلی نو دا به یې ګڼل چي دلته مسلمانان دي نو رسول الله ﷺ به د حملې څخه منعه کیدی او که د آذان اواز به نه راغلی نو بیا به یې پر هغه سیمي باندي حمله کول د اذان انتظار رسول الله ﷺ ځکه کوی چي داسي نه وي په دې سیمه کي مسلمانان وي او په ناخبری کي هغوی د اسلامي لښکر تر برید لاندي راسي.

ددې څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د اذان کیدل او نه کیدل د ایمان او کفر نښه ګڼل له دې کبله په فقه کي راځي چي کوم خلک اذان پریږدي نو سره ددې چي اذان سنت دی داسي خلک به د قتال وړ وي ځکه چي اذان د اسلامي شعارو څخه دی.

﴿٦١٠﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مَنْ قَالَ حِيْنَ يَسْمَعُ الْمُؤَذِّنَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ وَ أَنَّ

کوم سړی چي د مؤذن پر اشهدان لااله الاالله وحده لاشریک له او ان

مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ رَضِيتُ بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولاً وَبِالإِسْلاَمِ دِينًا

محمدا عبده ورسوله. باندي ووایي : رضیت بالله ربا و بمحمد رسولا و بالاسلام دینا

غُفِرَ لَهُ ذَنْبُهُ. رواه مسلم

نو د هغه ټول کوچني ګناهونه وبخښل سوه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱/ ۲۹۰، رقم: ۱۳-۳۸٦.

**تشريح** په دې کي اختیار دی چي دا کلمات یا خو هغه وخت وویل سي هرکله چي مؤذن اشهدان لااله الا الله ووایي یا د اذان ختمیدو وروسته یې ووایي مګر مناسب داده چي اذان د ختمیدو وروسته دا کلمې ووایي چي دا اذان د نورو کلمو جواب ترک نه سي او ښکاره خو داده چي مذکوره ثواب هغه وخت حاصلیږي هر کله چي د اذان د کلمو په جواب ورکولو سره وروسته

دا كلمې وويل سي.

﴿۶۱۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلاَةٌ قَالَهَا ثَلاَثًا قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ. متفق عليه

د دواړو (يعني آذان او اقامت) په منځ کي لمونځ د ی، رسول الله ﷺ دا جملې درې ځله وفرمايلې او په دريم ځل يې وفرمايل د هغه چا لپاره چي کول غواړي. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۱۰، رقم: ۶۲۷ ومسلم: ۱\۵۷۳، رقم: ۳۰۴-۸۳۸.

**تشريح**: د دوو اذانونو څخه مراد اذان او اقامت دی يعني د اذان او اقامت په مينځ کي لمونځ کول د فلاح او سعادت خبره ده رسول الله ﷺ د اذان او اقامت په مينځ کي د نفل کولو د شوق لپاره دا جمله مکرر وفرمايل ځکه چي د اذان او اقامت په مينځ کي وخت ډير زيات بابرکت او د فضيلت حامل وي ځکه دا وخت په لمانځه کولو سره چي کومه دعا غوښتل کيږي هغه د الله تعالى د دربار څخه نه رد کيږي بلکه د قبوليت درجه تر لاسه کوي او بيا دا چي په بابرکت او بافضيلت وخت کي د عبادت ثواب هم ډير زيات وي حاصل دا چي د اذان او اقامت په مينځ کي لمونځ کول سنت دی مګر رسول الله ﷺ لمن شاء فرمايلو سره دې ته اشاره هم کړې ده چي د اول وخت لمونځ کول واجب نه دي بلکه مستحب دي دا امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد په ماښام کي د اذان او اقامت په منځ کي نفل کول مکروه دي ځکه حضرت بريده اسلمي رضي الله عنه راوي دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل چي د ماښام څخه پرته په نورو وختونو کي د اذان او اقامت په منځ کي دوه رکعته لمونځ دی.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

﴿۶۱۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْإِمَامُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: امام

ضَامِنٌ وَالْمُؤَذِّنُ مُؤْتَمَنٌ اَللّٰهُمَّ أَرْشِدِ الْأَئِمَّةَ وَاغْفِرْ لِلْمُؤَذِّنِيْنَ. رواه أحمد

وأبو داود والترمذي والشافعي وفي أخرى له بلفظ المصابيح .

ضامن دی او آذان کونکی امانت دار دی ، اې الله ! امامانو ته هدايت وکړې او آذان کونکی و بخښې . احمد ، ابوداؤد ، ترمذي او شافعي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۴۶۱، ۴۷۲، وابوداؤد ۱\ ۳۵۶، رقم: ۵۱۷، ۵۱۸، والترمذي ۱\ ۴۰۲، رقم: ۲۰۷ والشافعي في الام ۱\ ۸۷.

**تشريح** : د ضامن مطلب دادی چي امام د نورو د لمنځونو ذمه دار وي په دې توګه چي هغه د مقتديانو د لمانځه د امورو مثلا د قرائت او که مقتدی په رکوع کي دامام سره يو ځای سي نو د قيام و غيره متکفل کيږي همداسي هغه د ټولو لمنځونو د افعالو او ارکانو او د رکنونو په شمير کي نظر لري، د مؤذنانو د امانت دار کيدو مطلب دادی چي خلک په لمونځ کولو ، روژې نيولو او د روژه مات کولو په اړه د هغوی په آوازونو (آذان) باندي اعتماد او باور کوي .

﴿۶۱۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَذَّنَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي آذان وکړي

سَبْعَ سِنِيْنَ مُحْتَسِبًا كُتِبَ لَهُ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ . رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه .

يوازي د ثواب په نيت اووه کاله نو د هغه لپاره د دوږخ څخه خلاصون ليکل کيږي. ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱\ ۴۰۰، رقم: ۲۰۶. وابن ماجه ۱\ ۲۴۰، رقم: ۷۲۷ ولم نجده عند ابي داؤد.

﴿۶۱۴﴾ : وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله رضي الله عنه وفرمايل :

يَعْجَبُ رَبُّكَ مِنْ رَّاعِيْ غَنَمٍ فِيْ رَأْسِ شَظِيَّةٍ لِّلْجَبَلِ يُؤَذِّنُ بِالصَّلَاةِ وَيُصَلِّيْ

ستا رب د پسو څروونکو څخه چي د غره په لمن کي پسونه پيايي راضي کيږي کله چي هغه د

لمانځه لپاره آذان کوي او لمونځ کوي،

فَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ انْظُرُوْا إِلٰى عَبْدِيْ هٰذَا يُؤَذِّنُ وَيُقِيْمُ الصَّلَاةَ يَخَافُ

الله تعالی ملائکو ته فرمايي زما دې بنده ته وګورئ! هغه آذان کوي او لمونځ کوي او بيرېږي

مِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لِعَبْدِيْ وَأَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ. رواه أبو داود والنسائي.

زما څخه ما دا خپل بنده و بخښي او زه به دی په جنت کي داخل کړم. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۹، رقم: ۱۲۰۳، والنسائي ۲\۲۰، رقم: ٦٦٥.

**تشريح**: يعني هغه شپانه چي د خلکو څخه په کونج نشيني اختيارولو سره او د دنيوي تعلقاتو څخه لاس پر سر کېدو سره د غره پر څوکه هستوګن سي، کله چي د لمانځه وخت راسي نو اذان کولو سره الله او دهغه درسول نوم په لوړي کوي او په پابندي سره لمونځ اداء کولو سره د خپل پروردګار رضا تر لاسه کوي.

ابن ملک رحمة الله عليه فرمايي چي د هغه د اذان کولو فائده داده چي د اذان په ذريعه ملائکي او جنات د لمانځه د وخت څخه خبروي او دا چي هغه اذان په مخلوقاتو کي کوم شی هم اوري د قيامت په ورځ به د هغه د ايمان شاهدي ورکوي او د سنت پيروي کيږي او د جماعت په اړه د مسلمانانو سره مشابهت کيږي.

د اذان څخه اعلان يعني اذان او اقامت دواړه مراد دي ځيني حضرات وايي چي داسي سړي چي اذان او اقامت کوي نو ملائکي د هغه سره په لمانځه کي دريږي چي د هغه په وجه هغه ته د جماعت ثواب حاصليږي. والله اعلم.

زما څخه بيريږي: ددې مطلب دادی چي د دغه بنده د عبادت مقصد ځان ښودنه او ريا نه ده بلکه هغه زما د عذاب څخه بيريږي ځکه اذان هم کوي او لمونځ هم کوي ددې څخه دا معلومه سوه چي يوه سړي ته اذان او اقامت دواړه کول مستحب دي.

﴿٦١٥﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ عَلٰى

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: درې کسان به

كُثْبَانِ الْمِسْكِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَبْدٌ أَدّٰى حَقَّ اللّٰهِ وَحَقَّ مَوْلَاهُ وَرَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا

د مشکو پر غونډۍ وي د قيامت په ورځ ۱: هغه غلام چي هغه د الله جل جلاله حق ادا کړی او بیا د خپل مالک حق هم ادا کړي ۲: هغه کس چي هغه د قوم امامت وکړی

وَهُمْ بِهِ رَاضُوْنَ وَرَجُلٌ يُّنَادِيْ بِالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ كُلَّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ .

رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب .

او هغه قوم دده څخه خوښ وي.، ۳: او هغه کس چي په ورځ او شپه کي د پنځو لمنځو آذان کوي . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۱۲، رقم: ۱۹۸٦.

**تشريح**: د (عبد) څخه مراد مملوک دی که هغه غلام وي يا مينزه، د امام څخه د خلکو د خوشحاله کيدو مطلب دادی چي مقتدي د خپل امام څخه ددې وجي څخه مطمئن او راضي وي چي هغه د لمانځه احکام او ارکان او د سنن او آداب پوره پوره رعايت کوي مګر د دومره خبري خيال ساتل پکار دي چي په دې اړه اعتبار د اکثرو خلکو دی چي صاحب علم او فراست دي.

په هر حال د قيامت په ورځ به دغه درو سره کسانو ته د مشک غونډۍ ځکه حاصله وي چي دغه خلکو په دنيا کي د نفساني خواهشاتو لذتونه پر اطاعت الهي او فرمانبرداري رسول الله ﷺ پر سختيو باندي قربان کړي وه ځکه پروردګار عالم به د هغه په صله کي هغوی ته د خوشبويي په صورت کي عظيم انعام ورکړي چي نورو خلکو ته د هغوی عظمت او بزرګي ښکاره سي.

﴿٦١٦﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُؤَذِّنُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د آذان کونکي ته

يُغْفَرُ لَهُ مَدَّ صَوْتِهِ وَيَشْهَدُ لَهُ كُلُّ رَطْبٍ وَّيَابِسٍ وَّشَاهِدُ الصَّلَاةِ يُكْتَبُ لَهُ

بخښنه کيږي د هغه د آواز د لوړوالی په اندازه او د هغه لپاره وچ او لانده ددې شاهدي ورکوي ، لمانځه ته د حاضرېدونکي لپاره

خَمْسٌ وَّعِشْرُوْنَ صَلٰوةً وَّيُكَفَّرُ عَنْهُ مَا بَيْنَهُمَا . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه وروى النسائي إلى قوله كل رطب ويابس . وقال وله مثل أجر من صلى

د پنځه ویشت لمنځو ثواب لیکل کیږي د هغه هغه ګناه چي د دوو لمنځو په منځ کي وي لیري کیږي . احمد ، ابوداؤد ، ابن ماجه او نسائي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۴۱۱، ۴۲۹، ۴۶۱، وابوداؤد ۱\ ۳۵۳، ۳۵۵، رقم: ۵۱۵، وابن ماجه: ۱\ ۲۴۰، رقم: ۷۲۴، والنسائي: ۲\ ۱۳، رقم: ۶۴۴.

**تشريح** : د آواز د لوړتیا سره سم د بخښني مطلب دادی چي مؤذن د اذان کولو په وخت کي چي په څومره لوړ آواز آذان کوي په هغه اندازه به د هغه بخښنه کیږي او که هغه اواز انتهایي درجې ته رسوي یعني د هغه چي څومره طاقت وي هغومره اواز لوړ کړي نو مغفرت به یې هم پوره کیږي ځینو ددې مفهوم داسي بیان کړی دی چي که چیري د ګناه جسم فرض کړل سي او هغه دومره وي چي د مؤذن اذان تر کومه ځایه پوري رسیږي تر هغه پوري ځای سي نو د هغه ټول ګناهونه معاف کیږي ، رطب ددې څخه مراد هغه مخلوق دی چي په هغه کي نمو کیږي لکه انسان او نباتات وغیره او یا وچ نباتات یعني ډبري ، خاوره وغیره مراد دي .

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چي لفظ د (وشاهد الصلوة) پر لفظ د المؤذن باندي عطف کړل سوی دی په دې ډول د پوره جملې مطلب به داوي چي مغفرت کیږي د مؤذن او د هغه خلکو چي په جماعت کي حاضریږي .

خو علامه قاري رحمة الله علیه فرمایي زما په نزد صحیح داده چي د دې عطف پر کل رطب باندي دی او دې ته عطف خاص علی العام ویل کیږي د یکتب له او د عنه ضمیر یا خو شاهد ته راجع دی یا مؤذن ته به راجع وي، د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي مؤذن ته به د لمونځ کونکي په ډول ثواب تر لاسه کیږي. ځکه چي دی هغوی زموږ خوا ته رابولي او په حدیث کي دي چي کوم سړي د نیکي خبري باعث کیږي هغه ته به د هغه نیکي کونکي په ډول ثواب حاصلیږي .

﴿۶۱۷﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ اِجْعَلْنِيْ إِمَامَ

د حضرت عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله ! ما وتاکه امام

قَوْمِيْ فَقَالَ أَنْتَ إِمَامُهُمْ وَاقْتَدِ بِأَضْعَفِهِمْ وَاتَّخِذْ مُؤَذِّنًا لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا . رواه أحمد وأبو داود والنسائي .

زما د قوم لپاره ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ما ته امام و ټاکلې ته په هغوی کي د کمزوري او ضعيف زيات خيال ساته او ته داسي مؤذن وټاکه چي د آذان کولو مزدوري نه غواړي . احمد ، ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۱۷، وابوداؤد ۱\۳۶۳، رقم: ۵۳۱ والنسائي ۲\۲۳، رقم: ۶۷۱.

**تشريح** : د ضعيفانو د اقتداء کولو مطلب دادی چي په امامت کي د ضعيف او کمزور خلکو رعايت وکړل سي يعني قرائت دومره اوږد نه کړي او د لمانځه ارکان داسي ادا نه کړل سي چي هغه خلک تنګ او پريشان کړي او په جماعت سره لمونځ کول پرېږدي .

ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي د امام او مؤذن لپاره د لمانځه ورکولو او اذان کولو مزدوري حلاله نه ده مګر علماؤ دا ليکلي دي که چيري امام او مؤذن د خپل لوري مزدوري ونه ټاکي بلکه خلک په خپله د هغوی د اړتيا سره سم روپي ورليږي نو دا به جائز او حلال وي نو خلکو ته پکار ده چي د امام او مؤذن خبر اخيستنه وکړي او هغوی ته په خپله ډوډي او مال ور واستوي چي په هغه سره د هغه ضروريات پوره سي .

په فتاوی قاضي خان کي ليکلي دي چي کوم مؤذن چي د لمانځه د وختونو وغيره په اړه علم نه لري هغه ته د اذان کولو ثواب نه حاصليږي ځکه نو کوم مؤذن چي مزدوري اخلي هغه ته بطريق اولی ثواب نه حاصليږي .

﴿۶۱۸﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دی چي ما ته رسول الله ﷺ و ښودل چي

أَقُولَ عِنْدَ أَذَانِ الْمَغْرِبِ اَللّٰهُمَّ هٰذَا إِقْبَالُ لَيْلِكَ وَإِدْبَارُ نَهَارِكَ وَأَصْوَاتُ

زه د ماښام د آذان وروسته دا دعاء وکړم: (اې الله ! دا وخت ستا د شپې د راتلو او ستا د ورځي د تللو او د آوازونو

دُعَاتِكَ فَاغْفِرْ لِيْ . رواه أبو داود والبيهقي في الدعوات الكبير .

ستا د بلونکي دی نو ما و بخښې .ابوداؤد او بيهقي په دعوات کبير کي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۶۲، رقم: ۵۳۰.

**تشريح** : په ښکاره دا معلوميږي چي دا دعا خو د اذان کولو په دوران کي وويل سي يا د جواب د فارغه کېدو ورسته وکړل سي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د اذان وخت د الله

تعالى په دربار كي د دعاء د قبوليت وخت وي ځکه داسي وخت د خپلو ګناهونو معافي او د خير او نيكۍ پر لار د تلو توفيق غوښتل او زياتي دعاوي غوښتل پكار دي چي د قبوليت مرتبې ته ورسيږي .

﴿۶۱۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ أَمَامَةَ أَوْ بَعْضِ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوامامه رضي الله عنه او يا ځيني اصحابو څخه روايت دى چي

قَالَ إِنَّ بِلَالًا أَخَذَ فِي الْإِقَامَةِ فَلَمَّا أَنْ قَالَ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ

هغه وويل: بلال رضي الله عنه اقامت ويل پيل كړل كوم وخت چي هغه قد قامت الصلوة وويل نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقَامَهَا اللهُ وَأَدَامَهَا وَقَالَ فِيْ سَائِرِ الْإِقَامَةِ كَنَحْوِ حَدِيْثِ عُمَرَ فِي الْأَذَانِ . رواه أبو داود .

اقامها الله و ادامها، (الله دي لمونځ قائم او هميشه ولري) او په نورا قامت كي يې هغه وفرمايل چي د هغه ذكر د عمر د آذان په حديث كي تير سوى دى . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۶۱- ۳۶۲، رقم: ۵۲۸.

**تشريح** : مطلب دادى چي ددې باب په دريم نمبر حديث كي د اذان كلمې او د هغه د جواب چي څرنګه ذكر سوى دى همداسي د اقامت پر وخت مؤذن چي كومي كلمې ويلې رسول الله صلى الله عليه وسلم هم هغسي كلمې دوهم وار ويلې، البته د حي على الصلوة او حي على الفلاح په جواب كي يې لاحول ولا قوة الا با الله ويل او د قد قامت الصلوة په جواب كي به يې اقامها الله و ادامها ويل .

﴿۶۲۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُرَدُّ الدُّعَاءُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : دعاء نه رد كيږي

بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ . رواه أبو داود والترمذي .

د اذان او اقامت په منځ كي . ابوداؤد او ترمذي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۵۸، ۳۵۹، رقم: ۵۲۱ والترمذي ۱\ ۴۱۶، رقم: ۲۱۲.

**تشريح** : هسې خو پروردګار عالم د خپل رحمت او شفقت له مخې هر وخت د خپلو بندګانو دعا قبلوي او د هغوی د امید لمن د خپل فضل، کرم او ملغلرو څخه ډکوي خو ددې ارشاد په ذريعه مسلمانان په دې پوه کول کيږي چې د اذان او اقامت په مينځ کې وخت دومره بابرکت او با سعادت وي چې هغه وخت بنده د پروردګار عالم په مخکې د کوم حاجت لپاره لمن غوړوي هغه ضرور قبليږي نو مسلمانانو ته دا پکار ده چې هغوی دغه وخت خپل ديني او دنياوي فلاح وسعادت او کاميابي او کامراني لپاره ضروري دعاوي کوي.

په دې اړه يو بل روايت هم منقول دی چې دعا که د اذان وروسته متصلا وغوښتل سي يا څه وخت وروسته په هر صورت کې قبليږي خو صحيح او اولی دادی چې د اذان څخه سمدستي وروسته دعاء غوښتل پکار ده.

﴿٦٢١﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

ثِنْتَانِ لاَ تُرَدَّانِ أَوْ قَلَّمَا تُرَدَّانِ الدُّعَاءُ عِنْدَ النِّدَاءِ وَعِنْدَ الْبَأْسِ حِيْنَ

دوې دعاوې نه رد کيږي يا ډير کم رد کيږي يو خو د آذان په وخت کې دعاء او دوهم د جهاد په وخت کې دعاء کله چې

يُلْحِمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا وَفِيْ رِوَايَةٍ وَتَحْتَ الْمَطَرِ . رواه أبو داود والدارمي إلا أنه لم يذكر وتحت المطر .

سخت جنګ وي او په يوه روايت کې دا الفاظ دي (يعني د جهاد پر ځای) په باران کې دعاء کول. ابوداؤد او دارمي

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۳\۴۵، رقم: ۲۵۴۰، والدارمي ۱\۳۹۳، رقم: ۱۲۰۰.

﴿٦٢٢﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَارَسُوْلَ اللهِ إِنَّ الْمُؤَذِّنِيْنَ

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دی چې يو سړي رسول الله ﷺ ته وويل: اې د الله رسوله آذان کونکی

يَفْضُلُوْنَنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ كَمَا يَقُوْلُوْنَ فَإِذَا

پر موږ فضيلت لري ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : څنګه چي آذان کوونکی وايي همداسي ته هم وايه او کوم وخت چي

اِنْتَهَيْتَ فَسَلْ تُعْطَ . رواه أبو داود .

ته د آذان څخه فارغ سې نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه سوال وکړه درکول به سي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۶۰، رقم: ۵۲۴.

**تشريح** : د صحابي رضي الله عنه مطلب داوو چي کوم خلک اذان کوي هغوی خو د اذان کولو د سعادت او برکت په وجه ز موږ په نسبت د زيات ثواب حقدار دي ځکه موږ ته هم يو طريقه وښياست چي پر هغه د عمل کولو سره موږ هم په ثواب کي د هغوی برابر سو د دې په جواب کي رسول الله ﷺ هغوی ته دا طريقه وښودل چي هر کله مؤذن د اذان کلمې وايي نو تاسو هم د هغه سره هغه کلمې واياست پرته د حي على الصلوة او حي على الفلاح څخه چي د هغه په جواب کي لاحول ولا قوة الا بالله ويل پکار دي همداسي تا سو ته به هم د هغوی د اصل ثواب په ډول ثواب تر لاسه کيږي.

ددې وروسته رسول الله ﷺ يو دوهم شی د اذان د جواب څخه د فراغت وروسته په دعا غوښتلو سره دې ته اشاره وکړل که د اذان جواب ورکولو وروسته دعا وغوښتل سي نو په فضيلت او بزرګي کي به يې نور هم زياتوب سي .

ددې حديث څخه معلومه سوه که چيري يو سړی د اذان په وخت کي په مسجد کي موجود وي نو هغه ته هم دا پکار ده چي د اذان د کلمو جواب ورکړي کوم خلک چي دا وايي چي د اذان په وخت کي په مسجد کي موجود سړی دي د اذان جواب نه ورکوي ځکه چي دا وخت چي اجابت فعلي حاصل دی نو د اجابت قولي څه ضرورت دی نو دا خبره زړه ته ښه نه معلوميږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۶۲۳﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل يې :

الشَّيْطَانَ إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ ذَهَبَ حَتّٰى يَكُوْنَ مَكَانَ الرَّوْحَاءِ، قَالَ

شيطان چي د آذان آواز واوري نو تښتي تر دې چي د روحا ځاى ته ورسيږي، ويلي دي

الرَّاوِيُ وَالرَّوْحَاءُ مِنَ الْمَدِيْنَةِ عَلٰى سِتَّةٍ وَثَلٰثِيْنَ مِيْلاً . رواه مسلم .

راوي چي روحا د مديني څخه شپږ ديرش ميله ليري دى . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱/ ۲۹۰، رقم: ۱۵- ۳۸۸.

**تشريح** : د شيطان څخه مراد جنس شيطان دى يعني په اذان اوريدو سره يا خو ټول شيطانان تښتي يا د هغوى مشر وتښتي او صحيح دادى، او كوم چي د حديث د آخري برخي مطلب دى چي په اذان اوريدو سره شيطان د لمونځ كونكي څخه دومره ليري سي څومره ليري چي د مديني څخه روحا دى، د راوي څخه د ابو سفيان نافع ابن طلحه ذات مراد دى چي هغه دا حديث د حضرت جابر رضي الله عنه څخه نقل كړى دى .

﴿۶۲۴﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ قَالَ إِنِّيْ لَعِنْدَ مُعَاوِيَةَ إِذْ أَذَّنَ مُؤَذِّنُهُ فَقَالَ

د حضرت علقمة بن وقاص رضي الله عنه څخه روايت دى چي زه د حضرت معاويه رضي الله عنه سره ناست وم چي د هغه مؤذن آذان وكړ

مُعَاوِيَةُ كَمَا قَالَ مُؤَذِّنُهُ حَتّٰى إِذَا قَالَ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ قَالَ لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا

حضرت معاويه هم هغه الفاظ ويل كوم چي مؤذن ويل، تر دې چي مؤذن حي علي الصلوة وويل نو حضرت معاوية لاحول ولاقوة الا

بِاللهِ فَلَمَّا قَالَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ قَالَ لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ

باالله وويل او كله چي مؤذن حى على الفلاح وويل نو حضرت معاويه لاحول ولاقوة الا باالله العلي العظيم وويل،

وَقَالَ بَعْدَ ذٰلِكَ مَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ ثُمَّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذٰلِكَ . رواه أحمد .

بيا وروسته حضرت معاوية هغه جملې وويل كوم چي مؤذن ويلې ، حضرت معاوية ﷺ وويل ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي هغوى به داسي فرمايل . احمد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۹۱– ۹۲.

**تشريح** : علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي د حي على الصلوة په جواب كي لاحول ولا قوة الا با الله څخه وروسته د العلي العظيم اضافه په رواياتو كي نادره ده .

﴿۶۲۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي موږ د رسول الله ﷺ سره ملګري وو نو ودرېدى

بِلَالٌ يُنَادِيْ فَلَمَّا سَكَتَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ مِثْلَ

بلال ﷺو او آذان يې كاوه كوم وخت چي بلال ﷺ پټه خوله سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل : څوك چي

هٰذَا يَقِيْنًا دَخَلَ الْجَنَّةَ . رواه النسائي .

په يقين سره داسي (د اذان په جواب كي) ووايي نو هغه به په جنت كي داخل سي .نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۲\۲۴، رقم: ۶۷۳.

**تشريح** : مطلب دادى چي كوم سړى د يقين او اعتماد په پوره قوت او د زړه په پوره خلوص سره دغه كلمات يا په اذان كي ووايي يا د اذان په جواب كي يې ووايي يا يې مطلقا ووايي نو هغه به جنت ته د داخلېدو حقدار سي يا به د خلاصون تر لاسه كوونكو سره يو ځاى جنت ته داخل سي .

﴿۶۲۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعَ الْمُؤَذِّنَ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دى چي كله به رسول الله ﷺ د مؤذن شهادتونه واوريدل

يَتَشَهَّدُ قَالَ وَأَنَا وَأَنَا . رواه أبو داود .

نو فرمايل به يې او زه هم شهادت وركوم او زه هم شهادت وركوم . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۶۰، ۳۶۱، رقم: ۵۲۶.

**تشریح** : یعني کله چي مؤذن په اذان کي اشهد ان لا اله الا الله او اشهد ان محمد رسول الله ویل نو رسول الله ﷺ به د شهادتین په جواب کي دوه واره فرمایل وانا وانا اوزه هم اوزه هم، یعني څرنګه چي ته د الله د وحدانیت او د رسول الله ﷺ د رسالت شاهدي ورکوې همداسي زه هم د وحدانیت الهي او رسالت رسول شاهدي ورکوم .

ددې څخه دا معلومه سوه چي د ټولو امتونو په ډول خپله رسول الله ﷺ هم د خپل رسالت د شاهدۍ ورکولو مکلف وو اوس په دې کي اختلاف دی چي ایا رسول الله ﷺ د امت د نورو کسانو په ډول اشهد ان محمد رسول الله (زه شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله تعالی رسول دی، په ویلو سره شاهدي ورکول او که اشهداني رسول الله (زه شاهدي ورکوم چي زه د الله تعالی رسول یم) په ویلو شاهدي ورکول ؟

علماء لیکي چي صحیح قول دادی چي رسول الله ﷺ د امت د نورو افرادو په ډول د خپل رسالت شاهدي ورکول لکه څرنګه چي اوس په تیر سوي حدیث کي د معاویه رضی اللہ عنہ په باره کي تیر سوي دي چي هغوی د اذان په جواب کي اشهد ان محمدا رسول الله وویل او بیا یې وفرمایل ما د رسول الله ﷺ څخه همداسي فرمایل اوریدلي دي یعني رسول الله ﷺ به هم د اذان په جواب کي اشهد ان محمد رسول الله ویل .

همداسي د بي بي عائشې صدیقې رضي الله عنها په دې روایت کي او د معاویه رضی اللہ عنہ په روایت کي ټکر پیدا کیږي ځکه ویل سوي دي چي رسول الله ﷺ به کله داسي فرمایل څرنګه چي حضرت معاویه رضی اللہ عنہ بیان کړی دی او کله به یې داسي فرمایل لکه څرنګه چي بي بي عائشې رضي الله عنها دلته ښودلي دي .

﴿۶۲۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَذَّنَ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ثوک چي آذان وکړي

ثِنْتَيْ عَشَرَةَ سَنَةً وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَكُتِبَ لَهُ بِتَأْذِيْنِهِ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ سِتُّوْنَ

دوولس کاله د هغه لپاره جنت واجب سي او د هغه د آذان په بدله کي هره ورځ شپیته

حَسَنَةً وَلِكُلِّ إِقَامَةٍ ثَلَاثُوْنَ حَسَنَةً . رواه ابن ماجه ،

نیکۍ او د اقامت په بدله کي دیرش نیکۍ لیکل کیږي . ابن ماجه

**تخريج:** سنن ابن ماجه ۱\ ۲۴۱، رقم: ۷۲۸.

**تشريح :** د اذان په نسبت د اقامت ثواب نيم ځکه دی چي اقامت په خاصه توگه سره د هغه خلکو د خبرکولو لپاره وي چي په مسجد کي حاضر وي او د اذان په ذريعه په عامه توگه سره حاضرين او غائبين ټول خبرول کيږي يا دا وجه به يې وي چي په اذان کي به زيات محنت زغمل وي او په اقامت کي د هغه په نسبت کم محنت وي.

﴿۶۲۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ كُنَّا نُؤْمَرُ بِالدُّعَاءِ عِنْدَ أَذَانِ الْمَغْرِبِ. رواه البيهقي في دعوات الكبير.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ ته د ماښام د آذان کولو په وخت کي د دعاء حکم راکړل سوی دی بيهقي

**تخريج:** البيهقي في الدعوات الكبير.

**تشريح :** غالبا دلته هم هغه مراد دی چي د هغه تذکره د بي بي ام سلمه رضي الله عنها په حديث نمبر ۵ کي راغلې ده يعني اللهم هذا اقبال ليلک و ادبار نهارک ...... الخ.

===========

# بَابُ فِيْ بَيَانِ بَعْضِ اَحْكَامِ الاَذَانِ

## د آذان د ځينو احکامو بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۶۲۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ بِلالاً

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بېشکه بلال

يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يُنَادِيَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ قَالَ وَكَانَ ام مكتوم

د شپې آذان کوي نو تاسو خورئ او څښئ (په روژه کي پيشلمی کوئ) تر دې چي ابن مکتوم آذان وکړي د ابن عمر رضي الله عنه بيان دی چي ابن مکتوم

رَجُلاً أَعْمٰى لاَ يُنَادِيْ حَتّٰى يُقَالَ لَهُ أَصْبَحْتَ أَصْبَحْتَ . متفق عليه

ړوند سړی وو او هغه به هغه وخت آذان کاوه چي کله به ورته وويل سول چي سهار سو سهار سو.
بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۹۹، رقم: ۶۱۷ وفي ۲\۱۰۱، رقم: ۶۲۰ ومسلم ۲\۷۶۸، رقم: ۳۸-۱۰۹۲.

**تشريح**: ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ دوه مؤذنان وه يو مؤذن به د سهار د لمانځه د وخت څخه مخکي په شپه کي اذان کویاو دوهم به د سهار د لمانځه د وخت پيل کيدو وروسته اذان کوی د شافعي حضراتو په نزد دوه مؤذنان تاکل سنت دي يو د سهار د لمانځه تر مخه په اخيره نيمه شپه کي اذان کولو لپاره او دوهم د فجر په اول وخت کي د اذان کولو لپاره . حنفيه حضرات فرمايي چي اول مؤذن د سهار لپاره يا د تهجد لپاره وو ددې تعلق د سهار د لمانځه د اذان سره نه وو ځکه چي په يوه روايت کي خپله رسول الله ﷺ د سهار د وخت څخه مخکي د اذان کولو څخه منعه فرمايلې ده ځکه چي د حنفيه په نزد د سهار د لمانځه لپاره د وخت څخه مخکي په شپه کي اذان کول جائز دي .

د حديث په آخري جمله اصبحت يعني تا سهار کړ تا سهار کړ، په دې کـــي دا اشکال پيدا کيږي چي کله ابن ام مکتوم رضي الله عنه د صبا کيدو ورسته اذان کوی نو تر هغه وخته پوري پيشلمی کول څرنګه جائز سو .

ددې جواب دادی چي د اصبحت معنی د سهار کيدونکي ده د مبالغې په توګه په اصبحت سره تعبير کړل سوې ده .

﴿۶۳۰﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لاَ يَمْنَعَنَّكُمْ مِنْ سُحُوْرِكُمْ أَذَانُ بِلاَلٍ وَلاَ الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيْلُ وَلٰكِنَّ الْفَجْرَ الْمُسْتَطِيْرَ فِي الْأُفُقِ . رواه مسلم ولفظه للترمذي .

د بلال آذان دي تاسو د پيشلمي څخه منعه نه کړي او نه صبح کاذب البته کله چي صبح صادق (خپور) څرګند سي نو (پيشلمي کول پريږدئ) مسلم او ترمذي

**تخريج:** صحيح مسلم ۲\۷۷۰، رقم: ۴۳- ۱۰۹۴، والترمذي ۳\۸٦۱، رقم: ۷۰٦.

﴿٦۳۱﴾: وَعَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَ

د حضرت مالک بن الحویرث ﷺ څخه روایت دی چي زه راغلم نبي کریم ﷺ ته او

ابْنُ عَمٍّ لِيْ فَقَالَ إِذَا سَافَرْتُمَا فَأَذِّنَا وَأَقِيْمَا وَلْيُؤَمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا . رواه البخاري

زما د اکا زوی نو رسول الله ﷺ وفرمایل هر کله چي تاسو دواړه په سفر ځئ نو اذان او اقامت کوئ او په تاسو کي چي کوم یو مشر وي هغه دي امامت وکړي . بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۱۱۰، رقم: ٦۳۸ ومسلم ۱\٤٦٦، رقم: ۲۹۳- ٦۷٤.

**تشريح** : غالبا دا دواړه حضرات به په علم او تقوی کي برابر وه ځکه رسول الله ﷺ د امام جوړیدو حقدار هغه وګرځوی چي په عمر کي زیات وي یا د اکبر څخه مراد افضل دی چي په دواړو کي کوم یو غوره وي هغه دي امامت کوي ددې څخه دا معلومه سوه چي دا فضیلت په اذان کي شرط نه د مګر پکار داده چي آذان هغه سړی وکړي کوم چي د لمنځو د وختونو علم لري نیک او دینداره وي لوړ اواز او خوش آوازه وي د اذان کلمې صحیح صحیح ادا کولای سي .

﴿٦۳۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلُّوْا كَمَا

د حضرت مالک بن حویرث ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته وفرمایل : تاسو داسي لمونځ کوئ لکه څرنګه چي

رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ ثُمَّ وَلْيُؤَمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ . متفق عليه

زموږ لمونځ کول وینئ او کله چي د لمانځه وخت سي نو په تاسو کي دي یو سړی آذان وکړي او کوم یو چي تر ټولو مشر وي هغه دي ستاسو امام سي . بخاري او مسلم .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۱۱۱، رقم: ٦۳۱ ولم نجده عند مسلم.

**تشريح** : مطلب دادی چي د ايمان او اسلام په حالت کي تير سي يعني کوم خلک چي د اسلام قبلولو ډير وخت وروسته تير سوي وي هغه دي حکما د هغو خلکو څخه مشر وګرځول سي چي د هغه وروسته د ايمان او اسلام په سعادت سره مشرف وي که څه هم هغه په عمر کي د هغو ټولو څخه کوچنی وي ځکه چي مخکي اسلام قبلونکي سړي ته د دين او شريعت علم وروسته د اسلام پيرو کيدونکو څخه زيات وي .

﴿۶۳۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي بېله شکه رسول الله ﷺ

حِينَ قَفَلَ مِنْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ سَارَ لَيْلَةً حَتّٰى إِذَا أَدْرَكَهُ الْكَرَى عَرَّسَ

کله چي راوګرځېدی د خيبر د غزا څخه را نو د شپې يې سفر وکړ تر دې چي پر رسول الله ﷺ پرکالي (د خوب اثر) راغلل نو د آرام کولو لپاره را تا سو

وَقَالَ لِبِلَالٍ اكْلَأْ لَنَا اللَّيْلَ فَصَلَّى بِلَالٌ مَا قُدِّرَ لَهُ وَنَامَ رَسُولُ اللّٰهِ

او بلال رضي الله عنه ته يې وفرمايل چي ته زموږ ساتنه کوه (يعني سهار مو ويښ کړه) بلال رضي الله عنه د تهجد په لمانځه کي بوخت سو او څومره لمونځ چي ممکن وو هغه يې وکړ او بيده سو رسول الله ﷺ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ فَلَمَّا تَقَارَبَ الْفَجْرُ اسْتَنَدَ بِلَالٌ إِلَى

او صحابه کرام ، کله چي سهار نژدې سو نو څنګ ووهی بلال رضي الله عنه

رَاحِلَتِهِ مُوَاجِهَ الْفَجْرِ فَغَلَبَتْ بِلَالًا عَيْنَاهُ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ

خپلي سپرلی ته او د لمر خاته لوري ته يې مخ کړ مګر د بلال سترګي د خوب څخه ډکي سوې او هغه هم د اوښ سره تکيه ولګول او بيده سو

فَلَمْ يَسْتَيْقِظْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا بِلَالٌ وَلَا أَحَدٌ

اوس نو نه د رسول الله ﷺ نه د بلال، او نه د صحابه کرامو سترګي و لغړېدلې

مِنْ أَصْحَابِهِ حَتَّى ضَرَبَتْهُمُ الشَّمْسُ فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د صحابه كرامو څخه ، تر دې چې د لمر ګرمي سوه او د رسول الله ﷺ

أَوَّلَهُمُ اسْتِيقَاظًا فَفَزِعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيْ

تر ټولو وړاندي ستركي ولغړېدلې (ويښ سو)رسول الله ﷺ په بيره وويل اې

بِلَالُ فَقَالَ بِلَالٌ أَخَذَ بِنَفْسِي الَّذِي أَخَذَ بِنَفْسِكَ قَالَ اقْتَادُوا

بلاله ! په تا څه وسول ؟ بلال عرض وكړ پر ما هم خوب غالب سو كوم چي پر تاسو غالب سو رسول الله ﷺ وفرمايل راپورته سئ

فَاقْتَادُوا رَوَاحِلَهُمْ شَيْئًا ثُمَّ تَوَضَّأَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او خپل اوښان بوزئ ، اوښان مو د هغه ځايه لږ ليري بوتلل بيا رسول الله ﷺ اودس وكړ

وَأَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الصَّلَاةَ فَصَلَّى بِهِمُ الصُّبْحَ فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ قَالَ:

او بلال ته يې د آذان حكم وكړ بيا رسول الله ﷺ د سهار لمونځ وركړ ، كله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو وه يې فرمايل :

مَنْ نَسِيَ الصَّلَاةَ فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا فَإِنَّ اللّٰهَ قَالَ وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ . رواه مسلم

د چا څخه چي لمونځ هير سي هغه ته پكار ده چي كله هم وريا د سي هغه وخت يې ادا كړي ځكه چي الله تعالى فرمايلي دي و اقم الصلوة لذكري . مسلم .

**تخريج :** صحيح مسلم ۱\ ۳۷۱ ،رقم: ۳۰۹- ۶۸۰.

**د لغاتو حل :** (الكرى): النعاس. (د خوب غلبه). (عرس): من التعريس اى نزل آخر الليل للاستراحة. (د شپې په آخره كي د ارام لپاره پړاو اچول).

**تشريح :** خيبر د مدينې منورې څخه تقريبا پر سل ميله فاصله باندي دى د بنو نصير يهوديان

چي د مدينې څخه ووتل نو په خيبر کي ميشت سول بيا خيبر د يهوديانو د سازشونو اډه او
مرکز جوړ سو نو د اسلام د حفاظت له کبله ددې خبري ضرورت محسوس کړل سوچي د هغوی
دا شرارتي مرکز وران کړل سي نو په اووم هجري کال کي تقريبا د شپاړلس سوو مسلمانانو
مجاهدينو لشکر د رسول الله ﷺ په مشرتابه کي خيبر ته روان سو هلته په رسيدو سره يهوديان
محاصره کړل سول دا محاصره تقريبا تر لسو ورځو پوري جاري وه تردې چي الله تعالی
مسلمانانو ته فتح نصيب کړه او د خيبر په ټولو کلاګانو قبضه وسوه ددې غزا د کاميابی تاج د
حضرت علي کرم الله وجهه پر سر وو او هغه د فاتح خيبر په عظيم لقب سره ونازول سو، رسول
الله ﷺ د اسلامي لښکر بيرغ د هغه په لاس کي ورکړی وو او د اسلامي لښکر قومنداني يې
کول ددې څخه ماسوا الله تعالی د هغه په لاسه يوه خاصه ميړانه دا ښکاره کړل چي د خيبر
دروازه چي اويا خلکو هم نه سوه پورته کولای هغه يوازي حضرت علي رضی الله عنه په را کښلو سره
وغورځول کوم وخت چي خيبر فتح سو نو د مسلمانانو او د هغه ځای د يهوديانو په مينځ کي
يوه معاهده وسوه چي د هغې دوه خاص تړونونه دا وه:

اول : تر څو پوري چي مسلمانان غواړي يهوديان به په خيبر کي پاته وي او کله چي
ويستل وغواړي نو هغوی به د خيبر څخه وځي.

دوهم : د حاصلاتو يوه برخه به مسلمانانو ته ورکول کيږي،په هر حال په حديث کي
مذکوره واقعه ددغه غزا څخه د بيرته تګ پر وخت مخي ته راغلل اوس دلته يو سوال پيدا
کيږي چي تر لمر ختلو وروسته چي بېدار سول نو په هغه ځای کي رسول الله ﷺ قضاء لمونځ
ولي ونه کړ او صحابه کرامو ته د هغه ځای څخه د روانيدو حکم ورکولو سبب څه وو؟ په دې
اړه د علماؤ مختلف اقوال دي، حنفي علماء چي د هغوی په نزد تر لمر ختلو په وخت کي قضاء
لمونځ کول منعه دي فرمايي چي رسول الله ﷺ ددې ځای څخه د تللو حکم ورکړی وو چي لمر
لوړ سي او د لمانځه لپاره مکروه وخت ووځي.

شافعي علماء چي د هغوی په نزد د لمر ختلو په وخت قضاء لمونځ کول جائز دي وايي چي
رسول الله ﷺ د قضاء لمونځ کولو پرته سمدستي د هغه ځای څخه ځکه روان سول چي هغه ځاي
د شيطانانو مسکن وو څرنګه چي په نورو روايتونو کي ددې تصريح موجوده ده د مسلم د يو
روايت الفاظ دادې چي په لمر راختلو باندي رسول الله ﷺ دا حکم ورکړ چي هر سړی دي د خپل
سپرلۍ واګي ونيسي او روان دي سي ځکه چي په دې ځاي کي موږ ته شيطان راغلی دی.

رسول الله ﷺ بلال رضی الله عنه ته يوازي د اقامت کولو حکم ورکړی وو د اذان لپاره يې نه وه

فرمايلي ددې څخه په ښکاره دا معلومیږي چي د قضاء لمانځه لپاره اذان کول ضروري نه دی
څرنګه چي د جدید قول سره سم د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی چي د قضاء لمانځه
لپاره هم اذان کول پکار دي، د ځینو روایتونو څخه دا معلومیږي چي هغه وخت د لمانځه اذان
سوی وو په هدایه کي ذکر سوي دي چي رسول الله ﷺ د لیلة التعریس (یعني د مذکوره شپې)
د سهار د لمانځه قضاء په اذان او اقامت سره کړی وو.

شیخ ابن الهمام رحمة الله علیه په دې اړه د مسلم او ابو داود رحمة الله علیهما څو
حدیثونه نقل کړي دي او فرمایلي یې دي چي د مسلم رحمة الله علیه په دې روایت کي چي ذکر
سوي دي چي رسول الله ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته اقامت حکم ورکړ نو هغه اقامت وکړه غیر
مرادف نه دي ځکه چي د رسول الله ﷺ په باره کي په صحیح توګه سره دا ثابته سوې ده چي هغه
وخت یې په اذان او اقامت سره لمونځ کړی وو نو په دې روایت کي فاقام الصلوة معنی داده
چي هغوی د لمانځه لپاره د اذان څخه وروسته اقامت وکړ.

دلته یو معمولي سوال پیدا کیږي چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي زما سترګي بیدې
وي او زما زړه بیدار وي نو د زړه د ویښ کیدو سربیره ددې څه وجه وه چي صبح صادق کیدو
باندي رسول الله ﷺ خبر نه سو؟ د دې جواب دادی چي د لمر راختل او لوېدل د سترګو کار دی
د زړه کار نه دی نو د زړه د بیدارۍ سربیره د صبح صادق پر طلوع کیدو باندي رسول الله ﷺ
ځکه خبر نه سو چي سترګي یې بیدې وې.

او که څوک دا سوال وکړي چي رسول الله ﷺ ته د کشف یا وحي په ذریعه اطلاع ولي نه
وسول؟ نو ددې جواب به دا وي چي دا خو د الله تعالی پر مرضۍ موقف دی دوهم دا چي په دې
کي حکمت هم وو چي په دا طریقه سره امت ته د قضاء احکام معلوم سول.

﴿۶۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُقِيمَتِ

د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي اقامت وسي

الصَّلَاةُ فَلَا تَقُومُوا حَتّٰى تَرَوْنِيْ قَدْ خَرَجْتُ . متفق علیه

د لمانځه لپاره نو تاسو تر هغه وخته مه ولاړیږئ تر څو چي ما (د کور څخه) راوتونکی ونه
وینئ. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\۱۱۹، رقم: ۶۳۷، ومسلم ۱\۴۲۲، رقم: ۱۵۶- ۶۰۴.

**تشريح** : فقهاؤ ليکلي دي چي کله اقامت کونکی حي علی الصلوة ووايي نو مقتديانو ته هغه وخت دريدل پکار دي نو رسول الله ﷺ به هم هغه وخت د خپل خوني څخه وتونکی وو.

﴿۶۳۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُقِيْمَتِ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي اقامت وسي

الصَّلاةُ فَلاَ تَأْتُوْهَا تَسْعَوْنَ وَأْتُوْهَا تَمْشُوْنَ وَعَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةَ فَمَا أَدْرَكْتُمْ

د لمانځه لپاره نو تاسو په منډه مه راځئ بلکه په کراره راځئ او څومره لمونځ چي ونيسئ

فَصَلُّوْا وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوْا. متفق عليه وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا

نو وه يې کړئ او کوم چي تير سي هغه پوره کړئ. بخاري او مسلم. د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دی هر کله چي په تاسو کي يو څوک

كَانَ يَعْمِدُ إِلَى الصَّلاَةِ فَهُوَ فِيْ الصَّلاَةِ . وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِيْ

د لمانځه اراده کوي نو لکه دی چي د هغه وخت څخه په لمانځه کي وي. په دې باب کي دوهم فصل نسته.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۹۰، رقم: ۹۰۸ ومسلم ۱\ ۴۲۰، ۴۲۱، رقم: ۱۵۱- ۶۰۲.

**تشريح** : په عامه توګه دا ليدل سوې ده چي کله لمونځ ودريږي نو هغه خلک چي په څنګ سره مسجد ته راسي په لمانځه کي د شامليدو لپاره او خصوصا هغه وخت چي امام رکوع ته ځي په ډيره منډه راځي او په لمانځه کي ګډون کوي نو داسي خلکو ته د حديث څخه خبرېدل پکار دي چي د هغوی دا طريقه د شريعت خلاف ده نو نه يوازي دا چي د حديث څخه دا معلومه سوه چي د جماعت په دريدو سره په منډه راتلل نه دي جائز بلکه علماؤ داهم ليکلي دي چي د لمانځه لپاره په منډه راتلل د عقل کمزوري او د غفلت نښه ده ځکه چي د لمانځه لپاره تيزي او چالاکي هسي خو د شريعت په نظر کي به قابل تعريف وي که چا د تکبير اولی د فوت کيدو يا يو رکعت تلو بيره وي نو هغه دي د مخکي څخه تلوار کوي او د جماعت پيل کيدو څخه مخکي دي مسجد ته راځي. (حضرت شيخ عبد الحق رحمة الله عليه).

ملا علي قاري رحمة الله عليه فرمايي چي د علماؤ په نزد په دې اړه اختلاف دی که يو

سړي ته د تکبير اولي د فوت کيدو بيره وي نو ايا هغه دي په ځغاسته راسي که يا؟ ځينو حضراتو ويلي دي چي داسي سړی دي په منډه راسي ځکه چي د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په باره کي نقل شوي دي چي هغه په بقيع کي وو چي د مسجد څخه يې د اقامت اواز واوريدی نو په منډه مسجد ته راغلی .

او ځيني علماء دامناسب گڼي چي داسي سړي ته ددې حديث سره سم په وقار او آرامتيا سره مسجد ته راتلل پکار دي مگر په دې خبره پوهيدل پکار دي چي دا حکم به د هغو خلکو لپاره وي چي د ناخبری يا د يو مجبوری او معذوری په وجه و زنډيږي او که يو سړی په خبرتيا سره لمانځه ته په راتلو کي ځنډ وکړي نو هغه په دې کي شامل نه دی .

په هر حال په دې اړه صحيح او مناسب دادي چي که يو سړي په ځنډ سره مسجد ته راورسيږي نو هغه ته دا پکار ده چي هغه په جماعت کي د شريکيدو لپاره په و قار او طمانيت سره په تيز تيز تلو سره راسي بالکل بېکاره طريقې سره په منډه دي نه راځي چي په دغه حديث باندي عمل هم وسي نو د تکبير اولی ثواب به هم د لاس څخه ولاړ نسي همداسي د جمعې د لمانځه حکم هم دادی که چيري د يو سړی څخه مسجد ته په رسيدو کي ځنډ وسي او ددې خبري ورته يقين وي که تلوار نه وکړي نو امام به سلام وگرځوي او زه به د لمانځه څخه پاته سم نو هغه ته په تلوار سره تلل او د امام سره په لمانځه کي شريکيدل پکار دي .

**وهذا الباب خال عن الفصل الثاني .**

په دغه باب کي دوهم فصل نسته .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

**﴿۶۳۶﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ عَرَّسَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً**

د حضرت زيد بن اسلم رضی الله عنه څخه روايت دی چي يوه شپه رسول الله صلی الله علیه وسلم قيام (هستوگنه) وکړ

**بِطَرِيْقِ مَكَّةَ وَوَكَّلَ بِلَالًا أَنْ يُّوْقِظَهُمْ لِلصَّلَاةِ فَرَقَدَ بِلَالٌ وَرَقَدُوْا حَتّٰى**

د مکې مکرمې په لار کي او بلال ته يې دا خدمت و سپاری چي هغه يې (د لمانځه لپاره) راويښ کړي، بلال ته هم خوب ورغلی او نور هم بيده سوه تر دې چي

اسْتَيْقَظُوْا وَقَدْ طَلَعَتْ عَلَيْهِمُ الشَّمْسُ فَاسْتَيْقَظَ الْقَوْمُ فَقَدْ فَزِعُوْا

راوينس سوه هغه وخت چي لمر راختلى وو او د سهار د لمانځه نه كولوله كبله تهول په بيره كي سول

فَأَمَرَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَّرْكَبُوْا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْ ذٰلِكَ

رسول الله ﷺ خلكو ته حكم وركړ چي سمدستي سپاره سئ تر دې چي ووځي د دغي

الْوَادِيْ وَقَالَ إِنَّ هٰذَا وَادٍ بِهٖ شَيْطَانٌ . فَرَكِبُوْا حَتّٰى خَرَجُوْا مِنْ ذٰلِكَ الْوَادِيْ

شيلې څخه، او رسول الله ﷺ وفرمايل: دا يوه داسي شيله ده چي شيطان پر مسلط دى، نو تهول سپاره سول تر دې چي ووتل د دغي شيلې څخه،

ثُمَّ أَمَرَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَّنْزِلُوْا وَأَنْ يَّتَوَضَّئُوْا وَأَمَرَ

لږ چي ولاړل نو رسول الله ﷺ حكم وكړ چي دلته كښته سئ او اودس وكړئ، او حكم يې وكړ

بِلَالًا أَنْ يُّنَادِيَ لِلصَّلَاةِ أَوْ يُقِيْمَ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ

بلال ته چي آذان يا اقامت وكړي بيا رسول الله ﷺ خلكو ته لمونځ وركړ

ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ رَأٰى مِنْ فَزَعِهِمْ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ اللّٰهَ قَبَضَ

او كله چي د لمانځه څخه فارغ سو او ستنېدل نو خلك يې په بيره كي وليدل نو وه يې فرمايل: خلكو! الله تعالى قبض كړي وه

أَرْوَاحَنَا وَلَوْ شَاءَ لَرَدَّهَا إِلَيْنَا فِيْ حِيْنٍ غَيْرِ هٰذَا فَإِذَا رَقَدَ أَحَدُكُمْ عَنِ الصَّلَاةِ

زموږ روحونه، كه هغه غوښتل نو زموږ روحونه به يې په دوهم وخت كي راكړي واى (يعني د هغه وخت څخه مخكي او د لمانځه په وخت كي) هر كله چي په تاسو كي يو څوك بيده سي او د لمانځه څخه غافل سي

أَوْ نَسِيَهَا ثُمَّ فَزِعَ إِلَيْهَا فَلْيُصَلِّهَا كَمَا كَانَ يُصَلِّيْهَا فِيْ وَقْتِهَا ثُمَّ الْتَفَتَ

يا لمونځ ځيني هېر سي او د هغه غفلت يا هيري له كبله په بيره كي سي نو هغه ته پكار دي چي

هغه لمونځ هماغسي وکړي لکه څرنګه چي يې په خپل وخت کي کوي ، بيا متوجه سو

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلىٰ أَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ فَقَالَ إِنَّ الشَّيْطَانَ أَتٰى

رسول الله ﷺ ابوبکر صديق رضي الله عنه ته او وه يې فرمايل : شيطان راغلی

بِلَالاً وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّيْ فَأَضْجَعَهُ ثُمَّ لَمْ يَزَلْ يُهْدِئُهُ كَمَا يُهْدَأُ الصَّبِيُّ حَتّٰى

بلال ته او هغه ولاړ وو لمونځ يې کوی او هغه يې تکيه لګولو ته تيار کړ بيا چي کله هغه بيده سو نو تر ډيره وخته پوري يې د خوب لپاره ښوروی لکه کوچنی چي ښورول کيږي تر دې چي

نَامَ ثُمَّ دَعَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَالاً فَأَخْبَرَ بِلَالٌ رَسُوْلَ اللهِ

هغه بيده سو ، تر دې وروسته رسول الله ﷺ بلال را وغوښتی، بلال رضي الله عنه بيان کړی

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ الَّذِيْ أَخْبَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه صورت کوم چي بيان کړی وو رسول الله ﷺ

أَبَا بَكْرٍ فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ . رواه مالك مرسلا .

ابوبکر صديق ته بيان کړی وو ، ابوبکر صديق چي د بلال خبري واورېدی نو وه يې ويل زه شاهدي ورکوم چي تاسو د الله رښتوني رسول ياست . مالک مرسلا .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۴- ۱۵، رقم: ۲۶.

**تشريح** : دا ډول يوه بله واقعه په حديث نمبر پنځم کي ذکر سوې ده مګر په ښکاره دا معلوميږي چي دا واقعه د اولي واقعې څخه بيله يوه دوهمه واقعه ده چي هغه واقعه خو د مديني او خيبر په لار کي پيښه سوې ده او دا واقعه څرنګه چي ددې حديث څخه ثابتيږي د مکې او مدېنې په مينځ کي پيښه سوې ده .

ددغه حديث په الفاظو (ان ينادي للصلوة او يقيم) کي لفظ د (او) د جمعي مفهوم اداء کوي څرنګه چي حرف د (و) د دوو شيانو په جمع کولو په موقع باندي استعماليږي همداسي ددې معنی څرنګه چي په ترجمه کي ښکاره سوې ده دابه وي چي رسول الله ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته د اذان او اقامت کولو حکم ورکړ بيا لفظ د او خپل حقيقي مفهوم يعني شک ښکاره

کوي چي د رسول الله ﷺ بلال رضی اللہ عنہ ته د اذان يا د اقامت ويلو حكم وركړ مگر صحيح او غوره دادي ځکه چي ددې تائيد د ابو داود د روايت څخه هم کيږي چي د هغه الفاظ دادي انه ﷺ امر بلالا بالاذان والاقامة يعني رسول الله ﷺ بلال رضی اللہ عنہ ته د 'اذان' او اقامت حكم وركړ.

فليصلها كما كان يصليها في وقتها : هغوى دي دا لمونځ داسي کوي لکه څرنگه چي دا يې په دا وخت كي كوى د الفاظ په ښکاره پر دې خبره دلالت کوي که جهري لمونځ قضاء سوى وي نو د هغه قضاء دي هم په جهر سره وکړي او که خفي لمونځ قضاء سوى وي نو د هغه قضاء دي هم سري يعني په پټه خوله سره کول واجب دي.

اضجعه د اسنده په مفهوم کي دى يعني شيطان بلال رضی اللہ عنہ ته داسي چم وکړ چي پر هغه غفلت خپور سو څرنگه چي د مخکي واقعې په اړه تير سوي دي چي بلال رضی اللہ عنہ د تهجد د لمانځه څخه د فارغه کېدو وروسته د خپل کجاوې سره په تکيه کولو بيده سوى دى.

دلته يو سوال دا پيداکيږي چي رسول الله ﷺ د قضاء د لمانځه کولو وروسته صحابه کرامو ته د مخاطب کولو سره ان الله قبض ارواحنا ( الله تعالى ز موږ روحونه قبض کړي وه ) فرمايلو سره دې ته اشاره کړې ده چي ز موږ د ټولو په دغه موقع باندي بيده کيدل په حقيقت کي د تقدير الهي په وجه وو چي الله تعالى پر موږ داسي د غفلت خوب مسلط کړ چي موږ د لمانځه پر وخت بېداره نه سوو ، ليکن وروسته نبي کريم ﷺ ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د مخکني حال بيانولو سره سره د خوب د دغه غفلت نسبت شيطان و طرفته وکړى چي شيطان داسي يوه طريقه اختيار کړه چي بلال رضی اللہ عنہ غافل سو او بېده سو او پر وخت بيداره سو چي د هغه نتيجه دا سوه چي ټول خلګ بېده پاته سول او لمونځ قضاء سو ، ددې څخه په ښکاره دا معلوميږي په دوو خبرو کي تعارض په نظر راځي چي مخکي خو د غفلت نسبت يې الله تعالى ته وکړ بيا وروسته ددې غفلت نسبت يې د شيطان خوا ته وکړ .ددې جواب دادى چي دا مسئله خلک افعال سره متعلق دي يعني الله تعالى په دې خلکو کي د نسيان او غفلت پيداکولو اراده وکړ نو هغه شيطان په دې خبره قادر کړ چي هغه مذکوره طريقې سره يعني د بلال رضی اللہ عنہ په وجه خلک د غفلت په خوب کي مبتلا کړي.

دا حديث د رسول الله ﷺ د معجزې پوره تائيد کوي چي د معجزې په توګه يې د بلال رضی اللہ عنہ د بيده کيدو پوره حقيقت بيان کړ سره ددې چي په خپلو ښکاره سترګو سره يې ددې حقيقت مشاهده نه وه کړې نو حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د اشهد انک رسول الله په ويلو سره ددې اعجازي شان تصديق وکړ.

﴿۶۳۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَصْلَتَانِ

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : دوه کارونه دي

مُعَلَّقَتَانِ فِيْ أَعْنَاقِ الْمُؤَذِّنِيْنَ لِلْمُسْلِمِيْنَ صِيَامُهُمْ وَصَلَاتُهُمْ . رواه ابن ماجه

د آذان کونکو پر غاړه د مسلمانانو لپاره (يعني دوې ذمه داری دي) د هغوی روژې او د هغوی لمونځ (يعني د هغوی په آذان سره د خلکو روژې او لمنځونه) .ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۲۳۶، رقم: ۷۱۲.

**تشريح**: مطلب دادی چې د مسلمانانو دوه اهم او بنيادي اعمال داسي دي چې پر مؤذن باندي موقف دي يعني مؤذنان د هغه اعمال د صحت او تکميل ذمه داروي .

اول شی خو روژه ده چې مسلمانان د مؤذنان په اذان باور کولو سره روژه ماتوي، دوهم لمونځ دی چې د هغه اداکول د مؤذنان د اذان سره وي .

په هر حال د حديث حاصل دادي چې مؤذنانو ته دا پکار ده چې هغوی د خپل دغه عظيمي ذمه داری په احساس کولو سره په ډير احتياط سره او د وختونو په پوره رعايت کولو سره اذان کوي چې د مسلمانانو په دغه دوو اعمالو کي خلل واقع نسي .

======

# بَابُ الْمَسَاجِدِ وَ مَوَاضِعِ الصَّلٰوةِ

## د مسجدونو او د لمانځه د ځايونو بيان

دلته د لمانځه د مقاماتو څخه هغه ځايونه مراد دي چې په هغه کي لمونځ کول مکروه يا غير مکروه دی د داسي ځايو وضاحت به په راتلونکو حديثونو کي وکړل سي د مسجدونو فضائل او برکاتو په اړه ډير زيات احاديث نقل سوي دي په هغو کي چې کوم حديثونه مشکوة نقل کړي دي هغه به دد‌ې عنوان لاندي نقل کړل سي البته هغه حديثونه چې هغه صاحب مشکوة نه دي نقل کړي بلکه د حديثو په نورو کتابو کي نقل سوي دي د حصول سعادت او برکت له کبله په هغو کي د ځيني ترجمي دلته نقل سوي دي چې د مسلمانانو په ذهن کي د مسجدو د عظمت او فضيلت احساس ځای ونيسي چې د هغه په وجه هغوی د الله تعالی د عبادت لپاره مسجدو ته تلل د ديني او دنياوي فلاح او کاميابۍ ذريعه وګڼي .

حضرت ابو ذر غفاري ﷺ خپل زوي ته په نصیحت کولو سره و فرمایل اې زما زویه! مسجد ستا کور کیدل پکار دي ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي مسجدونه د پرهیز ګارو کورونه دي نو د چا کور چي مسجد وي الله تعالی د راحت او رحمت او پل صراط باندي جنت و خوا ته د هغه د تیریدو ضامن دی حضرت عبد الله بن مغفل ﷺ فرمایي موږ ته به بیان کیدی چي شیطان څخه د ساتني لپاره مسجد یوه ټینګه قلعه ده ،

حضرت عمر فاروق ﷺ راوي دی چي مسجدونه د مځکي پر سر د الله ﷻ کورونه دي او د چاچي زیارت سوی دی پر هغه دا حق دی چي هغه د خپل زیارت کونکي اعزاز او اکرام کوي یعني کوم سړی چي مسجد ته راځي هغه ګویا د الله تعالی زیارت کوي همداسي مسجدو ته تلونکي بندګان زیارت کونکي سول او د چا چي زیارت وسو هغه د الله تعالي ذات سو، نو الله تعالیمسجد ته د راتلونکو بندګانو اعزاز او اکرام کوي او هغوی د خپل فضل اوکرم په سعادتونو سره نازوي .

رسول الله ﷺ وفرمایل هر کله چي یو سړی په مسجد کي د لمانځه کولو لپاره الله تعالی د یادولو لپاره ځای نیسي الله تعالی هغه ته د رحمت او شفقت په نظر ګوري څرنګه چي د هغه سړي بکورني چي د یو وخت وروسته خپل کورته راستنه سوې وي د هغه سره محبت او په شفقت سره مخامخ کیږي، په دې خبره پوه سه چي کوم حدیثونه چي د هغه څخه دا معلومیږي چي په مسجد کي یو مخصوص ځای داسي اختیاروي چي د هغه ځاي څخه ماسوا په بل ځاي کي نه کښیني نو دا ممنوع ده که څه هم د هغه یو مخصوص ځای اختیارول دلمانځه او د الله تعالی د ذکر لپاره وي .ځکه چي په داسي کولو سره دریا او ځان ښوونی د شبهې کیدو خطره ده .او دا ډول نور هغه حدیثونه چي په هغو کي د مسجد د ځاي نیولو د فضیلت اظهار کیږي په دې خبره محمول دي چي مسجد د یو دنیاوي غرض او منفعت څخه قطع نظر خاص لمونځ کولو او د الله تعالی په ذکر کي د مشغولیدو په نیت سره وګرځول سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۶۳۸﴾ : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ دَعَا

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی کله چي رسول الله ﷺ (د مکې د فتح په ورځ) خانه کعبې ته داخل سو نو دعاء يې وکړل

فِيْ نَوَاحِيْهِ كُلِّهَا وَلَمْ يُصَلِّ حَتّٰى خَرَجَ مِنْهُ فَلَمَّا خَرَجَ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِيْ قُبُلِ

د هغې په ټولو كنجانو كي مګر لمونځ يې نه وكړ او د باندي راووتی بيا يې دوه ركعته لمونځ ادا كړ مخته

الْكَعْبَةِ وَقَالَ هٰذِهِ الْقِبْلَةَ . رواه البخاري . ورواه مسلم عنه عن أسامة بن زيد

د كعبې او وه يې فرمايل دا قبله ده . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\۵۰۱، رقم: ۳۹۸. و مسلم ۲\۹۶۸، رقم: ۳۹۵- ۱۳۳۰.

**تشريح** : كعبې شريفي ته په اشاره كولو سره دا فرمايل چي دا قبله ده ددې خبري اعلان كول وه چي دغه خوا ته په مخ كولو سره د لمانځه حكم په دائمي توګه سوی دی او دا قبله تل سوې ده چي اوس به په هيڅ حالت كي نه منسوخ كيږي ددې مطلب دا نه وو چي قبله دغه مخكي خوا ته ده نورو خواوو ته په متوجه كيدو سره لمونځ كول صحيح نه دي او نه ددې مطلب دادی چي د دباندي خوا څخه د قبلې طرف ته متوجه كيدل معتبر دي دننه برخه كي لمونځ صحيح نه دي لكه څرنګه چي امام مالک رحمه الله فرمايي چي د كعبې شريفي دننه فرض لمونځ كول صحيح نه دی، په كعبه كي دننه نفل كول په اتفاق سره د ټولو علماؤ په نزد جائز دي ځكه چي راتلونكی د عبد الله بن عمر رضي الله عنه حديث ددې جواز واضح دليل دی.

البته د فرض لمانځه په اړه د علماؤ په نزد اختلاف دی اكثر علماء په كعبه كي دننه فرض كول هم جائز ګرځوي مګر امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په كعبه كي دننه د فرض لمانځه د اداكولو څخه منعه كوي.

﴿۶۳۹﴾: وَعَنْ عبدالله ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ

د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دننه سو

الْكَعْبَةَ هُوَ وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَعُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ الْحَجَبِيُّ وَبِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ

كعبې ته او اسامه بن زيد، عثمان بن طلحه الحجبي او بلال بن رباح

فَأَغْلَقَهَا عَلَيْهِ وَ مَكَثَ فِيهَا فَسَأَلْتُ بِلَالاً حِينَ خَرَجَ مَا صَنَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

او بلال يا عثمان د ننه كعبه بنده كړه (چي د خلكو ګڼه ګوڼه نه سي) او هلته يې لږ وخت قيام وكړ،

عبد الله بن عمر رضي الله عنه وايي كله چي بلال رضي الله عنه د كعبې څخه راووتی نو ما پوښتنه وكړه چي رسول الله ﷺ دننه څه وكړل؟

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ جَعَلَ عَمُوْدًا عَنْ يَسَارِهٖ وَعَمُوْدَيْنِ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَثَلَاثَةَ

هغه وويل: يوه ستنه د رسول الله ﷺ چپه خوا ته وه او دوې ستني راسته خوا ته وې او درې

أَعْمِدَةٍ وَرَاءَهٗ وَكَانَ الْبَيْتُ يَوْمَئِذٍ عَلٰى سِتَّةِ أَعْمِدَةٍ ثُمَّ صَلّٰى. متفق عليه

ستني يې وروسته وې او په دغه ورځو كي په خانه كعبه كي شپږ ستني وې (نن سبا درې ستني لري) او بيا رسول الله ﷺ د هغو په منځ كي لمونځ ادا كړ. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح ا ي) ۱\۵۷۸، رقم: ۵۰۵، ومسلم: ۲\۹٦٦، رقم: ۳۸۸ - ۱۳۲۹.

**تشريح**: ددې حديث څخه خو دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ په خانه كعبه كي دننه لمونځ كړی وو مګر ددې څخه مخكي دا مضمون د اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه د ابن عباس رضي الله عنه روايت سوی حديث تير سوي دي د هغه څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ په خانه كعبه كي دننه لمونځ نه وه كړی نو په دغه دواړو حديثونو كي مطابقت به داسي وي چي دا به وويل سي چي د رسول الله ﷺ سره دا حضرات په خانه كعبه كي دننه داخل سول او دروازه بنده كړل سول نو رسول الله ﷺ په دعا كولو باندي ليدو سره اسامه رضي الله عنه هم يو بل كونج ته په ورتلو سره په دعا كي مشغول سو رسول الله ﷺ چي په كوم كونج كي ولاړ وو اسامه رضي الله عنه خو ليري وو مګر بلال رضي الله عنه د رسول ﷺ نژدې وو ځكه بلال رضي الله عنه رسول الله ﷺ په لمانځه كولو وليدی او اسامه رضي الله عنه اول خو د رسول الله ﷺ څخه په فاصله وو دوهم دا چي خپله هم په لمانځه كي مشغول وو بيا داچي رسول الله ﷺ هم لمونځ په تلوار كړی وو ځكه هغه رسول الله ﷺ هغه پر لمانځه كولو باندي ونه ليدی.

بيا ددې څخه پرته داهم نقل سوي دي چي د بيت الله د ديوالونو څخه د عكسونو ليري كولو لپاره رسول الله ﷺ اسامه رضي الله عنه د اوبو راوړلو لپاره استولی وو ځكه نو كيداى سي چي كوم وخت هغه دباندي راغلی نو رسول الله ﷺ به په هغه وخت كي لمونځ كړی وو په هر حال اسامه رضي الله عنه او بلال رضي الله عنه دواړو د خپل علم او مشاهدې سره سم خبر وركړی دی او بهر صورت د لمانځه ادا كول ثابت كول مختار دي ددې نفي نسته.

﴿۶۴۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةٌ فِي

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : لمونځ ادا کول

مَسْجِدِيْ هٰذَا خَيْرٌ مِنْ اَلْفِ صَلَاةٍ فِيْمَا سِوَاهُ اِلاَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ. متفق عليه

زما په دغه مسجد (مسجد نبوي) کي پرته د مسجد حرام څخه تر نورو مسجدونو تر زرو لمونځونو غوره دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۳\۶۳، رقم: ۱۱۹۰ ومسلم ۲\۱۰۱۲، رقم: ۵۰۵- ۱۳۹۴.

**تشريح**: مسجد حرام ځکه مستثنی کړل سوی دی چي په مسجد حرام کي نه يوازي داچي د نورو مسجدونو په مقابله کي زيات بابرکت دی بلکه د خپل عظمت، برکت او فضيلت په اعتبار د مسجد نبوي څخه هم افضل دی لکه چي نقل سوي دي چي په مسجد حرام کي د يوه لمونځ ثواب د يوه لک لمنځو د ثواب برابر دی.

اوس په دې کي د علماؤ اختلاف دی چي په حرم کي هغه کوم ځای دی چي هلته د لمانځه په اداکولو باندي دومره ثواب حاصليږي نو اول قول خو دادی چي هغه يو ځانګړی ځای نه دی بلکه ټول حرم ته د دې برکت او فضيلت حاصل دی.

دوهم قول دادی چي په کوم ځاي کي حماعت کيږي، د علماء حنفيه د اقوالو څخه هم دا ښکاره کيږي او دا قول ځينو شافعي علماؤ هم اختيار کړی دی د علماء حنفيه په نزد د ثواب ددې زياتوب فضيلت په خاصه توګه سره د فرائض سره متعلق دي د نوافل سره نه دي، دريم قول دادی چي هغه ځای کعبه ده دا څلورم قول په دغه څلورو اقوالو کي تر ټولو ضعيف دی (څلورم قول دلته نه دی ذکر سوی.

﴿۶۴۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَاتَشُدُّوا الرِّحَالَ اِلاَّ اِلٰى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ اَمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْمَسْجِدِ الْاَقْصٰى وَمَسْجِدِيْ هٰذَا. متفق عليه

د درو مسجدو څخه پرته بل مسجد ته کجاوې مه تړئ (يعني سفر مه کوئ) مسجد حرام ته،

مسجد اقصی ته او زما دغه مسجد ته. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۳\۷۰، رقم: ۱۱۹۷، ومسلم ۲\۹۷۶، رقم: ۴۱۵- ۸۲۷.

**تشريح**: د حديث څخه دا معلوميږي چي د دغو درو مسجدو څخه پرته چي الله تعالی د هغه عظمت او بزرګي په وجه هغه ته امتيازي شان عطا کړی دی د يو بل ځاي سفر جائز نه دی مګر په دې پوه سئ چي ددې ممانعت او نهي تعلق تقرب او عبادت سره دی يعني تقرب الي الله او عبادت ګڼلو سره دی ددې درو ځايو څخه پرته د بل هيڅ ځای سفر کول نه دي پکار.

هو که چيري يو بل ځای د علم حاصلولو، حقوق اداء کولو، تجارت يا داسي بل يو ضرورت په وجه سفر کول وي نو دا بيل شی دی په دې کي څه قباحت نسته البته د اولياء الله د قبرونو زيارت کول او متبرک ځايونو ته د تللو په اړه د علماؤ اختلاف دی ځينو حضراتو خو دا مباح ګرځولي دي او د ځينو حضراتو رايه داده چي دا حرام دي يعني صرف د اولياء الله زيارت کول او متبرک ځايو ته رسيدو سره د حصول برکت له خاطره مستقل سفر کول مطلقا جائز نه دي.

ځيني حضراتو ددې حديث مطلب دا بيان کړی دی چي ددغه درو مسجدونو څخه پرته د بل ځای د نذر په نيت د سفر قصد کول نه دی پکار، همداسي که د دغه درو مسجدونو څخه پرته د يو بل ځای نذر ومنل سي نو هغه نذر پوره کول واجب نه دي ځيني علماء فرمايي چي ددې نهي تعلق يوازي د مسجدونو سره دی يعني حصول برکت او زيارت په اراده د درو مسجدونو څخه پرته د يو بل مسجد لپاره سفر کول جائز نه دي نو په دې حديث کي د مسجدونو څخه پرته نور مقامات د مفهوم څخه خارج دي، شيخ عبد الحق دهلوي رحمة الله عليه فرمايي ددې حديث مطلب دانه دی چي د دغه درو مقاماتو څخه پرته د نورو ځايونو سفر کول صحيح نه دي بلکه ددې ارشاد مقصد په اصل کي ددغه مسجدونو ارزښت، عظمت او فضيلت او ددې لپاره د سفر کولو سعادت او خوش بختي ښکاره کول دي يعني د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي د مسلمانانو په ذهن کي دا احساس پيدا کيدل پکار دي چي که هغوی سفر کول غواړي نو د دغه درو مسجدو د زيارت لپاره دي سفر وکړي چي دا مساجد تر ټولو زيات باعظمت او فضيلت او متبرک ترين ځايونه دي ددې څخه پرته د يو بل ځای سفر کول د فلاح او سعادت خبره نه ده بلکه بې فائدې پريشاني زغمل ده.

شاه ولي الله دهلوي رحمة الله عليه په خپل مشهور معرکة الاراء تصنيف حجت الله البالغة کي ددې حديث وضاحت په دوران کي تحرير کړي دي چي زه خو دا وايم چي د جاهليت په زمانه

كي خلكو يو ځو ځايونه د خپل ګمان او خيال سره سم باعظمت او بابركت تصور كولو سره هلته سفر كوي او د هغه ځاى زيارت كول به يې د سعادت او بركت ذريعه ګڼل ښكاره خبره ده چي دا ډول د خپل وهم او ګمان سره سم يو ځاى او مقام باعث بركت او فضيلت ګڼل او بيا په خاصه توګه د هغه د زيارت لپاره تلل نه دا چي يوازي د حقيقت څخه انحراف او د عقيدې او ذهن و فكر د كمزورى نښه ده بلكه د فتنې او فساد سبب هم دى ځكه رسول الله ﷺ پر عقيده او عمل باندي قايم ساتلو په خاطر دا غلطه طريقه بنده كړې وه چي اسلامي شعار سره غير اسلامي شعار جمع سي او دا طريقه د غير الله د عبادت او پرستش سبب جوړه نسي نو زما په نزد صحيح خبره داده چي د اولياء الله مزارونه د عبادت كولو ځايونو ترډې چي كوه طور دا ټول په دې اړه برابر دي چي په خاصه طور سره زيارت يا حصول د بركت او سعادت جذبې سره ددې مقامات سفر كول مناسب نه دي .

﴿٦٤٢﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په منځ كي

بَيْتِي وَمِنْبَرِي رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ وَمِنْبَرِي عَلَى حَوْضِي . متفق عليه

زما د كور او زما د منبر د جنت د باغو څخه يو باغ دى او زما منبر زما پر حوض دى . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۳\۷۰، رقم: ۱۱۹٦، ومسلم ۲\۱۰۱۱، رقم: ۵۰۲- ۱۳۹۱.

**تشريح** : ددې ارشاد مطلب دادى چي كوم سړى زما مكان او مسجد نبوي كي زما د منبر واقع ځاى باندي عبادت كوي نو هغه ته به ددې عظيم سعادت په صله كي د جنت يو باغ حاصليږي او كوم سړى چي زما منبر ته نژدې په عبادت كي مشغول وي نو د قيامت په ورځ به هغه په حوض كوثر اوبه كيږي، امام مالک رحمة الله عليه فرمايي دا حديث خپله ښكاره معنى باندي محمول دى ځكه چي د روضه معنى د ټوټې ده نو ددې مطلب به دا وي چي د رسول الله ﷺ د مكان او منبر په مينځ كي هغه ټوټه چي د جنت څخه پر مځكه دي ځاي ته منتقل كړل سوې وه او دا ټوټه د مځكي د نورو برخو په ډول د قيامت په ورځ به نه فناء كيږي بلكه همداسي به په جنت كي ستنيږي .

علامه توربشتي رحمة الله عليه فرمايي چي د مسجد نبوي منبر او حجره رسول ﷺ په مينځ كي ځاى ته روضه وايي ځكه ويل كيداى سي چي دلته د رسول الله ﷺ د قبر زيارت

کونکي هلته حاضر ملائکه او جن او انس همیشه په عبادت او ذکر الله کي مشغول وي یو جماعت ځي نو دوهم جماعت راځي همداسي مسلسل هلته د عبادت کونکو د تلو راتلو لړاره سلسله جاري وي نو ددې مناسبت سره دا ځاي په روضه سره تعبیر فرمایل سوی دی ځرنګه چي د ذکر خلکو ته ریاض جنت فرمایل سوي دي .

﴿۶۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به راتلی

مَسْجِدَ قُبَاءٍ كُلَّ سَبْتٍ مَاشِيًا وَرَاكِبًا وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ . متفق علیه

مسجد قباء ته هره د شنبې ورځ پر پښو هم او پر سپرلي هم او هلته به یې دوه رکعته لمونځ ادا کاوه . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۳\۶۹، رقم: ۱۱۹۳، ومسلم: ۲\۱۰۱۶، رقم: ۵۱۶- ۱۳۹۹.

**تشریح** : قباء د یوځای نوم دی چي مدینې منورې څخه په درې میله فاصله باندي واقع دی دا هغه ځای دی چي رسول الله ﷺ د مکې معظمې څخه د هجرت کولو په وخت کي مدینه منوره کي د داخلیدو څخه مخکي قیام کړی وو او دلته یې یو مسجد جوړ کړی چي د مسجد قباء په نامه سره مشهور سو ددې مسجد فضیلت ډیر زیات دی علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمایي چي د نبي کریم ﷺ دا صحیح ارشاد منقول دی چي په مسجد قباء کي لمونځ کول د عمرې ادا کولو په ډول دی ،جلیل القدر او باعظمت صحابي سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه فرمایي چي بیت المقدس کي دوه واره حاضري ورکولو څخه زیات زه دا خوښوم چي په مسجد قباء کي لمونځ وکړم او که خلکو ته معلومه سي چي مسجد قباء کي د لمانځه کولو څومره ثواب دی نو هغوی به د سفر تکلیفونه زغملو سره دلیري لیري ځایو څخه د غه مسجد یعني مسجد قباء ته راتلل پیل کړي .

په هر حال د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي د هري شنبې په ورځ به مسجد قباء ته راتللی او په هغه کي به یې دوه رکعته تحیة المسجد او یا یو بل لمونځ چي د تحیة المسجد قائم مقام وي کوی د رسول الله ﷺ د دغه مبارک عمل څخه دا معلومېږي چي د شنبې په ورځ علماء او صلحاء او بزرګانو سره ملاقات کول سنت دي .

﴿٦٤٤﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تر ټولو غوره

الْبِلاَدِ إِلَى اللّٰهِ مَسَاجِدُهَا وَأَبْغَضُ الْبِلاَدِ إِلَى اللّٰهِ أَسْوَاقُهَا . رواه مسلم

په ټولو ځايونو کي د الله جل جلاله په نزد مسجدونه دي او بدترين ځايونه بازارونه دي. مسلم

**تخريج**: صحيح امسلم ۱\ ۴۶۴، رقم: ۲۸۸- ۶۷۱.

**تشريح** : مسجدونه د الله جل جلاله د عبادت ځايونه دي ځکه د الله جل جلاله په نزد مساجد محبوب او خوښ مقامات دي ددې مطلب دادی چي کوم سړی په مسجد کي وي . الله جل جلاله به پر هغه خپل د رحمت سايه کوي او هغه په خير او نيکۍ سره نازوي د دې په مقابله کي بازار هغه ځای دی چيري چي د شيطان د ټولو څخه زيات تسلط وي حرص، طمع، خيانت او بد دیانتي، درواغ او د الله تعالى د ياد څخه غافل کيدل هغه شيان دي چي د بازار څخه جلا کونکې برخه ده او د شيطان د خوشحالۍ ذريعه ده د الله تعالى په نزد بازارونه بد ترين او ناخوښه ځايونه دي ددې مطلب داسو چي کوم سړي د خپل ضروریاتو د تکميل څخه پرته صرف د سيل او تفريح په غرض په بازارونو کي اوسي پر هغه د محرومۍ او خرابۍ سايه کيږي او هغه د الله تعالى د رحمت څخه ليري وي ، دلته يو اعتراض پيدا کيږي چي بت خانې، شراب خانې وغيره ځايونه ولي نه دي ويل سوي او بازار ته ولي ويل سوي دي؟ ددې جواب دا کيدای سي چي د بازارونو قائمولو حکم د شارع د خوا څخه دی او دا شيان داسي دي چي د هغه د جوړولو او ساتلو حکم د شارع د خوا څخه وي نو د ارشاد مطلب دادی چي د کوموځايونو جوړول او قائمول جائز دي په هغه کي بد ترين او ناخوښه شی بازار دی .

﴿٦٤٥﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ بَنٰي

د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي جوړ کړي

مَسْجِدًا لله بَنٰي اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ . متفق عليه

مسجد د الله جل جلاله د رضا لپاره ، الله تعالى د هغه لپاره په جنت کي يو کور جوړوي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\ ۵۴۴، رقم : ۴۵۰، ومسلم: ۱\ ۳۷۸، رقم: ۲۴- ۵۳۳.

**تشریح**: د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره د مسجد جوړولو مطلب دادی چي کوم سړي خاص د الله تعالی د رضا او خوښۍ لپاره مسجد جوړوي نه چي د نامه لپاره یا د ښودني لپاره چي خلک ووایي دا سړی ډیر بزرگ دی نو الله تعالی د هغه په بدله کي د هغه سړي لپاره په جنت کي ځای جوړوي ځکه دا ویل کیږي چي کوم سړی مسجد جوړولو سره پر هغه خپل نوم لیکي چي د تشهیر ذریعه سي نو دا هغه د عدم اخلاص دلیل دی.

په لفظ مسجدا کي عمومیت د تقلیل لپاره دی یعني که څه هم یو سړی مسجد کوچنی جوړ کړي هغه ته به د هغه په بدله کي هم هغسي ورکوي څرنګه چي د یو لوی او عالیشان مسجد جوړونکي ته یې ورکوي، په یوه روایت کي داسي الفاظ دي اګر که هغه مسجد د مرغه د ځالي په ډول وي. دا د مسجد په تنګوالي او اختصار کي مبالغه ده ددې مطلب دادی چي الله تعالی خو نیت ته ګوري که یو سړي د دنیا د شهرت او ښووني د جذبې څخه لاس په سر کیدو سره یوازي د الله تعالی د رضا او خوښۍ په غرض او د خپل نیت په پوره اخلاص سره مسجد جوړوي نو هغه به په جنت کي د الله له طرف څخه د یوه مکان حقدار وي اګر که د هغه جوړ سوی مسجد څومره کوچني او مختصر وي.

﴿٦٤٦﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ غَدَا

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د ورځي په لومړی برخه کي

إِلَى الْمَسْجِدِ أَوْ رَاحَ أَعَدَّ اللّٰهُ لَهُ فِي الْجَنَّةِ نُزُلاً كُلَّمَا غَدَا أَوْ رَاحَ. متفق علیه

یا آخره برخه کي مسجد ته ولاړ سي نو الله تعالی په جنت کي د هغه میلمستیا کوي که هغه سهار ولاړ سي که ماښام. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\۱۴۸، رقم: ٦٦٢ و مسلم: ۱\۴۳، رقم: ۲۸۵- ٦٦٩.

**تشریح**: په دغه حدیث شریف کي دې ته اشاره ده چي مسجد د الله تعالی کور دی کوم سړی چي مسجد ته ځي نو الله تعالی د خپل زیارت کونکو میلمستیا کوي او د خپل رحمت څخه یې نه جلا کوي، مسجد ته د تللو ډیر نیتونه کیدای سي په هغه کي یو نیت دا هم کیدای سي ددې کتاب په پیل کي حدیث انما الاعمال بالنیات د تشریح په څنګ کي د نیت ددې مسئلې او ددې اقسامو په مفصل توګه سره ذکر سوی دی.

﴿٦٤٧﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوموسى الاشعري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَعْظَمُ النَّاسِ أَجْرًا فِي الصَّلَاةِ أَبْعَدُهُمْ إِلَيْهَا مَمْشًى فَأَبْعَدُهُمْ وَالَّذِي يَنْتَظِرُ

د لمانځه تر ټولو زيات ثواب هغه چا ته رسيږي چي د هغه کور تر ټولو ليري وي نو ليري دي وي دوى له جهته د راتللو او کوم څوک چي انتظار کوي

الصَّلَاةَ حَتَّى يُصَلِّيَهَا مَعَ الْإِمَامِ أَعْظَمُ أَجْرًا مِنَ الَّذِي يُصَلِّيهَا ثُمَّ يَنَامُ.

متفق عليه

د لمانځه او د امام سره لمونځ وکړي نو د هغه ثواب تر هغه چا زيات دى چي يوازي لمونځ وکړي او بيده سي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ١٢\١٣٧، رقم: ٦٥١ ومسلم ١\٤٦٠، رقم: ٢٧٧- ٦٦٢.

**تشريح** : د حديث د دوهم جز مطلب دادى چي کوم سړى په لمانځه کي ددې لپاره ځنډ وکړي چي د امام سره لمونځ وکړاى سي نو د هغه سړي لپاره په مقابله کي چي د امام انتظار کولو بغير په تنها لمونځ کولو سره بيده سي که څه هم هغه په مختار وخت کي لمونځ ولي ادا نه کړي زيات ثواب حاصليږي همداسي يو سړى هغه دى چي په کوچني او مختصر مسجد کي لمونځ کوي يا د يو داسي امام سره لمونځ اداء کوي چي د امامت حق لري او دوهم هغه سړى دى چي د انتظار څخه وروسته په لوى جماعت سره لمونځ کوي يا د داسي امام سره لمونځ اداء کوي چي د امامت حق لري د اول سړي په مقابله کي خصوصا هر کله چي هغه د سستۍ او تلوار په جذبې سره داسي کوي زيات ثواب حاصليږي .

﴿٦٤٨﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ خَلَتِ الْبِقَاعُ حَوْلَ الْمَسْجِدِ فَأَرَادَ بَنُو سَلِمَةَ أَنْ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي مسجد ته نژدې څه ځايونه خالي سول نو راده وکړه د بنو سلمه د قبيلې خلکو

يَنْتَقِلُوا قُرْبَ الْمَسْجِدِ فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

چي نقل سي نژدې مسجد ته ، رسول الله ﷺ ته چي دا حال معلوم سو نو و يې فرمايل

لَهُمْ بَلَغَنِي أَنَّكُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تَنْتَقِلُوا قُرْبَ الْمَسْجِدِ قَالُوا نَعَمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

دوی ته: ما ته څرګنده سوې ده چي تاسو مسجد ته د نژدې راتلو اراده لرئ؟ هغوی وويل: هو، اې دالله رسوله!

قَدْ أَرَدْنَا ذٰلِكَ فَقَالَ يَا بَنِي سَلِمَةَ دِيَارَكُمْ تُكْتَبْ آثَارُكُمْ دِيَارَكُمْ تُكْتَبْ آثَارُكُمْ . رواه مسلم

موږ داسي اراده کړې ده رسول الله ﷺ وفرمايل اې بنو سلمه! تاسو په خپلو زړو کورونو کي اوسئ (مسجد ته په راتلو کي) ستاسو قدمونه په حساب کي ليکل کيږي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۴۶۲، رقم: ۲۸۰- ٦٦٥.

**تشريح**: بنو سلمه انصار د مديني يو خاندان دی ددې خاندان افراد د مسجد نبوي څخه ليري اوسيدل کوم وخت چي مسجد نبوي ته نژدې اوسيدونکو خلکو کي د ځينو خلکو د وفات يا دوهم ځای ته د تلو په وجه د هغو ځايونه خالي سوه نو بنو سلمه مسجد نبوي ته د نژدې اوسيدو د سعادت په وجه هغه ځايو ته د نقل کېدو اراده وکړه، رسول الله ﷺ چي د هغوی ددغه ارادې څخه خبر سو نو هغوی ته يې وفرمايل چي دا وخت تاسو په کوم ځای کي ياست هغه ځای د سعادت او خير په وجه ستاسو لپاره غوره دی ځکه چي تاسو خلک څومره د مسجد څخه ليري ياست مسجد ته د راتلو لپاره به تاسو ته هغومره تلل پکار وي او د لمانځه لپاره چي تاسو څومره زيات قدمونه اخلئ ستاسو په اعمال نامه کي به د هغه په بدله کي زيات ثواب ليکل کيږي ځکه نو خير او بهتري په دې کي ده چي تاسو په خپل پخواني ځای کي اباد اوسئ.

﴿۶۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَةٌ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اووه خلک دي چي

يُظِلُّهُمُ اللّٰهُ فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ الْإِمَامُ الْعَادِلُ وَشَابٌّ نَشَأَ بِعِبَادَةِ اللّٰهِ

الله پاک به يې په هغه ورځ په خپل سايه کي ساتي په کومه ورځ چي د الله جل جلاله د سايې څخه پرته

بله سايه نه وي ، يو عادل امام، دوهم هغه زلمی چي خپله ځواني د الله ﷻ په عبادت کي تيره کړي

وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ فِي الْمَسَاجِدِ اِذَا خَرَجَ مِنْهُ حَتّٰى يَعُوْدُ اِلَيْهِ وَرَجُلاَنِ

دريم هغه سړی چي د هغه زړه د مسجد سره لګېدلی وي کله چي هغه د مسجد څخه راوځي تر څو پوري چي مسجد ته بيرته نه يې تللی نو بې تابه وي، څلورم هغه دوه خلک چي

تَحَابَّا فِي اللّٰهِ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ وَرَجُلٌ ذَكَرَ اللّٰهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ

يو ازي د الله ﷻ لپاره په خپل منځ کي مينه ساتي که يو ځای کيږي نو دالله ﷻ د رضا لپاره او که بيليږي نو دالله ﷻ د رضا لپاره، پنځم هغه سړی چي په يوازيوالي کي الله ﷻ يادوي او بهيږي

عَيْنَاهُ وَ رَجُلٌ دَعَتْهُ اِمْرَاَةٌ ذَاتَ حَسَبٍ وَّ جَمَالٍ فَقَالَ اِنِّیْ اَخَافُ اللّٰهَ وَ رَجُلٌ

ستر ګي يې د الله ﷻ د ذکر له کبله ، شپږم هغه کس چي هغه يو خانداني او ښکلې ښځه د بدي په ارادې سره وغواړي او دی ورته ووايي چي زه د الله ﷻ څخه بيريږم، اووم هغه کس چي

تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَاَخْفَاهَا حَتّٰى لاَتَعْلَمُ شِمَالُهُ مَاتُنْفِقُ يَمِيْنُهُ . متفق عليه

داسي په پټه خيرات کوي چي د هغه چپه لاس ته هم څرګنده نه وي چي د هغه راسته لاس څه مصرف کړي دي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۴۳، رقم: ٦٦٠ و مسلم ۲\ ۷۱۵ - ۷۱٦، رقم: ۹۱- ۱۰۳۱.

**تشريح** : دلته د هغو اوو خوشبختو خلکو وضاحت سوی دی چي د خپل اعمال او کردار په وجه به د قيامت په ورځ د حشر په ميدان کي د الله تعالی په سايه کي وي يعني الله تعالی به دغه کسانو ته د رحمت په لمن کي ځای ورکوي او هغوی به د آخرت د سختيو څخه ساتي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د الله تعالی د سايې څخه مراد د عرش سايه ده يعني د قيامت په ورځ به هر کله چي ټول خلک پريشان او حيران وي نو دا اووه خلک به د عرش په سايه کي د رحمت خداوندي د سعادتونو څخه برخمن وي .

د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي اووم سړی هغه دی چي د الله تعالی په لار کي او د هغه خوښۍ حاصلولو لپاره خپل مال دومره په پټه طريقې سره خرچ کوي چي هغه په خپل راسته لاس يو سړي ته يو شی ورکوي نو د هغه چپه خوا ته ناست سړی هم نه وي په خبر او داسي د هغه

د پټولو مقصد داوي چي د ریاءاو ځان ښودني جذبه پیدا نسي چي د هغه په وجه د ثواب څخه محروم سي . ځینو علماؤ ددې حقیقي معنی مراد اخیستې ده یعني هغه سړی په دومره پټه طریقې سره صدقه او خیرات کوي چي د هغه چپه لاس هم خبر نه وي چي د هغه راسته لاس څا ته څه ورکړی دی، په دې صورت کي دا جمله به د پوره پټوالي څخه کنایه وي .

﴿۶۵۰﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د سړي لمونځ په

جَمَاعَةٍ تَزِيدُ عَلَى صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ وَصَلَاتِهِ فِي سُوقِهِ خَمْسًا وَّعِشْرِينَ ضِعْفًا

جماعت سره تر هغه لمونځ چي په کور یا بازار کي یې وکړي پنځه ویشت درجې زیات ثواب لري

وَذٰلِكَ أَنَّهُ إِذَا تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ لَايُخْرِجُهُ إِلاَّ

او دا په دې وجه چي هغه اودس وکړ او په ښه ډول یې اودس وکړ بیا د مسجد په لور یوازې د لمانځه په نیت ولاړ ی

الصَّلَاةُ لَمْ يَخْطُ خَطْوَةً إِلاَّ رُفِعَتْ لَهُ بِهَا دَرَجَةٌ وَحُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةٌ فَإِذَا

نو کوم قدم چي هغه د مسجد په لور ایږدي د هغه هر قدم په برکت به د هغه درجه لوړیږي او ددې په سبب به د هغه ګناه لیري کیږي بیا چي هغه

صَلَّى لَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تُصَلِّي عَلَيْهِ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اللّٰهُمَّ

لمونځ کوي نو تر څو پوري چي په لمانځه کي بوخت وي ملائکي د هغه لپاره دا دعاء کوي :
اللهم صل علیه اللهم ارحمه : اې الله دا سړی و بخښې اې الله

ارْحَمْهُ وَلَايَزَالُ اَحَدُكُمْ فِي صَلٰوةٍ مَا انْتَظَرَ الصَّلٰوةَ وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ إِذَا دَخَلَ

پر ده رحم وکړې، او تر څو پوري چي تاسو د لمانځه په انتظار کي یاست تر هغو پوري ستاسو وخت په لمانځه کي شمیرل کیږي ، په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي کوم وخت داخل سي

الْمَسْجِدَ كَانَتِ الصَّلَاةُ تَحْبِسُهُ وَزَادَ فِي دُعَاءِ الْمَلَائِكَةِ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اللّٰهُمَّ

مسجد ته او هلته د لمانځه له کبله انتظار کوئ او د ملائکو په دعاء کي دا الفاظ زيات دي :
اللهم اغفرله، اې الله دی و بخښې اې الله!

تُبْ عَلَيْهِ مَالَمْ يُؤْذِ فِيهِ مَالَمْ يُحْدِثْ فِيهِ. متفق عليه

دده توبه قبوله کړې ، تر څو چي دی په مسجد کي چا ته تکليف ورنه کړي او تر څو پوري چي او دس يې مات نه سي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۳۱، رقم: ۶۴۷، ومسلم ۱\۴۵۹، رقم: ۲۷۲- ۶۴۹.

**تشريح** : د دې حديث څخه دا معلومه سوه چي تر پنځه ويشت درجې زيات فضيلت هغه وخت حاصليږي کله چي لمونځ په جماعت سره په مسجد کي وکړل سي د حديث د اخري برخي مطلب دادی چي ملائکي د لمانځه کونکي په حق کي د الله تعالی د رحمت او برکت دعا تر هغه وخته پوري کوي تر څو چي هغه مسلمانانو ته په خپل يو عمل يا قول سره شر ونه رسوي ګويا د ملائکو د دعا کولو په حق کي دا حديث معنوي دی ددې وروسته د حدث ښکاره ذکر سوی دی چي تر څو پوري لمونځ کونکی په اوداسه وي يعني که يو لمونځ کونکی يو مسلمان ته تکليف و رسوي يا د هغه اودس مات سي نو ملائکي د هغه لپاره د رحمت او برکت او مغفرت دعا نه کوي .

او د دې څخه دا هم معلومه سوه چي د ملائکو د دعا فضيلت هغه وخت حاصليږي کله چي لمونځ کونکی په لمانځه کولو سره هلته پر مصلی باندي ناست وي او د هغه ځايه څخه په پورته کيدو سره که په دوهم ځای کي کښيني نو دا فضيلت نه حاصليږي .

ځيني مشائخ او بزرګان په لمونځ کولو سره د رياء او ځان ښوونې د بيري څخه د مصلی څخه ولاړ سي او پر کټ وغيره باندي په ناسته سره په ذکر او تسبيح کي مشغوليږي اګر که د هغوی نيت صحيح او د هغوی دا طريقه قابل جزا او انعام ده چي هغوی ته د ذکر او تسبيح فضيلت حاصليږي نو په لمونځ کولو سره پر مصلی د ناستي چي کوم فضيلت دی هغه هغوی ته نه حاصليږي .

﴿۶۵۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ

د حضرت ابو اسيد[1] رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي داخل سي

۱- د مالک بن ربيعه زوی او ساعدي انصاري دی ، نوموړی په بدري صحابه کرامو کي شامل دی او تر ټولو وروسته په (۶۰هـ) کي د (۸۷) کالو په عمر وفات سوی دی

أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَقُلْ اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَإِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ

په تاسو کي يو څوک مسجد ته نو هغه ته پکار دي چي دا دعاء وکړي (اې الله د خپل رحمت دروازې را باندي خلاصي کړه) او کله چي د مسجد څخه د باندي وځي نو دا کلمات دي وايي

اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ. رواه مسلم

(اې الله زه ستا څخه ستا فضل غواړم) . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱\ ۴۹۴، رقم: ۶۸ - ۷۱۳.

**تشريح** : د اولي دعا مطلب خو دا دی چي اې الله د دې مقدس او محترم ځاي له بركته يا خو په دې مسجد كي د لمانځه كولو د توفيق راكولو په وجه يا د لمانځه د حقائقو ښكاره كولو په وجه پر ما د خپل رحمتونو، نازونو او نعمتونو دروازې خلاصي كړې په دويمي دعا كي د فضل څخه مراد حلال رزق دی ځكه چي د لمانځه څخه د فارغيدو وروسته بنده د معيشت د اسباب په لټون كي مشغوليږي .

﴿۶۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دَخَلَ

د حضرت ابو قتادة رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي داخل سي

أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ . متفق عليه

په تاسو كي يو څوک مسجد ته نو هغه ته پكار ده چي د ناستي څخه وړاندي دوه ركعته لمونځ وكړي. بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۳۷، رقم: ۴۴۴، ومسلم ۱\ ۴۹۵، رقم: ۶۹ - ۷۱۴.

**تشريح** : دا حديث د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب دليل دی هغه وايي چي تحية المسجد يعني په مسجد كي د داخليدو وروسته دوه ركعته لمونځ كول واجب دي ځكه چي په دې حديث كي امر د وجوب لپاره دی د حنفيه په نزد تحية المسجد واجب نه دی مستحب دی ځكه هغه حضرات وايي چي دلته امر يعني حكم د وجوب لپاره نه دی بلكه د استحباب لپاره دی .

﴿۶۵۳﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْدَمُ

د حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به نه راستنېدی

مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحَى فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ فِيهِ. متفق عليه

د سفر څخه مګر د ورځي د څاښت په وخت کي به راتلی او تر ټولو وړاندي به مسجد ته تلی او دوه رکعته لمونځ به يې کوی او بيا به په مسجد کي لږ وخت ناست وو . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۱۹۳، رقم: ۳۰۸۸، ومسلم ۱\۴۹۶، رقم: ۷۴- ۷۱۶.

**تشريح**: د سفر څخه په ستنېدو به رسول الله ﷺ په مسجد کي دوه رکعته لمونځ کولو سره به هلته د لږ ګړي لپاره ناست وو چي صحابه کرام چي د رسول الله ﷺ د نه شتون په وجه به د رسول الله ﷺ د صحبت څخه محروم وه دلته به د رسول الله ﷺ د ملاقات شرف او د خدمت سعادت حاصل کړل سي ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي د مسافر لپاره دا مستحب ده چي د سفر څخه د ستنېدو په وخت کور ته د تلو څخه مخکي اول مسجد ته په راتلو سره لونځ وکړي او د لږ ګړي لپاره هلته کښيني .

﴿۶۵۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَمِعَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي واوري

رَجُلًا يَنْشُدُ ضَالَّةً فِي الْمَسْجِدِ فَلْيَقُلْ لَا رَدَّهَا اللّٰهُ عَلَيْكَ فَإِنَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهٰذَا. رواه مسلم

چي يو څوک خپل ورک سوی شی په مسجد کي لټوي نو هغه ته پکار ده چي دا ووايي چي الله دي د هغه شي نه پيدا کوي ځکه چي مسجد ونه ددې لپاره نه دي جوړ سوي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۳۹۷، رقم: ۷۹- ۵۶۸.

**تشريح**: په دې اړه په څرګنده خو دا معلوميږي چي پر داسي موقع باندي دا کلمې د هغه سړي د تنبيه او توبيخ لپاره يوازي په ژبي سره اداء کړل سي په زړه سره دي بله دعاء نه کوي او نه په

حقیقت کي دا خواهش وي چي د مسلمانان ورک سوی شی دي هغه ته تر لاسه نسي او که یو سړی په حقیقت کي د زړه خواهش لري چي دا سړي ته دي ورک سوی شی حاصل نسي چي د راتلونکي لپاره هغه ته عبرت وي او د خپل نا مناسب کار سزا ومومي او دا چي بیا اینده هغه داسي حرکت و نه کړي نو تر یو حده پوري دا صحیح ده.

په دې اړه د مسجد د عظمت او تقدس تقاضا داده چي یوازي د ورک سوي شي د لټولو تخصیص نه دی بلکه هر هغه شی چي ممنوع دی هغه اختیارول د مسجد د بناء او غرض خلاف وي لکه رانیول، خرڅول او داسي نور، د سلفو د زمانې ځیني علماء په دې وجه چي مسجدونه یوازي د الله تعالی د عبادت لپاره وي د بل یو مقصد د تکمیل لپاره نه وي نو په مسجد کي یو سوالگر ته صدقه وغیره ورکول هم روا نه گڼي.

﴿۶۵۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَكَلَ مِنْ

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم څوک چي وخوري له

هٰذِهِ الشَّجَرَةِ الْمُنْتِنَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَأَذَّى مِمَّا يَتَأَذَّى مِنْهُ الْإِنْسُ. متفق عليه

د بدبویه شیانو څخه یو شی و خوري (یعني وږه، پیاز وغیره) نو هغه دي زموږ مسجد ته نژدې نه راځي ځکه چي ملائکو ته هم د هغه شي څخه تکلیف رسیږي کوم چي انسان ته رسیږي.
بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۳۹، رقم: ۸۵۴، ۸۵۵ ومسلم: ۱\ ۳۹۴، رقم: ۷۲-۵۶۳.

**د لغاتو حل**: (الْمُنتِنَة): ای الثوم (وږه).

**تشریح**: مطلب دادی چي څرنگه بدبویه شی انسان ته تکلیف رسوي همداسي ملائکي هم په هغه سره تکلیف محسوسوي نو مسلمانانو ته دا پکار ده چي هغوی پیاز، وږه او داسي بل شي په خوړلو سره مسجد ته نه راځي ځکه چي مسجدونه د ملائکو د راتلو ځایونه دي ځکه هغوی ته به تکلیف وي په دې حکم کي هر هغه شي داخل دی چي بدبویه وي د هغه تعلق که د خوراک، څیښاک سره وي یا د هستوگني سره مثلا د خولې غلاظت او بدبویي د بغل وغیره گندگي او تعفن وغیره بیا د مسجد په ډول د نورو ځایونو هم دا حکم دی کوم ځای چي مجالس عبادت او

وعظ منعقد کیږي یا چیري چي د قرآن کریم او حدیث تعلیم کیږي یا چیري چي د ذکر او تسبیح حلقې وي چي په دې ځایونو کي په بدبویي راتللو سره تلل نه دي پکار.

﴿۶۵۶﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبُزَاقُ فِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تُوکل په

الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا. متفق عليه

مسجد کي ګناه ده او ددې کفاره داده چي هغه ښخ کړل سي. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۱۱، رقم: ۴۱۵ ومسلم ۱\ ۳۹۰، رقم: ۵۵- ۵۵۲.

**تشریح**: د مسجد د تقدس او احترام تقاضا داده چي هلته دي په توکلو سره نجاست او مرداري خپره نسي او که اتفاقا داسي غلطي وسي نو ددې ګناه د دفع طریقه داده چي هغه توک دي په مځکه غور ځولو سره ښخ کړل سي.

﴿۶۵۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَتْ عَلَيَّ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: وړاندي سول ما ته

أَعْمَالُ أُمَّتِي حَسَنُهَا وَسَيِّئُهَا فَوَجَدْتُ فِي مَحَاسِنِ أَعْمَالِهَا الْأَذَى يُمَاطُ عَنِ

زما د امت نیک او بد اعمال نو ما د هغوی په نیکو اعمالو کي ولیدل لیري کول د تکلیف ورکوونکي شي د

الطَّرِيقِ وَوَجَدْتُ فِي مَسَاوِي أَعْمَالِهَا النُّخَاعَةَ تَكُونُ فِي الْمَسْجِدِ لَا تُدْفَنُ.

رواه مسلم

لاري څخه او په بدو اعمالو کي په مسجد کي توکل چي هغه ښخ کړل سوي نه وه. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\ ۳۹۰، رقم: ۵۷- ۵۵۴.

**د لغاتو حل**: (النخاعة): البَزقة التي تخرج من اقصى الحلق. (بلغم).

﴿۶۵۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي ودريږي

أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللّٰهَ مَا دَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ وَ

په تاسو کي يو څوک د لمانځه لپاره نو هغه دي خپل مخ ته نه توکي ځکه چي ترڅو پوري هغه د لمانځه په حالت کي وي نو هغه خدای ته مخاطب دی ، او

لَا عَنْ يَمِيْنِهِ فَإِنَّ عَنْ يَمِيْنِهِ مَلَكًا وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمَيْهِ

نه دي راسته لوري ته توکي ځکه چي ددې خوا ته ملائکي وي بلکه چپه لوري ته دي توکي يا د قدمونو لاندي

فَيَدْفِنُهَا . وفي رواية أبي سعيد تحت قدمه اليسرى . متفق عليه

او بيا دي هغه ښخ کړي او د ابوسعيد په روايت کي دا الفاظ دي چي د چپه قدم لاندي دي توکي . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۱۲، رقم: ۴۱۶، ومسلم ۱\ ۳۸۹، رقم: ۵۳- ۵۵۰.

**تشريح** : په دې حديث کي لمونځ کونکي ته د هغه سړي سره تشبيه ورکړل سوې ده چي د خپل مالک مخ ته په دريدو سره په غوږ کي خبري کوي څرنګه چي په داسي ځای کي هغه سړی د خپل مالک د عزت او احترام ټول آداب ملحوظ ساتي همداسي د لمونځ کونکي لپاره هم واجب ده چي کله هغه د خپل پروردګار حقيقي په مخکي د لمانځه لپاره ودريږي نو د حضوری د ټولو شرائطو او آدابو پوره پوره خيال دي ساتي او په دې اړه يو اهم ادب دادی چي مخ ته دي نه توکي اګرکه د خداوند قدوس پاک ذات د جهت او خوا د قيود څخه پاک دی خو مخته د نه توکلو قيد لګولو سره د اداب حضوری سره لار روښانه کيږي چي د پروردګار عالم په دربار کي د حاضری په وخت کي داسي يو طريقه اختيار نه کړي چي د رب ذوالجلال د شان عظمت او کبريايي خلاف وي .

د ملائکي څخه مراد يا خو د کراما کاتبين څخه پرته هغه ملائکه ده چي په خاص توګه سره د لمانځه په وخت کي د لمونځ کونکي تائيد کوي او د هغه رهبري کوي او د هغه پر دعا

آمین ویلو کي حاضري وي نو پر لمونځ کونکي باندي واجب ده چي د دغه ملائکي د میلمستیا د خیال کولو سره کراما کاتبین څخه زیات ددې اکرام او احترام وکړي ځکه چي کراما کاتبین خو هر وخت ورسره وي او ددې د احترام او اکرام شکل دا کیدای سي چي د لمانځه په دوران کي خپل راسته خوا ته نه توکي ځکه دا ملائکه دې خوا ته وي.

او یا د ملائکي څخه مراد کراما کاتبین دي په دې صورت کي به دا وویل سي چي رسول الله ﷺ راسته خوا ته د توکلو څخه ځکه منعه فرمایلې ده چي دا ښکاره خبره ده چي د راسته خوا ملائکه چي د بنده نیک اعمال لیکي د چپه خوا پر ملائکي چي بد اعمال لیکي د مرتبې په لحاظ زیاته افضله ده څرنګه چي راسته خوا د چپې خوا څخه افضله وي یا د رحمت ملائکه د عذاب د ملائکي څخه زیاته افضله ده.

﴿۶۵۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ

د حضرت عائشي ﵂ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په مرض الموت کي وفرمایل:

لَمْ يَقُمْ مِنْهُ لَعَنَ اللهُ الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰى اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ.

متفق عليه

پر یهودو او نصاراوو دي د الله لعنت وي چي هغوی د خپل انبیاؤ قبرونه د سجدو ځایونه جوړ کړل. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۱۴۰، رقم: ۴۴۴۳ و ۴۴۴۴ و مسلم ۱\ ۳۷۷، رقم: ۲۲- ۵۳۱.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ژوند پیمانه چي ډکه سوه او رسول الله ﷺ ته دا یقین سو چي اوس ددې دنیا څخه د رخصتۍ په حالت کي دی، نو رسول الله ﷺ ددې بیري څخه چي زما امت هم د یهودیانو او عیسائیانو په شان قبرونه سجده ګاه جوړ نه کړي ددې خراب فعل د ممانعت اظهار د یهودیانو او عیسائیانو باندي په لعنت کولو سره یې وفرمایل ځکه چي ددې امتونو خلک د خپل انبیاؤ پر قبرونو سجده کوي، قبرونه سجده ګاه جوړول په دوو طریقو سره کیږي یو خو دا چي صاحب قبر یا محض د قبر د عبادت او پرستش مقصد سره قبرونو باندي سجده وکړل سي څرنګه چي بت پرست د بتانو عبادت کوي دوهمه طریقه داده چي سجده خو قبر ته وکړل سي خو د هغه مقصد دا وي چي د الله تعالی عبادت او پرستش وي او اعتقاد وي چي همداسي د قبر خواته لمونځ کول او سجده کول په حقیقت کي د حقیقي پروردګار عبادت کول دي او دا چي په

دې طريقه سره د پروردګار رضا او خوښي حاصليږي او د هغه نزديکت تر لاسه کيږي دا دواړې طريقې خو ښکاره کفر او شرک دي دوهمه طريقه هم حرامه ده ځکه چې په دې کې د الله تعالیٰ په بندګۍ او عبادت کې دوهم شريکول لازميږي اګر که شرک خفي دی دا دواړې طريقې د الله تعالي د لعنت سبب دي .

په دې خبره هم پوه سه چې د نبي ﷺ قبر يا د يو بزرګ او ولي د قبرو خوا ته د تعظيم له مخې لمونځ کول حرام دي په دې کې د هيڅا اختلاف نسته .

﴿۶۶۰﴾: وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَلاَ وَإِنَّ

د حضرت جندب رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : خبردار اوسئ

مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ كَانُوا يَتَّخِذُونَ قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ وَصَالِحِيهِمْ مَسَاجِدَ أَلاَ

ستاسو څخه وړاندې چې کوم خلک وه هغوی د خپلو پيغمبرانو او بزرګانو قبرونه د سجدو ځايونه جوړ کړل ، خبردار اوسئ!

فَلاَ تَتَّخِذُوا الْقُبُورَ مَسَاجِدَ إِنِّي أَنْهَاكُمْ عَنْ ذٰلِكَ . رواه مسلم

تاسو د قبرو څخه د سجدې ځايونه جوړ نه کړئ زه تاسو د دې څخه منعه کوم . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۳۷۸، رقم: ۲۳- ۵۳۲.

﴿۶۶۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ مِنْ صَلاَتِكُمْ وَلاَ تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا . متفق عليه

: په خپلو کورونو کې هم يو څه لمونځونه کوئ او د کورو څخه قبرونه مه جوړئ .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۵۲۸- ۵۲۹، رقم: ۴۳۲ ومسلم ۱\۳۸ رقم: ۲۰۸- ۷۷۷.

**تشريح** : د کورونو څخه د قبرونو جوړولو مطلب دادی چې په خپلو کورونو کې قبرونه مه جوړوئ او خپل يو مړی په کور کې مه ښخوئ ددې څخه مراد دادی چې قبرونه د کور په ډول مه ګڼئ يعني څرنګه چې د يو حاجت او ضرورت په وخت کې خلک د خپلو کورونو په خوا ځي

چي هغه حاجت او ضرورت پوره کړل سي همداسي که چاته یو حاجت او ضرورت پېښ وي نو هغه دي د قبرونو خوا ته نه ځغلي او د صاحب قبر څخه دي مرادونه نه غواړي بلکه که څه حاجت او ضرورت سي نو د الله تعالی څخه دي هر څه غواړي او د هغه مخکي دي د سوال لاس اوږد وي چي ټول خلک د هغه محتاج سي تر دې چي پیر او صاحب قبر حاجت روا (مرادونه پوره کونکی) وګڼل سي هغه هم د الله د رحم او کرم او د فضل محتاج دی یا بیا ددې څخه مراد دادی چي څرنګه په هدیرو کي لمونځ نه کیږي همداسي خپل کورونه هم د الله تعالی د ذکر څخه خالي مه پرېږدئ بلکه په کورونو کي هم لمنځونه کوئ چي د لمانځه او ذکر الله د برکته په کور کي رحمت خداوندي نازلیږي ځکه علماء لیکي چي د فرض لمانځه څخه پرته سنت او نوافل وغیره د مسجد په نسبت په کورونو کي کول زیات افضل دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۶۶۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ . رواه الترمذي .

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په منځ کي د ختیځ او لویدیځ قبله ده . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۱۷۳، رقم: ۳۴۴.

**تشريح** : ددې حدیث تعلق د مدینې منورې د اوسیدونکو سره دی ځکه چي د مدینې منورې مخکي قبله جنوب ته واقع وه او ددې حدیث تعلق د هغه اطرافو د خلکو سره دی چي د هغوی قبله د مدینې منورې مطابق جنوب ته واقع ده نو ددې اعتبار څخه ددې خلکو به قبله د مشرق او مغرب په منځ کي وه .

﴿۶۶۳﴾: وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ خَرَجْنَا وَفْدًا إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت طلق بن علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ د یو جماعت په صورت کي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

وَسَلَّمَ فَبَايَعْنَاهُ وَصَلَّيْنَا مَعَهُ وَأَخْبَرْنَاهُ أَنَّ بِأَرْضِنَا بِيْعَةٌ لَّنَا فَاسْتَوْهَبْنَاهُ مِنْ

او د رسول الله ﷺ پر لاس مو بیعت وکړ او د رسول الله ﷺ سره مو لمونځ وکړ بیا موږ د نصاراوو د عبادت خانو په اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه (چي هغه ماتي کړو که یا) بیا موږ وغوښتلې

فَضْلِ طُهُوْرِهٖ فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ وَتَمَضْمَضَ ثُمَّ صَبَّهٗ فِيْ إِدَاوَةٍ وَّأَمَرَنَا فَقَالَ

د رسول الله ﷺ د اودس څخه پاته سوي اوبه رسول الله ﷺ اوبه را وغوښتلې اودس یې وکړ بیا یې په پاته اوبو سره خوله مبارکه پریولل او د خولې اوبه یې په اوبو کي واچولې او د هغه اوبو څخه یې زموږ پتک ډک کړل بیا یې حکم راکړ او وه یې فرمایل :

اخْرُجُوْا فَإِذَا أَتَيْتُمْ أَرْضَكُمْ فَاكْسِرُوْا بِيْعَتَكُمْ وَانْضَحُوْا مَكَانَهَا بِهٰذَا الْمَاءِ

اوس تاسو ولاړ سئ او کوم وخت چي تاسو خپل ښار ته ورسیږئ د نصاراوو عبادت خانې ونړوئ او پر هغه ځای دا اوبه و پاشئ

وَاتَّخِذُوْهَا مَسْجِدًا قُلْنَا إِنَّ الْبَلَدَ بَعِيْدٌ وَالْحَرُّ شَدِيْدٌ وَالْمَاءُ يُنْشَفُ فَقَالَ

او هلته مسجد جوړ کړئ ، موږ وویل: زموږ ښار ډیر لیري دی او سخته ګرمي ده اوبه به وچي سي ، رسول الله ﷺ و فرمایل :

مُدُّوْهُ مِنَ الْمَاءِ فَإِنَّهٗ لَا يَزِيْدُهٗ إِلَّا طِيْبًا . رواه النسائي .

په دې کي نوري اوبه واچوئ زیاتي یې کړئ په دې سره به د هغه په پاکۍ او برکت کي زیاتوالی وسي . نسائي

**تخریج**: سنن النسائي: ۲\۳۸ - ۳۹، رقم: ۷۰۰.

**د لغاتو حل** : (بِيعة): معبد النصارى: (د نصاراوو د عبادت ځای).(مُدُّوه): ای زیدوا ماء علی فضل ماء الوضوء. (یعني اوبه ورزیاتي کړئ).

**تشریح** : بیعة د نصاراوو عبادت خانې ته وایي چي موږ ورته ګرجا وایو دا حضرات چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضریدو سره په اسلام مشرف سوي وه د نصارى قوم څخه وه هر کله چي دا خلک د ایمان او اسلام په دولت سره مشرف سوي وه نو د هغوی خواهش وسو چي خپله بیعه د اول مذهب یادګار او عبادت ګاه دي ماته کړل سي او ددې پر ځای دي د برکت حاصلولو لپاره رسول الله ﷺ پاته سوي او د خولې مبارکي څخه وتلي مقدسي اوبه وپاشل سي

چي په دې ځاي کي د يو دوهم مذهب د عبادت ګاه کيدو په وجه چي هلته د کفر او شرک کوم جراثيم پيدا سوي دي هغه ددې او بو له برکته ختم سي او هلته د دين اسلام فيوض او برکات خپاره سي، نو په لفظ د (فاستوهبناه) کي دغه طرف ته اشاره ده .

د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي که چيري د ګرمۍ د شدت او اوږده مسافت په وجه دا اوبه وچي سي او تاسو ددې خبري بيره لرئ چي منزل مقصود ته په رسيدو سره به دا اوبه وچي سي نو په دې اوبو کي دي نوري اوبه ګډي کړل سي مګر ددې څخه دا مه ګڼئ چي نوري اوبه په يو ځاى کولو سره بهٔ د هغو اوبو برکت او فضيلت ختم سوي دي يا کم سوي دي بلکه يا خو اولي اوبه چي په پتک کي وي وروسته اچول سوي په هغو اوبو کي خير اوبرکت زيات کړي يا وروسته اچول سوي په هغه دويمي اوبو کي د الله تعالی له طرفه د اشرف او فضيلت پيدا سي چي د هغه په وجه به په پتک کي موجود په مخکني اوبو کي نور خير او برکت زيات سي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي آب زمزم باعث د خير او برکت ګڼل او بيا هغه د تبرک په توګه بل ځاى ته وړل جائز دي .

او پر دې قياس کيداى سي چي د مسلمانانو مشائخو او اولياء الله پاته خوراک او څيښاک يا د هغوى د بدن کښېنل سوي کالي د خير او برکت باعث ګڼل او هغه په متبرک ګڼلو سره استعمال يې جائز دی په دې شرط چي په هغه کي د شريعت څخه زيات تجاوز نه وکړي يعني څومره شيان په متبرک او مقدس ګڼلو سره د هغوی د حد څخه زيات تعظيم او تکريم يا نعوذ باالله د هغوی عبادت کول پيل نه کړي .

﴿٦٦٤﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبِنَاءِ

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته حکم راکړی دی د جوړولو

الْمَسْجِدِ فِي الدُّوْرِ وَأَنْ يُّنَظَّفَ وَيُطَيَّبَ . رواه أبو داود والترمذي وابن ماجه

د مسجدونو په خپلو سيمو کي اودا چي پاک او صاف اوسو او خوشبويي لګوو. ابوداؤد، ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۱۴، رقم: ۴۵۵، والترمذي ۲\ ۴۸۹، ۴۹۰، رقم: ۴۹۴، و ۴۹۶ وابن ماجه ۱\ ۲۵۰، رقم: ۷۵۸

**تشريح**: ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي په کليو کي مسجدونه جوړول ډير ضروري ه ځکه چي د مسجدونو قيام نه يوازي دا چي د مسلمانانو د ديني او مذهبي حيثيت او قوم

بيداري ثبوت دی بلکه د هغه په وجه پر اهل محله باندي د الله تعالی رحمتونه نازليږي مګر په دې خبره پوه سه چي د مسجدونو صرف جوړول د ايماني حرارت، ديني او مذهبي بيدارۍ ثبوت نه دي بلکه ضروري ده چي مسجدونه آباد هم وساتل سي هلته هيڅ ډول نجاست او مرداري اچول نه دي پکار او نه يې هلته پرېښودل پکار دي او هغه دي په ګربتۍ، عطر وغيره سره هم ښه وساتل سي او ددې شيانو کولو په وخت ددې محترم ځای د تعظيم او تکريم په نيت وکړل سي او دا نيت دي هم وکړل سي چي د پاکۍ او صفايي او خوښي په وجه مسجد ته راتلونکي ملائکي او مسلمانان ورونه خوشحاله سي نو په ثواب کي به يې ډير زياتوب وسي.

﴿۶۶۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَا أُمِرْتُ بِتَشْيِيْدِ الْمَسَاجِدِ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَتُزَخْرِفُنَّهَا كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى. رواه أبو داود.

ما ته د مسجدونو د لوړولو او ښکلي کولو حکم نه دی سوی، مګر ابن عباس ويلي دي چي تاسو به د مسجدونو زينت (ښکلا) کوئ لکه څرنګه چي يهود او نصارا د خپلو عبادت خانو زينت کوي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۱۰، رقم: ۴۴۸.

**د لغاتو حل**: (بِتَشْيِيد): ای برفعها و تجصيصها: (لوړول او رنګول). مرقات.

**تشريح**: زخرف وايي علماؤ ته او د يو شي پوره خوشبويي ته، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د ارشاد مطلب دادی چي خلک به په مسجدونو کي نقش و نګار کوي او د هغه پر دروازو او ديوالو باندي به سره زر ايږدي، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا قول د رسول الله ﷺ څخه وروسته د انساني عادت سره سم د افعالو خبر ورکولو مترادف دی يعني په راتلونکي کي به داسي خلک پيدا سي چي مسجدونه به ښکلي کوي او نقش ونګار به کوي حالانکه د هغوی طريقه به خلاف سنت وي ځکه چي اسلام د سادګۍ پسند فطرت دی د دا ډول شيانو محتمل نسي کيدای، دوهم دا چي په دې طريقې سره د يهود او نصاراو مشابهت کيږي. متاخرين علماء د مسجدو د ښکلا او نقش ونګار اجازه ورکړې ده او ويلي يې دي چي خلک خپل سرايونه لوړ جوړوي او

هغه منقش او مزين كوي كه مسلمانان خپل مسجدونه د لرګو او خاورو څخه بالكل ساده جوړ کړي نو کيداى سي چي د عوامو په نظر کي د هغه وقعت او عظمت نه وي ځکه د مسجدونو په داسي طريقې سره د جوړولو اجازه ورکړل سوې ده چي د اوسنۍ زمانې په معيار وقيع او محترم وګڼل سي.

مسجد نبوي د رسول الله ﷺ په زمانه کي بالكل ساده او اوم جوړ سوی وو، ديوالونه يې د خښتو او بام يې د خرماو د څانګو څخه وو او د هغه ستني د خرماد لرګي وې بيا چي حضرت عمر رضي الله عنه هغه دوهم وار جوړ کړ نو هغه هم بالكل هم هغسي مسجد ساده وساتی، ددې څخه وروسته حضرت عثمان رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي دا مسجد په نوي ډول جوړ کړ، هغه نه يوازي دا چي مسجد پراخ جوړ کړ بلکه د هغه په ديوالونو کي يې منقش ډبري او بام يې د لرګيو څخه جوړ کړ، همداسي مسجد نبوي د رسول الله ﷺ د زمانې په مقابله کي ډير لوی او ښکلي سو.

﴿۶۶۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ.

رواه أبو داود والنسائي والدارمي وابن ماجه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د نښو څخه د قيامت يوه دا هم ده چي په مسجدونو به خلک فخر کوي. ابوداؤد، نسائي، دارمي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۱۱، رقم: ۴۴۹ والنسائي ۲\ ۳۲، رقم: ۶۸۸ وابن ماجه ۱\ ۲۴۴، رقم: ۷۳۹ والدارمي ۱\ ۳۸۳، رقم: ۱۴۰۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي قيامت ته نژدې خلک به لوی لوی مسجدونه جوړوي او هغه به ښکلي کوي او د هغه څخه به د خلکو مقصد دا وي چي او د هغوی نيت به خالصا لله نه وي بلکه د هغوی مقصد به دا وي چي هغوی په لوی فخر سره خپل دا کارنامه د دنيا مخته وړاندي کوي او دنيا والا په د دوی تعريف وکړي.

﴿۶۶۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُورُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ماته وړاندي سوه ثوابو

أُمَّتِيْ حَتّٰى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ وَعُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوْبُ أُمَّتِيْ

زما د امت ترديې چي د مسجد څخه د خاشو او ګرد ليري کولو ثواب هم، او زما په وړاندي زما د امت ګناهونه وړاندي کړل سول

فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمُ مِنْ سُوْرَةٍ مِّنَ الْقُرْآنِ أَوْ آيَةٍ أُوْتِيَهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا.

رواه الترمذي وأبو داود.

په هغو کي ما ته د دې څخه لويه ګناه په نظر نه راغلل چي د چا د قرآن کريم يو سورت يا يو آيت په ياد وي بيا يې هير کړي .ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۱۶، رقم: ۴۶۱ والترمذي ۵\۱۶۲، رقم: ۲۹۱۶.

**تشريح**: د يو چا د قرآن کريم سورت يا ايت ياد کيدل د الله تعالى لوی نعمت دی او چاچي د يادولو وروسته هير کړو ګويا هغه سړی د دې لوي نعمت سخته بې قدري او ناشکري وکړه او د دې قدر يې و نه پيژندی نو داسي سړی بهٔ سخت ګناه کار سي.

﴿۶۶۸﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَشِّرِ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زيری ورسوه

الْمَشَّائِيْنَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّوْرِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي وأبو داود. ورواه ابن ماجه عن سهل بن سعد وأنس.

هغه خلکو ته چي په تياره کي د مسجدو په لوري ځي ، د قيامت په ورځ به هغوی ته پوره رڼا په برخه وي. (ترمذي، ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۷۹، رقم: ۵۶۱ والترمذي ۱\۴۳۵، رقم: ۲۲۳. وابن ماجه: ۱\۲۵۶، رقم: ۷۸۰

**تشريح**: په دغه ارشاد کي دې آيت ته اشاره ده :

نُورُهُمْ يَسْعَى بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا

ژباړه : د هغوی نور به د هغوی راسته او چپه خوا ته ځغلي او داسي دعاء به کوي چي اې زموږ ربه ! زموږ لپاره دا نور تر آخره پوري قائم ولرې .

﴿٦٦٩﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيدخدري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّجُلَ يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ فَاشْهَدُوْا لَهُ بِالْإِيْمَانِ فَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى

كله چي تاسو يو څوک د مسجد خبر اخيستونكى ووينئ نو د هغه د ايمان شاهدي وركړئ ځكه الله جل جلاله

يَقُوْلُ (إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللّٰهِ مَنْ آمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ .

رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي .

فرمايي: (مسجدونه هغه څوک اباد وي چي پر الله جل جلاله او د قيامت پر ورځ ايمان لري) .ترمذي ،ابن ماجه او دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۴، رقم: ۲٦۱۷، وابن ماجه: ۱\۲٦۳، رقم: ۸۰۲، والدارمي ۱\۳۰۲، رقم: ۱۲۲۳.

**تشريح**: ددې ارشاد مطلب دادى چي كه چيري تاسو داسي يو سړى ويني چي هغه د الله تعالى جل جلاله د كور خبر اخلي يعني هغه د مسجد ساتنه او جوړول كوي د هغه د پاكى خيال ساتي او په دې كي يې لمونځ كوى او په دې كي يې عبادت كوى او د ديني علومو او درسونو كي بوخت وو نو تاسو دده په اړه شاهدي وركړئ چي هغه مومن د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ فرمانبردار بنده دى .

﴿٦٧٠﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُوْنٍ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ائْذَنْ لَنَا فِي الْاِخْتِصَاءِ

د حضرت عثمان[1] بن مظعون رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ ته وويل: اې د الله رسوله! ما ته د ځان خصي كولو اجازه راكړئ (د زنا د بيري څخه)

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَصٰى وَلَا اخْتَصٰى إِنَّ

رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه سړى زموږ د ډلي څخه نه دى چي خپل ځان خصي كړي او يا بل

---

[1] د نوموړي نوم عثمان بن مظعون او كنيت يې ابوسائب دى نوموړى يو جليل القدر صحابي او څلورلسم مسلمان سړى دى ، په هجرت حبشه كي هغه او د هغه زوى سائب رضي الله عنه شامل وه او د مدينې په هجرت كي هم شامل سول ، په مهاجرينو كي لومړنى صحابي دى چي په مدينه منوره كي په (۲هـ) وفات سو ، رسول الله ﷺ دده بدن مبارک مچ كړى وو .

خصي کړي، بېله شکه

خَصَاءَ أُمَّتِيْ الصِّيَامَ . فَقَالَ ائْذَنْ لَنَا فِي السِّيَاحَةِ . قَالَ إِنَّ سِيَاحَةَ أُمَّتِيْ

زما د امت لپاره د شهوت ختمولو طريقه روژه نيول دي، بيا عثمان بن مظعون رضي الله عنه وويل: ما ته د سياحت اجازه راکړئ، رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د امت سياحت

اَلْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . فَقَالَ ائْذَنْ لَنَا فِي التَّرَهُّبِ فَقَالَ إِنَّ تَرَهُّبَ أُمَّتِيْ

د الله جل جلاله په لاره کي په جهاد تلل دي، بيا عثمان رضي الله عنه وويل: ما ته د دنيا پرېښودلو اجازه راکړئ رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د امت لپاره د دنيا پرېښودل دا دي چي

اَلْجُلُوْسُ فِي الْمَسَاجِدِ انْتِظَارًا الصَّلَاةِ . رواه في شرح السنة .

هغوی په مسجد کي کښيني او د لمانځه انتظار وکړي .

**تخريج** : البغوي في شرح السنة ۲\۳۷۰، رقم: ۴۸۴.

**تشريح** : د حضرت عثمان ابن مظعون رضي الله عنه خواهش دا وو چي هغه داسي کار وکړي چي په هغه سره د دنيا لذتونه، نفساني خواهشات او شيطاني حرکات کي اخته نسي چي د الله تعالی رضا او خوښي حاصله کړي نو تر ټولو تر مخه هغه د رسول الله ﷺ د دې خبري اجازه وغوښتل چي هغه د خپل قوت مردي په ختمولو سره بالکل نامرد جوړ سي چي د زنا په ډول لويه ګناه کي د اخته کيدو بيره پاته نسي نو رسول الله ﷺ د هغه دا خواهش د انساني فطرت او اسلامي روح خلاف ګڼلو سره هغه ته د دې فعل څخه د منعه کيدو حکم ورکړ او ورته يې وفرمايل که ته غواړې چي د نفساني خواهشاتو څخه ځان وساتې او روحاني او عرفاني خواهشات غالبه سي نو د هغه آسان علاج دادی چي روژه ونيسه ځکه چي روژه شهوت ختموي او د تعلق مع الله جذبات ته ځلا ورکوي بيا هغه د سيل او سياحت اجازه وغوښتل چي په دې شغلې سره نفساني خواهشات کي کمي راسي رسول الله ﷺ ددې څخه هم منعه کړ ځکه چي پر مځکه باندي ګرځيدل او د ليري ليري ځايو سفر اختيارول يوازي په جهاد في سبيل الله کي مطلوب او محمود دي صرف د سيل او سياحت په خاطر د دنيا چکر وهل لکه څرنګه چي ځيني فقير قسم خلک يې کوي دا د عقلمندی خبره نه ده او نه د دې څخه اخروي منفعت او خير حاصليږي ددې وروسته هغه د راهب جوړيدو خواهش ظاهر کړ څرنګه چي په اهل کتاب کي هغه خلک چي

ديندار او مذهبي وي د دنياوي تعلقاتو نه كونج نشيني اختياروي او د دنيا ټول لذتونه او مشغوليات پريږدي تر دې چې نه ښځو ته ورځي او نه د نورو خلكو سره يو ځای كيږي رسول الله ﷺ د هغه د دغه خواهش رد وكړ ځكه چي رهبانيت د اهل كتاب طريقه ده دا د اسلام د تعلمياتو او د اسلامي فطرت بالكل خلاف ده.

رسول الله ﷺ وفرمايل: ز موږ په امت كي رهبانيت يوازي په دومره اندازه دی چي په مسجدونو كي د لمونځو په انتظار كي كښينئ ځكه چي داسي دټولو خلكو او د دنيا دټولو شيانو څخه د لمونځ په ګرځولو سره د پروردګار خوا ته توجه كيږي او پر دې بي شميره اجر او ثواب ترلاسه كيږي د دې په مقابله كي د اهل كتاب چي كوم رهبانيت دی هغه بالكل بې ګټي او بيكاره دی چي د دې انجام د دين او دنيا په اعتبار سره ښه نه وي.

﴿٦٧١﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَائِشٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالرحمن بن عائش رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ رَأَيْتُ رَبِّيْ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ أَحْسَنِ صُوْرَةٍ قَالَ فِيْمَ يَخْتَصِمُ الْمَلأُ الْأَعْلٰى؟

ما خپل پروردګار په خوب كي په غوره صورت كي وليدی الله تعالى زما څخه پوښتنه وكړه مقربينو ملائكو په كومه معامله كي بحث كوی؟

قُلْتُ أَنْتَ أَعْلَمُ قَالَ فَوَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ كَتِفَيَّ فَوَجَدْتُ بَرْدَهَا بَيْنَ ثَدْيَيَّ

ماوويل: اې الله! ته ښه پوهيږې، د دې په اوريدو سره الله تعالى خپل لاس زما د تيانو په منځ كي كښېښودی چي د هغه يخ والی ما په خپله سينه كي محسوس كړ

فَعَلِمْتُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَتَلاَ (وَكَذٰلِكَ نُرِيْ إِبْرَاهِيْمَ مَلَكُوْتَ

او ما ته د آسمانو او مځكو د ټولو شيانو علم تر لاسه سو بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ: (همداسي موږ ابراهيم عليه السلام ته و ښودی تصرف

السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ). رواه الدارمي مرسلا

د آسمانو او مځكي چي هغه يقين كوونكو خلكو كي شامل سي، (دارمي مرسلا)

وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوَهُ عَنْهُ . وَعَنِ ابْنَ عَبَّاسٍ وَ مَعَاذِ ابْنِ جَبَلٍ وَ زَادَ فِيْهِ قَالَ :يَا

او ترمذي هم دا حديث د عبد الرحمن بن عائش ابن عباس او معاذ بن جبل څخه روايت كړى دى
او دا الفاظ يې پكښي زيات كړي دي چي الله تعالى پوښتنه وكړه اې

مُحَمَّدُ هَلْ تَدْرِيْ فِيْمَ يَخْتَصِمُ الْمَلأُ الأَعْلٰى قُلْتُ نَعَمْ فِي الْكَفَّارَاتِ

محمده ! تا ته څرګنده ده چي مقربينو ملائكو پر كوم شي بحث كوئ . رسول الله ﷺ وفرمايل
هو، ما ته څرګنده ده هغوى د (ګناهو) پر كفارو بحث كوي

وَالْكَفَّارَاتُ الْمَكْثُ فِي الْمَسَاجِدِ بَعْدَ الصَّلَوَاتِ وَالْمَشْيُ عَلَى الأَقْدَامِ اِلَى

او هغه كفارې د لمونځونو څخه وروسته په مسجدو كي ناسته او د بل وخت د لمانځه انتظار
كول او پر پښو تلل

الْجَمَاعَاتِ وَابْلاَغُ الْوُضُوْءِ فِي الْمَكَارِهِ وَمَنْ فَعَلَ ذَالِكَ عَاشَ بِخَيْرٍ وَّمَاتَ

مسجدو ته او د سختى (يخ يا ناروغى) په حالت كي په اوبو او دس كول دا چي دا سي وكړل
هغه به پر نيكي ژوندى وي او مړ كيږي به

بِخَيْرٍ وَّ كَانَ مِنْ خَطِيْئَتِهِ كَيَوْمٍ وَلَدَتْهُ اُمُّهُ وَ قَالَ يَا مُحَمَّدُ اِذَا صَلَّيْتَ فَقُلْ

پر نيكي او د ګناهو څخه به دا سي پاک سي لكه نن چي د مور څخه پيدا سوى وي بيا الله تعالى
وفرمايل : اې محمد ﷺ ! هر كله چي ته د لمانځه څخه فارغ سي نو دا دعاء كوه :

اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْاَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَ تَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَ حُبَّ الْمَسَاكِيْنِ فَاِذَا

اللهم اني .... غير مفتون. (اې الله زه ستا څخه د نيكو اعمالو توفيق غواړم او د خرابو كارونو
د پرېښودلو او د مسكينانو سره د محبت سا تلو او اې الله! كله چي

اَرَدْتَ بِعِبَادِكَ فِتْنَةً فَاقْبِضْنِيْ اِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ قَالَ وَ الدَّرَجَاتُ اِفْشَاءُ

ته د خپلو بندګانو په فتنه كي د اچولو اراده وكړې نو زما روح قبض كړې چي ما ته فتنه ونه
رسيږي ، ددې وروسته رسول الله ﷺ د امت د تعليم لپاره وفرمايل : الله تعالى نبي ته د هدايت

لپاره وویل چي درجې لوړونکي دا شیان دي

السَّلَامِ وَاِطْعَامُ الطَّعَامِ وَالصَّلٰوةُ بِالَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ وَ لَفْظُ هٰذَا الْحَدِيْثِ كَمَا فِي الْمَصَابِيْحِ لَمْ اَجِدْهُ عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ اِلاَّ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

سلام رواج كول يعني هر سړي ته سلام كول، ډوډۍ وركول، د شپې چي خلك بيده وي نو لمونځ كول، په مصابيح كي چي څرنګه ددې الفاظ دي ما د شرح السنة څخه پرته دا روايت د عبدالرحمن څخه منقول پيدا نه کړ.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۱۷۰، رقم: ۲۱۴۹ والترمذي ۵\۳۴۳، رقم: ۳۲۳۵، مصابيح السنة ۱\۲۹۰، رقم: ۵۱۲ البغوي في شرح السنة ۴\۳۵ – ۳۷، رقم: ۹۲۴.

**تشريح**: كه رسول الله ﷺ الله تعالى په خوب كي ليدلى وي لكه څرنګه چي په يو بل روايت كي ددې وضاحت دى نو په دې كي څه اشكال نسته ځكه چي انسان ډير واره شكل لرونكى شكل پرته د شكل څخهويني او يو شكل نه لرونكى شى د شكل په صوٚرت كي ويني، هو كه دا وويل سي چي رسول الله ﷺ الله تعالى د بيدارۍ په عالم كي ليدلى نو بيا ددې تاويل كول ضروري دي او تاويل به دا وي چي د صورت څخه مراد صفت دى چي حق تعالى جل شانه د صفت جمال او لطف و كرم سره تجلي وفرمايل، دا تاويل حقيقت او محاورې ته بالكل نژدې دى، ځكه چي اكثرو د صورت اطلاق پر صفت باندي كيږي څرنګه چي په ورځني خبرو اترو كي د يو شي د حقيقت او كيفيت د بيان پر وخت ويل كيږي چي صورت حال دادى ، يا ددې مسئلې صورت دادى او داسي نور او دا هم غوره ده چي دا صورت د معنى محمول د رسول الله ﷺ ذات اقدس وګرځول سي همداسي د رسول الله ﷺ د ارشاد به معنا دا وي چي ما خپله رب وليدى او هغه وخت زه په ښه صورت كي وم.

د رسول الله ﷺ څخه د الله تعالى د پوښتني مطلب دا وو چي مقربين ملائكو د كوم اعمالو د فضيلت او عظمت په باره كي بحث كوى يا هغه كوم اعمال دي چي هغه مقام قبوليت ته په رسولو كي ملائكو په خپلو كي بحث كوى ، په دې توګه چي يوه ملائكه خو وايي چي دا عمل به مقام قبوليت ته زه مخكي رسوم او دوهمه وايي چي زه به يې وړم .

د رسول الله ﷺ د اوږو په مينځ كي د الله تعالى لاس ايښودل په حقيقي معنى كي نه دي چي واقعي الله تعالى خپل لاس د رسول الله ﷺ د اوږو په مينځ كي ايښى وو، ځكه چي الله

تعالی د ظاهري اجسام د ثقالت څخه پاک دی بلکه په اصل کي دا د هغه شي څخه کنایه ده چي الله تعالی رسول الله ﷺ د خپل فضل ، کرم او د جزاء او انعام په زیاتوب سره په خاصه توګه ثرنګه چي په دنیاوي ژوند کي موږ وینو چي هر کله یو پاچا یا امیر پر خپل خاص خادم باندي ډیر زیات مهربان وي او د هغه څخه ډیر زیات خوشحاله وي نو هغه د هغه خادم پر ملا یا د هغه پر غاړه لاس راتیر کړي ، دا ددې خبري اظهار دی چي هغه د خادم څخه ډیر زیات خوشحاله دی او پر هغه د انعام او اکرام باران کونکی دی، په سینه کي یخوالی محسوس کول د فیض رباني د اثر رسیدو څخه کنایه ده ، رسول الله ﷺ فرمایي چي کله فیض رباني سینې ته ورسیدی نو د مځکي او آسمان ټولي پردې پورته سوې او د ټولو شیانو علم ما ته حاصل سو نو رسول الله ﷺ ددې موقع او حال مناسبت او د هغه پر امکان باندي د شاهدي ورکولو په ارادې سره مذکور آیت تلاوت کړ، ددې مطلب دادی چي اې محمد ! ﷺ ثرنګه چي موږ ستا د مخ څخه د مځکي او آسمانو پردې پورته کړې د هغه په نتیجه کي تا ته د ټولو شیانو علم حاصل سو ، همداسي موږ خپل جلیل القدر پیغمبر او خلیل حضرت ابراهیم علیه السلام باندي هم د عالم ربوبیت او الوهیت حقیقتونه ظاهري کړي وه او پر هغه مو د مځکي او آسمانو د ټولو شیانو لیدنه کړې وه چي هغه د الله تعالی پر ربوبیت او الوهیت باندي د پوره یقین کونکو څخه سي، همداسي د آیت د آخري الفاظو (ولیکون من الموقنین) معطوف علیه به محذوف وي او پوره عبارت به داسي وي چي موږ حضرت ابراهیم علیه السلام ته عالم ربوبیت او الوهیت ښودلی وو چي هغه ددې په ذریعه زموږ د ذات د وجود په اړه دلیل ونیسي او د یقین کونکو څخه سي.

د حدیث د آخري برخي مطلب دادی چي انسان ته پکار ده چي هغه د غرور او تکبر خراب عادتونه په لیري کېدو سره په خپل ځان کي د تواضع، انکسارۍ، عاجزۍ، سخا او بخښني، عبادت او ریاضت جذبات او اوصاف پیدا کړي، او ددې عرفاني اصولو په رڼا سره خپل زړه او دماغ منور کولو سره نه یوازي دا چي د الله تعالی حقیقي بنده جوړ سي بلکه د پوره انسانت لپاره د رحمت او راحت باعث جوړ سي .

شرف مردي جو دست و کرامت بسجود — هر که این هر دو ندارد عدمش به زوجود

﴿۶۷۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ

د حضرت ابوامامه رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : درې کسان دي چي

كُلُّهُمْ ضَامِنٌ عَلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ رَجُلٌ خَرَجَ غَازِيًا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَهُوَ ضَامِنٌ

د هغوی ذمه داري الله تعالی پر ځان اخیستې ده: یو غازي چي د الله ﷻ په لار کي د غزا لپاره د کور څخه وتلی وي هغه د الل ﷻ په ذمه داری کي دي

عَلَى اللّٰهِ حَتّٰى يَتَوَفَّاهُ فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيْمَةٍ وَرَجُلٌ

تر څو چي هغه شهید سي نو په جنت کي به داخل کړل سي او که ژوندی پاته سي نو ثواب او مال غنیمت سره به بیرته راستون سي، دوهم هغه کس چي

رَاحَ إِلَى الْمَسْجِدِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللّٰهِ وَرَجُلٌ دَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلَامٍ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللّٰهِ . رواه أبو داود .

د مسجد په لور ولاړی هغه هم د الله په ساتنه کي دی او دریم هغه سړی چي خپل کور ته په سلام کولو سره داخل سي هغه هم د الله په ذمه داری کي دی . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۳\۱۶-۱۷، رقم: ۲۴۹۴.

**تشريح**: پر الله تعالی باندي د لومړني سړي لپاره چي کومه ذمه ده هغه خو بیان کړل سوه چي هغه په دین او دنیا دواړه ځایو کي انعامات حاصلیږي مګر د دوهم او دریم سړي لپاره چي کومه ذمه پر الله تعالی ده هغه خو څرګنده وه ځکه د هغه د بیانولو ضرورت محسوس نه سو، په کور کي په سلام کولو سره داخل سئ، ددې دوې معناوي دي یو خو دا چي په کور کي داخل سي نو کورنۍ ته دي سلام وکړي، په دې صورت کي د هغه لپاره پر الله تعالی دا ذمه ده چي هغه او د هغه کورنۍ په خیر او برکت سره وګرځوي او پر هغه د خپل رحمتونو او مهربانیو دروازې خلاصي کړي.

دوهمه معنی داده چي کله په کور کي داخل سي نو د خلکو د صحبت څخه د امت او سلامتۍ تر لاسه کولو لپاره په کور کي اوسیدل پر خپل ځان لازم کړي او د کور څخه د باندي نه وځي نو په دې صورت کي د هغه لپاره پر الله تعالی باندي دا ذمه ده چي هغه به د مصیبتو او آفاتو څخه خوندي او سلامت ساتي.

﴿٦٧٣﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي ووزي د خپل کور څخه

مُتَطَهِّرًا إِلَى صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْحَاجِّ الْمُحْرِمِ وَمَنْ خَرَجَ إِلَى

چي اودس وکړي او د فرض لمانځه ادا کولو لپاره مسجد ته ولاړ سي هغه ته به دومره ثواب ورکول کيږي لکه څومره چي احرام تړونکي حاجي ته ورکول کيږي او کوم سړی چي ووزي

تَسْبِيحِ الضُّحَى لَا يُنْصِبُهُ إِلَّا إِيَّاهُ فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْمُعْتَمِرِ وَصَلَاةٌ عَلَى إِثْرِ صَلَاةٍ

د څاښت د لمانځه لپاره د کور څخه او خاص د څاښت د لمانځه کولو په نيت مسجد ته ولاړ سي د هغه ثواب د عمره کوونکي د ثواب برابر دی او د يوه لمونځ وروسته دوهم لمونځ کول

لَا لَغْوَ بَيْنَهُمَا كِتَابٌ فِي عِلِّيِّينَ . رواه أحمد وأبو داود .

او د دې دوو لمنځو په منځ کي پالتو خبري نه کول داسي عمل دی چي په عليين کي ليکل کيږي . احمد، ابوداؤد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٥\٢٦٨ و ابوداؤد ١\٢٧٧، رقم: ٥٥٨.

**تشريح**: په دې حديث کي اوداسه ته په احرام سره او لمانځه ته په حج سره مشابهت ورکړل سوی دی او په دواړو کي د تشبيه وجه داده چي څرنګه حاجي د حج په اراده د کور څخه وځي او په احرام تړلو سره حج ته ځي نو هغه چي کله د کور څخه وځي هغه ته هم د هغه وخت څخه ثواب تر لاسه کېدل پيل کيږئ او د هغه د ثواب لړۍ د هغه د راتلو پوري جاري وي همداسي کوم سړی چي صرف د لمانځه په ارادې سره وځي نو هغه چي کله د کور څخه وځي هغه ته هم د هغه وخت څخه ثواب تر لاسه کيدل پيل کيږي او تر څو پوري چي هغه د لمانځه وغيره څخه د فارغه کېدو سره کور ته راځي نو هغه ته ثواب رسيږي مګر په دې خبره هم پوه سئ چي د لمونځ کونکي او حاجي په ثواب کي دغه برابري د ټولو وجو څخه نه وي کنه نو بيا د حج کولو څه معنی پاته کيږي، يعني ددې مطلب دا نه دی چي په ثواب کي بالکل دواړه برابر دي ځکه چي د حاجي ثواب د لمونځ کونکي د ثواب څخه ډير زيات وي .

د دغه حديث څخه دا خبره هم معلومه سوه چي د حج په نسبت عمرې ته هغه حيثيت حاصل دی کوم چي د فرض لمانځه په نسبت نفل لمانځه ته حاصل دی . د کتاب في عليين څخه د حديث د آخري برخي مطلب کناية دا معلوميږي چي کوم سړی د لمانځه پابندي او ساتنه کوي يعني ټول لمنځونه په پابندي سره ادا کوي او د لمانځه د هغه ټولو شرطونو او ادبونو لحاظ کولو سره داسي کوي چي د هغه په دغه عمل او نيت کي د لمانځه خلاف د هيڅ شي دخل نه وي نو دا يو داسي شی دی چي ددې څخه اعلی او غوره هيڅ عمل نسته . کومي ملائکي چي پر نيکۍ ليکلو باندي ماموره دي د هغوی ددفتر نوم عليين دی چي ټول اعمال هلته جمع کيږي .

﴿٦٧٤﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي

مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوْا قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ ؟ قَالَ:

تاسو د جنت باغو ته ولاړ سئ نو هلته ميوه خورئ ، د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي: اې دالله رسوله ! د جنت باغونه کوم دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْمَسَاجِدُ . قِيْلَ وَمَا الرَّتْعُ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ للهِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ . رواه الترمذي .

مسجدونه ، او پوښتنه وسول چي ددې ميوه څه شي ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ للهِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي: ۵\۴۹۷ - ۴۹۸، رقم: ۳۵۰۹.

**تشريح** : مسجدو ته د جنت باغونه ځکه ويل سوي دي چي په دې کي عبادت کول او لمونځ د جنت د باغونو د تر لاسه کولو سبب دي ، رتع په اصل کي دې ته وايي چي باغ ته ولاړ سي ښه ميوې وخوري او خوندور شيان وخوړل سي او د وبالو وغيره سيل وکړل سي څرنګه چي باغو ته تلونکي داسي کوي بيا دا لفظ د ثواب عظيم مرتبې ته د رسيدو په معنی کي استعمال سوی دی .

په هر حال ددې حديث حاصل دادی چي کله تاسو مسجدونو ته ولاړ سئ نو مذکوره تسبيحات وايا ست ځکه چي په دې سره ډير زيات ثواب تر لاسه کيږي .

﴿۶۷۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَتَى الْمَسْجِدَ لِشَيْءٍ فَهُوَ حَظُّهُ. رواه أبو داود

د حضرت ابو هريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم څوک چې مسجد ته د يو مقصد لپاره راځي (يعني ديني يا دنيوي مقصد) نو هغه د هغه نصيب دی. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱۱ / ۳۲۰، رقم: ۴۷۲.

**تشريح**: مطلب دادی چې کوم سړی مسجد ته د کوم مقصد لپاره راسي نو هغه ته به هغه شی په برخه کيږي، يعني که چيري د عبادت لپاره ځي نو د هغه ثواب به ورته تر لاسه کيږي او که د يو دنياوي مقصد لپاره راځي نو په ګناه اخته کيږي، دا حديث د مضمون په اعتبار د نيت د مشهور حديث انما الاعمال بالنيات يو برخه ده.

﴿۶۷۶﴾: وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْحُسَيْنِ عَنْ جَدَّتِهَا فَاطِمَةَ الْكُبْرٰى قَالَتْ كَانَ

بي بي فاطمه بنت حُسين د خپلي انا بي بي فاطمي رضی اللہ عنہا څخه روايت کوي چې کله به

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ صَلَّى عَلٰى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ وَقَالَ

رسول الله ﷺ مسجد ته ننوتی نو پر محمد ﷺ باندي به يې درود او سلام وايه يعني دا الفاظ به يې فرمايل: صل علي محمد وسلم، بيا به يې دا دعاء کول:

رَبِّ اغْفِرْ لِيْ ذُنُوْبِيْ وَافْتَحْ لِيْ أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَإِذَا خَرَجَ صَلّٰى عَلٰى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ

رب اغفرلي ..... رحمتک، (اې پروردګاره زما ګناهونه و بخښې او زما لپاره د رحمت دروازې خلاصي کړې، او هر کله چې به د مسجد څخه وتی نو دورد به يې وايه پر محمد ﷺ

وَقَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ ذُنُوْبِيْ وَافْتَحْ لِيْ أَبْوَابَ فَضْلِكَ. رواه الترمذي وأحمد وابن ماجه وفي روايتهما قالت إذا دخل المسجد وكذا إذا خرج قال بسم الله والسلام على رسول الله بدل صلى على محمد وسلم. وقال الترمذي ليس

إسناده بمتصل وفاطمة بنت الحسين لم تدرك فاطمة الكبرى .

او ویل به یې اې ربه! زما ګناهونه و بخښې او خلاصي کړې ما ته دروازې د فضل خپلي (ترمذي، احمد ،ابن ماجه) د احمد او ابن ماجه په یوه روایت کي دا الفاظ دي کله چي به رسول الله ﷺ مسجد ته ننوتی یا راوتی نو دا الفاظ به یې ویل : بسم الله والسلام علی رسول الله .

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۱۲۷، ۱۲۸، رقم: ۳۱۴ والامام احمد في مسنده ٦\ ۲۸۲، وابن ماجه: ۱\ ۲۵۳، ۲۵۴،رقم: ۷۷۱.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د درود او سلام الفاظ داسي نه دي فرمایلي چي اللهم صل علی ، یا اللهم اغفر لمحمد ، ځکه چي د درود او سلام سره د اسم شریف مناسبت دی، همداسي رب اغفرلي ارشاد فرمایلو کي د رسول الله ﷺ د تواضع او عاجزۍ اظهار کیږي یا دا به وویل سي چي رسول الله ﷺ دا الفاظ د امت د تعلیم لپاره وفرمایل چي خلکو ته دا معلومه سي چي درود او سلام په کومو الفاظو په ذریعه استول کیږي .

بي بي فاطمه صغری چي ددې حدیث راوي ده او د حضرت امام حسین رضي الله عنه لور ده هغې د خپل انا زمانه نه ده لیدلې ځکه چي کوم وخت حضرت امام حسین رضي الله عنه عمر اته کاله وو نو ددې حدیث سند متصل نه سو ځکه چي په مینځ کي یو راوي متروک دی .

﴿٦٧٧﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه دده د نیکه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ تَنَاشُدِ الْأَشْعَارِ فِي الْمَسْجِدِ وَعَنِ الْبَيْعِ وَالْاِشْتِرَاءِ

په مسجد کي د اشعارو ویلو څخه او پلورلو او رانیولو څخه منعه فرمایلې ده

فِيْهِ وَأَنْ يَّتَحَلَّقَ النَّاسُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ فِي الْمَسْجِدِ .

رواه أبو داود والترمذي .

او د جمعې په ورځ د لمانځه څخه مخکي حلقه جوړولو څخه یې منعه فرمایلې ده. ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ٦۵۱، رقم: ۱۰۷۹ والترمذي ۲\ ۱۳۹، رقم: ۳۲۲؟

**تشریح** : د اشعار څخه مراد داسي اشعار دي چي په هغه کي دروا غ او پالتو خبري ذکر سوي وي ځکه چي مسجد د الله تعالی د عبادت کولو ځای دی هلته د شریعت خلاف او پالتو خبري بیانول ناجائز دي البته داسي اشعار چي په هغو کي د الله تعالی توحید او مناجات او د رسول الله ﷺ یا د هغوی د مخلص متبعینو او فرمانبردارو امتیانو تعریف او توصیف د دین او مذهب او اخلاق ځلونکو خبرو ذکر وي نو د هغو ویل په هر ځای کي جائز او مستحسن دي ، رسول الله ﷺ به د شاعر اسلام حضرت حسان رضی الله عنه لپاره چي د خپلو اشعارو په ذریعه به یې د رسول الله ﷺ صفت او د کفارو بد بیانول په مسجد نبوي کي به یې منبر اچوی ، حضرت حسان رضی الله عنه به پر هغه منبر دریدی او دا ډول پاک اشعار به یې ویل، او رسول الله ﷺ به فرمایل چي جبرائیل علیه السلام د حسان رضی الله عنه تائید کوي ځکه چي هغه د خپل اشعارو په ذریعه د الله تعالی د لوري د کفارو مقابله کوي ، په مسجد کي څرنګه چي رانیول او پلورل منعه دي همـــــدارنګه هلته نور دنیاوي معاملات هم منعه دي .

د جمعې په ورځ د لمانځه کولو څخه مخکي په مسجد کي حلقه جوړولو سره ناسته چي رسول الله ﷺ منعه فرمایلې ده ، علماؤ ددې مختلف وجهي بیانوي، ویل کیږي چي رسول الله ﷺددې څخه ځکه منعه فرمایلې ده چي د حقلې جوړلو سره ناسته د لمونځ کونکو د هیئت اجماع خلاف ده، دوهم دا چي د جمعې د لمانځه لپاره په مسجد کي جمع کېدل خپله یو مستقل او عظیم الشیان کار دی تر څو پوري چي ددغه کار څخه یعني د جمعې دلمانځه څخه فارغ نسي په دوهم کار کي بوخت کېدل مناسب نه دي او دا چي په حلقه جوړولو سره ناسته د غفلت سبب دی په دغه دوو صورتونو کي ددې نهي تعلق به په خاصه توګه سره د خطبې وخت سره نه وي .

دریمه وجه دا بیانیږي چي هغه وخت د پټه خوله اوسیدو دی او په زیاته توجه سره د امام د خطبې د اوریدو دی او په حلقه جوړولو سره په ناستي سره د امام خطبې ته توجه کمه وي نو دا صحیح نه ده ، په دې صورت کي به ددې منعه تعلق یوازي د خطبې وخت سره وي نو د لومړني او دویمي توجیه په صورت کي به دا نهي تنزیهي وي او د دویمي توجه په صورت کي به دا نهي تحریمي وي.

﴿۶۷۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمْ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي تاسو ووینئ

مَنْ يَّبِيْعُ أَوْ يَبْتَاعُ فِي الْمَسْجِدِ فَقُوْلُوْا لاَ أَرْبَحَ اللّٰهُ تِجَارَتَكَ وَإِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ

چي يو ثوک رانيول او پلورل کوي په مسجد کي نو هغه ته وواياست چي الله ﷻ دي ستا په تجارت کي تا ته گټه نه درکوي، او هر کله چي تاسو ووينئ

يَّنْشُدُ فِيْهِ ضَالَّةً فَقُوْلُوْا لاَ رَدَّ اللّٰهُ عَلَيْكَ . رواه الترمذي والدارمي

چي يو ثوک د ورک سوي شي لټه کوي نو وواياست چي الله ﷻ دي ستا شی نه در پيدا کوي .ترمذي او دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\٦١٠-٦١١، رقم: ١٣٢١، والدارمي ١\٣٧٩، ٣٨٠، رقم: ١٤٠١.

---

﴿٦٧٩﴾: وَعَنْ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ

د حضرت حكيم بن حزام رضي الله عنه ثخه روايت دی چي رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده د دې ثخه چي

يُّسْتَقَادَ فِي الْمَسْجِدِ وَأَنْ يُّنْشَدَ فِيْهِ الأَشْعَارُ وَأَنْ تُقَامَ فِيْهِ الْحُدُوْدُ . رواه أبو داود في سننه وصاحب جامع الأصول فيه عن حكيم . وفي المصابيح عن جابر .

په مسجد کي قصاص واخيستل سي او همداسي د اشعارو ويلو او په مسجد کي د حد جاري کولو ثخه منعه فرمايلې ده . ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ٤\٦٢٩، رقم: ٤٤٩٠ وجامع الاصول ٣\٣٤٦، رقم: ١٩٣٩.

---

﴿٦٨٠﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى

حضرت معاوية بن قرة د خپل پلار ثخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده

عَنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ يَعْنِي الْبَصَلَ وَالثُّوْمَ وَقَالَ مَنْ أَكَلَهُمَا فَلاَ يَقْرَبَنَّ

د دې دوو بوټو (يعني پياز او وږه) ثخه او فرمايلې يې دي کوم ثوک چي دا شيان وخوري هغه دي نږدې نه راځي

مَسْجِدَنَا وَقَالَ إِنْ كُنْتُمْ لاَ بُدَّ آكِلِيْهِمَا فَأَمِيْتُوْهُمَا طَبْخًا . رواه أبو داود .

زموږ مسجدو ته نږدې نه راځي او دا يې فرمايلي دي که ددې خوراک ضروري وي نو پوخ کړی
يې خورئ . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۴\۱۷۲، رقم: ۳۸۲۷.

**تشريح**: (من اكلهما) د لومړنۍ جملې بيان دی، د رسول الله ﷺ دا فرمايل چې کوم سړی دا وخوري هغه دې مسجد ته نږدې نه راځي ، د پياز، وږې په خوړلو سره په مسجد کې دداخلې منعه د مبالغې په توګه بيانول دي ، ددې مطلب دادی چې کوم سړی دا بدبويه شيان وخوري هغه ته پکار ده چې هغه د مسجد د عظمت او احترام سره سم مسجد ته نږدې هم رانسي او مسجد ته داخلېدل خو پر ځای پرېږده ، يا نږدې دې رانه سي: دا کنايه ده په مسجد کې د نه داخليدو چې کوم سړی پياز او يا وږه خوړلې وي هغه دې په مسجد کې نه داخلېږي .

《۶۸۱》: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْأَرْضُ

د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : مځکه

كُلُّهَا مَسْجِدٌ إِلاَّ الْمَقْبُرَةَ وَالْحَمَّامَ . رواه أبو داود والترمذي والدارمي

ټوله مسجد ده پرته د هديرې او حمام څخه په دې کي لمونځ کول صحيح نه دي . ابوداؤد، ترمذي او دارمي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۳۳۰، رقم: ۴۹۲، والترمذي ۲\۱۳۱، رقم: ۳۱۷، والدارمي ۱\۳۷۵، رقم: ۱۳۹۰

《۶۸۲》: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُّصَلّٰى فِيْ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده د لمانځه څخه په

سَبْعَةِ مَوَاطِنَ فِي الْمَزْبَلَةِ وَالْمَجْزَرَةِ وَالْمَقْبَرَةِ وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ وَفِي الْحَمَّامِ

په اوو ځايو کي ۱: په امبارو کي ۲: د حيوانانو د حلالولو په ځای کي ۳: په هديره کي ۴: د لاري په منځ کي ۵: په حمام کي

وَفِيْ مَعَاطِنِ الْإِبِلِ وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللّٰهِ . رواه الترمذي وابن ماجه .

۶: د اوښانو د تړلو په ځای کي ۷: د خانه کعبې پر بام . ترمذي او ابن ماجه

**تخريج** : سنن الترمذي ۲\ ۱۷۷، ۱۷۸، رقم: ۳۴۶ وابن ماجه ۱\ ۲۴۶، رقم: ۷۴۶.

**تشريح** : ځيني پخواني علماء خو د حديث ظاهري الفاظو كتلو سره دا فرمايي چي په هديره كي د دننه لمونځ مكروه دي او د ځينو علماؤ په نزد په هديره كي لمونځ كول جائز دي مگر قبر ته لمونځ كول په اتفاق سره د علماؤ حرام دي، پر امبارو او مذبح (د حلاليدو ځاى) كي لمونځ كول ځكه مكروه دي چي په دغه دواړو ځايونو كي نجاست او مرداري وي، په دغه ځايو كي كه داسي ځاى لمونځ وكړل سي چي پاك وي مگر د هغه نژدې نجاست هم پروت وي يا پر نجاست باندي مصلى اچولو سره لمونځ وكړل سي نو دا مكروه ده ځكه چي په دې سره د دين سپكوالى او بې وقعتي ظاهرېږي او د لمانځه لوړ شان ددې خبري متقاضي دى چي پر پاك ځاى باندي ادا كړل سي نه دا چي هلته نجاست او مرداري خپره سوې وي، د لاري په مينځ كي لمونځ كول ځكه منعه دي چي هلته د خلكو د تلو راتلو په وجه خيال بلي خوا ته كيږئ او توجه نه تر لاسه كيږي او په دې سره د خلكو په تلو راتلو كي تكليف وي ، دوهم دا چي د عامي لاري په وجه كه خلك د مجبورى په وجه د لمونځ كونكي مخته تير سي نو لمونځ كونكى به گناه كار وي، په حمام كي لمونځ كول ځكه مكروه دي چي هغه د ستر خلاصولو او د شيطان د اوسيدو ځاى دى، د كعبې شريفي پر بام باندي هم لمونځ كول ځكه مكروه دي چي په دې سره د كعبة الله بې ادبي كيږي ، اوس د علماؤ په نزد په دې كي اختلاف دى چي په دغه اووه ځايونو كي لمونځ كولو ته چي مكروه ويل سوي دي نو ايا دا مكروه تنزيهي دي او كه مكروه تحريمي، د ځينو علماؤ په نزد په دغه اوو ځايو كي لمونځ كول مكروه تنزيهي دي او ځيني علماء فرمايي چي دا مكروه تحريمي دي.

﴿۶۸۳﴾ وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلُّوْا فِيْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (كه اړتيا وي) لمونځ كوئ

مَرَابِضِ الْغَنَمِ وَلَا تُصَلُّوْا فِيْ أَعْطَانِ الْإِبِلِ . رواه الترمذي

د پسو د تړلو په ځاى كي مگر د اوښانو د تړلو په ځاى كي (لمونځ) مه كوئ. .ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي: ۲\ ۱۸۰– ۱۸۱، رقم: ۳۴۸.

**تشريح** : د اوښانو تړلو په ځاى كي د لمانځه كولو څخه ځكه منعه فرمايل سوې ده چي د اوښانو سره په لمونځ كولو كي دا انديښنه ده چي اوښان په خلاصېدو سره لغته وغيره ونه وهي

په دې سره نه يوازي دا چي لمونځ کونکي ته د تکليف رسيدو خطره وي بلکه داسي لمونځ هم په ډاډ او اطمينان سره ادا کيدا ينسي البته د پسو څخه دا ډول خطره نه وي ځکه د هغوی په ځای کي د لمانځه کولو اجازه ورکړل سوې ده .

﴿۶۸۴﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرَاتِ الْقُبُوْرِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ لعنت کړی دی د قبرو پر زيارت کونکو ښځو باندي

وَالْمُتَّخِذِيْنَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ وَالسُّرُجَ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي .

او د قبرو څخه مسجد جوړونکو او پر قبرو څراغ بلوونکو باندي لعنت کړی دی . ابوداؤد، ترمذي او نسائي

**تخريج :** سنن ابي داؤد ۳\۵۵۸، رقم: ۲۲۳۶، والترمذي ۲\۱۳۶، رقم: ۳۲۰ والنسائي ۴\۹۴- ۹۵، رقم: ۲۰۴۲.

**تشريح** : رسول الله ﷺ د اسلام په پيل کي د قبرونو د زيارت کولو څخه منعه فرمايلې ده ، بيا وروسته يې ددې اجازه ورکړې ده، ځيني علماء فرمايي چي دا اجازه د خلکو او ښځو دواړه په اړه ده ، ښځو ته وړاندي د قبرونو د زيارت کولو اجازه نه وه مگر اوس ددې عامه اجازه درست او جائز ده، ځيني علماء فرمايي چي ددې اجازې تعلق يوازي د سړو سره دی د ښځو په حق کي هغه نهي اوس هم باقي ده او وجه ددې دا بيانوي چي د ښځو زړونه کمزوري او غير صابري وي په هغوی کي د ژړا او انگولا عادت وي ځکه د هغوی لپاره دا مناسب نه دي چي قبرونو ته ولاړې سي، دا حديث هم په ظاهره ددغه علماؤ تائيد کوي .

د رسول الله ﷺ د قبر مبارک زيارت د جمهورو علماؤ په نزد ددې حکم څخه مستثنی دی يعني د رسول الله ﷺ د قبر زيارت د خلکو او ښځو دواړو لپاره جائز دی ، پر قبر باندي څراغونه بلول ځکه حرام دي چي په دې سره اسراف او مال ضائع کيږي .

البته ځيني علماء وايي که چيري د قبر سره لار وي نو د هغه لاري د آسانی لپاره څراغ ولگول سي يا هلته په رڼا کي د يو کار کولو لپاره څراغ ولگول سي نو دا جائز دي ځکه چي په دې سره به پر قبر باندي څراغ لگول مقصد نه وي بلکه بل ضرورت او حاجت به وي .

د شاه محمد اسحاق محدث دهلوي رحمة الله عليه تحقيق دا دی چي صحيح او معتمد قول سره سم ښځو ته زيارت کول مکروه تحريمي دي ، په مستملي کي ليکل سوي دي چي د

قبرونو زيارت د خلکو لپاره مستحب دی او د ښځو لپاره مکروه دی، په کتاب مجلس واعظیه کي مذکور دي چي د ښځو لپاره دا حلال نه دي چي هغوی قبرونو ته ولاړي سي ،ځکه چي د ابوهريره ﷺ روايت دی چي : انه علیه السلام لعن زورات القبور، يعني رسول الله ﷺ د قبرونو پر زيارت کونکو ښځو باندي لعنت ويلی دی .

په نصاب الاحتساب کي منقول دي چي د ښځو قبرونو ته د تلو جواز او د هغه د خرابۍ او قباحت په باره کي د قاضي څخه پوښتنه وسول ؟ نو هغه وفرمايل : دديٖ جواز او فساد پوښتنه مه کوه بلکه دا پوښتنه وکړه چي پر دې چي کوم لعنت اوريږي د هغه مقدار څه دی ؟ نو پوه سه چي کله ښځه قبر د تلو اراده وکړي نو د الله تعالی او د ملائکو په لعنت کي اخته کيږي او هر کله چي قبر ته ځي نو د هر طرف څخه شيطانان پر رامات سي او کله چي قبر ته ورسيږي نو د مړي روح پر هغې لعنت وايي او کله چي د قبر څخه راستنيږي نو د الله تعالی په لعنت کي اخته سي .

په حديث شريف کي راغلي دي چي کومه ښځه هديرې ته ځي نو د اوو مځکو او اوو آسمانونو ملائکي پر هغې لعنت وايي ، نو هغه د الله تعالی په لعنت کي د هديرې لارپرې کوي او کومه ښځه چي په کور کي ناسته د مړي لپاره دعاوي کوي نو الله تعالی هغې ته د حج او عمرې ثواب ورکوي.

د حضرت سلمان او ابوهريره رضي الله عنهما يو روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ د مسجد څخه په وتلو سره د خپل سرای پر دروازه ولاړ وو چي د دباندي څخه بي بي فاطمه رضي الله عنها راغلل ، هغې عرض وکړ چي فلانۍ ښځه وفات سوې ده د هغې کور ته ورغلې وم ، رسول الله ﷺ پوښتنه ځيني وکړه چي ايا ته د هغې قبر ته هم ورغلې وې ؟ بي بي فاطمې رضي الله عنها وويل : معاذ الله ايا زه هغه عمل کولای سم چي د هغه په باره کي ما ستاسو څخه اوريدلي دي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تا ښه وکړل چي د هغې قبر ته نه ورغلې که چيري ته د هغې قبر ته تللې وای نو د جنت بوی به هم درته تر لاسه سوی نه وای .

قاضي ثناء الله پاني پتي په خپل کتاب مالابد منه کي ليکلي دي چي : د قبرونو زيارت خلکو ته خو جائز دی مګر د ښځو لپاره نه دی .

﴿۶۸۵﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ إِنَّ حِبْرًا مِّنَ الْيَهُوْدِ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو امامه ﷺ څخه روايت دی چي د يهودو يو ډلي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه:

وَسَلَّمَ أَيُّ الْبِقَاعِ خَيْرٌ ؟ فَسَكَتَ عَنْهُ وَقَالَ أَسْكُتُ حَتّٰى يَجِيْءُ جِبْرِيْلُ

كوم ځای غوره دی؟ رسول الله ﷺ پټه خوله سو، او وه يې ويل چي پټه خوله كيږم تر هغو چي جبرائيل عليه السلام راځي،

فَسَكَتَ وَجَاءَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلاَمِ فَسَأَلَ فَقَالَ مَا الْمَسْؤُوْلُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ

نو چوپ سو او كله چي جبرائيل عليه السلام تشريف راوړ نو رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وكړه، جبرائيل عليه السلام ورته وويل په دې اړه زه ستا څخه زيات نه پوهيږم

مِنَ السَّائِلِ وَلٰكِنْ أَسْأَلُ رَبِّيْ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى . ثُمَّ قَالَ جِبْرِيْلُ يَا مُحَمَّدُ إِنِّيْ

مګر زه به د خپل رب څخه پوښتنه وكړم، تر دې وروسته جبرائيل عليه السلام وويل: اې محمده ! زه

دَنَوْتُ مِنَ اللّٰهِ دُنُوًّا مَا دَنَوْتُ مِنْهُ قَطُّ . قَالَ وَكَيْفَ كَانَ يَا جِبْرِيْلُ ؟ قَالَ كَانَ

نن الله جل جلاله ته دومره نژدې ورسيدم چي د دې مخكي هيڅكله دومره نژدې سوى نه وم رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه چي اې جبرائيل ! څنګه او څومره ؟ . جبرائيل عليه السلام وويل :

بَيْنِيْ وَبَيْنَهُ سَبْعُوْنَ أَلْفَ حِجَابٍ مِّنْ نُوْرٍ . فَقَالَ شَرُّ الْبِقَاعِ أَسْوَاقُهَا وَخَيْرُ

زما او د الله جل جلاله په منځ كي يو اويا زره پردې د نور پاته وې، الله جل جلاله وفرمايل : بدترين ځايونه بازارونه دي او غوره ځايونه

الْبِقَاعِ مَسَاجِدُهَا . رواه ابن حبان في صحيحه عن ابن عمر

مسجدونه دي. ابن حبان .

**تخريج**: اخرجه الطبراني في المعجم الكبير ۱۲\۱۲۸، رقم: ۱۵۴۵ و ۱۵۴۶ والامام احمد في المسند ۴\۸۱.

**تشريح**: دغه پردې د مخلوق د نسبت څخه دي د الله تعالى د نسبت څخه نه دي ځكه چي الله تعالى په پردو كي نه دى بلكه مخلوق په پردو كي دى او هغه جسماني او نفساني پردې دي، د دې مثال د يو ړانده ليارہ د لمر په ډول دى چي څرنګه لمر په پرده كي نه دى بلكه خپله د ړانده پر ستركو باندي پرده پرته وي او هغه لمر نسي ليدلاى او لمر هغه ويني يعني خپل رڼا پر اچوي.

پوښتنه كوونكي خو يوازي د غوره ځاى په اړه پوښتنه كړې وه مګر په جواب كي د مقابلې

په توګه د غوره او بد دواړو مقامات وښودل سول چي د رحمان او شیطان دواړو کورونه معلوم سي.
د دې حدیث څخه معلومه سوه که چیري د یو سړي څخه یو داسي مسئله وپوښتل سي چي هغه ته په پوره توګه سره معلومه نه ده نو هغه ته پکار ده چي په جواب ورکولو کي تلوار ونه کړي بلکه د چا په باره کي چي پوهیږي چي هغه ددغه سوال جواب په ښه ډول پیژني نو د هغه څخه دي پوښتنه وکړي او د ځان څخه د زیات علم والا څخه په پوښتنه کولو کي دي څه شرم نه محسوس کوي.
ځکه چي دا د رسول الله ﷺ او د جبرائیل علیه السلام سنت دي، د مشکوة شریف په اصل نسخه کي د رواه څخه وروسته ځای خالي دی ځکه چي د مشکوة مصنف ته د هغه کتاب نوم معلوم نه وو چي د هغه څخه دا روایت نقل کړل سوی دی، وروسته ځینو علماؤ دا کتاب مذکوره لیکلی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

﴿۶۸۶﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي فرمایل یې:

مَنْ جَاءَ مَسْجِدِيْ هٰذَا لَمْ يَأْتِ إِلاَّ لِخَيْرٍ يَّتَعَلَّمُهُ أَوْ يُعَلِّمُهُ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ

کوم څوک چي زما دا مسجد (مسجد نبوي) ته په دې مقصد راسي چي نیکي زده کړي یا یې بل ته وښیي نو د هغه مرتبه به

الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَمَنْ جَاءَ لِغَيْرِ ذٰلِكَ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الرَّجُلِ يَنْظُرُ إِلٰى

د الله تعالی په لار کي د جهاد کونکي مرتبه وي او څوک چي په دې غرض سره را نه سي یعني بل څه مقصد یې وي نو هغه به د هغه سړي په ډول وي چي ګوري

مَتَاعِ غَيْرِهِ. رواه ابن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان.

د بل مال ته په افسوس سره. ابن ماجه او بیهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۸۲-۸۳، رقم: ۲۲۷ والبيهقي في شعب الايمان ۲\۲۶۳، رقم: ۱۶۹۸.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د خپل مسجد یعني مسجد نبوي په خاص کولو سره دې ته اشاره فرمایلې ده چي زما مسجد ته د خپل عظمت او فضیلت په اعتبار تر ټولو اعلی او لوړ دی او

نور مسجدونه ددې تابع دي ځکه چې مذکوره حکم د ټولو مسجدونو لپاره يو ډول دی ، د نيک کار کولو او ښودلو تخصيص يوازي د هغه د فضيلت او اهميت د اظهار په شکل کې دی کنه د لمانځه، اعتکاف، تلاوت او د ذکر ټولو دا حکم دی .

د حديث د آخري برخې مطلب دا دی چې کوم سړی مسجد ته د نيک مقصد لپاره نه راځي د هغه مثال د هغه سړي دی چې د هغه سره هيڅ شی نه وي نو هغه د هغه شي څخه بل چا سره ليدو سره د حسرت او افسوس اظهار کوي دا سړي هم چې په آخرت کې د هغه سړي ثواب چې نيک مقصد او نيک نيت سره مسجد ته راغلی وو وويني او ورته معلومه سي چې مسجد خو د سعادت او د خير د تر لاسه کولو ځای وو نو هغه ډير په غم او حسرت کې اخته سي چې زه ولي د دغه دولت څخه محروم سوم .

يا ددې معنی داده چې يو غير سړی سره د يو شي په ليدو سره هغه ته په بد نظر سره کتل منعه دي همداسې په مسجد کې د نيک کار د نيت څخه بغير راتلل هم منعه دي .

﴿۶۸۷﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي

د حضرت حسن رضي الله عنه څخه مرسلا روايت دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل : ډير ژر به راسي

عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَكُونُ حَدِيثُهُمْ فِي مَسَاجِدِهِمْ فِي أَمْرِ دُنْيَاهُمْ

پر خلکو باندي يو وخت چې خلک به په مسجدو کې دنيوي خبري کوي ،

فَلاَ تُجَالِسُوهُمْ فَلَيْسَ لِلّٰهِ فِيهِمْ حَاجَةٌ . رواه البيهقي في شعب الإيمان .

نو تاسو د هغو خلکو سره مه کښينئ الله تعالی ته د داسې خلکو هيڅ ضرورت نسته . بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في شعب الايمان.

**تشريح** : دا ددې خبري کنايه ده چې الله تعالی د داسې خلکو څخه بيزاره دی او هغوی د الله تعالی د پناه او رحمت څخه وتلي دي او ددې خبري څخه هم کنايه ده چې د الله تعالی په دربار کې د هغوی اطاعت او عبادت د قبوليت درجه نسي تر لاسه کولای .

دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چې په مسجد کې د دنياوي خبرو کول مکروه دي او په ډيرو حديثونو کې هم په مسجد کې د دنياوي خبرو څخه منعه سوې ده او د دنياوي خبرو څخه مراد داسې خبري دي چې عبث ، بې ګټې او د حد څخه زياتي وي او که دنياوي خبري يوازي د

یوې کلمې وي یا ددې درجي نه وي نو هغه په دغه حکم کي داخل نه دي .

﴿۶۸۸﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ كُنْتُ نَائِمًا فِي الْمَسْجِدِ فَحَصَبَنِيْ رَجُلٌ

د حضرت سائب رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه په مسجد کي بیده وم چي یو سړي زه په شګه وویشتم

فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ اذْهَبْ فَأْتِنِيْ بِهٰذَيْنِ فَجِئْتُهُ بِهِمَا

ما چي وکتل نو هغه عمر بن خطاب رضي الله عنه وو ، هغه ما ته وویل: ورسه او دغه دوه خلک را وغواړه (چي په مسجد کي په لوړ آواز) خبري کوي ، ما هغوی را وغوښتل

فَقَالَ مِمَّنْ أَنْتُمَا أَوْ مِنْ أَيْنَ أَنْتُمَا قَالَا مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ . قَالَ لَوْ كُنْتُمَا مِنْ

حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه ځیني وکړه تاسو څوک یاست؟ یا د کوم ځای اوسیدونکي یاست ؟ هغوی وویل موږ د طائف اوسیدونکي یو ، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وویل: که تاسو وای

أَهْلِ الْمَدِيْنَةِ لَأَوْجَعْتُكُمَا تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا فِي مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم .

رواه البخاري .

د مدینې او سیدونکي نو ما به سزا درکړې وای تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مسجد کي په زوره زوره خبري کوئ . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱۱ ۵۶۰، رقم: ۴۷۰.

**د لغاتو حل**: (فَحَصَبَنِي): ای رجمني بالحصباء وهي الحجارة الصغيرة. (په شګه ویشل).

**تشريح**: په (او من این انتما) جمله کي لفظ د (او) د شک لپاره دی یعني راوي ته شک واقع کیږئ چي حضرت عمر رضي الله عنه دا وفرمایل چي تاسو څوک یاست ، یا دایې وفرمایل چي تاسو د کوم ځای اوسیدونکي یاست ، په هر حال په مسجد کي په لوړ آواز سره خبري کول مکروه دي.

﴿۶۸۹﴾: وَعَنْ مَالِكٍ قَالَ بَنٰى عُمَرُ رَحْبَةً فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ تُسَمَّى الْبُطَيْحَا

د حضرت مالک څخه روایت دی چي حضرت عمر رضي الله عنه د مسجد په یوه کونج کي یوه دوکانچه جوړه کړې وه چي د هغې نوم بطیحا وه

وَقَالَ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ أَنْ يَّلْغَطَ أَوْ يُنْشِدَ شِعْرًا أَوْ يَرْفَعَ صَوْتَهُ فَلْيَخْرُجْ إِلٰى هٰذِهِ الرَّحْبَةِ . رواه في الموطأ .

او خلكو ته يې ويلي وه كوم چا ته چي د خبرو كولو ضرورت وي يا شعر ويل غواړي يا په لوړ آواز سره خبري كول هغه دي د مسجد څخه د باندي وځي او په دې بطيحا كي دي كښيني. مؤطا.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۷۵، رقم: ۹۳.

﴿۶۹۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د قبلې په لور ګروړبى وليدى

فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِ حَتّٰى رُئِيَ فِي وَجْهِهِ فَقَامَ فَحَكَّهُ بِيَدِهِ فَقَالَ إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا

نو ډير بد پر ولګېدى تر دې چي پر مخ مبارک يې د ناخوښۍ اثر څرګند سو ، رسول الله ﷺ ودرېدى او په خپل لاس مبارک سره يې هغه وګروول بيا يې وفرمايل : كله چي په تاسو كي يو څوک

قَامَ فِي صَلَاتِهِ فَإِنَّمَا يُنَاجِي رَبَّهُ وَ إِنَّ رَبَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ فَلَا يَبْزُقَنَّ

د لمانځه لپاره درېږئ نو د خپل پروردګار سره خبري كوي او د غه وخت ستاسو پروردګار ستاسو او د قبلې په منځ كي وي په داسي حالت كي دي نه توكي

أَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهِ وَلٰكِنْ عَنْ يَّسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ

هيڅوک ستاسو څخه د قبلې په لور بلكه چپه لوري ته يا د پښو لاندي دي تو كړي ، ددې وروسته رسول الله ﷺ د خپل څادر په يو كونج كي

فَبَصَقَ فِيْهِ ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهُ عَلٰى بَعْضٍ فَقَالَ أَوْ يَفْعَلُ هٰكَذَا . رواه البخاري .

تو كړل او هغه يې و موږى او وه يې فرمايل داسي دي كوي . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\ ۵۰۷، ۵۰۸، رقم: ۴۰۵.

**تشريح** : د هغه پروردګار د هغه او د قبلې په مينځ كي وي ددې دا معنى ده چي هر كله يو سړى د لمانځه لپاره درېږي نو هغه د قبلې خواته په متوجه كيدو سره د خپل رب خوا ته متوجه سي او

د هغه د قرب اراده لري نو د هغه مطلوب او مقصود د هغه او قبلې په مینځ کي دی ځکه دا حکم وسو چي د قبلې خوا ته د توکلو څخه ځان منعه کړئ. چپې خوا ته یا د پښو لاندي چي د توکلو کوم حکم ورکړل سوی دی هغه په دې صورت کي دی چي هرکله یو سړی په مسجد کي لمونځ کوي په مسجد کي د لمانځه کولو په صورت کي چپې خواته یا د قدمو لاندي توکل نه دي پکار چي په دې سره د مسجد په اداب او احترام کي فرق راځي بلکه په دې صورت کي که د توکلو ضرورت محسوس سي نو پر یو جامه باندي دي وتوکي بیا دي هغه په موږلو سره پاکه کړي .

﴿۶۹۱﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ خَلاَّدٍ وَهُوَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت سائب بن خلاد ﷜ څخه چي د رسول الله ﷺ یو صحابي دی ، روایت دی چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ رَجُلاً أَمَّ قَوْمًا فَبَصَقَ فِي الْقِبْلَةِ وَرَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

یو سړی د مسجد امام جوړ سو ، هغه د لمانځه په حالت کي د قبلې په لور و تُوکل ، رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ فَرَغَ لاَ يُصَلِّيْ

هغه ولیدی کوم وخت چي هغه لمونځ وکړ نو رسول الله ﷺ خلکو ته وویل: لمونځ دي نه درکوي

لَكُمْ فَأَرَادَ بَعْدَ ذٰلِكَ أَنْ يُّصَلِّيْ لَهُمْ فَمَنَعُوْهُ وَأَخْبَرُوْهُ بِقَوْلِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى

دا سړی تاسو ته تر دې وروسته کله چي هغه سړي د لمانځه ورکولو اراده وکړه نو هغوی په ده پسي د لمانځه کولو څخه انکار وکړ او هغه یې د رسول الله ﷺ د قول څخه خبر کړ ،

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ نَعَمْ

هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د دې پیښي یادونه یې ورته وکړه ، رسول الله ﷺ ددې تصدیق وکړ ،

وَحَسِبْتَ أَنَّهُ قَالَ إِنَّكَ آذَيْتَ اللهَ وَرَسُوْلَهُ . رواه أبو داود .

د راوي بیان دی چي رسول الله ﷺ دا الفاظ هم ویل تا خدای ﷻ او د هغه رسول ته تکلیف ورسوی . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۲۴، رقم: ۴۸۱.

﴿۶۹۲﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ احْتُبِسَ عَنَّا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي زنږ وکړ موږ ته په راتګ کي رسول الله ﷺ

ذَاتَ غَدَاةٍ عَنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتَّى كِدْنَا نَتَرَاءَى عَيْنَ الشَّمْسِ فَخَرَجَ سَرِيعًا

يوه ورځ د سهار په لمانځه کي، نژدې وو چي لمر د ختيځ څخه څرګند سي چي رسول الله ﷺ تشريف راوړی

فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ فَصَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَجَوَّزَ فِي صَلَاتِهِ

اقامت وکړل سو د لمانځه او رسول الله ﷺ لمونځ ورکړ او تخفيف يې وکړ په قرائت او د لمانځه په ارکانو کي

فَلَمَّا سَلَّمَ دَعَا بِصَوْتِهِ فَقَالَ لَنَا عَلَى مَصَافِّكُمْ كَمَا أَنْتُمْ ثُمَّ انْفَتَلَ إِلَيْنَا ثُمَّ

د سلام ګرځولو وروسته يې په لوړ آواز سره وفرمايل: چيري چي ناست ياست هلته ناست اوسئ، تر دې وروسته زموږ په لور متوجه سو

قَالَ أَمَا إِنِّي سَأُحَدِّثُكُمْ مَا حَبَسَنِي عَنْكُمُ الْغَدَاةَ أَنِّي قُمْتُ مِنَ اللَّيْلِ

وه يې فرمايل: خبر اوسئ تاسو چي زه خبروم تاسو چي ولي سهار تاسو ته نه راغلم، د شپې (د تهجد لپاره) پورته سوم

فَتَوَضَّأْتُ وَصَلَّيْتُ مَا قُدِّرَ لِي فَنَعَسْتُ فِي صَلَاتِي حتى اسْتَثْقَلْتُ فَإِذَا أَنَا بِرَبِّي

اودس مي وکړ او څومره لمونځ چي په مقدر کي وو هغه مي ادا کړ په لمانځه کي زه کهاله سوم تر دې چي خوب را باندي غالب سو ناڅاپه ما خپل پروردګار وليدی

تَبَارَكَ وَتَعَالَى فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَبِّ قَالَ فِيمَ

په ډير ښه شکل او صورت کي، الله تعالى ما ته وفرمايل: اې محمد! ما وويل: حاضر يم اې ربه، الله پاک وفرمايل: په کوم شي کي

يَخْتَصِمُ الْمَلأُ الأَعْلَى قُلْتُ لاَ أَدْرِي قَالَهَا ثَلاَثًا قَالَ فَرَأَيْتُهُ وَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ

بحث کوي مقربي ملائکي ؟ ما عرض وکړ ما ته نه ده معلومه ، درې ځله الله پاک دغه پوښتنه وکړه او ما دغه جواب ورکړ ، بیا ما ولیدل چي الله تعالی خپل لاس کښېښود په منځ کي

كَتِفَيَّ حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ أَنَامِلِهِ بَيْنَ ثَدْيَيَّ فَتَجَلَّى لِي كُلُّ شَيْءٍ وَعَرَفْتُ فَقَالَ

زما د دواړو اوږو چي د هغه یخ والی ما په خپله سینه کي حس کړ او هر شی زما لپاره ځلانده کړل سو او زه د ټولو شیانو څخه خبر کړل سوم بیا الله تعالی وفرمایل :

يَا مُحَمَّدُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَبِّ قَالَ فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلأُ الأَعْلَى قُلْتُ فِي الْكَفَّارَاتِ

اې محمد ! ما وویل حاضر یم اې زما ربه ! الله تعالی وفرمایل : مقربي ملائکي په کوم شي کي خبري کوي ما عرض وکړ د ګناهونو د کفارې په مسئله کي ،

قَالَ مَا هُنَّ قُلْتُ مَشْيُ الأَقْدَامِ إِلَى الْجَمَاعَاتِ وَالْجُلُوسُ فِي الْمَسَاجِدِ بَعْدَ

الله تعالی پوښتنه وکړه : د ګناهونو کفاره څه شي ده ؟ ما عرض وکړ مسجدو ته پر پښو تلل او کښېنستل په مسجدونو کي وروسته

الصَّلَوَاتِ وَإِسْبَاغُ الْوُضُوءِ حِينَ الْكَرِيهَاتِ قَالَ ثُمَّ فِيمَ قُلْتُ فِي الدَّرَجٰتِ

تر لمانځه او د نورو لمنځو انتظار کول او پوره اودس کول دي په سخت حالت کي ، تر دې وروسته الله تعالی پوښتنه وکړه : ملائکي په بله کومه خبره کي بحث کوي؟ ما عرض وکړ چي د درجاتو په اړه ،

قَالَ وَمَا هُنَّ قُلْتُ إِطْعَامُ الطَّعَامِ وَلِينُ الْكَلاَمِ وَالصَّلاَةُ بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ

الله تعالی پوښتنه وکړه : هغه درجات څه شي دي ؟ ما عرض وکړ : ډوډۍ ورکول ، اخلاق او په نرمي سره خبري کول او هر کله چي خلک د شپې بیده وي نو لمونځ کول ،

قَالَ سَلْ قَالَ قُلْتُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَحُبَّ

بیا الله تعالی وفرمایل هره دعاء چي د ځان لپاره غوره ګڼې هغه وغواړه : ما عرض وکړ : اللهم

اني اسئلک ... الی حبک، (اې الله زه ستا څخه سوال کوم د ښو کارونو د کولو، د خرابو کارونو د پرېښودلو، د دوستي ساتلو

الْمَسَاكِينِ وَأَنْ تَغْفِرَ لِي وَتَرْحَمَنِي وَإِذَا أَرَدْتَ فِتْنَةً فِيْ قَوْمٍ فَتَوَفَّنِي غَيْرَ

د مسکینانو سره او دا چي ته ما و بخښې او پر ما رحم وکړې او هر کله چي ته يو قوم په فتنه کي د اخته کولو اراده وکړې نو په فتنه کي د اخته کيدو څخه مخکي ما وفات کړې غير

مَفْتُونٍ وَأَسْأَلُكَ حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يُحِبُّكَ وَحُبَّ عَمَلٍ يُقَرِّبُنِيْ إِلَى حُبِّكَ فَقَالَ

له فتني څخه او زه ستا څخه ستا محبت غواړم او د هغه چا محبت چي ته يې خوښوې او د هغه کار محبت چي ما ستا محبت ته نژدې کوي، تر دې وروسته رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل:

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا حَقٌّ فَادْرُسُوهَا ثُمَّ تَعَلَّمُوهَا. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح وسالت محمد بن اسماعيل عن هذا الحديث فقال هذا حديث صحيح.

دا خوب حق دی دا په ياد ولرئ او نورو ته يې ورسوئ (احمد، ترمذي) ترمذي ويلي دا حديث حسن صحيح دی او ما د محمد بن اسماعيل څخه په دې اړه پوښتنه وکړه نو هغه وويل دا حديث صحيح دی. احمد او ترمذي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۲۴۳، وسنن الترمذي ۵\ ۳۴۳- ۳۴۴، رقم: ۳۲۳۵.

**تشريح**: ددې حديث وضاحت ددې باب د حديث (۶۷۱) په تشريح کي سوی دی ځکه اوس دلته د نور وضاحت ضرورت نسته مګر په دې خبره باندي پوه سئ چي ددې حديث څخه په راحت دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ الله تعالی په خوب کي ليدلی وو او دا سوال او جواب د خوب په حالت کي سوي وه.

《۶۹۳》: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما څخه روايت دی چي کله رسول الله ﷺ به

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ وَبِوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ

فرمایل کله چي به مسجد ته ننوتی : اعوذ بالله.....الخ ، (زه د شیطان رټل سوي څخه د الله په ذریعه د هغه بزرګ او برتر ذات په واسطه

وَسُلْطَانِهِ الْقَدِيْمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ قَالَ فَإِذَا قَالَ ذٰلِكَ قَالَ الشَّيْطَانُ

او د قدیم سلطنت په ذریعه پناه غواړم) ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل کوم مسلمان چې دغه دعاء ویلو سره مسجد ته ننوزي نو شیطان وایي

حُفِظَ مِنِّيْ سَائِرَ الْيَوْمِ . رواه أبو داود .

دا سړی ټوله ورځ زما د شر څخه خلاص سو . ابوداؤد

**تخریج** : سنن ابي داؤد ۱\۳۱۸، رقم: ۴۶۶.

﴿۶۹۴﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عطاء بن یسار رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ قَبْرِيْ وَثَنًا يُّعْبَدُ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى قَوْمٍ اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ

اې الله ! زما قبر بُت مه جوړوې چي خلک يې عبادت کوي، بیا يې وفرمایل : پر هغه قوم د الله جل جلاله غضب نازل سو کومو چي

أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ . رواه مالك مرسلا .

د خپلو انبیاؤ قبرو ته سجدې کولې . مالک

**تخریج** : الامام مالک في الموطا ۱\۱۷۲، رقم: ۸۵.

**تشریح** : د رسول ﷺ د دعا مطلب دا دی چي پروردګاره! ته زما قبر په دې معامله کي د بتانو په ډول چي زما د امت خلک زما د قبر د شریعت خلاف تعظیم پیل کړي یا په څو څو واره د زیارت کولو لپاره د میلې په توګه راځي یا زما قبر د سجدې ځای و ګرځوي او خپل تندی چي یوازي ستا لپاره د اینبودو وړ دی په هغه ایږدې او سجده کول پیل کړي، دا حدیث او دا دعا

څو واره وواياست او بيا لږ د نن سبا پر حالاتو دا منطبق کړئ بيا به تاسو ته معلومه سي چي د رسول ﷺ ددغه دعا تعلق د راتلونکي زمانې سره وو د رسول اللهﷺ عرفاني نظر وليدل چي هغه وخت راتلونکی دی چي زما قبر خو بيل سو د اولياء الله پر مزارونه به سجدې کيږي ، پر هديرو باندي ميلې جوړيږي هلته به عروس او شوقونه کيږي، پر قبرونو باندي به څادرونه او ګلونه پاشل کيږي ، مقصد دا چي څرنګه چي بت پرست قوم د الله تعالی د عبادت او فرمانبردارۍ څخه په سرکښۍ کولو سره د بتانو سره معامله کوي زما د امت بدبخته او بد نصيبه خلک به چي زما د نامه مينه وال به ګڼل کيږي زما د ميني دعوا به کوي ، زما د راوړل سوي پاک شريعت په پناه کي به زما ددين په نامه هغه معامله د قبرونو سره کوي ، نو رسول الله ﷺ دعاء وغوښتل چي اې پروردګاره ! ته زما امت په داسي ګمراهۍ کي اخته مه کړې چي هغوی زما د قبر عبادت پيل کړي .

د دې جملې (اشتد غضب ..... الخ) تعلق د دعاء سره نه دی بلکه دا جمله مستانفه يعني يوه بيله جمله ده ، ګويا رسول الله ﷺ چي دا دعاء وکړه نو خلکو پوښتنه وکړه چي تاسو دا دعاء ولي کوئ ؟ نو په جواب کي رسول الله ﷺ دا وفرمايل : اشتد .... الخ، يعني زه پر خپل امت باندي د ډير شفقت او مهربانۍ لپاره دا دعاء کوم چي داسي نه دوی هم په دغه لعنت کي اخته سي څرنګه چي يهود او نصاری وغيره په دغه لعنت کي په اخته کېدو سره د الله تعالی په غضب کي اخته سول .

﴿۶۹۵﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحِبُّ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به خوښول

الصَّلَاةَ فِي الْحِيطَانِ قَالَ بَعْضُ رُوَاتِهِ يَعْنِي الْبَسَاتِيْنَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب لا نعرفه إلا من حديث الحسن بن أبي جعفر وقد ضعفه يحيى ابن سعيد وغيره .

په باغو کي لمونځ کول او ځيني روايتونه وايي چي مراد د حيطان څخه باغونه دي . (احمد او ترمذي) ويلي دي چي دا حديث غريب دی چي حسن بن ابي جعفر څخه پرته موږ ته معلوم نه سو او حسن بن ابي جعفر يحيی بن سعيد او نورو ضعيف ګرځولی دی . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۱۵۵ - ۱۵۶، رقم: ۳۳۴.

﴿۷۹۶﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : لمونځ

الرَّجُلِ فِيْ بَيْتِهِ بِصَلَاةٍ وَّصَلَاتُهُ فِيْ مَسْجِدِ الْقَبَائِلِ بِخَمْسٍ وَعِشْرِيْنَ صَلٰوةً

د سړي په خپل کور کي د یوه لمانځه برابر او د محل په مسجد کي د پنځه ویشت لمنځو برابر دی

وَصَلٰوتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِيْ يُجَمَّعُ فِيْهِ بِخَمْسِ مِئَةِ صَلَاةٍ وَصَلَاتُهُ فِيْ

او په هغه مسجد کي په کوم کي چي د جمعې لمونځ کیږي د پنځو سوو لمنځو برابر او په

الْمَسْجِدِ الْأَقْصٰى بِخَمْسِيْنَ أَلْفِ صَلَاةٍ وَصَلَاتُهُ فِيْ مَسْجِدِيْ بِخَمْسِيْنَ أَلْفِ

مسجد اقصی کي د پنځوسو زرو لمنځو برابر او زما په دې مسجد (مسجد نبوي) کي د پنځوسو زرو

صَلَاةٍ وَصَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ بِمِائَةِ أَلْفِ صَلَاةٍ. رواه ابن ماجه.

لمنځو برابر او په مسجد حرام کي د یوه لک لمنځو برابر دی. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۵۳، رقم: ۱۴۱۳.

**تشريح**: د دې حدیث په ذریعه د مسجدونو مرتبې او په هغه کي د لمانځه کولو ثواب د فرق او درجو معلومات کیږي لکه چي فرمایل سوي دي چي تر ټولو کمه درجه خو د یو چا کور دی، یعني که یو سړی د خپل سیمي په کور کي لمونځ کوي نو هغه ته د پنځه ویشت لمنځو ثواب تر لاسه کیږي، همداسي که په جامع مسجد کي لمونځ کوي نو هغه ته د پنځه سوو او په بیت المقدس او مسجد نبوي کي لمونځ کونکي ته د هغه د یوه لمانځه په بدله کي د پنځوسو زرو لمنځو ثواب ورکول کیږي او که یو سړی په مسجد حرام کي د لمانځه کولو سعادت تر لاسه کړي نو هغه ته د یوه لمانځه په بدله کي د یوه لک لمنځو ثواب ورکول کیږي.

۶۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَيُّ مَسْجِدٍ وُّضِعَ فِي الْأَرْضِ أَوَّلُ؟

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته وويل: اې دالله رسوله! تر ټولو وړاندي پر مځکه کوم مسجد جوړ سوی دی؟

قَالَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ أَيُّ؟ قَالَ ثُمَّ الْمَسْجِدَ الْأَقْصٰى. قُلْتُ

رسول الله ﷺ وفرمايل مسجد حرام، ما عرض وکړ ددې وروسته؟ رسول الله ﷺ وفرمايل مسجد اقصی، ما بيا پوښتنه وکړه چي

كَمْ بَيْنَهُمَا؟ قَالَ أَرْبَعُوْنَ عَامًا ثُمَّ الْأَرْضُ لَكَ مَسْجِدٌ فَحَيْثُ مَا أَدْرَكْتَكَ الصَّلَاةَ فَصَلِّ. متفق عليه

ددې دواړو د جوړېدو په منځ کي څومره فرق وو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل څلوېښت کاله، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل هو، اوس خو ټوله مځکه ستا لپاره مسجد دی کوم ځای چي دي د لمانځه وخت سي هلته يې وکړه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ٦\٤٠٧، رقم: ٣٣٦٦ و مسلم ١\٣٧٠، رقم: ٢– ٥٢٠.

**تشريح**: دلته يو اشکال پيدا کيږي او هغه دا چي د کعبة الله جوړونکي حضرت ابراهيم عليه السلام دی او د بيت المقدس بنسټ اېښودونکی حضرت سليمان عليه السلام دی او په تاريخي توګه سره دا ثابته ده چي ددغه دواړو پيغمبرانو په مينځ کي د زرو کالو څخه زيات فرق دی نو رسول الله ﷺ دا په کوم اعتبار وفرمايل چي د کعبة الله او بيت المقدس د جوړېدو په مينځ کي يوازي د څلوېښتو کالو فرق دی؟. ددې په جواب کي علامه ابن جوزي رحمة الله عليه فرمايي چي: ددې حديث په ذريعه ددغه دواړو مسجدونو د جوړېدو اول ظرف ته اشاره ده چي د کعبې جوړونکی حضرت ابراهيم عليه السلام نه دی.

همداسي د بيت المقدس اول جوړونکی هم حضرت سليمان عليه السلام نه دی بلکه د کعبې جوړېدل تر ټولو مخکي حضرت آدم عليه السلام کړې ده بيا د حضرت آدم عليه السلام څخه وروسته د هغه اولاد پر ټوله مځکه خپاره سول نو کيدای سي چي د هغه د اولاد څخه يو چاد بيت المقدس بناء اېښې وي او ددغه دواړو جوړېدو تر مينځ د څلوېښتو کالو فرق وي بيا د هغه څخه وروسته

حضرت ابراهيم عليه السلام كعبه جوړه كړه او حضرت سليمان عليه السلام بيت المقدس تعمير كړ.
علامه ابن حجر عسقلاني رحمة الله عليه فرمايي چي : ما ته ددې حديث توثيق د علامه ابن هشام ددغه مقولې څخه كيږي چي هغه په كتاب التسبيحات كي ليكلي دي چي كله حضرت آدم عليه السلام د كعبة الله د جوړېدو څخه فارغ سو نو هغه ته الله تعالى حكم وركړ چي اوس د بيت المقدس په سيل كولو سره هغه جوړ كړه نو هغه د حكم تعميل كي بيت المقدس جوړ كړ او په هغه كي يې عبادت وكړ نو كيداى سي چي ددغه دواړو په جوړېدو كي د څلوېښتو كالو فرق وي . يعني د علماؤ څخه ددغه حديث توجيه دا منقول ده چي : كله چي حضرت ابراهيم عليه السلام كعبه جوړول نو د مسجد حد يې ټاكلى وو همداسي د بيت المقدس به يې هم حد ټاكلى وي نو كيداى سي چي ددغه حدونو د ټاكلو درمياني وقفه څلوېښت كاله وي.

=======

## بَابُ السَّتْرِ (د ستر بيان)

د لمانځه په صحيح توګه ادا كولو كي چي كوم شرطونه دي په هغو كي يو شرط ستر يعني د عورت پټول هم دي، د مشكوة شريف مصنف رحمة الله عليه په دغه باب كي د ستر په اړه حديثونه بياوي ، ددې څخه پرته په دې باب كي مصنف رحمة الله عليه د هغه جامو په اړه هم حديثونه نقل كوي په كوم كي چي رسول الله ﷺ او صحابه كرامو لمنځونه كړي دي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۶۹۸﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر بن ابي سلمة رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ ليدلى دى

يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ مُشْتَمِلاً بِهِ فِي بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ وَاضِعًا طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ. متفق عليه

چي لمونځ يې كوى يوازي په يوه جامه كي يعني رسول الله ﷺ د بي بي ام سلمه په كور كي يوه جامه پر بدن مبارك داسي اچولې وه چي د هغې دوه طرفه د رسول الله ﷺ پر مباركو اوږو وه.

بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحیح البخاري (فتح الباري) : ۱\ ۴۶۹، رقم: ۳۵۶ و مسلم ۱\ ۳۶۸، رقم: ۲۷۸- ۵۱۷.

**تشريح** : اشتمال دې ته وايي چي د جامې هغه کونج چي پر راسته اوږه وي د چپه لاس لاندي را وايستل سي او بيا هغه څنډه اخيستو سره چي د راسته لاس د لاندي څخه پر چپه لاس باندي اچول سوې وي دواړه په يو ځای کولو سره پر سينه غوټه کړل سي مګر د غوټې ورکولو ضرورت يوازي په هغه صورت کي وي هر کله چي د جامې څنډې اوږدې نه وي او د هغه د خلاصېدو ويره وي، که څونډې اوږدې وي نو بيا د غوټې ورکولو ضرورت نسته څرنګه چي د يمن د سفيرانو د جامو څخه څرګنده ده دا وجه ده چي د ځينو شارحينو په عبارتونو کي د غوټې ورکولو ذکر نه دی سوی ، په دغه حديثو کي د مشتمل، متوشح او مخالف بين طرفيه کوم الفاظ چي راغلي دي د ټولو يوه معنی ده او د ټولو يو مذکوره صورت دی .

﴿۶۹۹﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّيْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : لمونځ دي نه کوي

أَحَدُكُمْ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلَى عَاتِقَيْهِ مِنْهُ شَيْءٌ. متفق عليه

په تاسو کي يو څوک په يوه جامه کي تر څو پوري چي د هغه د جامې يوه برخه پر اوږو نه وي.
بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) :۱\ ۴۷۱، رقم: ۳۵۹، و مسلم ۱\ ۳۶۸، رقم: ۲۷۷- ۵۱۶.

**تشريح** : مطلب دادی چي د اشتمال په صورت کي خو د لمانځه کولو اجازه ده ځکه چي په هغه کي د جامې يو برخه پر اوږو وي او که پر اوږو د جامې يو برخه هم نه وي نو په دې صورت کي به د لمانځه کولو اجازه نه وي او ددې حکمت علماء دا ليکي که يوازي يوه جامه وي او هغه بنده کړل سي او د هغه يو برخه پر اوږو وانه چول سي نو په دې صورت کي د حاضري وخت کېدو په وجه دا د بې ادبۍ شکل دی .

حضرت امام اعظم رحمة الله عليه ، حضرت امام مالک رحمة الله عليه، حضرت امام شافعي رحمة الله عليه او د جمهورو علماؤ په نزد دا نهي تنزيهي ده تحريمي نه ده ، دا حضرات فرمايي که يو سړی يوازي په يوه جامه کي داسي لمونځ وکړي چي د هغه جامې هيڅ ډول برخه پر اوږو نه وي مګر ستر پټ وي نو د هغه لمونځ کيږي مګر په کراهيت سره به وي ، حضرت امام

احمد رحمة الله علیه او نور علماء سلف د حدیث پر ظاهر باندي په عمل کولو سره فرمايي چي په دې صورت کي د هغه سړي لمونځ نه کيږي .

﴿۷۰۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ صَلّٰى فِيْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: کوم څوک چي لمونځ کوي په

ثَوْبٍ وَّاحِدٍ فَلْيُخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ . رواه البخاري .

يوه جامه کي هغه ته پکار دي چي د دې جامې دواړه طرفونه (څوکي) واړوي يو تر بل . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) : ۱\۴۷۱، رقم: ۳۶۰.

﴿۷۰۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ خَمِيْصَةٍ لَهَا

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په يو داسي څادر کي لمونځ وکړ چي

أَعْلاَمٌ فَنَظَرَ إِلٰى أَعْلاَمِهَا نَظْرَةً فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ اذْهَبُوْا بِخَمِيْصَتِيْ هٰذِهِ إِلٰى

هغه پلوونه درلودل کوم وخت چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو وه يې فرمايل : دا څادر

أَبِيْ جَهْمٍ وَّأْتُوْنِيْ بِأَنْبِجَانِيَّةِ أَبِيْ جَهْمٍ فَإِنَّهَا أَلْهَتْنِي آنِفًا عَنْ صَلاَتِيْ . متفق عليه، وفي رواية للبخاري قال كنت أنظر إلى علمها وأنا في الصلاة فأخاف أن يفتنني .

ابي جهم (تجار) ته حواله کړئ او د هغه څخه ما ته انبجانيه څادر راوړئ، دې څادر زه د لمانځه وايستم (يعني حضور قلب راته تر لاسه نه سو) بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) : ۱\۴۸۲، رقم: ۳۷۳ ومسلم ۱\۳۹۱، رقم: ۶۲-۵۵۶.

**د لغاتو حل**: (خَمِيصَة): كساء من صوف او خز، معلمته سوداء. (يو ډول جامې). (انبِجانِية): هي كساء لا علم له.

**تشريح**: خميصه يو څادر ته وايي د وړيو څخه وي د هغه رنګ تور وي او کربښي لرونکی وي

نو (لها اعلام) جمله یا خو د خمیصه تاکید دی یا ددې بیان دی، دا څادر یو صحابي حضرت ابو جهم رضي الله عنه د تحفې په توګه د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي کړی وو، رسول الله ﷺ چي د هغه په اچولو سره لمونځ وکړ او د لمانځه په دوران کي یې نظر پر کرښو باندي ولویدی نو په زړه مبارک کي یې څه فرق محسوس کړ، د لمانځه څخه د فارغه کېدو سره یې صحابه کرامو ته وفرمایل چي دا ابو جهم ته بیرته ورکړئ، رسول الله ﷺ ته دا خیال پیدا سو چي کیدای سي د څادر په بیرته ورکولو سره د یو مخلص صحابي زړه مات سي ځکه یې نو دا وفرمایل چي ددې په بدله کي د هغه څخه اینجانیه راوړی، اینجان د یو ښار نوم دی چي د هغه ښار څادرونه به بالکل تور وه نو څادر هم د هغه ښار په خاطر سره اینجانیه بلل کیدی..

د دې حدیث څخه معلومه سوه چي ظاهري نقش او نګار پاک نفسونه او صاف زړونه هم متاثر کوي او دا تاثیر د زړه د زیاتي صفائي او لطافت په وجه وي څرنګه چي یو صاف او سپین څادر باندي معمولي تور ټکی هم لویږي نو هغه سمدستي معلومیږي او ناخوښه څرګندیږي او څادر چي څومره زیات سپین وي هغه تور ټکی هغومره زیات څرګندیږي، همدا حال د هغه نفسو قدسیه دی چي د چا زړه او دماغ تعلق مع الله او د ریاضت او مجاهده په وجه دومره پاک سي چي ګناه او معصیت خو بیل شی دی د یو معمولي مباح شي ادنی قصور هم پر زړه او دماغ باندي اثر کوي مګر د هغوی په مقابله باندي خراب باطن خلک هم وي چي د هغوی پر زړه او دماغ باندي لوی لوی ګناهونه هم اثر نه کوي. زموږ خیال دی چي ددې حدیث په ذریعه امت ته دا تعلیم ورکول مقصد دي چي د لمانځه په اړه داسي شیانو څخه احتیاط کول پکار دي چي د لمانځه څخه د خیال اړولو سبب جوړیږي.

﴿۷۵۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ قِرَامٌ لِّعَائِشَةَ سَتَرَتْ بِهِ جَانِبَ بَيْتِهَا فَقَالَ لَهَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي عائشې رضي الله عنها د خپل سرای په یوه کونج کي پرده اچولې وه نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل:

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمِيطِي عَنَّا قِرَامَكِ هٰذَا فَإِنَّهُ لَا يَزَالُ تَصَاوِيْرُهُ تَعْرِضُ لِي فِي صَلَاتِي. رواه البخاري.

ته دا پرده زموږ د مخه څخه لیري کړه ددې عکسونه په لمانځه کي زما مخ ته برابر وي. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\۱ ۴۸۴، رقم: ۳۷۴.

**د لغاتو حل:** (قِرام): سَتر رقيق فيه نقوس. (نقش لرونکې نازکه پرده).

**تشريح:** په ښکاره خو دا معلومېږي چې دا پرده بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها د ديوال پټولو دپاره پر ديوال ايښې وه خو ځينې حضرات وايي چې دا پرده د چپرکټ په طريقه وه، په هر حال بي بي عائشې رضي الله عنها دا پرده تر هغه وخته پورې لګولې وه تر څو پورې چې هغه ته د حديث نهي معلومه نه وه کله چې رسول مبارک ﷺ هغه منعه کړل نو هغې هغه پرده ليرې کړه.

﴿۷۵۳﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ أُهْدِيَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ ته په تحفه کې ورکړل سوه

فَرُّوجُ حَرِيرٍ فَلَبِسَهُ ثُمَّ صَلَّى فِيهِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَزَعَهُ نَزْعًا شَدِيدًا كَالْكَارِهِ

يوه رېښمينه قبا (چپنه)، رسول الله ﷺ هغه واغوستل او لمونځ يې پکښې وکړ، بيرته راغلی او په ډېره سختۍ سره يې وکښل لکه رسول الله ﷺ چې د هغه څخه نفرت کوی

لَهُ ثُمَّ قَالَ لَا يَنْبَغِي هَذَا لِلْمُتَّقِينَ. متفق عليه

بيا يې وفرمايل: د پرهيزګارانو لپاره دا جامه وړ نه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري):۱\ ۴۸۴، رقم: ۳۷۵، وفي ۱۰\ ۲۶۹، رقم: ۵۸۰۱ ومسلم ۳\ ۱۶۴۶، رقم: ۲۱– ۲۰۷۵.

**د لغاتو حل:** (فروج): هو القباء الذي شق من خلفه. (يو ډول چپنه).

**تشريح:** (فروج) هغه قباء (کرتۍ) ته وايي چې د هغه وروسته خوا چاک وي دا فروج د رسول الله ﷺ په خدمت کې اکېدر پاچا رومه يا پاچا سکندريه تحفه را ليږلې وه هغه وخت خلکو ته رېښمينه جامه اغوستل حرام نه وه ځکه رسول الله ﷺ هغه واغوستل او لمونځ يې پکښې وکړ خو ددې سوچ سره چې رېښمينه جامه اغوستلو سره غرور راځي نو رسول الله ﷺ هغه نا خوښه کړه او وه يې غورځول همدا سې رسول الله ﷺ خپل په دې عمل سره دا اظهار وکړ چې اګر که ددې اغوستل مباح دي مګر د الله تعالی نيک بندګان او متقي او پرهيزګاره خلک د ځان لپاره مناسب او غوره نه ګڼي چې د رېښمو جامه واغوندي بيا وروسته رېښم اغوستل د ټولو مسلمانانو لپاره که متقي وي يا غير متقي حرام سول، يا کيدای سي چې دا نهي په دې

صورت كي سوړ وي نو په دې صورت كي به متقي عن الشرک مراد وي، يعني مسلمانانو ته دغه اغوستل نه دي پکار.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

﴿۷۰۴﴾: عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّيْ رَجُلٌ أَصِيْدُ

د حضرت سلمة بن الاكوع رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته وويل: اې د الله رسوله! زه يو ښکاري سړی يم

أَفَأُصَلِّيْ فِيْ الْقَمِيْصِ الْوَاحِدِ؟ قَالَ نَعَمْ وَازْرُرْهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ. رواه أبو داود وروى النسائي نحوه.

ايا زه په يوه قميص كي لمونځ كوم؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل: هو، او په هغه كي تڼۍ ولګوه كه څه هم د ازغي وي. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۱۶، رقم: ۶۳۲ والنسائي ۲\۷۰، رقم: ۷۶۴.

**تشريح**: ښکاريان په ښکار كي كمه جامه اغوندي د زياتو جامو اغوستل په ښکاره كي خنډ وي ځكه د هغه صحابي د سوال مقصد دا وو چي زه ښکار كونكی سړی يم او د ښکار په وخت كي په عامه توګه يوازي يو قميص مي اغوستی وي او لاندي لونګ مي نه وي چي كله په ښکار پسي ځغلم نو اساني وي نو ايا زه په دغه يوه قميص كي لمونځ كوم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته په يوه قيمص كي لمونځ كولای سې مګر د هغه قميص چاک دي دومره خلاص وي كه د ركوع او سجدې په وخت كي د ستر خلاصېدو انديښنه وي نو د هغه چاک تړه او كه هغه وخت د چاک بندولو يو شی موجود نه وي نو په هغه كي اغزي وركوه چي ستر خلاص نسي.

﴿۷۰۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يُّصَلِّيْ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ قَالَ لَهُ رَسُوْلُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي په زړېدلي پرتوګ سره لمونځ كاوه، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل:

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ فَذَهَبَ وَتَوَضَّأَ ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ رَجُلٌ

ولاړ سه اودس وکړه ، هغه ولاړی اودس يې وکړ بيا حاضر سو ، يو چا وويل:

يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا لَكَ أَمَرْتَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ ؟ قَالَ إِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي وَهُوَ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ

اې دالله رسوله! تاسو د څه لپاره هغه ته د اودس کولو حکم ورکړ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : دې سړي په زړېدلي پرتوګ سره لمونځ کوی

وَإِنَّ اللهَ تَعَالٰى لَا يَقْبَلُ صَلَاةَ رَجُلٍ مُسْبِلٍ إِزَارَهُ . رواه أبو داود .

او کوم څوک چي په زړېدلي پرتوګ سره لمونځ کوي الله تعالی د هغه لمونځ نه قبلوي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۱۹، رقم: ۶۳۸.

**تشريح** : (اسبال) دې ته وايي چي يو جامه دومره اوږده واغوستل چي هغه د ناز او کبر په توګه پر ځمکه کشيږي که څه هم د لونګ سره مخصوص نه دی مګر ددې استعمال اکثره د لونګ لپاره دی ، نو پرتوګ، لونګ وغيره د غرور او تکبر په وجه د بجلکو څخه لاندي زړيدل مکروه دي ، دا وجه ده چي رسول الله ﷺ هغه سړی په لونګ زړولو سره په لمانځه کولو سره وليدی نو وه يې فرمايل چي کوم سړی لونګ زړيدلی پريږدي الله تعالی د هغه لمونځ نه قبلوي يعني الله تعالی د داسي سړي د لمانځه کمال نه قبلوي او هغه ته ثواب نه ورکوي که څه هم لمونځ کيږي .

ددې سربيره چي هغه په اوداسه کي وو مګر رسول الله ﷺ هغه ته د اوداسه کولو حکم په دې حکمت سره ورکړ چي هغه سړی ددې سبب په معلومولو کي فکر وکړي او ددې بد فعل د خرابۍ احساس ورته وسي او دا چي الله تعالی د رسول الله ﷺد حکم په برکت او ظاهري طهارت يعني اودس په وجه د هغه باطن د غرور او تکبر څخه پاک کړي ځکه چي ظاهري طهارت د باطني طهارت ذريعه جوړيږي .

﴿۷۰۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ

د حضرت عائشة رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نه قبليږي

صَلَاةُ حَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ . رواه أبو داود والترمذي .

لمونځ د بالغي ښځي پرته د پوړنی څخه . ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۲۱، رقم: ۶۴۱ والترمذي ۲\ ۲۱۵، رقم: ۳۷۷.

**د لغاتو حل**: (حائض): اى بالغة (بالغه).

**تشريح**: د (حائض) څخه مراد بالغه ښځه ده چي د حيض عمر ته ورسيږي كه څه هم هغې ته حيض راځي يا نه راځي، دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د ښځي سر او ويښتان په ستر كي داخل دي كه يوه ښځه سرتوره لمونځ كوي نو د هغې لمونځ نه صحيح كيږي مګر په دې پوه سه چي دا حكم د ازادي ښځي لپاره دى مينځه په دې حكم كي نه ده داخله د هغې لمونځ سرتور سر هم كيږي ځكه چي د هغې سر ستر نه دى د هغې ستر د سړي په ډول د نامه لاندي څخه تر زنګنو پوري دى او نس، ملا او بغل يې هم.

﴿۷۰۷﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّهَا سَأَلَتْ رَسُوْلَ اللهَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتُصَلِّي

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه: آيا لمونځ كولاى سي

الْمَرْأَةُ فِيْ دِرْعٍ وَخِمَارٍ لَيْسَ عَلَيْهَا إِزَارٌ؟ قَالَ إِذَا كَانَ الدِّرْعُ سَابِغًا يُغَطِّيْ ظُهُوْرَ قَدَمَيْهَا. رواه أبو داود وذكر جماعة وقفوه على أم سلمة.

ښځه يوازي په قميص او پوړني كي چي پرتوګ يې نه وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: كه قميص دومره اوږد وي چي د قدمو شا ته ورسي نو جائز دى. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۲۰، رقم: ۶۴۰.

**د لغاتو حل**: (دِرع): القميص.

**تشريح**: دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د ښځي د پښې شا هم په ستر كي داخله ده هغه په لمانځه كي پټول واجب دي.

﴿۷۰۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده د

السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ وَأَنْ يُغَطِّيَ الرَّجُلُ فَاهُ. رواه أبو داود والترمذي.

سدل او په لمانځه کي د مخ پټولو څخه . (سدل :داسي جامه اغوستل چي دواړه طرفه پر اوږو زړيږي). ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۲۳، رقم: ۶۴۳، والترمذي ۲\۲۱۷، رقم: ۳۷۸.

**د لغاتو حل**: (السدل): هو ان يضع الثوب على كتفيه ويرسل اطرافه من جوانبه (پر اوږو څادر اچول او دواړو څوکي يې شاوخوا ايله کول).

**تشريح**: د سدل معنی داده چي جامه پر خپل سر يا اوږه اچولو سره دواړو خواوو ته و زړول سي د جامو استعمالولو دا طريقه مطلقا ممنوع ده ځکه چي په دې سره د غرور او تکبر شان پيدا کيږي او په لمانځه کي خو دا طريقه ډيره خرابه ده همداسي په لمانځه کولو سره لمونځ مکروه کيږي .

ځيني علماء وايي چي د سدل مطلب دادی چي يو سړی جامه پر ځان اچولو سره خپل لاس د هغه دننه کړي او همداسي رکوع او سجده کوي دا طريقه د يهودانو وه ځکه رسول الله ﷺ ددې څخه منعه وفرمايل، په عربو کي د لنګوټې په ول سره به يې خوله پټول چي په هغه سره به خوله پټه سوه ، رسول الله ﷺ ددې څخه منعه فرمايلې ده ځکه چي په داسي توګه نه خو قرائت په ښه ډول ادا کيدای سي او نه سجده په پوره توګه سره کيږي هو که چيري په لمانځه کي تهغ راځي يا د خولې څخه بدبويي راځي نو هغه ته خوله پټول مستحب دي .

﴿۷۰۹﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت شداد بن اوس ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

خَالِفُوا الْيَهُوْدَ فَإِنَّهُمْ لاَ يُصَلُّوْنَ فِيْ نِعَالِهِمْ وَلاَ خِفَافِهِمْ . رواه أبو داود .

په لمانځه کي د يهودو مخالفت کوئ يعني هغوی د څپليو او موزو سره لمونځ نه کوي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۲۸، رقم: ۶۵۲.

**تشريح**: يهوديانو به د څپليو او موزو سره لمونځ نه کوی ځکه رسول ﷺ وفرمايل چي تاسو خلک د يهودو مخالفت وکړئ او د څپليو او مزو په پښو کولو سره په شرط ددې چي هغه پاکي وي لمونځ کوئ .ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي دګمراه خلکو د مخالفت ښکاره کولو په غرض يو مباح شي باندي عمل کول غوره دي او وجه يې داده چي داسي ګمراه خلکو مخالفت لازميږي ځکه مباح شی هم د عزيمت يعني د اولوليت حکم پيدا کوي .

﴿۷۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ

يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ إِذْ خَلَعَ نَعْلَيْهِ فَوَضَعَهُمَا عَنْ يَسَارِهِ فَلَمَّا رَأَى ذٰلِكَ الْقَوْمُ

د خپلو اصحابو سره لمونځ کوی چي رسول الله ﷺ خپل څپلۍ و کښلې او چپه لوري ته يې کښېښودلې، خلکو چي د رسول الله ﷺ دې کار ته وکتل

أَلْقَوْا نِعَالَهُمْ فَلَمَّا قَضٰى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ قَالَ مَا

نو هغوی هم خپل څپلۍ وکښلې، کله چي رسول ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو وه يې فرمايل:

حَمَلَكُمْ عَلٰى إِلْقَائِكُمْ نِعَالَكُمْ؟ قَالُوا رَأَيْنَاكَ أَلْقَيْتَ نَعْلَيْكَ فَأَلْقَيْنَا نِعَالَنَا

تاسو ولي خپل څپلۍ وکښلې؟ هغوی وويل موږ ته وليدی چي څپلۍ دي وکښېښې نو موږ هم څپلۍ وکښلې،

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ جِبْرِيلَ أَتَانِيْ فَأَخْبَرَنِيْ أَنَّ فِيهِمَا

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: جبرائيل علیه السلام ما ته راغلی او زه يې خبردار کړم چي ستا پر څپليو

قَذَرًا إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلْيَنْظُرْ فَإِنْ رَأَى فِيْ نَعْلَيْهِ قَذَرًا

نجاست لګېدلی دی، اوس چي په تاسو کي څوک مسجد ته د ننه راځي نو خپل څپلۍ دي ګوري که پر هغو څه نجاست وي

فَلْيَمْسَحْهُ وَلْيُصَلِّ فِيهِمَا. رواه أبو داود والدارمي.

نو وچ يې کړئ بيا دي ورسره لمونځ کوي. ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۲۶- ۴۲۷، رقم: ۶۵۰ والدارمي ۱\ ۳۷۰، رقم: ۱۳۷۸.

**تشريح**: قذر د قاف په زور سره او د دال معجمه سره هغه شي ته وايي چي طبيعت يې بد ګڼي نو د دې لفظ څخه په ښکاره دا معلومېږي چي د رسول الله ﷺ په څپليو کي به داسي نجاست نه وو لګيدلی چي په هغه سره به هې لمونځ نه صحيح کيږي بلکه يو کرکه راويستونکی شی ګرځنګ

وغيره به لګيدلي وه ځکه که نجاست لګيدلی وای نو رسول ﷺ به د سره لمونځ کوی حالانکه رسول الله ﷺ چي څومره لمونځ کړی وو نه خو يې هغه دوهم وار وکړ نه يې د نوي سره وکړ د جبرائيل عليه السلام خبر ورکول او بيا د هغه خبر په وجه د رسول الله ﷺ څپلی کښل ځکه وو چي د رسول الله ﷺ په ذات اقدس کي صفايي او پاکي ډيره زياته وه ځکه په څپليو د کرکي راويستونکي شي لګيدل هم د رسول الله ﷺ د مزاج مناسب نه وه او ځيني شوافع حضرات وايي که د ي لمونځ کونکي پر کالو وغيره باندي لږ نجاست لويدلی وي او هغه ته هم د هغه علم نه وي يعني په خبر نه وي نو لمونځ يې نه کيږي د امام شافعي رحمة الله عليه دا قول قديم دی په هر حال دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د رسول الله ﷺ متابعت واجب دی ځکه چي صحابه رض د يو سبب د پوښتني بغير يوازي د رسول الله ﷺ د څپليو کښلو سره خپل څپلی سمدستي وکښلې بيا رسول الله ﷺ هم هغه جائز وګڼی .

﴿۷۱۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي لمونځ کوي

أَحَدُكُمْ فَلاَ يَضَعْ نَعْلَيْهِ عَنْ يَّمِيْنِهِ وَلاَ عَنْ يَّسَارِهِ فَتَكُوْنَ عَنْ يَّمِيْنِ غَيْرِهِ

په تاسو کي يو څوک نو خپلي څپلی دي راسته او چپه طرف ته نه ايږدي ځکه چي چپه طرف ته ايښودل به د بل سړي راسته طرف وي ،

إِلاَّ أَنْ لاَّ يَكُوْنَ عَنْ يَّسَارِهِ أَحَدٌ وَلْيَضَعْهُمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ . وَفِيْ رِوَايَةٍ أَوْ لِيُصَلِّ فِيْهِمَا . رواه أبو داود وروى ابن ماجه معناه .

بلکه تاسو خپل څپلی د دواړو پښو په منځ کي ساتئ . او په يوه روايت کي دا دي چي د څپليو سره لمونځ کوئ. ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱ \ ۴۲۸، رقم: ٦۵۴ وابن ماجه ۱ \ ۴٦۰، رقم: ۱۴۳۳.

**تشريح** : مطلب دادی چي د لمانځه په دوران کي څپلی دي خپل راسته طرف ته نه ايږدي او چپې خوا ته دي يې هم نه ايږدي ځکه کوم سړی چي د هغه چپه خوا ته دريږي نو دا څپلی کوم چي خپل چپه خوا ته يې ايښي دي د هغه سړي راسته طرف ته راځي هر کله چي خپل راسته خوا

ته څپلی اېښودل یې خوښ نه کړل نو هغه څپلی د بل سړي راسته خوا ته ولي کښېښودل سي ځکه نو د مسلمانانو لپاره ضروري ده چي کوم شیان د خپل ځان لپاره نه خوښوي هغه دي د خپلو مسلمانانو ورونو لپاره هم نه خوښوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دریم فصل)

﴿۷۱۲﴾: عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

فَرَأَيْتُهُ يُصَلِّيْ عَلَى حَصِيْرٍ يَّسْجُدُ عَلَيْهِ قَالَ وَرَأَيْتُهُ يُصَلِّيْ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ مُتَوَشِّحًا بِهِ. رواه مسلم

نو رسول الله ﷺ مي ولیدی چي په څپلیو کي یې لمونځ کوی، رسول الله ﷺ به پر چوټایي سجده کول، د راوي بیان دی چي ما رسول الله ﷺ په یوه جامه کي چي پر بدن یې راګرزولې وه په لمونځ کولو ولیدی. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱/۳۶۹، رقم: ۲۸۴ - ۵۱۹.

**تشریح**: دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي لمونځ پر هر هغه شي باندي جائز دي چي د لمونځ کونکي او مځکي په مینځ کي حائل وي که څه هم هغه شي د بورۍ وغیره څخه وي یا د کالو وړئ پشم وغیره د ډول څخه وي که څه هم په حدیث کي یوازي د بوریا ذکر سوی دی مګر د علماؤ په نزد نور دلائل داسي دي چي د هغه تر مخه هغوی د بوریا څخه ماسوا پر کپړه وغیره باندي لمونځ کول جائز ګڼي،. قاضي عیاض رحمة الله علیه فرمایي چي پرته د یو شي اوارولو څخه پر مځکه لمونځ کول افضل دي ځکه چي خضوع او عاجزي د لمانځه اصل روح دی اودا شیان پر مځکه لمونځ کولو سره حاصل کیږي هو که یو مجبوري وي مثلاً د ګرمی یا یخ په وجه بغیر څه اوارولو پر مځکه لمونځ کول ممکن نه وي نو یو شی اوارول غوره دي. ځیني حضرات وایي کوم شیان چي د مځکي څخه نه وي پیدا سوي پر هغه لمونځ کول غوره نه دي یعني بوریا وغیره باندي لمونځ کول غوره نه دی.

﴿۷۱۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي حَافِيًا وَمُتَنَعِّلاً. رواه أبو داود.

حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ په لوڅو پښو او د څپليو سره په دواړو حالاتو کي پر لمانځه کولو ليدلی دی. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۲۷، ۴۲۸، رقم: ۶۵۳.

﴿۷۱۴﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ صَلَّى جَابِرٌ فِي إِزَارٍ قَدْ عَقَدَهُ مِنْ قِبَلِ

د حضرت محمد بن المنكدر څخه روايت دی چي حضرت جابر رضي الله عنه زموږ سره په لنګ کي لمونځ وکړ چي هغه د ښټ لوري ته تړلی وو

قَفَاهُ وَثِيَابُهُ مَوْضُوعَةٌ عَلَى الْمِشْجَبِ فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ تُصَلِّي فِي إِزَارٍ وَّاحِدٍ فَقَالَ

او د هغه جامه پر سه پايه پرته وه، يوه سړي ورته وويل ايا ته يوازي په لنګ کي لمونځ کوې؟ جابر رضي الله عنه ورته وويل

إِنَّمَا صَنَعْتُ ذٰلِكَ لِيَرَانِي أَحْمَقُ مِثْلُكَ وَأَيُّنَا كَانَ لَهُ ثَوْبَانِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه البخاري.

داسي ما ځکه کړي دي چي ستا په ډول بې عقل ته وښيم او د رسول الله ﷺ په زمانه کي په موږ کي د هيچا سره دوې جامې نه وې. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\۴۶۷، رقم: ۳۵۲.

**د لغاتو حل**: (المِشجب): عيدان يُضم رؤوسها ويفرج بين قوائمها، يوضع عليها الثياب.

**تشريح**: د (مشجب) عامه معنی د موړي او ميخ کيدای سي ځکه چي مشجب هغه شي ته وايي چي پر هغه جامې زړيدلای يا اېښودل کيږي، او يا هغه شي ته وايي چي پر هغه کله اوبه يخولو لپاره ژی زړول کيږي، په هر حال حضرت جابر رضي الله عنه خپل جامې پر هغه ايښي وې او لمونځ يې يوازي په يوه جامه کي داسي کوی چي د هغه جامې تهبند يې جوړ کړی وو او د هغه

يو كونج يې پورته د غاړي سره تړلی وو ، يو سړي دا طريقه د سنت خلاف گڼلو سره بد خيال کړل او حضرت جابر رضي الله عنه څخه يې پوښتنه وکړه چي تاسو د دومره جامو په شتون کي يوازي په يوه جامه کي لمونځ کوئ نو ددې وجه څه ده ؟ د هغه په جواب کي يې ورته وفرمايل چي زه يوازي په يوه جامه کي لمونځ ځکه کوم چي ستا په ډول کم علمه ما ووينې او پوه سي چي لمونځ يوازي په يوه جامه کي هم كيدای سي ، دا د سنت خلاف نه ده نو ددې مقصد سره سم هغه ته يې زورونه ورکړه او ورته يې وويل چي ناپوهه ته دا بد ولي گڼې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کي په موږ کي څوک وو چي د هغه سره دوې جامې وې ، زموږ سره خو به يوازي يوه جامه وي او په هغې کي به مو لمونځ کوی او هغه به مو د نورو ضرورتونو لپاره هم استعمالول .

په دې اړه د علماؤ اجماع ده چي په دوو جامو کي لمونځ كول افضل دي واجب نه دي ځکه چي په دې کي تنگي ده او رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه کرامو په يوه جامه کي لمونځ كله خو ددې لپاره کړی دی چي د هغوی سره يوازي يوه جامه وه او كله د بيان جواز په خاطر په يوه جامه کي يې لمونځ کړی دی، خلاصه داده كه يو سړی په يوه جامه کي ځکه لمونځ کوي چي د هغه سره دوهمه جامه نه وي يا د بيان جواز په خاطر يې کوي نو جائز ده او كه يو سړی د سستي او د حقارت په نظر داسي کوي نو دا مناسب نه ده .

د حضرت جابر رضي الله عنه د ارشاد څخه دا اشاره حاصليږي چي هيچا ته د صحابه کرامو پر ترک سنت باندي لعن او طعن كول نه دي پکار او د هغوی په اړه نيک گمان كول پکار دي يعني كه د يو صحابي رضي الله عنه څخه يو داسي فعل كښدل معلوم سي چي په ظاهره د سنت خلاف معلوميږي نو په دې اړه دا خيال كول پکار دي چي دا د بيان جواز لپاره دي يا په هغه کي به يو عذر وي .

﴿۷۱۵﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ اَلصَّلاَةُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ سُنَّةٌ كُنَّا نَفْعَلُهُ مَعَ

د ابي بن كعب رضي الله عنه څخه روايت دی چي په يوه جامه کي لمونځ كول سنت دی لكه څرنگه چي موږ

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلاَ يُعَابُ عَلَيْنَا . فَقَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ إِنَّمَا كَانَ

د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ادا کوی پر دې به هيچا پر موږ تور نه لگاوه (يعني بد يې نه ويل) ، ابن مسعود رضي الله عنه وايي

ذَاكَ إِذَا كَانَ فِي الثِّيَابِ قِلَّةٌ فَأَمَّا إِذَا وَسَّعَ اللهُ فَالصَّلاَةُ فِي الثَّوْبَيْنِ أَزْكٰى . رواه أحمد

دا هغه وخت وو چي جامې ډيري کمي وې مګر هر کله چي الله ﷻ پراخي راوستل نو په دوو جامو کي لمونځ کول غوره دی. احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۴۱.

==========

# بَابُ السُّتْرَةِ

## (د سُترې بيان)

دلته د سترې څخه مراد هر هغه شی دی چي د لمانځه کونکي مخته ته درول کيږي لکه ديوال، ستن، لرګی، وسپنه او داسي نور، د لمانځه کونکي مخته ستره ځکه درول کيږي چي د هغه په وجه د سجدې ځای بيل کړل سي او د لمانځه کونکي مخته د تيرېدو والا سړی ګناه کار نسي، د سترې اوږدوالي کم تر کمه د يوه لاس په اندازه او د يوې ګوتي په اندازه پنډ کېدل ضروري دي، د مقتديانو لپاره د امام ستره کافي ده يعني د امام مخته که ستره ولاړه وي نو د مقتديانو مخته تېرېدل جائز دي که څه هم د هغوی مخته يو شی حائل نه وي.

د امام او سترې په مينځ کي تيرېدل جائز نه دي هو که داسي صورت وي چي يو لمونځ کونکی د شا څخه په مخکني صف کي خالي ځای ويني نو د هغه لپاره جائز ده چي د وروسته صف مخته په تيرېدو سره په لومړي صف کي خالي ځای ته په رسيدو سره ودرېږي ځکه چي دا د وروسته صف والا قصور دی چي په هغوی کي د مخته کېدو سره د لومړي صف ځای ولي ډک نه دی، د سترې مفصل احکام به په راتلونکو حديثونو کي د تشريح په ضمن کي راسي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سترې په اړه د رسول الله ﷺ معمول

﴿۷۱۶﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْدُوْ إِلَى الْمُصَلَّى

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ورځي په اوله برخه کي عيدګاه ته تشريف وړی

وَالْعَنَزَةُ بَيْنَ يَدَيْهِ تُحْمَلُ وَتُنْصَبُ بِالْمُصَلّٰى بَيْنَ يَدَيْهِ فَيُصَلِّيْ إِلَيْهَا. رواه البخاري

د رسول الله ﷺ په وړاندي به يو نيزه وړونكى وو او څه وخت چي به عيدګاه ته ورسيدى نو نيزه به د رسول الله ﷺ مخته و درول سوه او رسول الله ﷺ به د هغې په لور لمونځ كوى. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۶۳، رقم: ۹۷۳.

**تشريح**: د نبي كريم ﷺ معمول به دا وو چي د سترې كولو او لوټو وغيره ماتولو دپاره به اكثره وخت خادمانو د نبي كريم ﷺ سره يوه نېزه ګرځول، همداسي په عيدګاه كي مخامخ خو څه ديوال او يا بل شى نه وو بلكه ټول ميدان ميدان وو، ددې وجهي څخه هلته هم د دوى سره نيزه وړل كېدل او هغه به رسول الله ﷺ خپل مخ ته كښېښودل.

## د الله ﷻ تعريف او د سُترې مخته د تيرېدو حكم

﴿۷۱۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ جُحَيْمَةَ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ

د حضرت ابو جحيمة رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ په مكه معظمه كي وليدى

وَهُوَ بِالْاَبْطَحِ فِيْ قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ اَدَمٍ وَرَاَيْتُ بِلَالًا اَخَذَ وَضُوْءَ رَسُوْلِ اللّٰهِ

چي د ابطح په ځاى كي د څرمني په يوې سرې خيمې كي وو او حضرت بلال رضي الله عنه مي وليدى چي هغه د رسول الله ﷺ د اوداسه څخه پاته سوي اوبه راوړلې

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَاَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُوْنَ ذٰلِكَ الْوَضُوْءَ فَمَنْ اَصَابَ

او ما وليدل چي خلكو ور وځغستل او هغه اوبه يې واخيستلې چا ته چي په لاس ورغلې

مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهِ وَمَنْ لَمْ يُصِبْ مِنْهُ اَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهِ ثُمَّ رَاَيْتُ

هغه پر موږو موږلې او چا چي تر لاسه نه كړې هغو د نورو د لاس د لوندوالي څخه ګټه تر لاسه كړه، بيا ما وليدل چي

بِلَالًا اَخْرَجَ عَنَزَةً فَرَكَزَهَا وَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حُلَّةٍ

بلال رضي الله عنه يوه نېزه پر ځمكه ښخ كړه او رسول الله ﷺ په سره جامه كي راووتى

حَمْرَاءَ مُشَمِّرًا صَلَّى إِلَى الْعَنَزَةِ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ وَرَأَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَابَّ

چي پر هغې باندي كربښي وې او د نيزې په لور و درېدى او خلكو ته يې دوه ركعته لمونځ وركړ او ما وليدل چي خلك او حيوانان به

يَمُرُّونَ بَيْنَ يَدَيِ الْعَنَزَةِ. متفق عليه

د نيزې تر شا تيرېدل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۴۸۵، رقم: ۳۷۶ وفي ۱\ ۲۹۴، رقم: ۱۸۷ ومسلم ۱\ ۳۶۰-۳۶۱، رقم: ۲۴۹- ۵۰۳.

**د لغاتو حل**: (اَبطح): مكان قريب من مِنى: (مِنا ته نژدې يوه سيمه).

**تشريح**: (ابطح) د يوې نالى نوم دى چي د مدينې منورې په لار كي مكې مكرمې ته نژدې واقع ده دغه نالى ته محصب او بطحا هم وايي د بطحا وجه تسميه داده چي په دغه نالى كي ډبري دي چي په لاره كي پرتې دي.

حله دوو جامو يعني لونګ او څادر ته وايي، رسول الله ﷺ حله اچولې وه هغه سرې ليكي درلودې او ټوله جامه سره نه وه كوم چي د خلكو لپاره اغوستل يې مكروه تحريمي دي، ددې حديث څخه معلومه سوه چي د سترې مخته د خلكو او حيوانانو تيرېدل صحيح دي.

### د حيوان ستره جوړول

﴿۷۱۸﴾: وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْرِضُ

د حضرت نافع بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به په پلنوالي كښېنول

رَاحِلَتَهُ فَيُصَلِّيْ إِلَيْهَا. وزاد البخاري قلت أفرأيت إذا هبت الركاب. قال كان يأخذ الرحل فيعدله فيصلي إلى آخرته

خپله اوښه او د هغه لور ته به يې لمونځ كوى. بخاري او مسلم، نافع وايي ما د ابن عمر رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه چي هر كله به اوښان ځراند ته ولاړل نو بيا به رسول الله ﷺ څه كول؟ (يعني څه شي به يې ستره كوى) هغه وويل كجاوه به يې مخ ته كښېښودل او د هغه طرف ته به يې لمونځ كوى.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\ ۵۸۰، رقم ۵۰۷ ومسلم ۱\ ۳۵۹، رقم ۲۴۷- ۵۰۲.

﴿۷۱۹﴾: وَعَنْ طَلْحَةَ ابْنِ عُبَيْدِ اللهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت طلحة بن عبيدالله رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِذَا وَضَعَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلَ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ فَلْيُصَلِّ وَلَا يُبَالِ مَنْ مَرَّ وَرَاءَ ذٰلِكَ. رواه مسلم

هر كله چي په تاسو كي يو څوك خپل مخته د كجاوې د پاى د لرګي په ډول يو لوړ لرګي كښېږدي نو هغه لوري ته دي لمونځ وكړي او مخته د تيريدونكو پروا دي نه كوي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۳۵۸، رقم: ۲۴۱- ۴۹۹.

**د لغاتو حل**: (مُؤْخِرَة): هي الخشبة التي يستند اليها الراكب. (كجاوه).

**تشريح**: مطلب دا چي هر كله يو لمونځ كونكى د سترې وړ يو شى مخته كښېږدي او د سترې مخته څوك تيريږي نو د هغه خيال دي نه كوي ځكه چي د سترې په شتون كي مخته د چا تيريدل د لمانځه پر خشوع اثر نه اچوي، يا پرواه دي نه كوي ددې تعلق به د تيرېدونكي سرې سره وي يعني كه د لمونځ كونكي مخته ستره وي نو د هغه د مخ څخه تيرېدونكى سړى دي څه پرواه نه كوي ځكه چي د سترې په شتون كي د لمونځ كونكي مخته د تېرېدو په وجه به هغه ګناه كار نه وي.

## د لمونځ كوونكي مخته تيرېدل ډېره لويه ګناه ده

﴿۷۲۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ جُهَيْمٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ

د ابو جهيم رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كه چيري پوه سي تېرېدونكى

بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ

د لمونځ كوونكي مخته چي ددې څومره لويه ګناه ده نو هغه به د لمونځ كونكي مخته تر څلوېښتو (ورځو يا مياشتو يا كالو) پوري ولاړ وي او نه تيريدل به غوره ګڼي،

يَدَيْهِ قَالَ أَبُو النَّضْرِ لَا أَدْرِي قَالَ أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ سَنَةً. متفق عليه

د ابو نصر راوي بيان دي چي د څلوېښتو څخه مراد دى ددې په اړه ما ته علم نه سته چي څلوېښت ورځي، مياشتي يا كلونه مراد دى. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۸۴، رقم: ۵۱۰ ومسلم ۱\ ۳۶۳- ۳۶۴، رقم: ۲۶۱- ۵۰۷.

**تشریح**: حضرت امام طحاوي رحمة الله علیه په مشکل الاثار کي فرمایلي دي چې دلته څلويښت کاله مراد دي نه چي څلويښت میاښتي یا څلويښت ورځي او هغه دا خبره د ابو هریره رضي الله عنه په دې حدیث ثابته ده چي رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چي د خپل ورور تر مخه داسي تیر سي چي هغه د خپل رب سره مناجات کوي یعني لمونځ کوي او هغه د هغه په ګناه پوه سي نو د هغه لپاره پر خپل ځای تر سل کاله پوري دریدل د قدم پورته کولو څخه غوره دي.

په هر حال د حدیثونو څخه معلومه سوه چي د لمونځ کونکي مخته تیریدل ډیره غټه ګناه ده چي د هغه ارزښت څخه اندازه معلومیږي که یو سړي ته دا معلومه سي چي د لمونځ کونکي مخته تیریدل څومره لویه ګناه ده او د هغه سزاه څومره سخته ده نو هغه به څلويښت کاله یا د ابو هریره رضي الله عنه د روایت سره سم تر سل کاله پوري پر خپل ځاي مستقلا دریدل زیات غوره وګڼي په نسبت د دې چي هغه د لمونځ کونکي مخته تیر سي.

## د سترې او لمونځ کونکي په مینځ کي تیرېدونکي ته په سختۍ سره د منعه کولو حکم

﴿۲۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي لمونځ کوي

أَحَدُكُمْ إِلٰى شَيْءٍ يَسْتُرُهُ مِنَ النَّاسِ فَأَرَادَ أَحَدٌ أَنْ يَّجْتَازَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلْيَدْفَعْهُ

په تاسو کي یو څوک چي ستره یې درولې وي نو په داسي حالت کي که څوک د سترې پروا ونه کړي او د لمونځ کونکي مخته تیریدل غواړي نو لمونځ کونکي ته پکار ده چي هغه منعه کړي

فَإِنْ أَبٰى فَلْيُقَاتِلْهُ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ. هذا لفظ البخاري ولمسلم معناه.

او که هغه نه منعه کیږي نو هغه دي قتل کړي ځکه چي هغه شیطان دی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۸۱- ۵۸۲، رقم: ۵۰۹ ومسلم ۱\ ۳۶۳، رقم: ۲۵۹- ۵۰۵.

**تشریح**: د قتل دا مطلب نه دی چي حقیقتا داسي سړی وژل پکار دي بلکه د قتل څخه مراد دادی چي د لمونځ کونکي مخته تیریدل ډیر بدکار دی ځکه یو سړی د لمونځ کونکي مخته تیریدل غواړي نو په پوره طاقت او قوت سره د تیریدو څخه منعه او هغه دي ددومره لوی

غلطی څخه وساتي.

قاضي عیاض رحمه الله وايي داسي سړی دي د یو شي په ذریعه منعه کړل سي چي د هغه استعمال د دې د منعه کولو په صورت کي جائز وي او د دې په منعه کولو کي تیریدونکی سړی مړ سي نو د علماؤ په نزد په متفقه توګه به د هغه قصاص نه وي مګر په دیت کیدو کي د علماؤ اختلاف دی ځیني علماء وايي په داسي صورت کي به دیت واجب وي او ځیني وايي واجب به نه وي، .په حدیث کي داسي سړي ته شیطان ویل سوی دی د دې مطلب دادی چي شیطان هغه سړی په غلولو سره پر غلط کار کولو مجبور کړ نو هغه سړی د هغه شیطاني کارکولو په وجه په منزله د شیطان سو .یا د دې څخه مراد دادی چي داسي غلط کارکونکی سړی شیطان دي د شیطان معنی د سرکش ده که هغه انسانان وي یا جنات ځکه شریر النفس سړي ته شیطاني انس ویل کیږي.

## ستره د لمانځه ساتنه کوي

﴿۷۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقْطَعُ

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : ماتوي

الصَّلَاةَ الْمَرْأَةُ وَالْحِمَارُ وَالْكَلْبُ وَيَقِي ذٰلِكَ مِثْلُ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ . رواه مسلم

لمونځ د لمونځ کونکي مخته د ښځي، خره او سپي تېرېدل او د کجاوې د لرګي په ډول لرګی د رول هغوی منعه کوئ .(د جمهورو علماؤ او صحابه کرامو په مذهب په دې سره لمونځ نه ماتیږي د دې حدیث څخه د سترې ټېنګار مقصد دی) . مسلم.

**تخریج:** صحیح مسلم ۱\۳۶۵، ۳۶۶ رقم: ۲۶۶- ۵۱۱.

**تشریح** : د جمهور علماوو، صحابوو او داسي نورو هم دا مذهب دی که یو شی یا سړی د لمونځ کونکي مخته تیر سي نو لمونځ نه باطل کیږي که څه هم پورتني ذکر سوي درې شیان وي یا د هغوی پرته نور شیان وي تر څو پوري چي د دې حدیث یا دا ډول د نورو حدیثونو تعلق دی نو په اصل کي د لمونځ کونکي مخته تیرسي نو په لمانځه کي خشوع ،خضوع او د زړه حضور ضائع کوي چي په حقیقت کي د لمانځه اصل او روح دی یا د دې څخه دا مراد هم اخیستل کیږي چي د لمونځ کونکي مخته د دغه شیانو په تیریدو سره لمونځ کونکي زړه د هغه څخه په آخوا کیدو سره دې شیانو خوا ته متوجه سي ځکه لمونځ هم باطل کیدو ته نژدې وي.

## د ښځي، خره او سپي د تخصيص وجه

د حديث څخه په څرګنده خو دا مفهوم کيږي چي د لمانځه کونکي مخته د دغه درو شيانو په تيرېدو سره پر لمانځه اثر لويږي ، د دې څخه پرته د نورو شيانو په تيرېدو سره پر لمانځه اثر نه لويږي حال دا چي داسي نه ده بلکه د پورتني ذکر سوو شيانو تخصيص ځکه سوی دی چي د هغوی خوا ته زړه زيات متوجه کيږي د ښځي حيثيت ظاهر دی ، د خره معامله هم داده چي د خره سره اکثر شيطانان وي او دا وجه ده چي د هغه د آواز کولو په وخت کي اعوذبالله ويل مستحب ده ځکه خر چي د لمانځه کونکي مخته تيريږي نو د لمانځه کونکي زړه د دې احساس په وجه چي د هغه سره به شيطانان وي د خره خوا ته متوجه سي يا همداسي د سپي څخه يوازي دا چي نجس عين دی بلکه د هغه څخه د تکليف رسيدو هم خطره وي ځکه د هغه د تيرېدو په صورت کي هم ذهن په پوره تيزي سره د هغه خوا ته ګرځي .

## د لمونځ کونکي مخته د ښځي په راتلو سره لمونځ نه باطل کيږي

﴿۷۲۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ وَأَنَا مُعْتَرِضَةٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ كَاعْتِرَاضِ الْجَنَازَةِ . متفق عليه

د حضرت عائشې ﷞ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به لمونځ کوی د شپې او زه به د رسول الله ﷺ او قبلې په منځ کي داسي پرته وم لکه څرنګه چي جنازه ايښودل کيږي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۴۹۲، رقم: ۳۸۳ و ۳۸۴ ومسلم ۱\۳۶۶، رقم: ۲۶۷- ۵۱۲.

**تشريح** : د جنازې په مثال ورکولو سره دې ته اشاره کيږي چي کوم وخت به رسول الله ﷺ په لمانځه کي مصروف وو نو زه به هغه وخت د رسول الله ﷺ مخته پر يو کټ وغيره نه وم پرته بلکه د رسول الله ﷺ مخته به په پوره توګه سره پرته وم او د دې سربيره به رسول الله ﷺ لمونځ کوی د دې څخه دا معلومه سوه چي په لمانځه کي د لمونځ کونکي مخته د ښځي په راتلو سره لمونځ نه باطل کيږي .

## د لمونځ کونکي مخته د خره وغيره تېر يدل لمونځ نه باطلوي

﴿۷۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلَى أَتَانٍ وَأَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ

د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چې زه يوه ورځ پر خرې سپور راغلم او زه په دغه ورځو کې

نَاهَزْتُ الاِحْتِلاَمَ وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ بِمِنًى

بالغ کېدو ته نژدې وم او دغه وخت رسول الله ﷺ په مِنا کې خلکو ته لمونځ ورکوی

اِلٰى غَيْرِ جِدَارٍ فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ فَنَزَلْتُ فَأَرْسَلْتُ الْأَتَانَ تَرْتَعُ

او د رسول الله ﷺ په مخ کې ستره نه وه زه د لمونځ کونکو د ځينو صفو مخته تير سوم او د خره څخه تا سوم هغه مي څر ته پرېښوده

وَدَخَلْتُ فِي الصَّفِّ فَلَمْ يُنْكِرْ ذٰلِكَ عَلَيَّ أَحَدٌ. متفق عليه

او بيا مي په صف کې ګډون وکړ او چا څه نه وويل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۵۷۱، رقم: ۴۹۳، ومسلم ۱\۳۶۱، رقم: ۲۵۴- ۵۰۴.

**تشريح**: ددې واقعې بيانولو څخه د ابن عباس رضي الله عنه د ا ښودل مقصد دي چې د لمونځ کونکي مخته د خرې په تيريدو سره لمونځ نه باطل کيږي نو هغه وخت ابن عباس رضي الله عنه بالغ نه وو ځکه هغه چې د لمونځ کونکي مخته تيرسو نو هيڅ چا هم څه ورته ونه ويل.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د عصا (لکړي) د سترې په شان استعمالولو کي د علماؤ اختلاف

﴿۷۲۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چې لمونځ کوي

أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ شَيْئًا فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ فَلْيَنْصِبْ عَصَاهُ فَإِنْ لَّمْ يَكُنْ

په تاسو کي يو څوک نو هغه دي خپل مخ ته يو شی کښيږدي او که هيڅ شی نه وي نو خپله لکړه دي ودروي او که نه وي

مَّعُهُ عَصًى فَلْيَخُطُطْ خَطًّا ثُمَّ لَا يَضُرُّهُ مَا مَرَّ أَمَامَهُ . رواه أبو داود وابن ماجه

دده سره لکړه نو يو خط (کرښه) دي وکاږي بيا به يې مخته د يو چا تيريدل ضرر نه کوي

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۴۴۳، رقم: ۶۸۹ وابن ماجه ۱\ ۳۰۳، رقم: ۹۴۳.

**تشريح** : دا حديث ددې خبري اجازه ورکوي که يو لمونځ کونکي ته يو داسي شی پيدا نه سي چي د سترې کار وکړي نو هغه دي خپل لکړه مخته د سترې جوړولو لپاره ودروي اوس په دې اړه دا نور سهولت هم ورکړل سوی دی که مځکه نرمه وي نو لکړه دي په مځکه کي ښخه کړي او که مځکه سخته وي او لکړه ښخول مشکل وي نو بيا په دي صورت کي د لکړي ښخولو پر ځاي خپل مخته دي په اوږدوالي کښېښودل سي نو د ښخولو مشابهت به حاصل سي .

د فقهي په کتاب شرح منيه کي ليکلي دي که يو لمونځ کونکی خپله لکړه د سترې په توګه په مځکه کي د ښخولو پر ځای خپل مخته کښېږي نو د ځيني علماؤ په نزد خو د هغه لپاره دا دسترې په توګه کافي کيږي د سترې حکم به پوره سي مګر د ځينو علماؤ په نزد دا ستره نه کافي کيږي په کفايه کي ليکلي دي که يو لمونځ کونکي د سترې په توګه لکړه پر ځای د ښخولو خپل مخته ايښودل غواړي نو هغه ته لکړه په اوږدوالي اېښودل پکار دي نه په پلنوالي .

## د سترې نه موجود کېدو په صورت کي د کرښي په کښلو کي اختلاف

د دې حديث څخه يوه خبره دا معلوميږي که يو لمونځ کونکي ته د سترې جوړولو لپاره يو شی حاصل نسي تر دې چي د هغه سره لکړه هم نه وي نو هغه دي خپل مخ ته يوازي د يوې کرښي په کښلو سره لمونځ وکړي د هغه لپاره به دا کرښه ستره جوړه سي، دامام شافعي رحمة الله عليه قديم قول او دامام احمد رحمة الله عليه مذهب دادی بلکه په حنفيه کي هم وروسته ځينو علماؤ دا قول اختيار کړی دی د حنفيه اکثر علماء او امام مالک رحمة الله عليه ددې قائل نه دی ځکه چي د هغوی په نزد کرښه راکښل معتبر نه دی امام شافعي رحمة الله عليه هم خپل نوی قول په هغه کي د مخکني قول څخه انکار کړی دی او ويلي يې دی چي په دې اړه کوم حديث وارد دی هغه ضعيف او مضطرب دی او دا چي د لمونځ کونکي د مخ تيريدونکي په مينځ کي د سترې په توګه يوازي د کرښي حائل کيدو نه يوازي دا چي څه اعتبار نه لري بلکه د ليري څخه هم دا معلومول او پېژندل کيږي ، د صاحب هدايه رحمة الله عليه هم دا مذهب دی د شيخ ابن الهمام رحمة الله عليه د قول مفهوم هم دادی چي د کرښي د کښلو پر ځاي د سترې درول د اتباع سنت په وجه اولی او غوره دي ځکه چي مخته دريدل سوې ستره په پوره توګه سره

د ښكاره كېدو په وجه امتياز هم لري او د لمونځ كونكي د زړه څخه شكونه او شبهات په ايسته كولو سره د سكون زړه او اطمينان باعث كيږي . ددې څخه وروسته علماؤ د خط په وصف كي هم اختلاف كړى دى چي كرښه څرنګه كښل پكار ده د ځينو علماؤ په نزد كرښه د هلال په شكل كښل پكار ده او ځيني حضرات وايي چي د قبلې خوا ته طولا كښل پكار دي او مختار طولا كښل دي .

## ستره باندي نژدې ودرول سي

﴿۷۲۶﴾ : وَعَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِيْ حَثْمَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن ابو حثمة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى سُتْرَةٍ فَلْيَدْنُ مِنْهَا لَا يَقْطَعُ الشَّيْطَانُ عَلَيْهِ صَلَاتَهُ .

رواه أبو داود.

څوك چي په تاسو كي د سترې په لور لمونځ كوي نو ستره دې د ځان خوا ته نژدې و دروي چي شيطان د هغه لمونځ مات نه كړي. ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۴۶، رقم: ۶۹۵.

**تشريح** : د سترې نژدې كيدو مطلب دادى چي ستره نژدې ودروي چي سجده د هغه سره نژدې وكړل سي چي شيطان د هغه په لمانځه كي خلل وانه چوي ځكه لمونځ كونكى كه د سترې څخه ليري ودريږي نو د هغه مخته د يو چا تيرېدو احتمال به وي ، شيطان په داسي صورت كي د هغه په زړه كي د وسوسو او شكونو تخم كري چي په هغه سره د زړه په حضور كي فرق راځي او په هر لمانځه كي د زړه د حضورۍ دولت نه تر لاسه كيږي نو د سترې په نژدې درولو سره به ددې آفت څخه ساتنه په برخه سي .

## ستره د تندي مخامخ درول نه ده پكار

﴿۷۲۷﴾ : وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ قَالَ مَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت مقداد بن الاسود رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ وليدى چي

وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ إِلَى عُوْدٍ وَلَا عَمُوْدٍ وَلَا شَجَرَةٍ إِلَّا جَعَلَهُ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ

لمونځ به یې کوی د لرګي یا ستني او یا درختي په لور بلکه د سترې شی به د رسول الله ﷺ راسته یا

الْأَيْسَرِ وَلَا يَصْمُدُ لَهُ صَمْدًا . رواه أبو داود

چپه ورځي ته مخامخ وو او هیڅ کله به یې په منځ کي د اینبودلو قصد نه کاوه . ابوداؤد

**تخریج:** سنن ابي داؤد: ۱\۴۴۵، رقم: ۶۹۳.

**د لغاتو حل:** (لایصمد له صمدا): ای لایجعله بین عینیه حذرا عن التشبه بعبادة الاصنام.

**تشریح** مطلب دا چي کله به رسول الله ﷺ ستره و درول نو د دې خبري به پې په خاصه توګه سره خیال ساتی چي ستره بالکل د تندي مخته نه وي بلکه رسول الله ﷺ به ستره د چپه یا راسته ورځو مخته ودرول او د دې څخه به د رسول الله ﷺ مقصد داوو چي د بت بر ستی مشابهت نه وي .

## د لمونځ کونکي مخته د سپي او خره تیریدل لمونځ نه باطلوي

﴿۷۲۸﴾: وَعَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَتَانَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت فضل بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ رسول الله ﷺ ته راغلو

وَنَحْنُ فِيْ بَادِيَةٍ لَّنَا وَمَعُه عَبَّاسٌ فَصَلَّى فِيْ صَحْرَاءٍ لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ

او موږ دغه وخت په یو ځنګل کي وو ، د رسول الله ﷺ سره عباس رضي الله عنه هم وو ، رسول الله ﷺ په ځنګل کي لمونځ وکړ او مخته یې ستره وه

وَحِمَارَةٌ لَّنَا وَكَلْبَةٌ تَعْبَثَانِ بَيْنَ يَدَيْهِ فَمَا بَالَى ذٰلِكَ . رواه أبو داود وللنسائي نحوه

او زموږ یوه خره او یوه سپۍ وه چي د رسول الله ﷺ مخته یې لوبي کولې ، رسول الله ﷺ د هغو پروا ونه کړل . ابوداؤد او نسائي .

**تخریج:** سنن ابي داؤد: ۱\۴۵۹، رقم: ۷۱۸ والنسائي ۲\۶۵، رقم: ۷۵۲.

**تشریح** د اهل عربو دا رواج وو چي هغوی به د څو ورځو لپاره په ځنګل کي خیمه درول او هلته به او سیدل د هري ډلي خپل ځانګړی ځنګل وو د حضرت عباس رضي الله عنه هم یو ځنګل وو په کومو ورځو کي چي هغه په ځنګل کي خیمه درول رسول الله ﷺ هم هغوی ته تشریف یوړو ، راوي د هغه ځای واقعه بیانوي . ددې حدیث څخه دا معلومیږي چي د لمونځ کونکي مخته که خرونه،

سپيان وغيره تير سي نو لمونځ نه باطل كيږي هلته دا خبره هم ثابتيږي چي په عامه لاره كي د لمونځ كولو په صورت كي لمونځ كونكي ته ستره درول واجب نه ده بلكه مستحب ده.

## د لمونځ كونكي مخته د يو چا په تيرېدو سره لمونځ نه باطليږي

﴿۷۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْطَعُ

د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نه ماتوي

الصَّلَاةَ شَيْءٌ وَّادْرَؤُوا مَا اسْتَطَعْتُمْ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ. رواه أبو داود.

لمونځ هيڅ شى كوم چي د لمونځ كونكي مخ ته تير سي تر څو پوري چي ممكن وي يو شى د مخته تيريدو څخه منعه كړئ ځكه چي تېرېدونكي شيطان دى. ابو داؤد

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱/ ۴۶۰، رقم: ۷۱۹.

**تشريح:** ددې حديث څخه هم دا معلوميږي چي د لمونځ كونكي مخته د هر شي تيريدل لمونځ نه باطل كوي كه څه هم هغه ښځه وي يا سپى وي يا خر وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۷۳۰﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي زه به د رسول الله ﷺ مخ ته داسي بيده كېدم چي

وَسَلَّمَ وَرِجْلَايَ فِيْ قِبْلَتِهِ فَإِذَا سَجَدَ غَمَزَنِيْ فَقَبَضْتُ رِجْلَيَّ وَإِذَا قَامَ

زما پښې به د رسول الله ﷺ د قبلې لور ته وې (يعني د سجدې پر ځاى) كوم وخت چي به رسول الله ﷺ سجده كول نو زما پښې به يې كښېښلې نو ما به پښې راټولي كړې او هر كله چي به رسول الله ﷺ سجده وكړه

بَسَطْتُهُمَا قَالَتْ وَالْبُيُوْتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيْهَا مَصَابِيْحُ. متفق عليه

نو ما به بيا پښې وغزولې، بي بي عائشه فرمايي چي په دغه ورځو كي په كورو كي څراغ نه بليدى. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۸۸، رقم: ۵۱۳ و مسلم ۱\ ۳۶۷، رقم: ۲۷۲- ۵۱۲.

**تشريح**: د حديث په اخري جمله كي بي بي عائشې رضي الله عنها خپل دا عذر بيانول غواړي چي ما به د رسول الله ﷺ د سجدې پر ځاي پښې ځكه غزولې چي د رڼا نه كيدو په وجه ماته هيڅ نه معلوميده تر څو پوري چي د بي بي عائشې رضي الله عنها ددې عمل تعلق دی چي كله به رسول الله ﷺ د هغې پر پښو زور وكړ نو هغې به خپل پښې راټولي كړې او څه وخت چي به رسول الله ﷺ ودريدی نو هغې به خپل پښې وغزولې نو دا د رسول الله ﷺ په تقرير يعني د هغوی په دې عمل د رسول ﷺ د خوا څخه د انكار د نه كيدو په وجه وو .

## د لمونځ كونكي مخته تيرېدل لوی جرم دی

﴿۷۳۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ يَعْلَمُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه چيري پوه سي

أَحَدُكُمْ مَا لَهُ فِيْ أَنْ يَّمُرَّ بَيْنَ يَدَيْ أَخِيْهِ مُعْتَرِضًا فِي الصَّلَاةِ كَانَ لِأَنْ يُّقِيْمَ

په تاسو كي يو څوك چي د خپل يو مسلمان ورور مخته تيرېدل (كله چي لمونځ كوي) څومره گناه ده نو هغه به درېدل

مِائَةَ عَامٍ خَيْرٌ لَّهُ مِنَ الْخُطْوَةِ الَّتِيْ خَطَا . رواه ابن ماجه

سل كاله د لمونځ كونكي تر تېرېدو زيات غوره وگڼي . ابن ماجه .

**تخريج:** سنن ابن ماجه ۱\ ۳۰۴، رقم: ۹۴۶.

﴿۷۳۲﴾: وَعَنْ كَعْبِ الْأَحْبَارِ قَالَ لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ مَاذَا عَلَيْهِ

د حضرت كعب احبار رضي الله عنه څخه روايت دی چي كه چيري د لمونځ كونكي مخته تيرېدونكی ته دا معلومه سي چي ددې څومره گناه ده

لَكَانَ أَنْ يُّخْسَفَ بِهِ خَيْرًا لَّهُ مِنْ أَنْ يَّمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ . وفي رواية أهون عليه .

رواه مالك .

نو هغه به په مځکه کي (ژوندی) ښخېدل د لمونځ کونکي تر مخ تېرېدو څخه زيات خوښ کړي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي هغه ته به په مځکه کي ښخېدل زيات اسان معلوم سي . مالک

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۵۵، رقم: ۳۵.

## د لمونځ کونکي د مخ څخه څومره ليري تېرېدل پکار دي

﴿۷۳۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلّٰى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي لمونځ کوي

أَحَدُكُمْ إِلَى غَيْرِ السُّتْرَةِ فَإِنَّهٗ يَقْطَعُ صَلَاتَهُ الْحِمَارُ وَالْخَنْزِيْرُ وَالْيَهُوْدِيُّ

په تاسو کي يو څوک پرته د سترې څخه نو د هغه لمونځ ماتيږي د هغه مخته د خره، خنزير، يهودي،

وَالْمَجُوْسِيُّ وَالْمَرْأَةُ وَتُجْزِئُ عَنْهُ إِذَا مَرُّوْا بَيْنَ يَدَيْهِ عَلٰى قَذْفَةٍ بِحَجَرٍ .

رواه أبو داود

مجوسي او ښځي تيرېدو سره ماتيږي، او که تېرېدونکی د يوې ډبري ويشتلو په اندازه ليري وي نو بيا پروا نه لري . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۵۳، رقم: ۷۰۴.

**تشريح**: مطلب دا دی چي د ويشتلو وروسته ډبره څومره ليري ځي د هغه فاصلې وروسته دا مذکوره شيان که د لمونځ کونکي مخته تير سي نو څه پرواه نسته يعني په لمانځه کي څه خلل او قصور نه راځي، علماء ليکي چي په ډبره غورځولو سره مراد په حج کي رمي جمار دی يعني په حج کي پر منارو چي کومي ډبري په کومه فاصله ويشتل کيږي او د هغه اندازه يې درې لاسه ليکلي دي دلته هغه مراد دي، د دې حديث تاويل به هم هغه وي کوم چي په دې باب په حديث نمبر اووم د تشريح په ځنګ کي سوی دی چي د لمانځه ماتېدو څخه څه مراد دی .

========

# بَابُ صِفَةِ الصَّلٰوةِ

## د لمانځه د ترتيب بيان

په دې باب کې هغه حديثونه نقل کيږي چې د هغه څخه د لمانځه کولو ترکيب معلوميږي چې لمونځ څرنګه کول پکار دي او د لمانځه ارکان او اجزاء څه دي؟

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د لمانځه صحيح طريقه

﴿۷۳۴﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې يو سړی مسجد ته راغلی او رسول الله ﷺ

جَالِسٌ فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ

د مسجد په يو کونج کې ناست وو، هغه سړي لمونځ وکړ بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو سلام يې ادا کړ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْكَ السَّلَامُ ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَرَجَعَ

وعليک السلام او ورته وه يې فرمايل: ولاړ سه بيا لمونځ وکړه ځکه چې تا لمونځ نه دی کړی هغه بيرته ولاړی

فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ فَقَالَ وَعَلَيْكَ السَّلَامُ ثُمَّ قَالَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ

او لمونځ يې وکړ، بيا راغلی او سلام يې ادا کړنو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: وعليک السلام، بيا يې ورته وفرمايل چې بېرته ولاړ سه او لمونځ وکړه ځکه تا

لَمْ تُصَلِّ فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ اَوْ فِي الَّتِيْ بَعْدَهَا عَلِّمْنِيْ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ إِذَا قُمْتَ

لمونځ ونه کړ، په دريم ځل يا د هغه څخه وروسته هغه سړي عرض وکړ اې د الله رسوله! ما ته وښيه (چې څنګه لمونځ وکړم) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هر کله چې ته ولاړ سې

إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوْءَ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ

د لمانځه لپاره نو په ښه ډول اودس وکړه بيا مخ پر قبله سه الله اکبر ووايه بيا ووايه هغه چي درته اسانه وي

مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَسْتَوِيَ قَائِمًا ثُمَّ

د قرآن څخه ، بيا په اطمينان سره رکوع وکړه بيا سر پورته کړه تر دې چي سيده سې ، بيا

اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى

په اطمينان سره سجده وکړه بيا سر پورته کړه او په اطمينان سره کښينه بيا سجده وکړه تر دې چي

تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا و في رواية ثم ارفع حتى تستوي قائما ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا . متفق عليه

په اطمينان سره سجده وکړې او بيا سر پورته کړه او په اطمينان سره کښينه او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي بيا سر پورته کړه او سيده سه او همداسي لمونځ پوره کړه . بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۲۳۷، رقم: ۷۵۷، ومسلم: ۱\۲۹۸، رقم: ۴۵- ۳۹۷.

**تشريح** : د اطمينان څخه مطلب دادی چي په رکوع او په سجده وغيره کي داسي پوره د زړه حضور او سکون راسي چي د بدن ټول بندونه خپل خپل ځای اختيار کړي او د هغه په ارکانو کي چي کوم تسبيحات ويل کيږي هغه په پوره اطمينان سره وويل سي .

## په رکوع، سجده او داسي نورو کي اطمينان فرض دی که واجب ؟

امام شافعي رحمة الله عليه، امام احمد رحمة الله عليه او امام يوسف رحمة الله عليه ددې حديث سره سم په رکوع، سجده، قومه او جلسه کي د طمانيت د فرضيت د فقدان په وجه د لمانځه نفي فرمايلې ده او دا شی د فرضيت نښه ده چي يو کار د هغه د کيدو څخه منتفي او باطل سي نو دا حضرات وايي که يو سړی په دې ارکانو کي اطمينان اختيار نه کړي نو د هغه لمونځ به باطل سي چي د هغه اعاده يعني راګرځول به ضروري وي.

دامام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په نزد په رکوع او سجده کي اطمينان واجب دی او قومه يعني په ولاړه او سجده کي سنت دی دا حضرات ددې حديث

توجيه دا كوي چي دلته د لمانځه نفي مراد نه دی ځکه چي ددې حديث اخري الفاظ چي ابو داود ترمذي او نسائي كي نقل دي دادی چي رسول الله ﷺ هغه سړي ته وفرمايل كه تا دا يعني اطمينان پوره کړ نو ستا لمونځ مكمل سو او که په دې کي دي کم کړل نو تا خپل لمونځ ناقص کړ نو دا ډول حكم د وجوب او سنت نښه ده چي د دې څخه پرته فعل ناقص او ناتمام دی نو معلومه سوه چي رسول ﷺ هغه سړي ته د لمانځه د بيا کولو حکم ځکه ورکړی وو چي د هغه لمونځ د سره نه وو سوی بلکه د هغه د راګرځولو حکم مطلب دا وو چي لمونځ په پوره کمال او پرته د کراهيت او تاوان اداکيدل پکار دي او که اطمينان فرض وي نو رسول الله ﷺ به د پيل څخه په منعه کولو سره لمونځ کولو منعه کړې وای او هغه به يې بغير فرائض څخه لمونځ کولو ته نه پريښودی.

ددې حديث څخه څو خبرو ته اشاره کيږي اول شی خو دادی چي عالم او ناصح لپاره دا مناسب ده چي هغه يو جاهل او غلط كاركونكی په ډيره نرمي او اخلاق سره پوه کړی او د هغه سره د نصيحت داسي نرمه معامله وکړي چي هغه سړی د هغه خبري منلو او پر هغه عمل کولو ته خپله مجبور سي ځکه چي ډير واره د نصيحت په معامله کي بد اخلاقي او ترش رويي د اصلاح پيدا کولو پر ځای د نور زيات ضد او ګمراهۍ سبب جوړيږي، دوهم شی دا چي دا ثابتيږي چي د ملاقات په وخت که څه هم مکرر او لږ ساعت وروسته وي سلام کول مستحب دی ، دريم شی دا ثابتيږي که يو سړی د خپل لمونځ واجبات کي څه خلل او تاوان پيدا کړي نو د هغه لمونځ نه صحيح کيږي او هغه ته په حقيقي معنی کي لمونځ كونكي نسي ويل کيدای بلکه د هغه په باره کي به دا وويل سي چي هغه سړي لمونځ نه دی کړی په اول روايت کي جلسه استراحت يعني په اول او دريم رکعت کي د دويمي سجدې څخه د راپورته کيدو ذکر هم سوی دی د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد جلسه استراحت سنت ده مګر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد سنت نه ده ددې مفصل تحقيق به انشاء الله مخته راسي.

## د رسول الله ﷺ د لمانځه ترتيب

﴿۷۳۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَفْتِحُ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به پيل کوی

الصَّلَاةَ بِالتَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَكَانَ إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ

د لمانځه په تکبير سره او قرائت به يې د الحمد لله څخه پيلوی او کله چي به يې رکوع کول نو سر

به یې نه زیات لوړ

رَأْسَهُ وَلَمْ يُصَوِّبْهُ وَلَكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَمْ يَسْجُدْ

او نه زیات کښته کوی بلکه په درمیانه حالت کي به یې ساتی، د رکوع څخه به یې چي سر پورته کړ نو تر هغه وخته به سجدې ته نه تلی

حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَائِمًا وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ

تر څو پوري چي به سیده دریدلی نه وو ، او کله چي به یې د سجدې څخه سر پورته کوی نو تر هغه وخته پوري به یې دوهمه سجده نه کول تر څو پوري چي به سیده ناست نه وو

جَالِسًا وَكَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى

او په هر دواړو رکعتو کي به یې التحیات ویل او د ناستي په حالت کي به یې خپله چپه پښه و غوړول

وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى وَكَانَ يَنْهٰى عَنْ عُقْبَةِ الشَّيْطَانِ وَيَنْهٰى أَنْ يَفْتَرِشَ

او راسته پښه به یې ودرول او د شیطان د پیروی څخه به یې منعه فرمایل او دواړه لاسونه به یې په سجده کي

الرَّجُلُ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ السَّبُعِ وَكَانَ يَخْتِمُ الصَّلَاةَ بِالتَّسْلِيمِ. رواه مسلم

پر مځکه داسي اېښودلو څخه هم منعه فرمایلې ده لکه حیوانان چي یې غزوي او رسول الله ﷺ به لمونځ په سلام سره ختموی. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۱/ ۳۵۷، ۳۵۸، رقم: ۲۴۰ - ۴۹۸.

**د لغاتو حل**: (لم يشخص): الاشخاص: الرفع، والتصويب، الانزال. (پورته كول). (عن عقبة الشيطان): هو ان يضع اليته على عقبيه.

**تشريح** د بي بي عائشې رضي الله عنها دا فرمایل چي رسول الله ﷺ به لمونځ د تکبیر څخه پیل کوی او د قرائت پیل به یې د الحمد لله رب العلمين څخه کوی نو ددې څخه دا خبره ثابته سوه چي رسول الله ﷺ به بسم الله کرار ویل څرنګه چي د امام اعظم رحمة الله عليه مذهب هم دادی.

## په قعده كي د ناستي طريقې او په هغو كي د امامانو اختلاف

وكان يفرش رجله اليسرى وينصب رجله اليمنى: يعني رسول الله ﷺ به د ناستي لپاره خپل چپه پښه غزول او راسته پښه به يې ولاړه ساتل، ددې عبارت څخه په ښكاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به په دواړو قعدو كي همداسي كښينستي، د امام اعظم رحمة الله عليه دا مذهب دى چي په دواړو قعدو كي همداسي كښينستل پكار دي.

راتلونكى حديث چي د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه څخه نقل سوى دى د هغه څخه دا ثابتيږي چي رسول الله ﷺ به په اوله قعده كي پښه غزول مگر په دوهمه قعده كي به يې تورك اختيار وى، د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادى چي په اوله قعده كي افتراش (يعني پښه غوړول) پكار ده او په دوهمه قعده كي تورك.

د امام مالك رحمة الله عليه په نزد په دواړو قعدو كي تورك دى او د امام احمد رحمة الله عليه مذهب دادى چي په كوم لمانځه كي دوې تشهدي وي نو د هغه په اخري تشهد كي تورك كيدل پكار دي او په كوم لمانځه كي چي يوه تشهد وي په هغه كي افتراش پكار دي.

## د امام اعظم رحمة الله عليه د مذهب دليل

په بنيادي توگه د امام اعظم رحمة الله عليه د مذهب دليل دا حديث دى نه يوازې دا چي دا حديث بلكه نور ډير حديثونه وارد دي چي په هغو كي مطلقا د پښې په غزولو ذكر دى او داهم وارد دي چي په تشهد كي سنت دادى او دا چي رسول الله ﷺ پرته د اولي او دويمې قعدې په قيد د تهشد كي همداسي كښينستى بيا دوهم شى داهم دى چي په تشهد كي د ناستي كومه طريقه چي امام اعظم رحمة الله عليه اختيار كړې ده هغه د نورو طريقوپه مقابله كي زياته بامشقته او مشكله ده او په حديثو كي په صراحت سره دا خبره فرمايل سوې ده چي په اعمالو كي زيات افضل او اعلى عمل هغه دى چي په هغه كولو كي مشقت او سختي زياته وي . په كومو حديثونو كي چي د رسول الله ﷺ په باره كي دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به په دوهمه قعده كي په كهولو كښينستى څرنگه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دى هغه پر دې خبره محمول دى چي رسول الله ﷺ به په حالت د ضعف او په ډير عمري كي داسي كښينستى ځكه چي په دوهمه قعده كي تر زياته وخته پوري ناسته وي او په كناتو ناسته زياته آسانه ده.

## د عقبه شيطان مطلب

عقبه شيطان په اصل كي په يو خاص طريقې سره د ناستي نوم دى چي د هغه شكل دادى

چي دواړه کناټي پر مځکه ايښودلو سره دواړي پنډۍ ودرول سي بيا دواړه لاسونه په منيځ کي ايښودو سره کښيني ځرنګه چي سپى کښيني په قعده کي د ناستي دا طريقه اختيارول په متفقه توګه سره د ټولو علماؤ په نزد مکروه ده علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي د عقبه شيطان مطلب دادى چي پر دواړو کناټو باندي پوندي کښيږدي دا معنى د لفظ د اعتبار عقبه رعايت سره زياته مناسبه ده رسول الله ﷺ نارينه ددې څخه منعه کړي دي چي هغه د سجدې په حالت کي پر مځکه خپل دواړه لاسونه داسي کښيږدي ځرنګه چي سپى وغيره کښيني، په دې اړه د سړي د تخصيص وجه داده چي د سجدې په وخت کي ښځوته همداسي دواړه لاسونه ايښودل پکار دي ځکه چي داسي د ښځي د جسم نمائش نه کيږي .

د حديث د آخري جملې مطلب دادى چي رسول الله ﷺ به لمونځ په سلام سره ختم کوى خو دومره خبره واورى چي په لمانځه کي سلام ګرځول د حنفيه په نزد واجب دى مګر د شوافع په نزد فرض دى .

## د تکبير تحريمې پر وخت لاسونه پورته کول

﴿۷۳۶﴾: وَعَنْ أَبِي حُمَيْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ فِي نَفَرٍ مِّنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى

د ابو حميد رضي الله عنه څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو يو ډلي ته ما وويل :

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَحْفَظُكُمْ لِصَلاَةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُهُ

زه د رسول الله ﷺ د لمانځه طريقه ښه پيژنم، ما رسول الله ﷺ ليدلى دى چي

إِذَا كَبَّرَ جَعَلَ يَدَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ وَإِذَا رَكَعَ أَمْكَنَ يَدَيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ

کله چي به يې تکبير وايه نو خپل دواړه لاسونه به يې تر اوږو پوري پورته کول کله چي به يې رکوع کول نو خپل دواړه زنګنونه به يې ټينګ نيول بيا به يې

هَصَرَ ظَهْرَهُ فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ اسْتَوٰى حَتّٰى يَعُوْدُ كُلُّ فَقَارٍ مَّكَانَهُ فَإِذَا سَجَدَ

خپله ملا کښته کړل هر کله چي به يې سر پورته کوى نو سيده به ودريدى چي د ملا د هډوکو بندونه به يې خپل ځاى ته راغلل بيا به يې سجده کول

وَضَعَ يَدَيْهِ غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلاَ قَابِضِهِمَا وَاسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ أَصَابِعِ رِجْلَيْهِ

نو دواړه لاسونه به يې پر مخکه داسي ايښودل چي ځنګلي به يې نه خو غزولي او نه به يې ځنګ ته راټولوې او د پښو ګوتي به يې

الْقِبْلَةَ فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ جَلَسَ عَلٰى رِجْلِهِ الْيُسْرٰى وَنَصَبَ الْيُمْنٰى

د قبلې طرف ته وې بيا کله چي به د دوو رکعتو وروسته کښېښنستی نو چپه پښنه به يې و غزول پر هغې به کښېنستی او راسته پښنه به يې ودرول

فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ قَدَّمَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَنَصَبَ الْأُخْرٰى وَقَعَدَ عَلٰى مَقْعَدَتِهِ . رواه البخاري .

او هر کله چي به په آخري رکعت کي کښېنستی نو چپه پښنه به يې مخته و کښل او بله پښنه به يې ودرول او پر مقعد به کښېنستی . بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۰۵، رقم: ۸۲۸.

**د لغاتو حل:** (هَصَرَ): اى ثناه وخفضه حتى صار كالغصن المنهصر وهو المنكسر من غير بينونة.

**تشريح** : د حديث څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به کله تکبير کوی نو خپل لاسونه به يې د اوږو برابر پورته کول د امام شافعي مذهب دادی .

د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد د تکبير تحريمه په وخت کي لاسونه د غوږو تر نرميو پوري پورته کول پکار دي ځکه چي په نورو حديثو کي هم همداسي روايتونه دي او په ځينو روايتونو کي ددې دواړو څخه بيل يوه دريمه طريقه يعني د لاسو تر غوږو پوري پورته کول هم راغلي دي ځکه امام اعظم رحمة الله عليه خو نه د غوږو لاندي يعني تر اوږو پوري د پورته کولو طريقه اختيار کړله او نه د غوږو لوړ پورته کولو طريقه اختيار کړل بلکه منځنی طريقه يې اختيار کړه.

امام شافعي رحمة الله عليه ددې روايت سره سم فرمايلي دي چي د تکبير تحريمه په وخت کي لاسونه داسي پورته کول پکار دي چي د لاس ورغوي خو د اوږو برابر وي بټې ګوتي د غوږو د پوستکو (نرمۍ) په مقابل کي او د ګوتو سرونه د غوږو پر نوړه برخه باندي کښېښنول سي چي په دې طريقه سره په ټولو حديثونو باندي عمل ممکن سي او په روايتونو کي د اختلاف څه ځای پاته نسي په دې حديثو کي يو دوهم تطبيق داهم کيدای سي چي دا حديثونه په

مختلفو وختونو سره اړه ولري يعني د تكبير تحريمه په وخت كي رسول ﷺ كله داسي لاسونه پورته كول او كله هغسي.

د رسول الله ﷺ د ركوع دا طريقه وه چي په دواړو لاسونو سره به يې دواړه زنګنونه ټينګ نيول او ګوتي به يې خلاصي كړې او بيا غاړه مباركه په كښته كولو سره بالكل ملا (شا) برابره كړه، ليكي چي په ركوع كي خو ګوتي خلاصي ساتل پكار دي او په سجده كي په بندي او په تكبير تحريمه او تشهد كي هغه پر خپل حالت باندي پريښودل پكار دي.

په سجده كي پر مځكه لاس ايښول د هغه ځخه دا معلوميږي چي د سجدې په حالت كي ګوتي او ورغوى پر مځكه ايښودل او مړوندونه دي پورته وي او بغل داسي بيل ساتل پكار دي كه مرغومى وغواړي نو د لاندي ځخه دي تير سي.

په دې حديث كي ددې خبري هيڅ ذكر نه دى سوى چي د قومې (ولاړي) ځخه سجدې ته د تلو په وخت كي پر مځكه مخكي زنګنونه ايښودل پكار دي يا لاسونه نو په دې اړه صحيح مسئله داده چي صحيح خو دواړي طريقې دي مګر د اكثر امامانو په نزد افضل او مختار دادى چي پر مځكه اول زنګنونه ايښودل پكار دي.

## رفع يدين (لاسونه پورته كول)

﴿۳۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځخه روايت دى چي د لمانځه پيل كولو پر وخت به رسول الله ﷺ دواړه لاسونه پورته كول

حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوْعِ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ

تر اوږو پوري كله چي شروع به يې كول د لمانځه او كله چي به يې د ركوع لپاره تكبير كوى او د ركوع ځخه به يې سر پورته كوى

رَفَعَهُمَا كَذٰلِكَ وَقَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَكَانَ لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُوْدِ. متفق عليه

نو بيا به يې همداسي دواړه لاسونه تر اوږو پوري پورته كول او د ركوع ځخه د سر پورته كولو سره به يې ويل: سمع الله لمن حمده ربنا لک الحمد، او په سجده كي به يې داسي نه كول. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۱۸، رقم: ۷۳۵، ومسلم ۱\۲۹۲، رقم: ۲۱-۳۹۰.

**تشريح:** د ربنا لک الحمد مطلب دادی چي اې پروردګاره د دنیا ټول تعریفونه تا لره دي تر دې که یو سړی د بل کس تعریف کوي ځکه چي د ټولو پیدا کونکي ته یې ځکه د مصنوع تعریف په اصل کي د صانع تعریف دی

د حدیث ددې برخي څخه معلومه سوه چي هر لمونځ کونکي ته سمع الله لمن حمده او ربنا لک الحمد دواړه کلمات ویل پکار دي مګر امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه فرمايي که یو سړی یوازي لمونځ کوي نو هغه ته دا دواړه کلمات ویل پکار دي مګر د جماعت په صورت کي امام دي یوازي سمع الله لمن حمده او مقتدي دي ربنا لک الحمد وايي، امام ابو یوسف رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله علیه فرمايي چي امام ته دواړه کلمات ویل پکار دی دا قول امام طحاوي رحمة الله علیه هم اختیار کړی دی بلکه امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه څخه هم یو روایت دي چي د مقتدي په باره کي د هغوئ رایه داده چي هغه دي یوازي ربنا لک الحمد وايي.

وکان لا یفعل ذالک في السجود: یعني رسول الله ﷺ به په سجده کي داسي نه کول، ددې مطلب دادی چي څرنګه د تکبیر تحریمه څخه وروسته رسول الله ﷺ به رکوع ته د تللو څخه مخکي او د رکوع څخه د سر پورته کولو همداسي چي سجدې ته به تلی یا د سجدې څخه به یې سر پورته کوی نو رفع یدین به یې کول د شافعینو حضراتو په نزد مختار مذهب دادی چي په دې وختونو کي رفع یدین نه دی کول پکار ددې حضراتو په نزد د رفع یدین چي کوم صورت دی هغه دادی چي رفع یدین یوازي تکبیر تحریمه او رکوع ته د تللو په وخت کي او د رکوع څخه د سر پورته کولو په وخت کي ددې درو ځایو څخه پرته پر بل ځای باندي دا حضرات رفع یدین صحیح نه بولي.

﴿۴۳۸﴾: وَعَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چي هر کله به حضرت ابن عمر رضي الله عنه لمونځ پیل کوی نو دواړه لاسونه به یې پورته کړل تکبیر به یې وایه او کله چي به یې

رَكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ

رکوع کول نو بیا به یې هم دواړه لاسونه پورته کول او کله چي به یې سمع الله لمن حمده ویل نو بیا به یې هم لاسونه پورته کول او کله چي به یې دواړه رکعتونه پوره کړل او ولاړېدی به

رَفَعَ يَدَيْهِ وَرَفَعَ ذٰلِكَ ابْنُ عُمَرَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه البخاري

نو هم به يې لاسونه پورته کول دا روايت ابن عمر تر رسول الله ﷺ پورې مرفوع کړی دی . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۲۲، رقم: ۷۳۹.

## د لاسو پورته کولو په مسئله کې د حنفيه مستدل حديثونه

﴿۷۳۹﴾: وَعَنْ مَالِكِ ابْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مالک بن حويرث رضي الله عنه څخه روايت دی چې کله به رسول الله ﷺ

إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَقَالَ

تکبير وايه نو دواړه لاسونه به يې تر غوږو پورې پورته کول تر داسې اندازې چې برابر به يې کړل له غوږو خپلو سره او هر کله چې د رکوع څخه به يې سر پورته کوی نو ويل به يې

سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ . وفي رواية حتى يحاذي بهما فروع اذنيه . متفق عليه

سمع الله لمن حمده ، او همداسې به يې لاسونه پورته کول ، او په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې لاسونه به يې تر غوږو پورې پورته کول . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۱۹، رقم: ۷۳۷، ومسلم: ۱\۲۹۳، رقم: ۲۵- ۳۹۱.

**تشريح**: د تکبير تحريمه په وخت کې خو رفع يدين يعني په لاسونو پورته کولو کې څه اختلاف نشته بلکه ټوله علماء او امامان پر دې خبره متفق دي چې د تکبير تحريمه په وخت کې رفع يدين کول پکار دي د تکبير تحريمه څخه پرته پر نورو ځايو باندې د رفع يدين مسئله د حنفيه او شوافعو په مينځ کې د يو معرکة الاراء مسئلې حيثيت لري د حنفيه په نزد يوازې تکبير تحريمه په وخت کې رفع يدين کول پکار دی او د شوافع په نزد د تکبير تحريمه څخه ماسوا رکوع ته د تللو په وخت کې د رکوع څخه سر پورته کولو په وخت کې رفع يدين کول پکار دي . حق خبره خو داده چې دواړو خواوو ته د دلائلو ذخيرې دي او د حديثو ذخيرې دي چې د هغه پر بنيادو باندې طرفين د خپل مذهب عمارت دروي علماء حنفيه په ټولو حديثو کې د دا تطبيق پيدا کولو هڅه کوي ددې حضراتو له خوا ويل سوي دي چې کيدای سي رسول الله ﷺ خو رفع

یدین کړی وي او کله بې نه وي کړی یا دا چي چي مخکي بې رفع یدین کوی مګر وروسته به بې د تکبیر تحریمه څخه ماسوا د نورو موقعو لپاره رفع یدین منسوخ ګرځول سوی وي د حنفیه سره د خپل مذهب په تائید کي ډیر زیات حدیثونه او اثار دي هغه دلته ذکر سوي دي

امام ترمذي رحمة الله علیه په خپل جامع ترمذي کي دوه بابه قائم کړي دي اول باب خو د رکوع په وخت د رفع یدین دي په دې ضمن کي امام ترمذي رحمة الله علیه د ابن عمر رضی الله عنه حدیث نقل کوي کوم چي مخکي تیر سو، دوهم باب دادی چي لاس پورته کول یوازي د لمانځه په پیل کي سوی دی ددې باب په ضمن کي امام ترمذي رحمة الله علیه د حضرت علقمه رضی الله عنه هغه حدیث چي ابن مسعود رضی الله عنه خپلو ملګرو ته وفرمایل زه ستاسو سره د رسول الله ﷺ لمونځ ادا کوم ابن مسعود رضی الله عنه لمونځ ادا کړو او هغه یوازي اول وار یعني د تکبیر تحریمه په وخت کي لاسونه پورته کړل په دې باب کي امام ترمذي د براء بن عازب رضی الله عنه څخه هم همداسي نقل کړی دی او امام موصوف ویلي دي چي د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث حسن دی او په صحابه کرامو او تابعینو کي اکثر اهل علم ددې قائل دي او د سفیان ثوري او اهل کوفه قول هم دادی. په جامع الاصول کي د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث د ابوداود او نسائي په حواله سره او د براء ابن عازب رضی الله عنه حدیث هم د ابو داؤد د حوالې سره نقل سوی دی د هغه الفاظ دادي چي ابن مسعود رضی الله عنه وفرمایل چي ما رسول الله ﷺ ولیدی چي کله به بې لمونځ پیل کړ نو د تکبیر تحریمه په وخت کي به یې خپل دواړه لاسونه د خپلو دواړو اوږو نژدې پورته کول او داسي به بې دوه واره نه کول او په یو بل روایت کي داسي دي چي دوهم وار بې لاسونه نه پورته کول تر دې چي رسول الله ﷺ به د لمانځه څخه فارغه سو.

دلته دا خبره هم واورئ چي د دې حدیث په باره کي ابوداؤد چي دا ویلي دي چي دا حدیث صحیح نه دی نو کیدای سي چي د هغوی په نزد په صحیح نه کیدو سره مراد دا وي چي هغه خاص سند او طریقې سره صحیح ثابت نه دی نو په یوه خاص طریقې سره صحیح نه ثابت کیږي د اصل حدیث پر صحت باندي څه اثر نه کیږي یا بیا دا احتمال وي چي د ابوداؤد ددې حدیث حسن ثابتول وي څرنګه چي ترمذي ویلي دي نو په دې صورت کي به وویل سي چي د ټولو امامانو او محدثینو په نزد حسن حدیث د استدلال قابل وي.

امام محمد رحمة الله علیه په خپل کتاب مؤطا کي د ابن عمر رضی الله عنه دا روایت چي د هغه څخه رکوع او د رکوع څخه سر پورته کولو په وخت کي رفع یدین ثابتیږي په نقل کولو سره فرمایي دا سنت دی چي هر وار په کښته کیدو سره او پورته کیدو سره تکبیر وویل سي مګر د رفع یدین

پرته د يوه وار يعني تكبير په وخت كي پر نورو ځايو نه وي او دا قول د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه دی او په دې اړه ډير زيات اثار وارد دي ددې وروسته د عاصم ابن كليب خرمي يو روايت دی چي عاصم د خپل پلار څخه چي د حضرت علي رضي الله عنه د تابعينو څخه دی روايت كړی دی او نقل كوي چي حضرت علي كرم الله وجهه به د تكبير اولی پرته رفع يدين نه كول.

د عبدالعزيز ابن حكيم روايت نقل سوی دی چي هغه وويل ما ابن عمر رضي الله عنه وليدي چي هغه به د لمانځه په پيل كي د اول تكبير كولو په وخت كي لاسونه پورته كول ددې څخه پرته په بل يو ځای كي بې رفع يدين نه كوی.

د مجاهد رحمة الله عليه روايت دی هغه وويل ما په ابن عمر رضي الله عنه پسي لمونځ كوی هغه به يوازي په تكبير اولی كي رفع يدين كول، د اسود رضي الله عنه څخه نقل سوي دي چي ما حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه وليدی چي هغه به يوازي په تكبير اولی كي رفع يدين كولی

نو هركله چي حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او د حضرت علي رضي الله عنه په ډول جليل القدر صحابه كرام چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم مبارك سره بې ډير نژدې والی درلودی ترك رفع يدين باندي به بې عمل كوی نو هغه كار چي ددې پر خلاف دی د قبلولو په اړه به اولی يعني افضل او غوره وي.

په شرح ابن همام كي يو روايت دارقطني رحمة الله عليه او ابن عدي رحمة الله عليه څخه نقل سوی دی چي هغوی د محمد ابن جابر څخه او هغوی د حماد ابن سليمان څخه او هغوی د علقمه او هغوی د عبد الله څخه روايت كړی دی چي عبد الله رضي الله عنه وفرمايل ما رسول الله صلی الله عليه وسلم، حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه سره لمونځ كړی دی هغوی د تكبير اولی څخه پرته پر بل يو ځای باندي رفع يدين نه كوی.

منقول دي چي يو وار امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام اوزاعي رحمة الله عليه په مكه معظمه كي په دارالخياطين كي جمع سول امام اوزاعي رحمة الله عليه د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه څخه پوښتنه وكړه چي تاسو ركوع ته د تللو په وخت كي او د ركوع څخه د را پورته كيدو په وخت كي رفع يدين ولي نه كوی؟ امام اعظم رحمة الله عليه جواب وركړ ځكه چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه په دې اړه په صحت سره څه ثابت نه دي، امام اوزاعي رحمة الله عليه وفرمايل ماته زهري رحمة الله عليه د حضرت سالم رضي الله عنه دا حديث بيان كړ چي هغه د خپل پلار ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل كړی دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم به د تكبير اولی په وخت كي، ركوع ته د تللو په وخت كي او د ركوع څخه د سر پورته كيدو په وخت كي رفع يدين كول، امام اعظم ابو حنيفه

رحمة الله عليه وفرمايل ماته حماد رحمة الله عليه او هغه ته ابراهيم او هغه ته علقمه او اسود او دې دواړو د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه څخه دا حديث نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ به يوازي د لمانځه په پيل کي دواړه لاسونه پورته کول او دوهم وار به بيا داسي نه کول دد ې روايت په اوريدو سره امام اوزاعي رحمة الله عليه وويل ما خو د زهري رحمة الله عليه څخه نقل کړی دی او هغوی د سالم رحمة الله عليه او هغوی د خپل پلار ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل کړی دی او تاسو د هغه په مقابله کي د حماد څخه روايت کړی دی يعني زما بيان سوی سند ستاسو د بيان سوي سند څخه عالي او افضل دي.

نو امام اعظم رحمة الله عليه ورته وفرمايل که دا خبره وي نو بيا واوره چي حمار د زهري رحمة الله عليه څخه زيات ديني عالم دی او ابراهيم رحمة الله عليه د سالم رحمة الله عليه څخه زيات فقيه دی او همداسي علقمه رحمة الله عليه هم د ابن عمر رضي الله عنه په مقابله کي په فقه کي څه کم نه دی دا بيله خبره ده چي ابن عمر رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ د رفاقت او صحابيت شرف حاصل دی او اسود رحمة الله عليه ته هم ډير زيات فضيلت حاصل دی او عبد الله خو خپله عبد الله دی او کنه، يعني د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه څه تعريف او توصيف وکړل سي چي په علم فقه کي د خپل عظمت شان او د رسول الله ﷺ د رفاقت او د صحابيت د سعادت او شرف په وجه مشهور دی.

ګويا امام اوزاعي رحمة الله عليه د اسناد د عالي کيدو حيثيت څخه حديث ته ترجيح ورکړه او امام اعظم رحمة الله عليه د راويان حديث د فقيه کيدو د اعتبار څخه حديث ته ترجيح ورکړه او د امام اعظم رحمة الله عليه اصول دادي چي هغه د فقه راويانو ته په غير فقيه راويانو ترجيح ورکوي څرنګه چي په اصول فقه کي ذکر سوي دي.

په نهايه شرح هدايه کي د عبد الله ابن زبير رضي الله عنه په باره کي نقل دي چي هغه يو سړی پر لمانځه باندي په مسجد حرام کي وليدی چي رکوع ته د تللو په وخت کي او د رکوع څخه بيا د سر راپورته کيدو په وخت کي رفع يدين کوی نو هغه سړي ته يې وويل داسي مه کوه ځکه چي دا يو داسي عمل دی چي رسول الله ﷺ مخکي اختيا رکړی وو او وروسته بيا پريښودی يعني پر دغه ځايو باندي د رفع يدين حکم مخکي وو اوس منسوخ سوی دی.

عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چي رسول الله ﷺ رفع يدين وکړ نو موږ هم رفع يدين وکړ او کله چي رسول الله ﷺ دا پريښودی نو موږ هم پرېښودی.

ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چي عشره مبشره يعني هغه لس خوشبخته صحابه کرام چي رسول

الله ﷺ د هغوی ته په ژوند کي د جنتي کیدو زیری ورکړی وو هغو به یوازي د لمانځه په پیل کي رفع یدین کول، مجاهد رحمة الله علیه د ابن عمر رضی الله عنه څخه نقل کوي چي ما په ابن عمر رضی الله عنه پسي څو کاله لمونځ کړی دی مګر ما هغه د لمانځه د پیل څخه پرته پر بل ځای باندي په رفع یدین کولو سره نه دی لیدلی حال دا چي د ابن عمر رضی الله عنه هغه روایت تیر سوی دی چي په هغه کي پر درو ځایو باندي د رفع یدین اثبات کیږي او د شافعیانو تر ټولو اهم دلیل دی، د اصول حدیث قاعده ده چي د راوي عمل که خپله د هغه روایت خلاف وي نو پر روایت باندي عمل نه کیږي ځکه د ابن عمر رضی الله عنه هغه روایت به ساقط العمل وګرځول سي

په هر حال ددې روایاتو او اثارو څخه معلومه سوه چي رفع یدین د دواړو په اثبات کي حدیثونه او اثار وارد دي او د صحابه کرامو یو جماعت خصوصا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه او د هغوی تابعین د رفع یدین نه کولو په حق کي دي نو ددې ټولو موافق او مختلف حدیثونه محمول دا کیدای سي چي موږ دا وایو چي رسول الله ﷺ څخه په مختلفو وختونو کي دا دواړي طریقې په وجود کي راغلي دي او د امام اعظم رحمة الله علیه د علم فقه او د هغوی اسناد د نقطې منتهی ابن مسعود رضی الله عنه او د هغوی د تابعینو ذات دی او د هغوی رجحان عدم رفع یدین طرفته دی ځکه امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه د ترک رفع یدین مذهب اختیار کړی دی اوس ټوله احناف ددې مذهب حامي او پر دې مذهب عامل دي.

علماء حنفیه یوازي دومره نه وایي بلکه ددې حضراتو په نزد د تکبیر تحریمه څخه ماسوا پر نورو ځایونو باندي د رفع یدین حکم منسوخ دی هر کله چي د ابن عمر رضی الله عنه په باره کي دا ثابته سوه چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته ترک رفع یدین اختیارول باوجود ددې چي رفع یدین حدیث راوي هم دوی دي ددې څخه دا معلومه سوه چي مخکي خو به د رفع یدین حکم پاته سوی وو مګر وروسته دا حکم باوجود د کثرت احادیث او اثارو دا منسوخ دی چي د هغوی په نزد رفع یدین او عدم رفع یدین دواړه سنت دي خو رفع یدین کول اعلی او راجح دي البته د نورو علماء حنفیه مذهب دادی چي د رفع یدین حکم او طریقه منسوخ ده حضرت شیخ عبد الحق محدث دهلوي په پوره تفصیل سره په خپل کتاب شرح السفر السعادة کي نقل کړي دی چي د هغه خلاصه دلته وړاندي سوې ده د هغه د تحقیق حاصل دادی چي د هغوی په نزد رفع الیدین او عدم رفع الیدین دواړه سنت دي مګر رفع الیدین نه کول اولی او راجح دي، البته د نورو علماء احنافو مذهب دادی چي د رفع الیدین حکم او طریقه منسوخ ده. والله اعلم

## د جلسه استراحت مسئله

﴿۷۴۰﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فَإِذَا كَانَ فِي وِتْرٍ مِّنْ

د حضرت مالک بن حویرث رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ پر لمانځه کولو ولیدی چي کله به د طاق رکعت د سجدې څخه سر مبارک پورته کوی

صَلَاتِهِ لَمْ يَنْهَضْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا. رواه البخاري.

نو د درېدو څخه مخکي به کښېنستی او بیا به ولاړ سو .بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۰۲، رقم: ۸۲۳.

**تشریح**: مطلب دا چي کله به رسول الله ﷺ لمونځ کوی او په اول یا دریم رکعت کي به پې د دویمي سجدې څخه سر پورته کړ نو مخکي به کښېنستی او د هغه وروسته به د راتلونکي رکعت لپاره پورته کېدی دې ته جلسه استراحت وایي.

## جلسه استراحت سنت ده که یا؟

د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد جلسه استراحت سنت ده او ددې طریقه هغه ده کوم چي په اوله قعده کي د ناستي وه او دا چي د ناستي وروسته په دواړو لاسونو سره د مځکي په مرسته پورته کېدل پکار دي ، امام اعظم ابو حنیفه او د امام احمد رحمة الله علیه مختار قول دادی چي د رسول الله ﷺ جلسه استراحت کول د زیات عمرۍ او ضعف یعني سپین ږیرتوب په وجه وه ځکه نو کوم سړي ته چي د جلسه استراحت حاجت نه وي د هغه لپاره دا سنت نه ده .

د امام شافعي رحمة الله علیه مستدل دا حدیث دی او د امام اعظم رحمة الله علیه دلیل د ابو هریره رضی الله عنه روایت دی چي ترمذي هم نقل کړی دي چي هغوی وفرمایل : نبي کریم ﷺ به د لومړي او دریم رکعت د دوهمي سجدې څخه وروسته (د قدم په ملا) یعني بېله ناستي ولاړي که څه هم د دغه حدیث بعض اطراف ضعیف دي لیکن حدیث صحیح اصل دی . .

ابن ابي شیبه د ابن مسعود رضی الله عنه په باره کي نقل کوي چي هغه به د قدم په ملا باندي بغیر د ناستي ولاړېدی دوی د علي، عمر، ابن عمر او ابن زبیر رضی الله عنهم په باره کي هم داسي نقل کوي او د نعمان بن ابي عباس په باره کي یې نقل کړي دي چي هغه وفرمایل: ما ډیر صحابه کرام لیدلي دي چي هغوی په اول او دریم رکعت کي د سجدې څخه سر پورته کولو نو په کوم حالت کي چي به وه په هغه حالت کي به بغیر د ناستي پورته کېدل په هر حال په دې اړه ډیر زیات حدیثونه او

اثار وارد دي او كوم حديثونه چي ددې برعكس وارد دي د هغه محمول د ضعف او سپين ږيرتوب دی ځرنګه چي ددې حديث په باره کي ذکر دی چي رسول الله ﷺ د سپين ږيرتوب او ضعف په وجه جلسه استراحت اختيار ول .

## د تکبير تحريمې وروسته د لاسونو اېښودل

﴿۷۴۱﴾: وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ

د وائل[1] بن حجر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه رسول الله ﷺ وليدی چي لاسونه يې پورته کړل

حِينَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ ثُمَّ الْتَحَفَ بِثَوْبِهِ ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى

د لمانځه پيل کولو په وخت کي د الله اکبر سره بيا رسول الله ﷺ خپل لاسونه په جامه کي پټ کړل او راسته لاس يې پر چپه لاس کښېښود

فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ أَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنَ الثَّوْبِ ثُمَّ رَفَعَهُمَا ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ فَلَمَّا

بيا چي يې د رکوع اراده وکړل نو د جامې څخه به يې لاس وکښي هغه به يې پورته کړل او تکبير يې وويل او رکوع يې وکړل بيا يې

قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَفَعَ يَدَيْهِ فَلَمَّا سَجَدَ سَجَدَ بَيْنَ كَفَّيْهِ. رواه مسلم

سمع الله لمن حمده وويل نو لاسونه يې پورته کړل او کوم وخت چي يې سجده کول نو د دواړو لاسو په منځ کي يې وکړه . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۰۱، رقم: ۵۴- ۴۰۱.

**تشريح**: په ښکاره خو دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به د تکبير تحريمه څخه وروسته خپل دواړه لاسونه په څادر کي پټ کړل او نيت يې وتړی مګر ځيني حضرات فرمايي چي رسول الله ﷺ په څادر کي لاسونه نه وه پټ کړي بلکه په خپلو لستونو کي يې پټ کړي وه په هر حال علماء ليکي چي رسول الله ﷺ خپل لاسونه په کالو کي پټ کړي وه نو د هغه وجه به د يخ شدت وو .

۱- وائل بن حجر حضرمي دی نوموړی د حضرت موت د رئيسانو څخه دی، کله چي دی د خپل قبيلې له لوري په قاصد جوړېدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو رسول الله ﷺ خپل څادر مبارک پر مځکه هوار کړ او هغه يې پر کښينسوی بيا هغه اسلام قبول کړ، علقمه او عبد الجبار د هغه زامن دي .

د تكبير تحريمه وروسته راسته لاس پر چپه لاس ايښودل خو د ټولوامامانو په نزد يو متفق عليه مسئله ده مگر د امام مالک رحمة الله عليه په نزد پريښودل يې اولى دي او تړل هم جائز دي.

په دې باره کې د امامانو اختلاف دى چې لاسونه کوم ځاى وتړل سي، امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمايي چې لاسونه د نامه لاندې تړل پکار دي او امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي چې سينې ته نژدې يعني د نامه پورته تړل پکار دي د دواړو حضراتو مطابق حديثونه وارد دي علماء ليکي چې په دې اړه حکم دادى چې چيرې و غواړې لاسونه دي کښيږدي صحيح به وي مگر په دومره خبره پوهيدل پکار دي چې په دې مسئله کې څه خاصه طريقه د حديثو په ذريعه ټاکلې نه ده يعني نه خو نامه پورته په لاس تړلو يو طريقه په خاصه توگه سره ثابته ده او نه د نامه لاندې بلکه دواړې طريقې د حديثونو په ذريعه ثابتې دي، امام اعظم رحمة الله عليه په دغه دواړو صورتو کې دا صورت اختيار کړ چې د ادب او تعظيم په اړه ټاکلى او معتارف دى، او هغه تر نامه لاندې لاسونه نيول ځکه چې د زيات تعظيم او تکريم او ادب په وخت کې لاسونه تر نامه لاندې تړلو سره درېږي.

د دې حديث څخه معلومه سوه چې د تکبير ويلو او رفع يدين کولو په وخت کې د جامو څخه لاسونه را ايستل پکار دي.

﴿۷۴۲﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ كَانَ النَّاسُ يُؤْمَرُوْنَ أَنْ يَّضَعَ الرَّجُلُ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دى چې خلکو ته حکم ورکړل سوى دى چې په لمانځه کې دې نارينه ايږدي

الْيَدَ الْيُمْنٰى عَلٰى ذِرَاعِهِ الْيُسْرٰى فِي الصَّلَاةِ. رواه البخاري.

راسته لاس پر چپه لاس .بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۲۴، رقم: ۷۴۰.

**تشريح**: په دې حديث کې دې ته اشاره مقصد ده چې د احکم الحاکمين او پروردگار عالم په مخکې درېدونکي لپاره لازم ده چې هغه په ادب او احترام سره ودرېږي، ددې طريقه داده چې راسته لاس دې پر چپه لاس سربېره تر نامه لاندې ونيسي، سر دې کښته وي لکه څرنگه چې د پاچاهانو په مخکې درېږي.

﴿۴۴۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي كله به رسول الله ﷺ ولاړ سو

إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَقُوْمُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَرْكَعُ ثُمَّ يَقُوْلُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ

لمانځه ته نو د دريدو سره به يې تكبير وو ايه بيا به يې ركوع ته په تلو كي تكبير وايه بيا د ركوع څخه راپورته كيدو سره به يې سمع الله لمن

حَمِدَهُ حِيْنَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ ثُمَّ يَقُوْلُ وَهُوَ قَائِمٌ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ

حمده ويل بيا چي به په ښه ډول ودريدى نو ربنا لك الحمد به يې ويل ،

ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَهْوِيْ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَسْجُدُ ثُمَّ

بيا سجدې ته په تلو كي به يې الله اكبر وايه بيا دويمي سجدې ته په تلو سره به يې الله اكبر وايه

يُكَبِّرُ حِيْنَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ ثُمَّ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا حَتّٰى يَقْضِيَهَا وَيُكَبِّرُ

بيا د سجدې څخه سر پورته كولو سره به يې الله اكبر وايه او همدا سي به يې ټول لمونځ كوى تر دې چي لمونځ به يې پوره كړ

حِيْنَ يَقُوْمُ مِنَ الثِّنْتَيْنِ بَعْدَ الْجُلُوْسِ . متفق عليه

او هر كله چي به د دوو ركعتو پوره كولو سره دريدى نو الله اكبر به يې ويل . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۲۷۲، رقم: ۷۸۹ و مسلم ۱\ ۲۹۳، ۲۹۴، رقم: ۲۸- ۳۹۲.

**تشريح**: په دې حديث كي د تكبير تحريمه او د ركوع او سجدې په موقع باندي يوازي د تكبيراتو ذكر سوى دى د لاس پورته كولو ذكر نه دى سوى .

**غوره لمونځ كوم دى ؟**

﴿۴۴۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ الصَّلَاةِ طُوْلُ الْقُنُوْتِ . رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره لمونځ هغه دی چي په هغه کي اوږده ولاړه وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۱/۵۲۰، رقم: ۱۶۴- ۷۵۶.

**تشريح** : ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي په لمانځه کي اوږده قيام کول يعني تر زيات وخته پوري دريدل او اوږده سورتونه ويل افضل او اعلی دي ځکه چي ددې په وجه مشقت او محنت زيات وي او د جذبه خدمت او اطاعت اظهار کيږي کوم چي د عبادت روح دی .

## په لمانځه کي قيام (ولاړه) غوره ده که سجده ؟

د علماء په نزد په دې خبره کي اختلاف دی چي په لمانځه کي قيام افضل ده که سجده؟ ځيني حضرات خو وايي چي په لمانځه کي سجده افضل ده او ځيني حضرات وايي چي قيام افضل ده ددې حضراتو دليل دا حديث دی او ددې وجه دا بيانوي چي په قيام کي قرآن ويل کيږي او په سجده کي تسبيح ويل کيږي، او ښکاره خبره ده چي قرآن کريم د تسبيح څخه زيات افضل دی، د حنفيه مذهب هم دادی .

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د رسول الله ﷺ د لمانځه طريقه

﴿۷۴۵﴾: عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ فِي عَشَرَةٍ مِّنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابو حميد الساعدي رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ د لسو صحابه کرامو ډلي ته وويل چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا

زه د رسول الله ﷺ د لمانځه په اړه ستاسو څخه زيات خبر يم، صحابه کرامو وويل :

فَاعْرِضْ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ

ښه نو بيان يې کړه : هغه وويل کله چي به رسول الله ﷺ د لمانځه لپاره دريدی نو دواړه لاسونه به يې پورته کول .

حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكَبَيْهِ ثُمَّ يُكَبِّرُ ثُمَّ يَقْرَأُ ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتّٰى

تر اوږو پوري بيا به يې د الله اكبر ويلو څخه وروسته قرائت وايه بيا د الله اكبر په ويلو سره به يې دواړه لاسونه پورته كول تر

يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكَبَيْهِ ثُمَّ يَرْكَعُ وَيَضَعُ رَاحَتَيْهِ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَعْتَدِلُ

اوږو پوري بيا به ركوع ته تلى او خپل دواړه لاسونه به يې پر خپلو زنګنو ايښودل او ملا به يې سيده ساتل

فَلَا يُصَبِّيْ رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُ ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَيَقُوْلُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ثُمَّ

نه به يې سر پورته كوى او نه كښته ، بيا به يې سر پورته كړ او سمع الله لمن حمده يې وايه بيا يې

يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكَبَيْهِ مُعْتَدِلًا ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ ثُمَّ يَهْوِيْ

دواړه لاسونه تر اوږو پوري پورته كول او سيده به ودريدى بيا به په الله اكبر ويلو سره كښته كېدى

إِلَى الْأَرْضِ سَاجِدًا فَيُجَافِيْ يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَيَفْتَحُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ ثُمَّ يَرْفَعُ

د مځكي په لور او سجده به يې كول په دې حالت كي به يې دواړه لاسونه د خپلو بغلو څخه ليري ساتل او د پښو ګوتي به يې مخ پر قبله كړې وې بيا به يې پورته كړ

رَأْسَهُ وَيَثْنِيْ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا ثُمَّ يَعْتَدِلُ حَتّٰى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ

سر خپل د سجدې څخه او چپه پښه به يې وغزول پر هغې به كښېنستى دومره سيده به كښېنستى چي هر هډوكى به راغلى

إِلٰى مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا ثُمَّ يَسْجُدُ ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ وَيَرْفَعُ وَيَثْنِيْ رِجْلَهُ

خپل ځاى ته بيا به يې سجده كول بيا به په الله اكبر ويلو سره پر چپه پښه سيده كښېنستى

الْيُسْرٰى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا ثُمَّ يَعْتَدِلُ حَتّٰى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ إِلٰى مَوَاضِعِهِ ثُمَّ

چي بند به برابر سو او هر ځاى به خپل ځاى ته ورغلى بيا به

يَنۡهَضُ ثُمَّ يَصۡنَعُ فِي الرَّكۡعَةِ الثَّانِيَةِ مِثۡلَ ذٰلِكَ ثُمَّ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكۡعَتَيۡنِ

ودريدی، او بيا به ولاړ سو دوهم ركعت به يې هم داسي كوی، بيا د دوه ركعته پوره كولو څخه وروسته چي به ولاړېدی

كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيۡهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنۡكِبَيۡهِ كَمَا كَبَّرَ عِنۡدَ افۡتِتَاحِ الصَّلَاةِ ثُمَّ

نو الله اكبر به يې وايه او دواړه لاسونه به يې تر اوږو پوري پورته كول يعني څرنګه چي د لمانځه په پيل كي يې الله اكبر ويلي وو بيا به يې

يَصۡنَعُ ذٰلِكَ فِيۡ بَقِيَّةِ صَلَاتِهِ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ السَّجۡدَةُ الَّتِيۡ فِيۡهَا التَّسۡلِيۡمُ

په نور لمانځه كي هم داسي كول تر دې چي هغه سجده به يې وكړه چي د هغې څخه وروسته سلام ګرزول كيږي

أَخۡرَجَ رِجۡلَهُ الۡيُسۡرٰى وَقَعَدَ مُتَوَرِّكًا عَلٰى شِقِّهِ الۡأَيۡسَرِ ثُمَّ سَلَّمَ. قَالُوۡا

نو د سجدې څخه د پورته كيدو سره به يې چپه پښه د باندي راوكښل او د چپه طرف پر اړخ به كښېنستي او بيا به يې سلام وګرزوی، صحابه كرامو ددې په اوريدو سره ورته وويل:

صَدَقۡتَ هٰكَذَا كَانَ يُصَلِّيۡ. رواه أبو داود والدارمي وروى الترمذي وابن

تا درست بيان وكړ رسول الله ﷺ همداسي لمونځ كوی، (ابوداؤد، دارمي) ترمذي او ابن

ماجه معناه وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح . وفي رواية لأبي

ماجه ددې هم معنا حديث بيان كړی دی او ترمذي ويلي دي چي دا حديث حسن صحيح دی او د

داود من حديث أبي حُمَيد ثُمَّ رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيۡهِ عَلٰى رُكۡبَتَيۡهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ

ابوداؤد په يوه حديث كي چي د ابو حميد څخه نقل دی دا الفاظ دي چي بيا رسول الله ﷺ ركوع وكړه او خپل دواړه لاسونه يې پر خپلو دواړو زنګنو كښېښودل ګويا چي رسول الله ﷺ ټينګ نيولی وه

عَلَيۡهِمَا وَوَتَّرَ يَدَيۡهِ فَنَحَّاهُمَا عَنۡ جَنۡبَيۡهِ وَقَالَ ثُمَّ سَجَدَ فَأَمۡكَنَ أَنۡفَهُ

او د ليندۍ په شان د دواړو لاسونو څنګلي او موټي يې د بغلو څخه ليري وساتل، ددې وروسته د راوي بيان دی چي بيا رسول الله ﷺ سجده وکړه او خپله پزه

وَجَبْهَتَهُ الْأَرْضَ وَنَحّٰى يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَفَرَّجَ

او تندی يې پر مځکه کېښېښودل او دواړه لاسونه يې د بغلو څخه ليري او د اوږو برابر وساتل او دواړه زنګنونه يې خلاص

بَيْنَ فَخِذَيْهِ غَيْرَ حَامِلٍ بَطْنَهُ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَخِذَيْهِ حَتّٰى فَرَغَ ثُمَّ جَلَسَ

او د نس څخه ليري وساتل تر دې چي د سجدو څخه فارغ سو بيا داسي کښېناستی

فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَأَقْبَلَ بِصَدْرِ الْيُمْنٰى عَلٰى قِبْلَتِهِ وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنٰى

چي چپه پښه يې وغوړول او د راسته پښې شا يې د قبلې لور ته کړل او راسته لاس يې

عَلٰى رُكْبَتِهِ الْيُمْنٰى وَكَفَّهُ الْيُسْرٰى عَلٰى رُكْبَتِهِ الْيُسْرٰى وَأَشَارَ بِأَصْبَعِهِ يَعْنِي

پر راسته زنګون او چپه لاس يې پر چپه زنګون کېښېښودی او په ګوته يې اشاره وکړه يعني

السَّبَابَةَ . وَفِيْ أُخْرٰى لَهُ وَإِذَا قَعَدَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قَعَدَ عَلٰى بَطْنِ قَدَمِهِ

د شهادت په ګوته، او د ابوداؤد په يو بل روايت کي دا الفاظ دي او هر کله چي به پر دوو رکعتو کښېناستی نو د چپه پښې پر تلي به کښېناستی

الْيُسْرٰى وَنَصَبَ الْيُمْنٰى وَإِذَا كَانَ فِي الرَّابِعَةِ أَفْضٰى بِوَرِكِهِ الْيُسْرٰى إِلٰى

او راسته پښه به يې ودرول او په څلور رکعته کي چي به کښېناستی نو چپه اړخ (ورون) به

الْأَرْضِ وَأَخْرَجَ قَدَمَيْهِ مِنْ نَاحِيَةٍ وَّاحِدَةٍ .

د مځکي خوا ته وکښی او دواړي پښي به يې يوه طرف ته وکښلې .

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۴۶۷، رقم: ۷۳۰، والدارمي ۱\ ۳۶۱، ۳۶۲، رقم: ۱۳۵۶ والترمذي ۲\ ۱۰۵- ۱۰۸، رقم: ۳۰۵و ۳۰۵، وابن ماجه ۱\ ۳۳۷، رقم: ۱۰۶۱.

**د لغاتو حل:** (لايُصَبي): اي لايُنزل راسه عن ظهره. (سر تر ملا نه کښته کول). (لايُقنع): لايرفع

حتی یکون اعلی من ظهره (نه يې پورته کوي).

**تشريح** (انا اعلمكم بصلوة رسول الله صلي الله عليه وسلم): يعني زه د رسول الله ﷺ د لمانځه طريقه تر تاسو زيات ښه پيژنم، ددې الفاظو څخه دا معلومه سوه چي که يو سړی د يو خاص حکمت او ضرورت په وجه پرته د غرور او تکبر څخه او د نفسانيت د اظهار حقيقت په توګه د خپل علم د زيادتوب دعوه وکړي نو دا جائز ده.

## د تکبير تحريمې څخه مخکي لاسونه پورته کول پکار دي

د حديث الفاظ رفع يديه حتى يحاذي بهما منكبيه ثم يكبر څخه په صراحت معلوميږي چي رسول الله ﷺ به کله د لمانځه لپاره ودريدی نو مخکي به يې رفع يدين کول د هغه وروسته به يې تکبير تحريمه ويل د امام اعظم رحمه الله هم دا مذهب دی چي مخکي لاسونه پورته کړل سي د هغه وروسته تکبير تحريمه وويل سي.

## د سجدې پوره والی پر مځکه پزه او تندی دواړه ايښودو سره کيږي

فامكن انفه وجبهته الارض څخه معلومه سوه چي په سجده کي تندی او پزه دواړه پر مځکه ايښودل پکار دي ځکه چي رسول الله ﷺ به په ځانګړې توګه سره سجده همداسي کول او حديثونه هم ددې موافق وارد دي نو مکمل سجده هلته کيږي چي پزه او تندی دواړه پر مځکه کښيښودل سي، که د څه مجبوری او عذر پر بناء په سجده کي ددغه دواړو څخه يو پر مځکه کښېښودل سي نو مکروه نه دی او که بغير څه عذر او مجبوري داسي وکړي نو هغه به داسي صورت وي که پر مځکه دا تندی ايښی وي پزه يې نه وي ايښې نو دا په متفقه توګه سره جائز وي البته سجده به مکروه وي او که تندی يې نه کښېښودی بلکه پزه يې کښيښودل نو د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد دا هم کراهيت سره جائز دی مګر د امام يوسف رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په نزد جائز نه دي او پر دې فتوی ده.

## د شهادت د ګوتي تحقيق

سبابه د شهادت ګوتي ته وايي د سب لغوي معنی ښکنځل دي د جاهليت په ورځو کي چي عربو به چاته ښکنځل کول نو دا ګوته به يې پورته کول په دې مناسبت سره ددې ګوتي نوم د هغه وخت څخه سبابه رواج سو بيا وروسته ددې ګوتي اسلامي نوم مسبح او سباحه سوه ځکه چي د تسبيح او توحيد په وخت دا ګوته پورته کيږي.

په هر حال د حديث دالفاظو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ په التحيات کي د کلمه شهادت

ويلو په وخت کي دا اشاره کول چي نفي يعني اشهد ان لااله الا الله د ويلو په وخت کي گوته پورته کول او د اثبات يعني الا الله پر وخت به يې گوته کښېته کول.

## د تکبير تحريمي او لاسو پورته کولو طريقه

﴿٧٤٦﴾: وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَامَ

د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليدی کله چي هغه ودرېدی

إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى كَانَتَا بِحِيَالِ مِنْكَبَيْهِ وَحَاذٰى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ ثُمَّ

د لمانځه لپاره نو خپل دواړه لاسونه يې تر اوږو پوري پورته کړل او د لاسو بټې گوتي يې د غوږو برابر کښېښودلې بيا يې

كَبَّرَ. رواه أبو داود. وفي رواية له يرفع إبهاميه إلى شحمة أذنيه.

الله اکبر وو ايه ابوداؤد، د ابوداؤد په دوهم روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ دواړي بټې گوتي د غوږو تر نرميو پوري پورته کړې.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ١\٤٦٥، رقم: ٧٢٤.

**تشريح**: دا حديث هم د امام اعظم رحمة الله عليه د مذهب تائيد کوي رسول الله ﷺ به د لاسونو پورته کولو وروسته تکبير وايه او بټې گوتي به يې د غوږونو تر نرمۍ پوري پورته کولې.

## د لاسونو نيولو حکم

﴿٧٤٧﴾: وَعَنْ قَبِيْصَةَ بْنِ هُلْبٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت قبيصة بن هلب د خپل پلار څخه روايت کوی چي رسول الله ﷺ به

وَسَلَّمَ يَؤُمُّنَا فَيَأْخُذُ شِمَالَهُ بِيَمِيْنِهِ. رواه الترمذي وابن ماجه.

موږ ته لمونځ راکوی نو په راسته لاس سره به يې چپه لاس نيوی. ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ٢\٣٢، رقم: ٢٥٢ وابن ماجه: ١\٢٦٦، رقم: ٨٠٩.

## د تعديل ارکان ښوونه

﴿٧٤٨﴾: وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ فَصَلّٰى فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ جَاءَ

١٦

د حضرت رفاعة بن رافع رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي يو سړی مسجد ته راغلی او لمونځ وکړ بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر

فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعِدْ

او سلام يې ادا کړ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته چي ته راوګرځوه

صَلَاتَكَ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَقَالَ عَلِّمْنِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ أُصَلِّيْ ؟ قَالَ إِذَا

لمونځ ستا، ځکه چي تا لمونځ نه دی کړی ، هغه سړي عرض وکړ اې د الله رسوله ! ما ته وښيه چي څنګه لمونځ وکړم ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

تَوَجَّهْتَ إِلَى الْقِبْلَةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَمَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ تَقْرَأَ فَإِذَا

د قبلې په لور مخ کړه الله اکبر ووايه بيا سورة فاتحه ووايه او څه چي الله تعالى وغواړي چي ته يې ووايې (يعني د سورة فاتحې څخه پرته د قرآن څخه نور څه ) زيات ووايه بيا کله چي

رَكَعْتَ فَاجْعَلْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَمَكِّنْ رُكُوْعَكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ فَإِذَا

ته ركوع وکړې نو خپل دواړه لاسونه پر خپلو زنګنو کښېږده او په ركوع کي قائم اوسه او ملا سيده لره بيا کله چي

رَفَعْتَ فَأَقِمْ صُلْبَكَ وَارْفَعْ رَأْسَكَ حَتّٰى تَرْجِعَ الْعِظَامُ إِلٰى مَفَاصِلِهَا فَإِذَا

ته سر پورته کړې نو خپله ملا سيده ساته او سر پورته کړه يعني سيده ودرېږه چي د ملا هډوکي خپل ځای ته راسي بيا کله چي

سَجَدْتَ فَمَكِّنْ لِلسُّجُوْدِ فَإِذَا رَفَعْتَ فَاجْلِسْ عَلٰى فَخِذِكَ الْيُسْرٰى ثُمَّ اصْنَعْ

ته سجده وکړې نو په اطمينان سره سجده وکړه بيا د سجدې څخه چي سر پورته کړې نو پر خپل چپه ورون باندي کښېنه بيا همداسي وکړه

ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ وَسَجْدَةٍ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ . هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيْحِ . وَرَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ

په هره ركوع او سجده کي تر دې چي هر رکن په اطمينان سره ادا کړې ، دا الفاظ د مصابيح دي او ابوداؤد

مَعَ تَغْيِيْرٍ يَسِيْرٍ وَرَوَى التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيُّ مَعْنَاهُ . وَفِي رِوَايَةٍ لِّلتِّرْمِذِيِّ قَالَ

په لږ فرق سره روايت کړی دی او د ترمذي د يوه روايت الفاظ دادی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلاَةِ فَتَوَضَّأْ كَمَا أَمَرَكَ اللهُ بِهِ ثُمَّ تَشَهَّدْ فَأَقِمْ فَإِنْ كَانَ مَعَكَ

کله چي ته د لمانځه لپاره ودريږې نو داسي اودس وکړه څنګه چي الله تعالی درته حکم کړی دی بيا کلمه شهادت ووايه بيا په تکبير ويلو سره لمانځه ته ودريږه

قُرْآنٌ فَاقْرَأْ وَإِلاَّ فَاحْمَدِ اللهَ وَكَبِّرْهُ وَهَلِّلْهُ ثُمَّ ارْكَعْ .

او د قرآن څخه چي څه درته ياد وي هغه ووايه که څه دي په ياد نه وي نو الحمد لله الله اکبر لااله الاالله ووايه او بيا رکوع وکړه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۳۷- ۵۳۸، رقم: ۸۵۹، والنسائي ۲\ ۱۹۳، رقم: ۱۰۵۲ والترمذي ۲\ ۱۰۲، رقم: ۳۰۲.

**تشريح**: د حديث د اخري الفاظو څخه دا خبره معلوميږي چي کوم سړی چي د قرآن کريم يو سورت يې ياد نه وي نو هغه ته پکار ده چي هغه د قرائت پر ځاي سبحان الله والحمد لله الله اکبر ولا اله الا الله والله اکبر ووايي، همداسي دا يوه مسئله ده که يو کافر مسلمان سي نو د هغه لپاره دا ضروري ده چي هغه د لمانځه د وخت تر راتلو پوري د قرآن کريم کم تر کمه دومره اياتونه چي د هغه ويل په لمانځه کي فرض دي ياد کړي که په دې دوران کي هغه ته هيڅ هم ياد نسي نو هغه دي د قرائت پر ځاي ذکر، تسبيح او تهليل کوي د هغه لمونځ به ادا سي .

## د لمانځه وروسته دعاء غوښتل

﴿۷۴۹﴾: وَعَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت فضل بن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الصَّلاَةُ مَثْنَى مَثْنَى تَشَهَّدُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَتَخَشَّعُ وَتَضَرَّعُ وَتَمَسْكَنُ ثُمَّ

لمونځ دوه دوه رکعته دی او په هر رکعت کي التحيات ده او خشوع ده او د عاجزۍ څرګندونه ده

تُقْنِعُ يَدَيْكَ يَقُوْلُ تَرْفَعُهُمَا إِلَى رَبِّكَ مُسْتَقْبِلاً بِبُطُوْنِهِمَا وَجْهَكَ وَتَقُوْلُ

بيا ته خپل دواړه لاسونه پورته کړه ، د راوي بيان دی چي د لاس پورته کولو دا مطلب دی چي ته

خپل دوا ړه لاسونه د خپل رب په لور داسي پورته کړه چي د لاسو دوا ړه ورغوي د مخ طرف ته وي او دا ووايه

يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَهُوَ كَذَا وَكَذَا . وفي رواية فهو خِدَاجٌ.

رواه الترمذي

اې زما ربه، اې زما ربه او چا چي داسي ونه کړل يعني دعاء يې ونه کړل يا لمونځ يې په دې طريقه ونه کړ نو هغه داسي او داسي دى ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دى چي د هغه لمونځ ناقص دى .ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۲۲۵، ۲۲٦، رقم: ۳۸۵.

**تشريح** ددغه حديث څخه دې شيانو ته اشاره کيږي :يعني اول شى خو دادى چي نفل لمونځ دى دوه دوه رکعته کول کيږي که څه هم هغه د ورځي وي يا د شپې يعني د هر دوو رکعتو وروسته دي سلام وګرځول سي د څلورو رکعتو وروسته دي سلام نه وګرځول سي، امام شافعي رحمة الله عليه په دې حديث باندي عمل کولو سره ويلي دي چي نفل لمونځ دوه دوه رکعته کول افضل دي، امام اعظم رحمة الله عليه فرمايي که شپه وي يا ورځ نفل لمونځ څلور څلور رکعته کول افضل دي د ابو يوسف او امام محمد رحمة الله عليه په نزد په شپه کي دوه دوه رکعته او په ورځ کي څلور رکعته کول افضل دي .

د امام شافعي رحمة الله عليه دليل خو دا حديث دى، امام ابو يوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه پر تراويح باندي په قياس کولو سره دا حکم کړى دى او امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه د خپل دليل په توګه فرمايي چي دا خبره په صحيح توګه ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ به د ماخستن د لمانځه وروسته څلور رکعته کول او د ماپښين په لمانځه کي څلور رکعته کول ثابت دي، بيا ددې څخه پرته يو شى دا هم دى چي څلور څلور رکعته کولو کي په تحريمه کي دننه زيات وخت پوري د پاته کيدو په وجه زيات مشقت او محنت برداشت کول وي او دا ښودل سوي دي چي په کوم عبادت کي مشقت زيات وي هغه افضل دى ،امام اعظم رحمة الله عليه د رسول الله ﷺ ددې ارشاد الصلوة مثنى تاويل دا کوي چي د دې ارشاد مطلب دادى چي نفل لمونځ طاق نه وي بلکه اولى درجه دوه رکعته وي دوهم شى دادى چي د لمانځه روح اود لمانځه معراج خشوع او تضرع او د عاجزۍ اظهار دى، بنده چي په لمانځه کي څومره خشوع کوي ، د تضرع

ثخه كار اخلي او د پروردګار په مخکي په دربدو سره د هغه لويي او عظمت او خپل زيات
بيچاري او د اړتيا اظهار کوي لمونځ په هغه اندازه د مقبوليت درجو ته رسيږي ، د خشوع
مطلب دادی چي په باطن کي بنده د خپل عجز احساس وکړي خپل نفس د عاجزۍ او انکسارۍ
پر لار ولري ګويا خشوع د باطني عجز نوم دی او د تضرع مطلب دادی چي بنده په ظاهري توګه
سره خپل هر عمل او زاويې ثخه د خپل عجز او انکسارۍ اظهار وکړي ګويا تضرع د ظاهري
عجز نوم دی .

دريم دا چي د لمانځه ثخه وروسته دعاء غوښتل پکار ده يعني هر کله چي بنده د الله تعالی
په دربار کي حاضري ورکړي او د لمانځه په کولو سره د خپل عبوديت او فرمانبردارۍ اظهار
وکړي نو د هغه لپاره دا هم ضروري ده چي د لمانځه ثخه وروسته د الله تعالی په دربار کي خپل
دواړه لاسونه پورته کړي او د خپل محتاجۍ او بيچارۍ په اظهار کولو سره خپل ديني او
دنياوي خير کي د الله تعالی د مرستي او نصرت غوښتونکی سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### امام دي تکبيرات په لوړ آواز وايي

﴿۷۵۰﴾: عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الْمُعَلّٰى قَالَ صَلّٰى لَنَا اَبُوْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيّ

د سعيد بن حارث بن المعلي ثخه روايت دی چي ابوسعيد خدري ﷺ موږ ته لمونځ راکړ

فَجَهَرَ بِالتَّكْبِيْرِ حِيْنَ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُوْدِ وَحِيْنَ سَجَدَ وَحِيْنَ رَفَعَ مِنَ

نو په لوړ آواز سره يې الله اکبر ووايه کله چي د سجدې ثخه يې سر پورته کړ او کله چي يې
سجده وکړه او کوم وخت چي پورته کېدی

الرَّكْعَتَيْنِ وَقَالَ هٰكَذَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه البخاري

د دوو رکعتو وروسته ، او وه يې ويل ما رسول الله ﷺ په داسي کولو ليدلی دی . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۰۳، رقم: ۸۲۵.

**تشريح** ددې حديث بيانولو مقصد دا ښودل سوی دی دي چي امام ته پکار ده چي هغه په
لمانځه کي تکبيرات په لوړ آواز سره وايي دلته يوازي د درو ځايو د تکبيرانو ذکر په اتفاق سره

سوی دی یا بیا ځینو خلکو به ددې وختونو د تکبیرانو څخه انکار کړی وي ځکه راوي یوازې دا تکبیرات ذکر کړل ، هسې د اسماعیل په روایت کې د پاته تکبیراتو ذکر هم موجود دی، د هغه د روایت په پیل کې دا الفاظ هم مذکور دي چې ابو هریره رضی الله عنه ناروغ سوی وو یا یو ځای تللی وو نو د هغه په نه شتون کې ابو سعید رضی الله عنه لمونځ ورکړ هغه د لمانځه په پیل کېدو او لمانځه ته د تلو په وخت کې تکبیرونه په لوړ آواز سره وویل ددې څخه وروسته پاته حدیث بیان سوی دی .

﴿۷۵۱﴾: وَعَنْ عَكْرِمَةَ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ شَيْخٍ بِمَكَّةَ فَكَبَّرَ ثِنْتَيْنِ وَعِشْرِيْنَ

د حضرت عکرمة[1] رضی الله عنه څخه روایت دی چې ما په مکه معظمه کې په یو شیخ (یعني ابو هریرة) پسې لمونځ وکړ هغه په لمانځه کې دوه ویشت تکبیرونه وویل ،

تَكْبِيْرَةً فَقُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ إِنَّهُ أَحْمَقُ فَقَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ سُنَّةُ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه البخاري

ما ابن عباس رضی الله عنه ته وویل چې دا سړی احمق (بې عقل) دی (چې دومره تکبیرونه وایي) ابن عباس رضی الله عنه وویل مور دې د رباندې بوره سي دا طریقه د ابو القاسم (رسول الله صلی الله علیه وسلم) ده . بخاري

**تخريج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۲۷۲، رقم: ۷۸۸.

**تشريح**: په څلور رکعتو کې د تکبیر تحریمه سره دوه ویشت تکبیرات کیږي په هغه زمانه کې مروان او بني امیه په لمانځه کې تکبیرونه په لوړ اواز سره ویل پرې ایښې وه ددغه وجهې څخه چې کله ابو هریره رضی الله عنه تکبیرات په لوړ اواز وویل نو عکرمه ته سخت تعجب وسو .

﴿۷۵۲﴾: وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ مُرْسَلاً قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت علي بن الحسین رضی الله عنه څخه مرسلا روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به

وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الصَّلَاةِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ فَلَمْ يَزَلْ تِلْكَ صَلَاتُهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ تَعَالٰى . رواه مالك .

[1]- نوموړی د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه آزاد سوی غلام وو نوم یې عکرمه او کنیت یې ابوعبدالله وو، په (۱۵ه) کال کې د اتیا کالو په عمر وفات سوی دی .

په هر لمانځه کي چي کښته کيدی او ولاړيدی نو تکبير به يې وايه او رسول الله ﷺ به تل داسي لمونځ کوی ترڅو چي د الله تعالى سره يې ملاقات وکړ (يعني وفات سو.) . مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۷٦، رقم: ۱۷.

## رفع يدين يوازي د تکبير تحريمې پر وخت

﴿۷۵۳﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَالَ لَنَا ابْنُ مَسْعُوْدٍ أَلاَ أُصَلِّيْ بِكُمْ صَلاَةَ رَسُوْلِ

د حضرت علقمة رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ ته ابن مسعود رضي الله عنه وويل : ايا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ په ډول لمونځ نه درکړم؟

اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَصَلّٰى وَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلاَّ مَرَّةً وَّاحِدَةً مَعَ تَكْبِيْرِ الْاِفْتِتَاحِ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي . وقال أبو داود ليس هو بصحيح على هذا المعنى .

نو هغه لمونځ راکړ او يوازي يو ځل په تکبير تحريمه کي يې لاسونه پورته کړل . (ترمذي، ابوداؤد، نسائي) ابوداؤد ويلي دي دا حديث په دې معنا کي صحيح نه دی

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۴۰، رقم: ۲۵۷ وابوداؤد ۱\ ۴۷۷، ۴۷۸، رقم: ۷۴۸ والنسائي ۲\ ۱۹۵، رقم: ۱۰۵۷.

**تشريح**: امام ترمذي رحمة الله عليه په خپل کتاب کي د رفع يدين سره متعلق دوهم باب قائم کړی دی يو باب د رفع اليدين په اثبات کي او دوهم باب د عدم رفع اليدين په اثبات کي په دوهم باب کي امام موصوف دا حديث نقل کړی دی او ويلي يې دي په دې اړه براء بن عازب رضي الله عنه څخه هم حديث منقول دی او د ابن مسعود رضي الله عنه حديث حسن دی، د دې تابع د صحابه کرامو او تابعينو رحمة الله عليهم يو ډله ده او د سفيان ثوري او اهل کوفه مذهب هم د دې حديث سره سم دی.

البته امام موصوف په اول باب کي د عبد الله ابن مبارک رحمة الله عليه دا قول نقل کړی دی چي د رفع اليدين حديث ثابت دی او د عدم رفع اليدين په اړه د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه حديث چي د حنفيه مستدل دی ثابت نه دی

په هر حال د دې مخکي دا ښودل سوي دي چي د حنفيه مذهب د عدم رفع يدين په اثبات کي د دې د حديث څخه پرته نور ډير زيات حديث او اثار وارد دي چي مخکي هم ذکر سوي دي.

﴿۷۵۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ حُمَيْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلاَةِ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَقَالَ اللّٰهُ أَكْبَرُ . رواه ابن ماجه

د حضرت ابو حميد ساعدي رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ لمانځه ته ودريدی نو د قبلې په لور به يې مخ کړ او دواړه لاسونه به يې پورته کول او الله اکبر به يې وايه . ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۲۶۴، رقم: ۸۰۳.

## د رسول الله ﷺ د شا څخه د شيانو ليدل د معجزې په توګه

﴿۷۵۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته د ماپښين لمونځ راکړ

وَفِيْ مُؤَخَّرِ الصُّفُوْفِ رَجُلٌ فَأَسَاءَ الصَّلاَةَ فَلَمَّا سَلَّمَ نَادَاهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ

په آخري صف کي يو سړی وو چي په خرابه طريقه سره يې لمونځ کوی کله چي رسول الله ﷺ سلام وګرزوی نو هغه ته يې بږغ کړ چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا فُلاَنُ أَلاَ تَتَّقِي اللّٰهَ ؟ أَلاَ تَرٰى كَيْفَ تُصَلِّيْ ؟ إِنَّكُمْ تُرَوْنَ أَنَّهُ

اې فلانه ! ايا ته د الله جل جلاله څخه نه بيريږې؟ ته نه وينې چي څنګه لمونځ کوې شايد تاسو دا خيال کوئ چي تاسو څه کوی

يَخْفٰى عَلَيَّ شَيْءٌ مِّمَّا تَصْنَعُوْنَ وَاللهِ إِنِّيْ لَأَرٰى مِنْ خَلْفِيْ كَمَا أَرٰى مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ رواه أحمد .

هغه زما څخه پټ دي ؟ په الله دي مي قسم وي څرنګه چي زه مخ ته وينم همداسي شا ته هم وينم . احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۴۴۹.

**تشريح** الله تعالى په دې دنيا کي رسول الله ﷺ په حق شريعت ورکولو سره راواستوی چيري چي رسول الله ﷺ ته يې د رسالت او نبوت دلائل او شواهد کي ډير شيان ورکړل هلته يې ورته معجزات هم ورکړل چي د هغه په ذريعه د خلکو په ذهن او فکر باندي د رسول الله ﷺ عظمت او

برتري او صداقت ښکاره سي رسول الله ﷺ ته دا خصوصيت حاصل وو چي څرنګه به يې خپل مخ ته شيان ليدل همداسي خپل وروسته شيان ليدو باندي هم قادر وو او وروسته ليدل د خارق العادت يعني د معجزې په توګه وه، د هغه رهنمايي به د وحي او الهام په ذريعه کيدل.

خو دومره خبره ياد لرئ چي د دې معجزې څخه دا نسي ثابت کيدای چي رسول الله ﷺ ته علم غيب وو ځکه اول خو دا ښودل سوي دي چي رسول الله ﷺ ته دا خصوصيت يوازي د معجزې په توګه حاصل وو دوهم دا چي رسول الله ﷺ پر دغه وصف باندي په خپله قادر نه وو بلکه په دې اړه د وحي او الهام په ذريعه به د رسول الله ﷺ رهنمايي کيدل بيا دا چي رسول الله ﷺ ته دا وصف هميشه حاصل نه وو بلکه کله کله به داسي کيدل که رسول الله ﷺ ته علم غيب حاصل وای نو نه يوازي دا چي رسول الله ﷺ به د وحي الهام د رهنمايي پرته خپله پر دې وصف قادر وای بلکه دا وصف بهٔ رسول الله ﷺ ته هميشه حاصل وای، د دې تائيد خپله يو روايت چي د غزوه تبوک پر موقع باندي د رسول الله ﷺ اوښه ورکه سوه، د ډير لټون وروسته يې هم د اوښي معلومات ونه کړ، منافقانو دا وويل چي رسول الله ﷺ خو دا وايي چي زه د اسمان خبري تاسو ته رسوم او اوس دومره معلومات نسي کولای چي اوښه يې چيري ده، رسول الله ﷺ وفرمايل قسم په خدای زه خو يوازي په هغو شيانو پوهيدای سم چي د هغه په باره کي زما الله ماته علم راکړی دی او اوس زما الله جل جلاله ماته وښودل چي زما اوښه په فلاني ځای کي ده او د هغه مهار د يوې درختي په ښانګه کي لګيدلی دی د دې څخه پرته د رسول الله ﷺ دا ارشاد هم نقل دی چي زه انسان يم خو د الله تعالی د ښوونې بغير په دې هم نه پوهيږم چي د دې ديوال شاته څه شي دي.

شيخ سعدي رحمة الله عليه د دې حقيقت ترجماني داسي کړې ده:

ګهې بر طارم اعلي نشينم ګهې بر پشت پايي خود نه بينم

په هر حال د رسول الله ﷺ د لمانځه حالت به د نورو حالاتو په مقابله کي زيات افضل او اعلی وو ځکه د نورو مواقعو په نسبت به رسول الله ﷺ د لمانځه په حالت کي د کائنات د شيانو حقيقت او معرفت په کامل طور سره ښکاره کيدی بيا دا چي د رسول الله ﷺ په لمانځه کي د الله تعالی په مخکي حاضريدل او متوجه الي الله کيدل دا معنی نه وي چي رسول الله ﷺ به د کائناتو څخه نا خبره کيدی بلکه د لمانځه په حالت کي به رسول الله ﷺ د کائنات د شيانو څخه پوره خبريدی او د رسول الله ﷺ احساس او شعور به په پوره قوت سره د اشياء عالم ادراک کوی د الله تعالی هغه نيک او فرمانبردار بندګان هم چي رياضت او مجاهده او د تعلق مع الله

په وجه د كاملين په درجه كي وي د لمانځه په حالت كي د كائناتو د شيانو څخه باخبره وي كه يو خوا ته د هغوی زړونه په دربار خداوندي كي په پوره توګه سره حاضر وي نو بلي خوا ته د هغوی احساس او شعور د دنيا د شيانو څخه هم خبردار اوسي په دې وجه مشائخ وايي چي لمونځ كشف او حضور مقام دی نه محل غيبت او استغراق.

ځيني حضرات د دې ټولو مباحثو څخه په آخوا كيدو سره دا هم ويلي دي چي د رسول الله ﷺ د دواړو اوږو په مينځ كي دوه سوري وه چي د هغه په ذريعه به رسول الله ﷺ د شا خوا ته كتل دا روايت صحيح نه دی او نه د دې څه ثبوت شته بلكه د يو ذهن صرف اختراع ده.

==========

# بَابُ مَا يَقْرَءُ بَعْدَ التَّكْبِيْرِ

## د تكبير تحريمې وروسته د ويونكو شيانو بيان

د لمانځه په پيل كي چي د كومو دعاؤ او اذكارو ويل په صحيح حديثو ثابت دي د مثال په توګه اني وجهت.....الخ، يا سبحانک اللهم.... الخ يا د دې څخه پرته نوري دعاګاني دا ټولي يا ځيني په فرائض او نوافل كي ويل د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد مستحب دي، امام اعظم رحمة الله عليه، امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه فرمايي چي يوازي سبحانک اللهم..... الخ دي وويل سي او د دې څخه پرته چي كومي دعاګاني ثابتي دي هغه ټولي پر نوافل محمول دي يعني رسول الله ﷺ به دا دعاګاني په نفلو كي ويلې. دامام ابو يوسف رحمة الله عليه په نزد سبحانک اللهم.... الخ او اني وجهت.... الخ دواړي دعاوي ويل پكار دي، امام طحاوي رحمة الله عليه هم دا اختيار كړې ده چي د دی دواړو دعاګانو په ترتيب كي لمونځ كونكي ته اختيار دی كه څه هم هغه مخكي سبحانک اللهم ووايي يا اني وجهت.. مخكي ووايي هسي مشهور دادی چي اني وجهت د سبحان اللهم وروسته ووايي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د تكبير تحريمې او قرائت په مينځ كي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۷۵۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْكُتُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په پوره ډول سره پټه خوله وو

بَيْنَ التَّكْبِيرِ وَبَيْنَ الْقِرَاءَةِ إِسْكَاتَهُ فَقُلْتُ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللّٰهِ

د تکبير تحريمې او قرائت په منځ کي، يوه ورځ ما عرض وکړ اې د الله رسوله! زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي

إِسْكَاتُكَ بَيْنَ التَّكْبِيرِ وَبَيْنَ الْقِرَاءَةِ مَا تَقُولُ قَالَ أَقُولُ اللّٰهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي

تاسو چي د تکبير او قرائت په منځ کي پټه خوله ياست نو څه وايا ست؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: زه دا وايم (اللهم باعد...... والثلج والبرد) ژباړه (اې الله! ليري والى راولې زما

وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ اللّٰهُمَّ نَقِّنِي مِنْ خَطَايَايَ

او زما د ګناهونو په منځ کي لکه څرنګه چي تا ختيځ د لويديځ څخه ليري کړى دى همداسي ما زما د ګناهو څخه ليري وساته اې الله! ما د ګناهو څخه داسي پاک کړه

كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ اللّٰهُمَّ اغْسِلْنِي مِنْ خَطَايَايَ بِالثَّلْجِ وَالْمَاءِ وَالْبَرَدِ. متفق عليه

لکه څرنګه چي سپينه جامه د خيري څخه پاکيږي، اې الله! زما ګناهونه په اوبو، واوري، او ژلى سره پريوله.) بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۲۷، رقم: ۷۴۴ ومسلم ۱\۴۱۹، رقم: ۱۴۷– ۵۹۸.

**تشريح**: د دعا اخري جمله (اې الله زما ګناهونه په اوبو، واوري او ژليو سره پريولې) ددې څخه مراد دادى چي اې الله! زما ګناهونه د خپل فضل او کرم په مختلفو طريقو سره وبخښې ګويا دلته په بخښنه کي مبالغه مقصد ده نه چي حقيقتا په دې شيانو سره ګناهونه پريولي.

## رسول الله ﷺ به په کوم وخت کي کومه دعاء ويل

﴿۷۵۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دى چي کله به رسول الله ﷺ لمانځه ته دريدى

وَفِي رِوَايَةٍ كَانَ إِذَا فْتَتَحَ الصَّلٰوةَ كَبَّرَ ثُمَّ قَالَ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ

او په يوه روايت كي دا الفاظ دي كوم وخت چي به يې لمونځ پيلوى نو الله اكبر به يې وايه بيا به يې دا ويل (اني وجهت .....الخ) ژباړه : ( زه هغه ذات ته متوجه سوم چي هغه پيدا كړي دي

السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ إِنَّ صَلاَتِي وَنُسُكِي

آسمانونه او مځكي ، د حق لوري ته متوجه كيدونكى او د باطل څخه بيزاره كيدونكي او زه د هغه خلكو څخه نه يم چي شرك كوي ، زما لمونځ زما عبادت ،

وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لاَ شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنَ

او زما ژوند او زما مرګ ټول د الله ﷻ لپاره دي چي د دواړو جهانو پروردګار دى هيڅوک د هغه شريک نسته او ددې حكم ما ته راكړل سوى دى او زه له

الْمُسْلِمِينَ اللَّهُمَّ أَنْتَ الْمَلِكُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ أَنْتَ رَبِّي وَأَنَا عَبْدُكَ ظَلَمْتُ نَفْسِي

مسلمانانو څخه يم، اې الله ! ته پاچا يې ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته ته زما رب يې او زه ستا بنده يم ما پر خپل ځان ظلم كړى دى

وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي ذُنُوبِي جَمِيعًا إِنَّهُ لاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ وَاهْدِنِي

او زه د خپلو ګناهو اقرار كوم، ته زما ټول ګناهونه و بخښې ستا څخه پرته ګناهونه بخښونكى هيڅوک نسته او زما راهنمايي وكړې

لأَحْسَنِ الأَخْلاَقِ لاَ يَهْدِي لأَحْسَنِهَا إِلاَّ أَنْتَ وَاصْرِفْ عَنِّي سَيِّئَهَا لاَ يَصْرِفُ

د غوره اخلاقو په لور .ځكه چي دې لوري ته بس ته زما رهنمايي كولاى سې او د بدترين اخلاقو څخه ما وساتې، ساتنه نه سي كولاى

عَنِّي سَيِّئَهَا إِلاَّ أَنْتَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ وَالشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ

زما د بدو اخلاقو څخه مګر يوازي ته، زه ستا په خدمت كي حاضر يم او ستا حكم پر ځاى راوړلو ته تيار يم ټولي نيكۍ او بدۍ ستا په لاس كي دي او بدۍ ستا لوري ته منسوب كيدلاى نه سي

أَنَا بِكَ وَإِلَيْكَ تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ وَإِذَا رَكَعَ قَالَ اللَّهُمَّ

زه پر تا تکیه کوم او ستا په قدرت سره قائم یم ته د برکت خاوند یې او لوړ او برتر یې زه ستا
څخه بخښنه غواړم او تا ته توبه کوم) او رسول الله ﷺ چي به کله رکوع کول نو ویل به یې:
اللهم لک رکعت.....الخ (اې الله!

لَكَ رَكَعْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَلَكَ أَسْلَمْتُ خَشَعَ لَكَ سَمْعِي وَبَصَرِي وَمُخِّي

ما ستا لپاره رکوع وکړه پر تا مي ایمان راوړ او ستا د رضا لپاره مي اسلام قبول کړ او ستا لپاره
عاجزي وکړه زما غوږونو ، سترګو ، مغز ،

وَعَظْمِي وَعَصَبِي وَإِذَا رَفَعَ قَالَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاوَاتِ

او هډوکو زما او دماغ زما )، بیا چي کله به یې د رکوع څخه سر راپورته کړه نو ویل به یې:
(اې الله زمونږ ټول حمد او ستاینه دي ستا لپاره وي دومره چي د هغو څخه د آسمانو

وَالْأَرْضِ وَمِلْءَ مَا بَيْنَهُمَا وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ وَإِذَا سَجَدَ قَالَ

او مځکي او پراخوالی ډک سي او په مځکه او آسمان کي چي کومه لړۍ ستا په منشور کي ده د
هغې هم ټول اړخونه ډک سي ) بیا چي به رسول الله ﷺ سجده کول نو ویل به یې

اللَّهُمَّ لَكَ سَجَدْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَلَكَ أَسْلَمْتُ سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ

(اې الله ما ستا لپاره سجده وکړه پر تا مي ایمان راوړ او ستا د رضا لپاره مي اسلام قبول کړ زما
مخ هغه ذات ته سجده وکړه چي هغه یې پیدا کړ

وَصَوَّرَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ تَبَارَكَ اللهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ثُمَّ يَكُونُ مِنْ آخِرِ

او هغه لره یې صورت ورکړ او سترګو او غوږونو لره یې خلاص کړل ، الله ډیر برکت والا او غوره
خالق دی) بیا به یې

مَا يَقُولُ بَيْنَ التَّشَهُّدِ وَالتَّسْلِيمِ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا

د التحیات او سلام په منځ کي دا ویل : اللهم اغفرلي.....الخ (اې الله زما هغه ګناهونه و
بخښې چي ما مخکي کړي دي او وروسته مي کړي دي او هغه چي

أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَسْرَفْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ

په پټه مي کړي دي او په ښکاره مي کړي دي او هغه ګناه راته و بخښې چي په اعمالو وغيره کي مي زياتوب کړی دی او هغه ګناه مي و بخښې چي د هغې زما څخه زيات علم تا ته دی ته خپلو بندګانو لره په عزت کي مخته کوونکی يې او ته

الْمُؤَخِّرُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ . رواه مسلم ، و في رواية للشافعي والشر ليس اليك

د عزت او مرتبې وروسته غورځوونکی يې او ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته ) مسلم، او د شافعي په يوه روايت کي په دې دعاء کي چي د تکبير تحريمي څخه وروسته رسول الله ﷺ کړې ده (والخير کله في يديک) څخه وروسته دا الفاظ دي (والشر ليس اليک ...) او بدي ستا په لور منسوبه نه ده

والمهدي من هديت انابك واليك لامنجا منك ولا ملجا الا اليك تبارکت . رواه مسلم

او هدايت يافته هغه څوک دی چا ته چي ته هدايت وکړې زه ستا د توان په ذريعه قائم يم او ستا په لور زه رجوع کوم ستا د ذات څخه پرته خلاصون او پناه نسته ته د برکت خاوند يې . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۵۳۴- ۵۳۶، رقم: ۲۰۱- ۷۷۱ و ۲۰۲- ۷۷۱.

**تشريح**: والشر ليس ..........اليک ( يعني شر ستاسو خوا ته منسوب نه دی ) د دې مطلب دادی چي د ادب او تعظيم له مخي د شر نسبت ستا خوا ته نسي کيدای که څه هم د خير او شر مالک ته يې که يوې خوا ته دي خير پيدا کړی دی نو بلي خوا ته يې د شر تخليق هم کړی دی او حقيقت دادی چي که حق تعالی شر پيدا کړی وای نو په دې کي څه قباحت نسته بلکه په دې کي هم ډير حکمتونه او مصلحتونه پټ دي که څه قباحت او شر وای نو هغه د بنده ارتکاب کي دی لکه چي ارشاد دی من شر ما خلق يعني زه د مخلوق د شر څخه پناه غواړم. ځيني حضرات وايي والشر ليس اليک معنی دا چي شر هغه شی دی چي ستا د قرب او ستا د خوښۍ د حصول ذريعه نه ده يا دا چي ستا خوا ته ختل (صعود) نه کوي يعني ستا په دربار کي نه قبليږي ځرنګه چي د خير په باره کي فرمايل سوي دي چي اليک يصعد الکلم الطيب يعني د پروردګار خوا ته نيکي او پاکي خبري صعود کوي يعني د مقبوليت درجه ورته حاصليږي .

﴿۷۵۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلاً جَاءَ فَدَخَلَ الصَّفَّ وَقَدْ حَفَزَهُ النَّفَسُ فَقَالَ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي یو سړی راغلی او دلمانځه په صف کي شامل سو ساه یې په ختلو وه او په دې حال کي یې وویل:

اللہ اکبر اَلْحَمْدُ لِلّٰہِ حَمْدًا کَثِیرًا طَیِّبًا مُبَارَکًا فِیهِ فَلَمَّا قَضٰی رَسُولُ اللّٰہِ صَلَّی

(اللہ اکبر ....) ژباړه (اللہ ډیر لوی دی د اللہ لپاره ډیر پاک او برکت والا تعریف دی) رسول اللہ ﷺ چي لمونځ وکړ

اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ قَالَ أَیُّکُمُ الْمُتَکَلِّمُ بِالْکَلِمَاتِ فَأَرَمَّ الْقَوْمُ فَقَالَ أَیُّکُمُ

نو وه یې فرمایل په تاسو کي دا کلمات چا وویل؟ خلک پټه خوله سول، رسول اللہ ﷺ بیا وفرمایل په تاسو کي

الْمُتَکَلِّمُ بِهَا فَإِنَّهُ لَمْ یَقُلْ بَأْسًا فَقَالَ رَجُلٌ جِئْتُ وَقَدْ حَفَزَنِي النَّفَسُ فَقُلْتُهَا

دا کلمات چا وویل؟ بیاهم خلک پټه خوله وه، په دریم ځل رسول اللہ ﷺ وفرمایل دا کلمات چي چا ویلي دي هغه څه بده خبره نه ده کړې، د دې په اوریدو سره هغه سړي وویل زه (مسجد) ته راغلم او زما ساه بنده وه او ما دا کلمات وویل،

فَقَالَ لَقَدْ رَأَیْتُ اثْنَيْ عَشَرَ مَلَکًا یَبْتَدِرُونَهَا أَیُّهُمْ یَرْفَعُهَا. رواہ مسلم

نو رسول اللہ ﷺ ورته وفرمایل: په تحقیق سره ما دوولس ملائکي ولیدې چي په دغه کلماتو وړلو کي یې تلوار کوی چي په هغوی کي یې کومه ملائکه اللہ تعالی ته مخکي یوسي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\ ۴۱۹، ۴۲۰، رقم: ۱۴۹ – ۶۰۰.

**د لغاتو حل**: حَفَزَہ: ای جهده وضاق به. (تنګېدل). (فَأَرَم): ای سکتوا: (چوپ سوه).

**تشریح**: دغه سړی د رسول اللہ ﷺ په پوښتنه کي چي دا وویل چي کله وخت زه راغلم نو زما ساه په ختلو وه او ما دا کلمات ویلي وه نو د هغه دا وویل د بیان حقیقت او اظهار واقعې په توګه وه د هغه کلمات د ویلو په اړه د یو عذر بیانول مقصد نه وو.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د تكبير تحريمې څخه وروسته دعاء

﴿۷۵۹﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ لمونځ پيلوی

قَالَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ.

رواه الترمذي و ابوداؤد و رواه ابن ماجة عن ابي سعيد و قال الترمذي

هذا حديث لا نعرفه الا من حارثة و قد تكلم فيه من قبل حفظه.

نو ويل به يې (سبحانک اللهم ....) ژباړه (اې الله! ته پاک يې او موږ ستا په تعريف سره ستا پاکي بيانوو او ستا نوم برکت والا دی او ستا بزرګي لويه ده او ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته)، ترمذي، ابو داؤد، ابن ماجه، ترمذي ويلي دي دا حديث پرته د حارثه څخه موږ نه پيژنو او د هغه په حافظه کي کلام دی.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۹۱، رقم: ۷۷۶ والترمذي ۲\ ۱۱، رقم: ۲۴۳، وابن ماجه: ۱\ ۲۶۴، رقم: ۸۰۴.

**تشريح**: علامه طيبي شافعي رحمة الله عليه ددې حديث په باره کي ويلي دي چي دا حديث حسن مشهور دی او په دی حديث باندي خلفاء راشدينو کي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه عمل کړی دی او دا حديث په مسلم کي نقل سوی دی په دې موقع باندي علامه موصوف ددې حديث د تقويت په باره کي ډير زيات اوږد بحث کړی دی چي اهل علم او نظر يې د هغوی په کتاب کي کتلای سئ.

﴿۷۶۰﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّهُ رَأَى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه رسول الله ﷺ وليدی

يُصَلِّي صَلَاةً قَالَ اَللّٰهُ أَكْبَرُ كَبِيْرًا اَللّٰهُ أَكْبَرُ كَبِيْرًا اَللّٰهُ أَكْبَرُ كَبِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ

چي لمونځ يې کوی، ده مبارک به تکبير تحريمه ويل (الله اکبر کبير....) (الله ډير لوی دی الله

ډیر لوی دی او الله لره ډیول تعریفونه دي

كَثِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا وَسُبْحَانَ اللّٰهِ بُكْرَةً وَّأَصِيْلاً ثَلاثًا

او الله لره ډیول تعریفونه دي او زه سهار ماښام دالله پاکي بیانوم او زه سهار ماښام دالله پاکي بیانوم او زه سهار ماښام د الله پاکي بیانوم

أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ مِنْ نَفْخِهِ وَنَفْثِهِ وَهَمْزِهِ . رواه أبو داود وابن ماجه إِلاَّ أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا . وَذَكَرَ فِيْ آخِرِهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ وَقَالَ عُمَرُ نَفْخُهُ الْكِبْرُ وَنَفْثُهُ الشِّعْرُ وَهَمْزُهُ الْمُوْتَةُ .

او زه د الله په ذریعه د شیطان د هغه د تکبر ځخه او د هغه د وسوسو ځخه پناه غواړم) . ابو داؤد، مگر ابن ماجه د الحمد لله کثیرا کلمات نه دي روایت کړي خو په آخر کي یې من الشیطان الرجیم وویل، د حضرت عمر په روایت کي داسي دي چي د شیطان نفخ کبر دی د ده نفث شعر دی او د همزه ځخه یې مراد مرگ دی .

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۸۶، رقم: ۷۶۴ وابن ماجه ۱\ ۲۶۵، رقم: ۸۹۷.

**د لغاتو حل**: (همزه): النخس، الدفع والحركة. (نفثه): هو شبيه بالنفخ وهو اقل من التفل. (المُوتَة): هو نوع من الجنون والصرع.

**تشریح**: د نفخ شیطان ځخه مراد تکبر او غرور دی چي په هغه کي شیطان سړی داسي مبتلوي چي هغه د هغه په نظر کي په دې حیثیت سره ښیي چي هغه سړی خپل ځان په ښه او اعلی گڼلو سره په تکبر کي اخته سي همداسي شیطان په سړي د تکبر عمل کوي گویا د نفخ شیطان مطلب دا سو چي شیطان په سړي کي د تکبر هوا پو کي . د نفث نه چي د هغه معنی د پو کلو ده د سحر مراد اخستلای سو چي شیطان یې په سړي کوي یا دیو سړي ځخه پر بل سړي یې کوي دا معنی د ارشاد رباني ومن شر النفاثات في العقد مناسبت سره زیاته اولی ده ځکه چي په دې ایت کریمه کي د نفاثات ځخه مراد جادو کونکي ښځي ته وایي

ځیني حضرات وایي چي د نفث ځخه مراد غیر مناسب او د خرابو مضمونو اشعار دي چي شیطان یې د سړي په تخیل کي اچوي او بیا د هغه پر ژبه یې صادروي لکه خراب منتر یا هغه

غلط اشعار چي په هغه کي د مسلمانانو بد گويي او د کفر او فسق الفاظ وي، د همز څخه مراد غيبت کول او لعن طعن کول دي ځينو حضراتو ويلي دي چي د شيطان د همز څخه هغه وسوسه مراد ده څرنګه چي په دې ايت کي اعوذبک من همزات الشيطن کي د همزات څخه مراد د شيطان وسوسې اخيستل سوي دي.

په هر حال دا معنی هغه وخت مراد اخستل کيدای سي چي په حديث کي د حضرت عمر رضی الله عنه څخه د دغو درو الفاظو چي توضيح نقل سوې ده هغه د حضرت عمر رضی الله عنه قول نه بلکه د يو راوي دی که دا توضيح په صحيح توګه سره د حضرت عمر رضی الله عنه څخه ثابت وي نو بيا هغه معنی مراد وي کومه چي د حضرت عمر رضی الله عنه څخه نقل سوې ده د هغه څخه پرته نوري معناوي به مراد نسي اخستلاي.

**رسول الله ﷺ به په لمانځه کي دوه ځايه سکوت (پټه خوله کېدل) اختياروی**

﴿۷۶۱﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ أَنَّهُ حَفِظَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه څخه روايت دی چي هغه د رسول الله ﷺ دوه سکوته (پټه خوله کېدل) ياد ساتلي دي

سَكْتَتَيْنِ سَكْتَةً إِذَا كَبَّرَ وَسَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ

يو سکوت هغه وخت چي تکبير تحريمه به يې وايه او دوهم سکوت هغه وخت چي غير المغضوب عليهم

وَلاَ الضَّالِّيْنَ) فَصَدَّقَهُ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ . رواه أبو داود وروى الترمذي وابن ماجه والدارمي نحوه.

ولا الضالين به يې وايه، ابی بن کعب د دې تصديق وکړ. ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۹۲، ۴۹۳، رقم: ۷۷۹ والترمذي ۲\ ۳۰ - ۳۱، رقم: ۲۵۱، وابن ماجه ۱\ ۲۷۵، رقم: ۸۴۴ والدارمي ۱\ ۳۱۳، رقم: ۱۲۴۳.

**تشريح**: د تکبير تحريمه څخه وروسته پټه خوله اختيارولو څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ به هغه وخت په لوړ اواز سره نه ويل پر دې موقعه دعايي استفتاح (سبحانک اللهم الخ) ويلو لپاره خاموشي اختيارول د ټولو امامانو په نزد متفق عليه مسئله ده دوهم ځای يعني د سورة

فاتحه ختمولو وروسته خاموشي اختيارول د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد سنت دی چي مقتدي دي په دغه دوران كي سورة فاتحه ووايي او د امام سره منازعت لازم نسي چي ممنوع ده، په حنفيه او مالكيه مذهب كي د سوره فاتحه ويلو وروسته خاموشي اختيارول مكروه ده.

﴿۷۶۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَهَضَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی كله چي به رسول الله ﷺ ولاړ سو

مِنَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ اسْتَفْتَحَ الْقِرَاءَةَ بِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَلَمْ يَسْكُتْ. هٰكَذَا فِيْ صَحِيْحِ مُسْلِمٍ. وَذَكَرَهُ الْحُمَيْدِيُّ فِيْ إِفْرَادِهِ وَكَذَا صَاحِبُ الْجَامِعِ عَنْ مُسْلِمٍ وَحْدَهُ.

دوهم ركعت ته به نو پيل به يې كوی په الحمد لله رب العالمين.. او پټه خوله به نه پاته كېدی.
صحيح مسلم او حميدي

**تخريج:** صحيح مسلم ۱\۴۱۹، رقم: ۱۴۸-۵۹۹.

**تشريح**: دا وهم كيداي سو چي د دوهم ركعت څخه وروسته په دوهمه شفعه پيل كيدو په وخت كيداى سي د سبحانک اللهم ويلو لپاره خاموشي اختيار روي ځكه ابو هريره رضي الله عنه ددې وضاحت وكړ چي كله به رسول الله ﷺ د دوهم ركعت څخه وروسته د دويمي شفعې لپاره پورته كيدی نو سبحانک اللهم به يې نه ويل بلكه الحمد لله رب العلمين به يې پيل كول داهم محتمل دی چي رسول الله ﷺ به د دوهم ركعت لپاره پورته كيدی نو الحمد لله رب العلمين به يې پيل كول. والله اعلم.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د تكبير تحريمې وروسته دعاء

﴿۷۶۳﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ لمونځ پيلوی

كَبَّرَ ثُمَّ قَالَ إِنَّ صَلاَتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ لاَ شَرِيْكَ لَهُ

نو الله اکبر به یې وایه او د هغه وروسته به یې دا دعاء کول (ان صلاتي ..) ژباړه (زما لمونځ، زما عبادت، زما ژوند او مرګ ټول الله لره دي چي رب د مخلقوقاتو دی پروردګار دی هیڅوک د هغه شریک نسته

وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَعْمَالِ وَأَحْسَنِ

او ددې ما ته حکم سوی دی او زه په مسلمانانو کي اول یم، اې الله ! ما ته ښه اخلاق او ښه اعمال راکړې

الْأَخْلاَقِ لاَ يَهْدِيْ لِأَحْسَنِهَا إِلاَّ أَنْتَ وَقِنِيْ سَيِّئَ الْأَعْمَالِ وَسَيِّئَ الْأَخْلاَقِ لاَ يَقِيْ سَيِّئَهَا إِلاَّ أَنْتَ . رواه النسائي .

د بدو اعمالو او بدو اخلاقو څخه ساتونکی ته یې د ښو اعمالو او اخلاقو یوازي ته هدایت کونکی یې ما د خرابو اعمالو او اخلاقو څخه وساتې . ) نسائي .

**تخریج**: سنن النسائي ۲\۱۲۹، رقم: ۸۹۵.

**تشریح**: انا اول المسلمین یعني زه تر ټولو اول مسلمان یم په تشریح کي علماء لیکي چي دا خصوصیت یوازي رسول الله ﷺ ته حاصل دی چي د ټولو مخکي اسلام د رسول الله ﷺ دی ځکه پیغمبر په خپل امت کي تر ټولو اول مسلمان وي په قرآن کریم کي رسول الله ﷺ ته ددې حکم ورکړل سوی دی همداسي د رسول الله ﷺ څخه پرته د بل چا لپاره دا خبره کول چي هغه (انا اول المسلمین) وایي صحیح نه دي بلکه یو ډول درواغ به وي، ځینو حضراتو ویلي دي که یو سړی په لمانځه کي داسي ووایي نو د هغه لمونځ فاسد کیږي مګر په دې اړه صحیح دا دی که یو سړی دا الفاظ د آیت قرآني د تلاوت په نیت سره چي د خپل حالت خبر ورکولو په نیت سره ادا کړي نو لمونځ نه فاسد کیږي . په دې مسئله کي یو خیال دا دی که یو سړی دا جمله خبر و نه ګرځوي بلکه د هغه تجدید ایمان او د اسلام انشاء او اطاعت او فرمانبرداری ښکاره کړي نو څه پرواه نسته څرنګه چي د سلاطین او امراء تابعدار خلک د یو حکم د راتلو په وخت وایي چي څه حکم وي د هغه اطاعت چي مخکي څوک کوي هغه به زه یم که څه هم دا اطاعت او فرمانبرداري اظهار مقصد وي .

﴿۷۶۴﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت محمد بن مسلمة رضي الله عنه څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ

قَامَ يُصَلِّيْ تَطَوُّعًا قَالَ اللهُ أَكْبَرُ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمَاوَاتِ

د نفل لمانځه لپاره ودرېدی نو ویل به یې: اللهُ أَكْبَرُ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمَاوَاتِ

وَالْأَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ. وَذَكَرَ الْحَدِيْثَ مِثْلَ حَدِيْثِ جَابِرٍ

وَالْأَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ بیا یې د حضرت جابر د روایت په څېر حدیث بیان کړ،

إِلاَّ أَنَّهُ قَالَ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ. ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ أَنْتَ الْمَلِكُ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ أَنْتَ

مګر هغه د (انا اول المسلمین) پر ځای (وانا من المسلمین) ویلي دي، ددې وروسته یې
وویل: (اللهم انت الملک.....) (اې الله ته پاچا یې ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته

سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ ثُمَّ يَقْرَأُ. رواه النسائي

ته پاک یې او تا لره تعریف دی) او ددې وروسته به رسول الله ﷺ قرائت وایه. نسائي

**تخریج**: سنن النسائي: ۲\۱۳۱، رقم: ۸۹۷.

========

# بَابُ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلٰوةِ

## په لمانځه کي د قرائت بیان

### په څومره رکعتونو کي قرائت فرض دی؟

په لمانځه کي قرائت یعني قرآن کریم ویل د ټولو علماؤ په نزد په اتفاق سره فرض دی البته په دې کي اختلاف دی چي په څومره رکعتونو کي ویل فرض دی؟ د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په پوره لمانځه کي قرائت فرض دی د امام مالک رحمة الله علیه په نزد للاکثر حکم الکل یعني کثرت د کل په حکم کي دی د کلیې سره سم په درو رکعتونو کي فرض دی، د امام اعظم

ابو حنيفه رحمة الله عليه د مذهب سره سم په دوو رکعتونو کي قرائت فرض دی، د امام احمد رحمة الله عليه مذهب د مشهود مذهب موافق دی د حضرت بصري رحمة الله عليه او حضرت زفر رحمة الله عليه په نزد په يوه رکعت کي قرائت فرض دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۷۶۵﴾: عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن صامت ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَا صَلاَةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ. وفي رواية لمسلم لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَصَاعِدًا.

څوک چي په لمانځه کي الحمد لله و نه وايي نو د هغه لمونځ نه کيږي. بخاري او مسلم، د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي څوک الحمد لله او د الحمد لله وروسته څه نور ونه وايي نو د هغه لمونځ نه کيږي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۳۶- ۲۳۷، رقم: ۷۵۶ ومسلم ۱\ ۲۹۵، رقم: ۳۴- ۳۹۴.

**تشريح**: د مسلم د اخري حديث مطلب دادی چي په لمانځه کي سورة فاتحه د قرآن کريم د يو بل سورت يا نورو آياتو څخه ويل هم ضروري دی.

### په لمانځه کي د سورة فاتحې ويلو په مسئله کي د امامانو مذهب

ددې حديث څخه دا معلوميږي چي په لمانځه کي سورة فاتحه ويل فرض دي که يو سړی سورة فاتحه ونه وايي نو د هغه لمونځ نه کيږي ددې حديث څخه امام شافعي رحمة الله عليه او د يو روايت سره سم امام احمد رحمة الله عليه دا استدلال کړی دی چي په لمانځه کي سورة فاتحه ويل فرض دي ځکه چي دا حديث په صراحت سره د داسي سړي د لمانځه نفي کړې ده چي هغه په لمانځه کي سورة فاتحه نه وايي.

د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد په لمانځه کي سورة فاتحه ويل فرض نه بلکه واجب ده ددې حديث په باره کي امام صاحب فرمايي چي دلته نفي کمال مراد دی يعني بغير د سورة فاتحه خو لمونځ ادا کيږي مګر په مکمله توګه باندي نه ادا کيږي د هغوی دليل د قرآن کريم

آیت دی ( فاقراءوا ما تیسر من القرآن ) یعني د قرآن کریم څخه چي تاسو ته څه اسانه وي هغه ووایاست، ددې څخه معلومه سوه چي په لمانځه کي سورة فاتحه ویل فرض نه ده بلکه مطلق د قرآن کریم سورة یا ایاتونه ویل فرض دي ددې څخه پرته خپله هم رسول الله ﷺ د یو اعرابي د لمانځه په اړه دا تعلیم فرمایلی دی (فا قرءوا ما تیسر من القرآن) یعني تاته چي د قرآن څخه څه هم آسان وي هغه ووایه . په هر حال د حنفیه مذهب سره سم په لمانځه کي فرض چي د هغه څخه پرته لمونځ نه ادا کیږي د قرآن کریم د یوه ایت یا درې ایاتونه ویل دي که څه هم هغه سورة فاتحه وي یا بل یو سورت او ایت، او سورة فاتحه ویل واجب ده ددې څخه پرته لمونځ ناقص اداء کیږي .

## د سورة فاتحې په نه ویلو سره لمونځ ناقص ادا کیږي

﴿٧٦٦﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي لمونځ وکړي

صَلاَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ ثَلاَثًا غَيْرُ تَمَامٍ فَقِيلَ لأَبِي

او په هغه کي الحمد لله و نه وایي نو هغه لمونځ ناقص دی (رسول الله ﷺ دا الفاظ درې واره وویل) ابو هریرة رضی الله عنه ته وویل سول

هُرَيْرَةَ إِنَّا نَكُونُ وَرَاءَ الإِمَامِ فَقَالَ اقْرَأْ بِهَا فِي نَفْسِكَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ

هر کله چي موږ په امام پسي لمونځ کوو نو موږ الحمد لله وایو؟ هغه ورته وویل هو، په خپل زړه کي یې وایاست ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى قَسَمْتُ الصَّلاَةَ بَيْنِي وَبَيْنَ

چي فرمایل یې: الله جل جلاله وفرمایل : ما ویشلی دی لمونځ خپل او د خپل بنده په منځ کي

عَبْدِي نِصْفَيْنِ وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ فَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ

نیم پر نیم ویشلی دی زما بنده چي څه زما څخه غواړي هغه د هغه لپاره دي ، هر کله چي بنده وایي : الحمد لله رب العلمین،

قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی حَمِدَنِي عَبْدِي وَإِذَا قَالَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی أَثْنٰی

نو الله تعالی فرمايي زما بنده زما تعريف وکړ او هر کله چي هغه وايي الرحمن الرحيم نو الله تعالی فرمايي زما بنده زما ثناء وکړه

عَلَيَّ عَبْدِي وَإِذَا قَالَ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ قَالَ مَجَّدَنِي عَبْدِي وَإِذَا قَالَ إِيَّاكَ

او کوم وخت چي مالک يوم الدين وايي نو الله تعالی فرمايي زما بنده زما عظمت بيان کړ او هر کله چي اياک

نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ قَالَ هٰذَا بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ فَإِذَا

نعبد و اياک نستعين وايي نو الله تعالی فرمايي دا آيت زما او زما د بنده په منځ کي دی او څه چي زما بنده غوښتي دي هغه د هغه لپاره دي او کله چي

قَالَ اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ

هغه ووايي اهدنا الصراط المستقيم صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب

عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ قَالَ هٰذَا لِعَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ . رواه مسلم

عليهم ولا الضالين نو الله تعالی فرمايي دا زما د بنده لپاره دي او څه چي زما بنده غواړي هغه د هغه لپاره دي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۹۶/۱، رقم: ۳۸- ۳۹۵.

**تشريح**: قسمت الصلوة بيني وبين عبدي نصفين : ما لمونځ خپل او د خپل بنده په مينځ کي نيم په نيمه ويشلی دی په دې کي د لمانځه څخه مراد سورة فاتحه ده څرنګه چي په ترجمه کي ښکاره ده دا وجه ده چي ابو هريره ﷺ مقتدي ته هم د سورة فاتحې ويلو لپاره وويل او د مابعد حديث څخه يې استدلال وکړ چي کله د سورة فاتحې داسي فضيلت دی نو مقتدي ته هم ويل پکار دي .

د حديث خلاصه داده چي سورة فاتحه اوه اياتونه دي درې اياتونه يعني د الحمد څخه تر مالک يوم الدين پوري خاص د الله تعالی په مدح او ثناء کي دي او يو ايت اياک نعبد وا ياک نستعين د الله او بنده تر منځ مشترک دی، او نيم ايت يعني واياک نستعين کي د بنده لخوا د

حاجت طلب او د مرستي درخواست دی اوورسته چي درې اياتونه دي يوازي د بنده پر دعا باندي اشتمال لري.

## بسم الله د سورة فاتحې جزء نه دی

دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي بسمله يعني بسم الله الرحمن الرحيم په سورة فاتحه کي داخل او د هغې جزء نه دی ځرنګه چي د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دی که بسم الله د سورة فاتحې په جزء ګرځولو سره د اوو پر ځاي اته اياتونه شمير کړل سي نو تقسيم نه صحيح کيږي يوې خواته خو به څلورنيم اياتونه سي او بلي خواته به درې نيم پاته سي په دې صورت کي د نصف نقسيم صحيح نه پاته کيږي او دا حديث پر دې دلالت کوي چي د سورة فاتحې په اوو اياتونو کي صراط الذين انعمت عليهم هم يو ايت دی.

د سورة فاتحې په اړه ددې باب اول حديث د تشريح په ضمن کي د امامانو مذاهب نقل سوي وه او د حنفي مذهب وضاحت سوی وو مګر په دې موقع باندي دا بحث به نيمګړی پاته سوی وي ځکه موږ دلته څه وضاحت سره دا بحث وړاندي کوو.

## مقتدي ته سورة فاتحه ويل پکار دي که نه؟

د سورة فاتحې په اړه د امامانو په نزد دوه بحثونه کيږي اول خو دا چي مطلقا سورة فاتحه ويل فرض دی که نه؟ ددې بحث وضاحت مخکي سوی دی د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد سورة فاتحه ويل فرض دي اود امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد واجب، دوهم بحث دادی چي سورة فاتحه مقتدي ته ويل پکار دي که نه؟ د ابو هريره رضي الله عنه ددې قول څخه خو دا خبره معلوميږي چي مقتدي ته سورة فاتحه ويل پکار ده امام شافعي رحمة الله عليه څخه صحيح روايت کي منقول دي چي پر مقتدي باندي سورة فاتحه ويل فرض دي که د لوړ اواز لمونځ کوي يا په کراره اواز، او دغه مذهب د امام محمد صاحب هم دی، دامام مالک رحمة الله عليه په نزد فرض نه ده ليکن په کښته اواز لمانځه کي مستحب ده، دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه او صاحبينو مذهب دادی چي په کرار اواز او لوړ اواز دواړه ډوله لمنځونه په هغه کي سورة فاتحه ويل پر مقتدي باندي فرض نه ده بلکه حنفي فقهاء خو دا مکروه تحريمي ليکي.

## دامام محمد رحمة الله عليه د مذهب تحقيق

اوس موږ پورته ليکلي دي چي د امام اعظم رحمة الله عليه او صاحبينو په اتفاق باندي دا مذهب دی چي پر مقتديانو باندي سورة فاتحه ويل نه دی فرض مګر په دې اړه څه غلط فهمي پيدا سوې ده چي د هغه په وجه د ځينو خلکو خيال دی چي د امام محمد رحمة الله عليه

مذهب د امام اعظم رحمة الله عليه او امام ابو يوسف رحمة الله عليه څخه مختلف دی، ملا علي قاري رحمة الله عليه په مرقاة شرح مشكوة كي او ځني نورو علماؤ په خپلو كتابونو كي ليكلي دي چي امام محمد رحمة الله عليه ددې قائل دی جي د كرار اواز په لمانځه كي پر مقتدي باندي سورة فاتحه ويل فرض دي موږ هم پوهيږو چي امام محمد رحمة الله عليه خوا ته دد غه قول نسبت د څه غلط فهمي نتيجه ده ځكه چي هغه په دې اړه شيخين يعني امام اعظم رحمة الله عليه او امام ابو يوسف رحمة الله عليه سره بالكل متفق دی، امام محمد رحمة الله عليه په خپل كتاب كي ليكلي دي:

لا قرائة خلف الامام فيما جهر فيه ولا فيما لَم يَجهر بذالك جاءت عامة الاثار وهو قول ابي حنيفة رحْمة الله عليه .

ژباړه : لمونځ كه څه هم په لوړ آواز سره وي يا په كرار آواز سره په هيڅ حال كي هم په امام پسي قرائت نسته ، ددې سره سم موږ ته ډير حديثونه رسيدلي دي او دا قول د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه دی .

او امام موصوف په خپل دوهم تصنيف كتاب الاثار كي د قرائت خلف امام په عدم اثبات كي په اثار نقل كولو سره داسي تحرير كړی دی .

و به ناخذ لانرى القرآئة خلف الامام في شئ من الصلوة يجهر فيه او لا يجهر فيه

ژباړه : او دا يعني عدم قرائت خلف الامام زموږ هم مذهب دی موږ قرائت خلف الامام په هيڅ لمانځه كي هم كه څه هم هغه د لوړ آواز وي يا د كښته آواز لمونځ وي رواه نه ګڼو .

په هر حال پورتني مذهب ته په كتلو سره دا خبره واضحه سوه چي د سورة فاتحې حنفيه د دوو شيانو قائل دي اول خو دا چي پر مقتدي باندي د سورة فاتحې ويل په هيڅ حال كي هم فرض نه دي كه څه هم هغه لمونځ د لوړ اواز وي يا دكرار اواز، او دوهم دا كه يو مقتدی سورة فاتحه وايي نو ګويا هغه د مكروه تحريمي ارتكاب كوي په دې موقع باندي موږ دومره وايو چي سورة فاتحه ويل ولي فرض نه دي او د دې دلائل څه دي ؟

نو پوهيدل پكار دي چي كوم حضرات وايي چي پر مقتدي باندي سورة فاتحه ويل فرض دي د هغوی ټولو دليل ددې باب اول حديث يعني (لاصلوة الا بفاتحة الكتاب ) ددې حضراتو په نزد د امام ويل د مقتدي په حق كي كافي نه دي بلكه هر سړي ته خپله ويل ضروري دي .

امام اعظم رحمة الله عليه فرمايي چي د امام ويل د مقتدي لپاره كافي دي هر كله چي امام

وو ایه نو ددې مطلب دا سو چي پوره جماعت وو ایه هغوی د خپل قول په تائید کي دا حدیث وړاندي کوي: من کان له امام فقراءة الامام قراءة له، یعني کوم سړی چي په امام پسي لمونځ کوي نو د هغه امام قرائت به د هغه مقتدي قرائت هم ګڼل کیږي که څه هم ځینو علماؤ ددې حدیث په صحت کي کلام کړی دی مګر په حقیقت کي د هغوی خبري صحیح نه دی ځکه چي دا حدیث د ډیرو اسنادو څخه ثابت دی چي په هغو کي ځیني اسناد خو ددې درجې صحیح او سالم دي چي په هغو کي د هیڅ ځای نسته.

په هر حال د دې حدیث څخه دا خبره ثابتیږي چي مقتدي ته د قرائت ویلو ضرورت نسته نه د سورة فاتحې او نه د یو بل سورت، په دې صورت احتمال هم نسي پیدا کیدای چي کیدای سي ددې حدیث تعلق د لوړ آواز د لمانځه سره وي ځکه چي دا خبره هم په صحیح توګه ثابته ده چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد د مازدیګر د لمانځه په وخت کي وو چي د کرار آواز لمونځ دی او کله چي د کرار په لمانځه کي دا حکم دی نو د لوړ آواز په لمانځه کي خو به په درجه اولی دا حکم وي.

**بسم الله په لوړ آواز ویل پکار ده که په کرار**

﴿۷۶۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ كَانُوا

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ، ابوبکر صدیق او عمر رضي الله عنهم به

يَفْتَتِحُوْنَ الصَّلَاةَ بِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ) . رواه مسلم .

لمونځ د سورة فاتحې څخه پیل کوی . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۲۹۹-۳۰۰، رقم: ۵۲- ۳۹۹.

**تشریح**: په ظاهره خو ددې حدیث څخه دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ به د لمانځه پیل کولو په وخت کي د سورة فاتحې څخه مخکي بسم الله نه ویل، مګر د سورة فاتحې څخه مخکي بسم الله ویل د ټولو امامانو په نزد متفق علیه دی ځکه چي په نورو حدیثونو کي بسم الله ثابت ده خواه سورة فاتحه د بسم الله جزء ومنل سي لکه څرنګه چي شوافع وایي او که و نه ومنل سي لکه څرنګه چي حنفیه وایي.

امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي چي دلته الحمد لله رب العلمین څخه مراد سورة فاتحه ده یعني رسول الله ﷺ به د سورة فاتحې څخه لمونځ پیل کوی لکه چي دا وویل سي چي فلانی سړی آلم وو ایه نو ددې څخه مراد سورة بقره اخستل کیږي او دا مخکي بنودل سوي دي چي د

امام شافعي رحمة الله عليه په نزد بسم الله د سورت جزء دی نو ددې قول څخه دا ثابته نه سوه چي رسول اللهﷺ به بسم الله نه ويل.

د حنفيه له خوا ددې تاويل دا کيږي چي دلته مطلق نفي مراد نه دي بلکه ددې قول مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به بسم الله په لوړ اواز سره ويل او په لوړ اواز سره به يې د لمانځه پيل د الحمد لله رب العلمين څخه نه کوی ځکه چي دا خبره پوره صحت سره ثابته ده چي رسول الله ﷺ، خلفاء راشدين او نور صحابه کرامو رضي الله عنهم به بسم الله په لوړ اواز سره نه ويل تر دې چي په لوړ اواز سره کيدونکی لمونځ کي به يې هم په کراره ويل.

شيخ ابن الهمام رحمة الله عليه د ځينو حفاظ حديث يعني هغه خلک چي هغو ته ډير حديثونه په ياد وي څخه نقل کړی دی چي هيڅ داسي ثابت نه دی چي په هغه کي بسم الله په لوړ اواز سره ويل ثابتيږي که يو داسي حديث ثابت هم وي چي د هغه څخه بسم الله په لوړ اواز ثابتيږي نو د هغه په اسناد کي به کلام سوی وي.

ددې څخه پرته د صحابه کرامو او تابعينو د يو لوی ډلي څخه بسم الله په کښنته اواز سره ويل په کثرت سره منقول دي که په اتفاقي توګه سره په لوړ اواز ويل ثابت وي نو د هغه وجه به دا وي چي يا خو به د هغو خلکو د تعليم لپاره بسم الله په لوړ اواز سره ويلې وي او يا د هغه مقتديانو روايت دی چي د هغوی بالکل نژدې په لمانځه کي دريدل، که هغوی به بسم الله په کراره ويل نو مقتديانو به اوريدل او دا هغوی په لوړ اواز سره تعبير کړل.

امام ترمذي رحمة الله عليه په خپل کتاب جامع ترمذي کي ددې مسئلې سره متعلق دوه بابه قائم کړي دي په يوه باب کي خو هغه حديثونه نقل کړي دي چي په هغه کي بسم الله په لوړ اواز سره ويل ثابت دي او په دوهم باب کي هغه حديثونه نقل دي چي په کرار اواز سره دلالت کوي او امام موصوف ترجيح هغه احاديثو ته ورکړې ده يعني د بسم الله کرار ويلو د مذهب په حق کي اکثر علماء اهل علم مثلا په صحابه کرامو کي حضرت ابوبکرصديقؓ، حضرت عمرؓ، حضرت عثمانؓ، حضرت عليؓ، تابعين او داسي نور دي.

## د آمين ويلو حکم

﴿۷۶۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَّنَ

د حضرت ابو هريرةؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي آمين ووايي

الْإِمَامُ فَأَمِّنُوا فَإِنَّهُ مَنْ وَّافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ

امام نو تاسو هم آمين وايا ست ځکه چي د چا امين د ملائکو د امين سره موافق سي نو د هغه تير سوي ګناهونه معاف كيږي

ذَنْبِهِ. متفق عليه. وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ إِذَا قَالَ الْإِمَامُ (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ

(بخاري او مسلم) په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي هر كله چي امام غير المغضوب عليهم

وَلاَ الضَّالِّيْنَ) فَقُوْلُوْا آمِيْنَ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. هذا لفظ البخاري ولمسلم نحوه. وفي أخرى للبخاري قال إذا أمن القارئ فأمنوا فإن الملائكة تؤمن فمن وافق تأمينه تأمين الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه.

ولاالضالين ووايي نو تاسو آمين ووايا ست ځكه چي د كوم سړي آمين د ملائكو د آمين سره موافق سي د هغه تير سوي ګناهونه معافيږي (بخاري او مسلم) د بخاري په يوه روايت كي دا الفاظ هم دي هر كله چي قرائت والا آمين ووايي نو تاسو هم آمين وايا ست ځكه چي ملائكي هم په داسي وخت كي آمين وايي د چا آمين چي د ملائكو د آمين سره موافق سي د هغه تير سوي ګناهونه بخښل كيږي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۶۲، رقم: ۷۸۰ ومسلم: ۱\۳۰۷، رقم: ۷۲-۴۱۰.

**تشريح**: آمين معنى دا چي اې الله زما دعا قبوله كړې، هر كله چي امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووايي نو مقتديانو ته پكار ده چي هغوى هم آمين ووايي. آمين ويونكي ملائكي ددې څخه مراد هغه ملائكي دي چي اعمال ليكي، ځيني حضراتو دا هم ويلي دي چي دلته د هغوى څخه پرته نوري ملائكي مراد دي.

## د مقتدي د لمانځه طريقه

﴿۷۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوموسى الاشعري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا صَلَّيْتُمْ فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَإِذْ

هر كله چي تاسو (په جماعت سره) لمونځ كوئ نو خپل صفونه سيده كړئ بيا په تاسو كي يو سړی امام سئ يعني يو نفر دي امام سي كوم وخت چي هغه الله اكبر ووايي نو تاسو هم الله اكبر ووايا ست او كله چي

قَالَ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَقُولُوا آمِينَ يُجِبْكُمُ اللّٰهُ فَإِذَا كَبَّرَ

امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووايي نو تاسو آمين ووايا ست نو ستاسو د عاء به الله جل جلاله قبوله كړي بيا چي هغه الله اكبر ووايي

وَرَكَعَ فَكَبِّرُوا وَارْكَعُوا فَإِنَّ الْإِمَامَ يَرْكَعُ قَبْلَكُمْ وَيَرْفَعُ قَبْلَكُمْ فَقَالَ

ركوع وكړي نو تاسو هم الله اكبر ووايا ست ركوع وكړئ او امام ستاسو څخه وړاندي ركوع كوي او ستاسو څخه مخكي سر پورته كوي ، بيا وفرمايل

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتِلْكَ بِتِلْكَ قَالَ وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ

رسول الله ﷺ : د امام سر پورته كول د لومړی ركوع كولو بدله ده او كله چي امام سمع الله لمن

حَمِدَهُ فَقُولُوا اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ يَسْمَعُ اللّٰهُ لَكُمْ . رواه مسلم . و في رواية له عن ابي هريرة و قتادة و اذا قرا فانصتوا .

حمده ووايي نو تاسو اللهم ربنا لک الحمد ووايا ست ، د مسلم په يو بل روايت كي دي چي ابو هريرة او قتادة څخه نقل دا الفاظ دي هر كله چي امام قرائت وايي نو تاسو پټه خوله او سئ .

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۳۰۳، ۳۰۴، رقم: ۶۲- ۴۰۴.

**د لغاتو حل** : (فتلک بتلک): يعني ان اللحظة التي سبقكم بها الامام عند الركوع تنجبر باللحظة التي تتاخرون بها عنه بعد رفعه. مرقات بتصر.

**تشريح** : د حديث الفاظ (فتلک بتلک) يعني د امام مخکي سر پورته کول د مخکي رکوع کولو بدله ده، ددې مطلب دادی چي امام د مقتدي څخه مخکي د رکوع څخه ځکه سر پورته کوي چي د امام او مقتدي د رکوع اندازه برابر سي، ګويا د رسول الله ﷺ دا ارشاد په ځرګنده داسي دی چي هر کله امام په رکوع کي ستاسو څخه مخکي ولاړ سي نو ګويا هغه وخت ستاسو او د امام د رکوع اندازه برابر نسوه مګر کله چي امام د رکوع څخه ستاسو څخه مخکي سر پورته کړي او تاسو د هغه څخه وروسته سر پورته کړی نو ګويا ستاسو په دغه زنډ سره هغه لحظه پوره سوه چي په هغه کي امام رکوع ته په تلو کي ستاسو څخه مخکي سوی وو، او ځرنګه چي تاسو رکوع ته د امام څخه وروسته ولاړاست همداسي د رکوع څخه د امام وروسته پورته کيږئ، نو د امام او مقتديانو دواړو د رکوع اندازه به پوره سي.

د دې روايت څخه معلوميږي چي کله امام سمع الله لمن حمده ووايي نو مقتديان دي اللهم ربنا لک الحمد وايي، مګر په يو بل روايت کي ربنا ولک الحمد (يعني په واو سره) الفاظ روايت دي، او په يوه روايت کي اللهم ربنا ولک الحمد هم راغلي دي.

دا حديث د امام ابو حنيفة رحمه الله په دې مسئله کي مستدل دی چي امام دي د رکوع څخه د پورته کېدو په وخت کي يوازي سمع الله لمن حمده وايي او مقتديان دي ربنالک الحمد ووايي، د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد امام، مقتدی او منفرد ټولو ته دا دواړي کلمې ويل پکار دي، او د صاحبينو څخه په يو روايت کي دا منقول دي مګر په دې قيد سره چي امام ربنالک الحمد په کرار آواز سره ووايي.

د منفرد يعني يوازي لمونځ کونکي سړي په اړه په اتفاق سره دا حکم دی چي هغه به دواړي کلمې وايي که څه هم پر يوه باندي اکتفاء کول جائز دي، او ظاهره داده چي اکتفاء پر ربنالک الحمد باندي وکړل سي، د دواړو کلمو ويلو په صورت کي سمع الله لمن حمده دي د رکوع څخه د ولاړېدو په وخت کي او ربنالک الحمد دي د ولاړي په حالت کي وويل سي. د حديث آخري جمله (و اذا قرا فانصتوا) : يعني کله چي امام قرائت وايي نو تاسو پټه خوله اوسئ، دا د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب دليل دی چي مقتدي ته په امام پسي پټه خوله اوسيدل پکار دي قرائت ويل نه دي پکار که څه هم لمونځ په لوړ آواز وي او که په کرار آواز.

### په لمانځه کي د قرائت طريقه

﴿۷۷۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي

د حضرت ابوقتادة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ماپښين په لمانځه کي

الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَسُورَتَيْنِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ

په لومړيو دوو رکعتو کي سورة فاتحه او دوه سورتونه ويل يعني په هر رکعت کي الحمدلله او يو سورت او (د فرضو په آخري دوو رکعتو کي) به يې يوازي الحمدلله ويل

وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ أَحْيَانًا وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ وَهٰكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهٰكَذَا فِي الصُّبْحِ. متفق عليه

او کله يو آيت به يې هم موږ ته اوروی او لومړی رکعت به يې د دوهم رکعت څخه زيات اوږد کوی او داسي به يې د مازديگر او سهار لمونځ کوی. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۶۰\۲، رقم: ۷۷۶، ومسلم: ۳۳۳\۱، رقم: ۱۵۴- ۴۵۱.

**تشريح:** د ماپښين په لمانځه کي خو قرائت سري (يعني په کراره سره) کيږي او همداسي به رسول الله ﷺ کول، مگر دا معلوميږي چي ډير واره رسول الله ﷺ به يو آيت يا يو سورت په لوړ آواز سره هم وايه، او ددې څخه د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چي خلک پوه سي چي د سورة فاتحې څخه وروسته يو سورة يا آيت هم وويل سي، يا خلکو ته ددې خبري ښودل وسي چي رسول الله ﷺ د فلاني سورة قرائت کوي، په دې خبره هم پوهېدل پکار دي چي دلته د ماپښين خاصوالی تقيدي نه دی بلکه اتفاقي دی يعني رسول الله ﷺ به په هر لمانځه کي داسي کول.

## د اول رکعت د اوږدوالي مسئله

ددې حديث څخه دا معلوميږي چي اول رکعت تر نورو رکعتونو زيات اوږدول پکار دي د امام شافعي رحمة الله عليه، امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه مذهب دادی چي په ټولو لمنځونو کي اول رکعت د نورو رکعتونو په نسبت اوږدول پکار دي، په حنفيه کي د امام محمد رحمة الله عليه هم دا مذهب دی، دې حضراتو د ماپښين، مازديگر او سهار په لمنځونو کي د اول رکعت اوږدولو مسئله د حديثو څخه ثابته کړې ده او ماښام او ماخستن يې پر دغه درو باندي قياس کړي دي، عبد الرزاق رحمة الله عليه ددې حديث په آخر کي د معمر رحمة الله عليه څخه هم دا نقل کړي دي چي زموږ خيال دادی چي رسول الله ﷺ به په اول رکعت کي ځکه اوږدوالی کوی چي خلک اول رکعت ونيسي، امام ابو داود او ابن خزيمه رحمة الله

عليهما هم دا ليكلي دي.
د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام ابو يوسف رحمة الله عليه په نزد اول ركعت اوږدول يوازي د سهار په لمانځه كي خاص دي ځكه چې دا وخت د خوب او غفلت وي كنې دواړه ركعتونه په استحقاق قرات كي برابر دي ځكه نو د قرائت په اندازه كي هم برابر كيدل پكار دي، په يوه حديث كي دډې وضاحت سوى دى چې رسول الله ﷺ به په هر ركعت كي د ديرشو آياتونو په اندازه قرات وايه، كوم چې دډې حديث تعلق دى چې دډې څخه د اول ركعت اوږديدو اثبات كيږي نو دا به پر دې خبره محمول وي چې په اول ركعت كي دعا استفتاح يعني سبحانک اللهم او اعوذ بالله او بسم الله وويل سي ځكه نو اول ركعت اوږد معلوم سي او دا چې دا اوږدوالى به د درو آياتونو څخه هم په كمه اندازه كي كيدى.

## په لمانځه كي د رسول كريم ﷺ دولاړي اندازه

﴿۷۷﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنَّا نَحْزِرُ قِيَامَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دى چې موږ به اندازه لګول د د رسول الله ﷺ د ولاړي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ

د ماپښين او ماز ديګر په لمانځه كي نو موږ اندازه ولګول چې رسول الله ﷺ به د ماپښين په اولو دوو ركعتو كي

الظُّهْرِ قَدْرَ قِرَاءَةِ الم تَنْزِيلُ السَّجْدَةِ وَفِي رِوَايَةٍ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ قَدْرَ ثَلٰثِيْنَ

د سورة الم تنزيل السجده ويلو په اندازه دريدى او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چې په هر ركعت كي به د د ديرشو

آيَةً وَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ قَدْرَ النِّصْفِ مِنْ ذٰلِكَ وَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي

آياتو ويلو په اندازه دريدى او موږ اندازه ولګول چې د ماپښين دوه آخري ركعتو كي به يې دډې په نيمه ولاړه كول. او موږ د رسول الله ﷺ د ماز ديګر

الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى قَدْرِ قِيَامِهِ فِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ ذٰلِكَ. رواه مسلم

د دوو رکعتو د ولاړي د ماپښين د آخري دوو رکعتو د ولاړي مطابق پيدا کړ او د مازديگر آخري دوه رکعتو کي مو د قيام مقابله وکړه نو هغه د مخکنيو رکعتو د ولاړي په نيمايي وو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۳۴،رقم: ۱۵۶- ۴۵۲.

**تشريح**: په اندازه دآلم تنزيل السجده مطلب يا خو دا دی چي په دواړو رکعتونو کي د رسول الله ﷺ د مجموعي قيام مقدار به سورة آلم تنزيل السجده وو يا ددې مطلب داهم کيدای سي چي رسول الله ﷺ به په هر رکعت کي د آلم تنزيل السجده ويلو په اندازه قرائت وايه، ددي اخري مطلب تائيد دوهم روايت هم کوي چي د هغه څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ به په هر رکعت کي د ديرشو آياتونو په اندازه قرائت وايه او په الم تنزيل السجده کي نهه ويشت آياتونه دي، که لومړنی مطلب صحيح وګڼل سي نو دا به د دوهم روايت خلاف وي نو غوره به دا وي چي دا وويل سي چي رسول الله ﷺ به په هر رکعت کي د الم تنزيل السجده په اندازه قرائت وايه.

## په اخري رکعتونو کي د قرائت مسئله

د حديث د الفاظو (وحزرنا قيامه في الاخرين) يعني د ماپښين په دوو رکعتونو کي د هغه د نيمايي موږ اندازه وکړل، ددې څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ بهٔ د ماپښين په دوو رکعتونو کي هم سورة فاتحه سره يو دوهم سورة چي د مخکني دوو رکعتونو د سورتونو څخه به مختصر وه ويل، د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب د نوي قول مطابق دا دی مگر دده په نزد پر قول قديم باندي ده چي د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب مطابق دی چي په آخري دوو رکعتونو کي د سورة فاتحې سره يو بل سورت ويل ضروري نه دی.

نو ددې حديث تاويل به دا وي چي د رسول الله ﷺ دا فعل پر سنت باندي محمول نه دی بلکه پر بيان جواز باندي محمول دی يعني ددې مطلب دا سو چي رسول الله ﷺ به په اخري دوو رکعتونو کي د سورة فاتحې سره کله کله يو بل سورة هم په يو ځاي کولو سره وايه چي خلکو ته معلومه سي چي داسي ويل هم جائز دي مگر په دې خبره پوهيدل پکار دي چي د ټولو امامانو په نزد په آخري دوو رکعتو کي يوازي سورة فاتحه ويل سنت ده بلکه حنفيه خو وايي که يو سړی سورة فاتحه و نه وايي بلکه يوازي تسبيح ووايي نو هم جائز دي مگر قرائت افضل دی، د امام نخعي رحمة الله عليه، امام ثوري رحمة الله عليه او د کوفې ټولو علماؤ هم دا قول دی.

په محيط کي دا ليکلي دي که يو سړی په اخري دوو رکعتو کي د سورة فاتحې ويلو پر ځاي په قصد سره پټه خوله دريدل اختيار کړي نو دا به خلاف سنت کيدو په وجه غلط کار وي،

حسن بن زیاد رحمة الله علیه د امام اعظم رحمة الله علیه دا روایت هم نقل کوي چي په اخري دوو رکعتو کي قرائت ویل واجب دی، ابن ابي شیبه د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت مسعود رضي الله عنه داقول نقل کوي چي په اولو دوو رکعتو کي قرائت وایاست او په اخري دوو رکعتو کي پر تسبیح باندي اکتفاء کوئ او دا يې هم ویلي دي که یو سړی په اخري دوو رکعتو کي د سورة فاتحې سره یو بل سورة هم ووايي نو سجده سهوه نه واجبيږي او دا صحیح هم دي ځکه چي په آخري دواړو رکعتو کي سورة فاتحه ویل سنت ده او د یو بل سورت پرېښودل واجب نه دي او ظاهره ده چي سجده سهوه د یو واجب پر پرېښودو یا پر واجب باندي د عمل نه کولو په وجه ضروري کیږي.

د امام احمد رحمة الله علیه په نزد اولی او صحیح داده چي په آخري دوو رکعتو کي د سورة فاتحې سره یو دوهم سورت ویل مکروه نه دي ځکه چي د رسول الله ﷺ په باره کي منقول دي چي په آخري دوو رکعتو کي به يې کله کله سورة فاتحې څخه پرته یو بل سورة یا څه نور آیاتونه هم ویل مگر د سورة فاتحې سره یو بل سورة نه ویل مستحب دي.

## د ماپښین د لمانځه قرائت

﴿۷۷﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به وایه

الظُّهْرِ بِاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى وفي رواية بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَفِي الْعَصْرِ نَحْوَ ذَلِكَ وَفِي الصُّبْحِ أَطْوَلَ مِنْ ذَلِكَ . رواه مسلم

د ماپښین په لمانځه کي واللیل اذا یغشی او په یوه روایت کي دي چي سبح اسم ربک الاعلی به يې وایه او د مازدیگر په لمانځه کي هم ددې په شان او د سهار په لمانځه کي يې ددې څخه اوږد قرائت وایه. مسلم

**تخريج**: صحیح مسلم: ۱\۳۳۷، رقم: ۱۷۰- ۴۵۹.

**تشريح**: څرنګه چي په نورو حدیثونو کي روایت دي چي رسول الله ﷺ به په فلاني لمانځه کي فلانی سورت وایه او د هغه څه وضاحت نسته چي هغه سورت بې په اول رکعت کي وایه که په دوهم کي یا په یو رکعت کي پرته د اول او دوهم تعین به بې وایه، همدارنګه په دې حدیث هم

ځه وضاحت نه دی سوی چي رسول الله ﷺ به د ماپښين په لمانځه کي سورة والليل اذا يغشی په کوم رکعت کي وايه (ايا په لومړني رکعت کي که په دوهم رکعت کي)،

په دې اړه دوه احتماله کيدای سي يا خو دا چي رسول الله ﷺ يو سورت په دوو رکعتو کي وايه يا دا چي د يو سورت يو څه برخه به يې په لومړني رکعت کي ويل او څه برخه به يې په دوهم رکعت ويل، په لومړني احتمال کي تکرار لازميږي او په دوهم کي تبعيض يعني د يو سورت يو څه برخه په لومړني رکعت کي او څه برخه په دوهم رکعت کي ويل لازميږي، او دا دواړه يعني تکرار او تبعيض غير اولی دی که څه هم جائز دی ځکه چي د رسول الله ﷺ څخه تکرار او تبعيض ثابت نه دی ، فقهاؤ ليکلي دي چي په يوه رکعت کي پوره سورت ويل که څه هم کوچنی وي افضل دی په نسبت ددې چي په يوه رکعت کي د يو سورت يو څه برخه وويل سي که څه هم هغه صورت اوږد وي ، مګر په دې مسئله کي تراويح مستثنی دي ځکه چي په دې کي خو پوره قرآن کريم په ټوله مياشت کي ختمول افضل دي ، نو دا دواړه احتمالات او په دې کي پيدا سوي اشکالونو ليدو سره که دريم احتمال پيدا کړل سي چي د حديث د منشاء سره سم او د هغه سره مناسب دی هغه دادی چي رسول الله ﷺ د مذکوره سورت څخه پرته دوهم سورت به هم وايه مګر په لومړني رکعت کي يې وايه يا په دوهم کي .

## د ماښام د لمانځه قرائت

﴿۷۷۳﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّوْرِ . (متفق عليه)

د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د ماښام په لمانځه کي به يې سورة طور وايه . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۴۷، رقم: ۷۶۵، ومسلم: ۱\۳۳۸، رقم: ۱۷۴- ۴۶۳.

## د فقهاؤ له لوري د قرائت ټاکلو دليل

﴿۷۷۴﴾: وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت بي بي ام افضل بنت حارث څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ اوريدلي دي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِ (اَلْمُرْسَلَاتُ عُرْفًا) متفق عليه

د ماښام په لمانځه کي يې سورة (والمرسلات عرفا) ويل . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۲۴۶،۲۴۶، رقم: ۷۶۳ ومسلم ۱\۳۳۸، رقم: ۱۷۳- ۴۶۲.

**تشريح**: دا حديثونه او هغه حديث چي په هغه کي نقل دي چي رسول ﷺ د ماښام په لمانځه کي سورة اعراف، سورة انفال او سورة دخان ووايه يا دا ډول نور حديثونه ټول پر دې خبره دلالت کوي چي په لمنځو کي د يو خاص او ټاکل سوي سورت ويل ضروري نه دی بلکه دلمانځه کونکي د اسانۍ او سهولت بآندي مواقف ده چي هغه په کوم لمانځه کي کوم سورة ويل غواړي ويلای سي.

فقهاء چي دا ليکي چي په سهار او ماپښين کي طوال مفصل په مازيگر او ماخستن کي اوساط مفصل او په په ماښام کي قصار مفصل ويل پکار دي نو ددې تعين قرائت اصلي دليل دادی چي امير المومنين عمر فاروق رضي الله عنه حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه ته چي په هغه زمانه کي د کوفې والي وو يو خط ليکلی وو چي په هغه کي دا پورتني تفصيل مذکور وو، د هغه سره سم په لمنځو کي د قرائت همداسي تعين وګرځول سو ددې مسئلې حاصل دادی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي د طول او قصر په اړه د قرائت مسئله د اختلاف احوال او اوقات او مصلحت په جواز سره مختلف وو بيا وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه د هغه ليک په رڼا کي د قرائت يوه طريقه او اصول وټاکل سول چي د فقهاؤ په اصطلاح کي طول مفصل، اوسط مفصل او قصار مفصل نوم ورکړل سو، او کيدای سي چي په دې اړه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته يو دليل د رسول الله ﷺ د يو قول او فعل څخه لاس ته ورغلی وي او رسول الله ﷺ د هغه طريقې سره سم کله کله قرائت کړی وي چي هغه حضرت عمر رضي الله عنه په خپل ليک کي تحرير فرمايلی دی او کله کله د هغه برعکس د رسول الله ﷺ هغه معمول پاته سوی وي کوم چي په دغه احاديثو کي مذکور دی، په هر حال موږ خو دا ګڼو چي د فقهاؤ ددغه ټاکل سوو اصول لپاره د حضرت عمر رضي الله عنه دا قول د دليل لپاره کافي دی.

## فرض لمونځ کونکي ته په نفل کونکي پسي اقتداء جائز ده که يا؟

﴿۷۷۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي معاذ بن جبل رضي الله عنه به د رسول الله ﷺ سره لمونځ کوی

ثُمَّ يَأْتِي فَيَؤُمُّ قَوْمَهُ فَصَلَّى لَيْلَةً مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ثُمَّ

او بیا به یې د خپل قوم امامت کوی یوه ورځ یې د رسول الله ﷺ سره د ماخستن لمونځ وکړ بیا

أَتَى قَوْمَهُ فَأَمَّهُمْ فَافْتَتَحَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ فَانْحَرَفَ رَجُلٌ فَسَلَّمَ ثُمَّ صَلَّى

خپل قوم ته لمونځ ورکړ او سورة بقرة یې پیل کړه یوه سړي د جماعت څخه سلام وګرزوي او ووتی یوازي یې لمونځ وکړ

وَحْدَهُ وَانْصَرَفَ فَقَالُوا لَهُ أَنَافَقْتَ يَا فُلَانُ قَالَ لاَ وَاللّٰهِ وَلَآتِيَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ

او ولاړی، خلکو هغه ته وویل اې فلانه ! ایا ته منافق سوې هغه وویل : نه، په الله دې مې قسم وي زه به د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلأُخْبِرَنَّهُ فَأَتَى رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

او د ټولي پېښې څخه به یې خبر کړم ، نو هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړ اې د الله رسوله !

إِنَّا أَصْحَابُ نَوَاضِحَ نَعْمَلُ بِالنَّهَارِ وَإِنَّ مُعَاذًا صَلَّى مَعَكَ الْعِشَاءَ ثُمَّ أَتَى

موږ اوښانو والا یو ټوله ورځ (په مزدوري) پردې مځکې اوبه کوو او معاذ ستاسو سره د ماخستن لمونځ وکړ بیا راغلی

قَوْمَهُ فَافْتَتَحَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى

خپل قوم ته او په لمانځه کي یې سورة بقرة پیل کړه ، رسول الله ﷺ معاذ ته متوجه سو

مُعَاذٍ فَقَالَ يَا مُعَاذُ أَفَتَّانٌ أَنْتَ اقْرَأْ وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا وَالضُّحَى وَاللَّيْلِ

او وه یې فرمایل : اې معاذ ! ایا ته خلک په فتنه کي اچوې د ماخستن په لمانځه کي (والشمس وضحها)، (والضحی والليل

إِذَا يَغْشَى وَسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى . متفق علیه

اذا یغشی)، (سبح اسم ربک الاعلی)، دا سورتونه وایه . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲۲۰۰\۱۲، رقم: ۷۰۵، ومسلم: ۱۱\۳۳۹-۳۴۰، رقم: ۱۷۸- ۴۶۵

**د لغاتو حل**: (نواضِح): الابل التي يستقى عليه للشجر والزرع (هغه اوښ چي کښت په اوبه کيږي).

**تشريح**: دا سړي نعوذ بالله د مسجد يا لمانځه څخه متنفر سوی نه وو بلکه ټوله ورځ د محنت او سختۍ په وجه ستړی ستومانه وو ځکه نو کله چي قرائت اوږد سو او لمونځ اوږدوالی اختيار کړ نو دی په مجبور کېدو سره د مسجد څخه راووتی او يوازي يې لمونځ وکړ، ددې سربيره چي د سلام ګرځولو موقع او محل نه وو هغه سلام وګرځوی هغه فکر وکړ چي د لمانځه څخه په سلام ګرځولو ووځي چي د کم لمانځه پوره کولو مشابهت خو وسي.

په يو بل روايت کي: سبح اسم ربک الاعلی څخه وروسته نور سورتونه هم ذکر سوي دي مثلا اذا السماء انفطرت، اذا السماء انشقت او سورة بروج او سورة طارق.

شوافعو ددې حديث څخه دا استدلال کړی دی چي فرض لمونځ کونکي ته د نفل لمونځ کونکي اقتداء کول جائز ده ځکه چي معاذ ﷺ به د رسول الله ﷺ سره لمونځ کوی نو د هغه فرض لمونځ به ادا کيدی او په خپل جماعت سره يې چي کوم لمونځ کوی هغه به نفل وو. او د هغه د مقتديانو لمونځ به فرض وو، او رسول الله ﷺ د معاذ ﷺ دا عمل جائز وګرځوی او هغه يې ددې څخه منعه نه کړ.

د علماء حنفيه په نزد فرض لمونځ کونکي ته د نفل لمونځ کونکي په امامت کي لمونځ کول جائز نه دي ځکه شافعيانو حضراتو ته جواب ورکول کيږي چي نيت يو داسي شی دی چي په هغه يو بل څوک خبر کيدای نسي تر څو پوري چي خپله نيت کونکی دا ونه ښيي چي هغه څه نيت کړی وو، نو دا اغلب ده چي معاذ ابن جبل ﷺ د رسول الله ﷺ سره د فرض په نيت نه بلکه د رسول الله ﷺ د لمانځه طريقه زده کولو او د رسول الله ﷺ د لمانځه څخه د برکت او فضيلت تر لاسه کولو او د نفاق د تهمت څخه د ساتني په خاطر به نيت د نفل لمونځ کوی او بيا خپل قوم ته په راتللو سره هغوی ته يې فرض لمونځ ورکوی چي دواړه فضيلتونه حاصل سي، د حضرت معاذ ﷺ دا عمل پر دې صورت محمول کول اولی دی ځکه چي دا صورت خو په اتفاق د ټولو علماؤ په نزد جائز دي په خلاف د لومړني صورت چي په هغه کي د علماؤ اختلاف دی.

## امام ته د مقتديانو خيال ساتل پکار دي

دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي امام ته د ضعيف او کمزورو مقتديانو د خيال ساتلو سره سم په لمانځه کي تخفيف کول سنت دي، که هغه ته ددې خبري احساس وي چي تر شا ولاړ مقتديان ضعيف او کمزوري دي، يا ټوله ورځ په محنت او مشقت کولو سره ستړي ستومانه دي

يا يو بله مجبوري او تكليف ورته پيښ وي نو هغه ته لنډ لمونځ ورکول پكار دي دومره اوږد قرائت ويل نه دي پكار چي په هغه سره ضعيف او كمزوري خلك په تكليف او پريشاني كي سي او په دې وجه د جماعت په پرېښودو باندي مجبور سي .

## د ماخستن په لمانځه كي قرائت

﴿۷۷۶﴾: وَعَنِ الْبَرَاءَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي الْعِشَاءِ

د حضرت براء رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د ماخستن په لمانځه كي يې

بِالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ فَمَا سَمِعْتُ أَحَدًا أَحْسَنَ صَوْتًا مِنْهُ. متفق عليه

(والتين والزيتون) سورت وايه او هيڅوک مي تر رسول الله ﷺ زيات خوش آوازه نه دی ليدلی . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\ ۲۵۰، رقم: ۷۶۷، ومسلم ۱\ ۳۳۹، رقم: ۱۷۷- ۴۶۴.

**تشريح**: رسول الله ﷺ چي ځرنګه په باطني توګه سره د دنيا تر ټولو مكمل او اكمل انسان وو همداسي الله تعالى رسول الله ﷺ په ظاهري، جسماني، حسن او ښكلا سره هم تر ټولو اعلى او ارفع مرتبه باندي فائز كړی وو ، بيا دا چي الله تعالى ځرنګه رسول الله ﷺ د حسن صورت تر ټولو اعلى نمونه جوړ كړی وو همداسي ورته حسن آواز كي هم تر ټولو امتيازي درجه عنايت كړې وه ، د براء بن عازب رضي الله عنه دا شاهدي چي ما د رسول الله ﷺ د آواز څخه زيات ښه آواز د بل چا نه دی اوريدلی صرف د يو جذباتي عقيدت يا تاثر يا مبالغه نه ده بلكه د يو داسي حقيقت شاهدي ده چي د هغه د صداقت خپل خو پرېږده پرديو هم د چيلنج كولو جرئت نه دی كړی .

ځرنګه چي اوس د اتم نمبر حديث په تشريح كي ذكر سوي دي دلته هم ددې حديث دا وضاحت دی چي رسول الله ﷺ به د ماخستن په لمانځه كي سورة والتين والزيتون په يوه ركعت كي وايه او په دوهم ركعت كي به يې د يو بل سورت قرائت وايه .

## د سهار د لمانځه قرائت

﴿۷۷۷﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د سهار په لمانځه كي

الْفَجْرِ بِق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ ونحوها وَكَانَ صَلاتُهُ بَعْدُ تَخْفِيفًا. رواه مسلم

(ق والقرآن المجيد) او ددې په ډول سورت وايه او ددې وروسته لمنځو کي به يې ددې څخه کم سورتونه ويل. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱/۳۳۷، رقم: ۱۶۸- ۴۵۸.

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د سهار د لمانځه څخه پرته د نورو وختونو په لمنځو کي زياته اوږدونه نه کول او د سهار په لمانځه کي به يې اوږد قرائت وايه ځکه چي د سهار وخت د الله ﷻ په دربار کي د دعا قبليدو او برکت تر لاسه کولو وخت دی.

﴿۷۷۸﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ. رواه مسلم

د حضرت عمرو بن حريث رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه د رسول الله ﷺ څخه د سهار په لمانځه کي (والليل اذا عسعس) ويل اوريدلي دي. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۱/۳۳۶، رقم: ۱۶۴- ۴۵۶.

﴿۷۷۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ قَالَ صَلَّى لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن السائب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته لمونځ راکړ

الصُّبْحَ بِمَكَّةَ فَاسْتَفْتَحَ سُورَةَ الْمُؤْمِنِينَ حَتَّى جَاءَ ذِكْرُ مُوسَى وَهَارُونَ أَوْ

د سهار په مکه معظمه کي او سورة مؤمنون يې پيل کړ او کوم وخت چي د موسی او هارون ذکر راغلی يا

ذِكْرُ عِيسَى أَخَذَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْلَةٌ فَرَكَعَ. رواه مسلم

د حضرت عيسي عليه السلام ذکر راغلی نو رسول الله ﷺ ته ټوخی راغلی او رکوع ته ولاړی. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱/۳۳۶، رقم: ۱۶۳۱- ۴۵۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ په قرائت کي سورة قد افلح المؤمنون پيل کړ او کله چي دغه آيت (ثم ارسلنا موسى واخاه هارون) ته چي په هغه کي د موسی عليه السلام او هارون عليه السلام ذکر

دی یا دې آیت ته (وجعلنا ابن مریم و امه ...) ته چي په هغه کي د عیسی علیه السلام ذکر دی ورسیدی نو د دغه جلیل القدر پیغمبرانو ذکر سره د رسول الله ﷺ زړه ډک سو او په ژړا سو چي د هغه په وجه د تهوخي غلبه پر وسوه، نو رسول الله ﷺ د هغه ژړا او تهوخي په وجه سورة پوره نه کړ او د هغه آیت په ختمولو سره رکوع ته ولاړی.

## د جمعې په ورځ د سهار د لمانځه قرائت

﴿۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِ ( الم تَنْزِيْلُ ) فِيْ الرَّكْعَةِ الْأُوْلٰى وَفِي الثَّانِيَةِ ( هَلْ أَتٰى عَلَى الْإِنْسَانِ ) . متفق علیه

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ سهار د لمانځه په اول رکعت کي (الم تنزیل) سورت ووایه او په دوهم رکعت کي به یې (سورة هل اتی علی الانسان) وایه. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۷۷، رقم: ۸۹۱ ومسلم ۲\۵۹۹، رقم: ۶۵ - ۸۸۰.

**تشریح**: شوافع حضرات پر دغه حدیث باندي په عمل کولو سره وایي چي د جمعې په ورځ د سهار په لمانځه کي د پورتني حدیث سورتونه ویل پکار دي، مګر حنفیه د سورة تهاکلو څخه منعه کوي ځکه وایي چي دا اولی نه دی چي یو خاص صورت د یو خاص لمانځه سره داسي و تاکل سي چي د هغه څخه پرته بل سورت نه وایي، ددې حضراتو په نزد د قرائت او سورة د تاکلو ممانعت په وجه یوازي دا چي د یو خاص لمانځه سره د یو خاص سورت تاکل خلک به هغه یو سورت لازم او واجب ګڼلو سره یوازي هغه سورت وایي او د هغه څخه پرته نور سورتونه ویل به مکروه ګڼي.

او که چیري یو سړی د مثال په توګه ددې حدیث سره سم د جمعې په ورځ د سهار د لمانځه په لومړني رکعت کي الم تنزیل (سورة سجده) او په دوهم رکعت کي هل اتی علی الانسان (سورة الدهر) د رسول الله ﷺ د قرائت د برکت تر لاسه کولو او د اتباع سنت په جذبه سره ووایي نو په دې کي څه پرواه نسته، په شرط ددې چي ددغه سورتونو څخه پرته کله کله نور سورتونه هم وایي چي کم علم او عوام خلک دا ونه ګڼي چي ددغه سورتونو څخه پرته یو بل سورت ویل جائز نه دی.

د دې څخه پرته د حنفيه حضراتو يو بل دليل دا هم دی چې پر دې عمل باندې د رسول الله ﷺ هميشتوب ثابت نه دی بلکه رسول الله ﷺ به کله کله دا سورتونه ويل، نو کله کله ويل خو د هر سري لپاره افضل دي.

دلته دا مسئله هم واورئ که يو سړی د سهار په لمانځه کې سورة السجده ووايي نو هغه ته سجده کول هم پکار ده که څه هم د شوافع حضراتو ځينو علماؤ په ځينو ورځو کې د امام لپاره ددې پرېښودل اولی گرځولي دي مگر د رسول الله ﷺ څخه سجده تلاوت کول ثابت دي.

## د جمعې د لمانځه قرائت

﴿۷۸۱﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِيْ رَافِعٍ قَالَ اسْتَخْلَفَ مَرْوَانُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَلَى

د عبيدالله بن ابو رافع ﷺ څخه روايت دی چې مروان حضرت ابوهريرة د مدينې حکومت کې

الْمَدِيْنَةِ وَخَرَجَ إِلَى مَكَّةَ فَصَلَّى لَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ الْجُمُعَةَ فَقَرَأَ سُوْرَةَ (الْجُمُعَةِ)

مروان د مکې په لور ولاړی ابوهريرة ﷺ موږ ته د جمعې لمونځ راکړ او سورة جمعه يې وويل

فِي السَّجْدَةِ الْأُوْلٰى وَفِي الْآخِرَةِ (إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ) فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ

په لومړي رکعت کې او په دوهم رکعت کې يې سورة (اذا جاءک المنفقون) وويل بيا يې وفرمايل: ما د رسول الله ﷺ څخه

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهِمَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ. رواه مسلم.

د جمعې په ورځ دا دواړه سورتونه ويل اوريدلي دي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\ ۵۹۷، ۵۹۸، رقم: ۶۱ - ۸۷۷.

---

## د اخترو او جمعې د لمنځو قرائت

﴿۷۸۲﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به

يَقْرَأُ فِي الْعِيْدَيْنِ وَفِي الْجُمُعَةِ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيْثُ

د جمعې او اخترو په لمانځه کې (سبح اسم ربک الاعلی) او (هل اتک حديث

الْغَاشِيَةِ قَالَ وَإِذَا اجْتَمَعَ الْعِيدُ وَالْجُمُعَةُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ يَقْرَأُ بِهِمَا فِي الصَّلَاتَيْنِ. رواه مسلم

الغاشية) سورتونه ويل او نعمان وويل هر كله چي به اختر او جمعه سره يو ځای سول نو بيا به هم رسول الله ﷺ دا دواړه سورتونه په دواړو لمنځو كي ويل. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\ ۵۹۸، رقم: ۶۲ – ۸۷۸.

**تشريح**: د دې حديث څخه كه دا هم معلومه سوه چي د اخترونو او جمعې په لمانځه كي د دغه دوو سورتونو ويل سنت مؤكده دي نو هلته دا هم معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د جمعې په لمانځه كي سورة جمعه او سورة منافقون هميشه او تل وايه.

﴿۷۸۳﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سَأَلَ أَبَا وَاقِدٍ اللَّيْثِيَّ مَا كَانَ

د عبيد الله رضي الله عنه څخه روايت دى چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه د ابو واقد ليثي څخه پوښتنه وكړه

يَقْرَأُ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ فَقَالَ كَانَ يَقْرَأُ

رسول الله ﷺ په كوچني او لوى اختر كي كوم سورتونه ويل، هغه ورته وويل په دواړو اخترو

فِيهِمَا بِق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ وَاقْتَرَبَتْ السَّاعَةَ. رواه مسلم

كي به يې (ق والقرآن المجيد) او (اقتربت) سورتونه ويل. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم۲\ ۶۰۷، رقم: ۱۴ – ۸۹۱.

**تشريح**: حضرت عمر فاروق رضي الله عنه و رسول الله ﷺ ته پوره نژدې او قريب وو او د نبي كريم ﷺ د احوال او كيفيت څخه په ښه ډول خبر وو، دا خو نسي ويل كيداى چي هغوى د ابو واقعد ليثي رضي الله عنه څخه دا پوښتنه ځكه كړې وه چي په دغه لمنځو كي د رسول الله ﷺ د قرائت په اړه پوه سي البته دا ويل كيداى سي چي ددغه پوښتني څخه د هغه مقصد دا وو چي حاضرينو ته ددغه سوال او جواب په وجه د رسول الله ﷺ د قرائت په ښه ډول معلومات وسي او دا خبر بدل په ذهن كي قائم وساتل سي

## د سهار په سنت لمانځه کي قرائت

﴿۷۸۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَقُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ . رواه مسلم

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د سهار د لمانځه په دواړو رکعتو کي (قل يا ايها الكافرون) او (قل هو الله احد) وايه . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۵۰۲، رقم: ۹۸- ۷۲۶.

﴿۷۸۵﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ قُولُوا آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَالَّتِي فِي آلِ عِمْرَانَ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ . رواه مسلم

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د سهار د لمانځه په دواړو رکعتو (قولوا امنا بالله و ما انزل الينا) او هغه آيت چي په سورة آل عمران کي دی يعني (قل يا اهل الكتٰب تعالوا الى كلمة سواء بيننا و بينكم) وايه . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۵۰۲، رقم: ۱۰۰- ۷۲۷.

**تشريح**: لومړنی آيت د سورة بقرة په پوره توګه داسي دی :

قُولُوٓاْ آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنزِلَ إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَقَ وَيَعْقُوبَ وَالأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لاَ نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ . سورة بقرة ۱۳۶

ژباړه : (اې مسلمانانو !) وواياست چي موږ پر الله تعالی ايمان راوړ او کوم کتاب چي پر موږ نازل سو پر هغه او کومي صحيفې چي پر ابراهيم، اسماعيل، اسحاق، يعقوب او د هغوی پر اولاد (عليهم السلام) نازل سوي دي پر هغو او کوم کتابو چي پر موسی عليه السلام او عيسی عليه السلام ته ورکړل سوي دي پر هغو او کوم چي پر نورو پيغمبرانو د هغوی د پروردګار د لوري نازل سوي دي پر هغه ټولو (مو ايمان راوړی دی) موږ په دغه پيغمبرانو کي هيڅ فرق نه کوو او د يوه الله تعالی فرمانبرداريو .

د سورة آل عمران پوره آيت دادی :

قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ٦٤. سورة آل عمران

ژباړه : (اې محمد ﷺ!) ووايه چي اې اهل كتابو (يهودو او نصاراوو) كومه خبره چي زموږ او ستاسو په مينځ كي يو ډول او تسليم سوې ده د هغه په لور راسئ هغه دا چي د الله تعالى څخه پرته به موږ د هيچا عبادت نه كوو او د هغه سره به هيڅوك نه شريكوو او په موږ كي به هيڅوك د الله تعالى څخه پرته بل څوك خپل كار ساز نه ګڼو ، كه دا خلك (دا خبره) نه ومني نو ورته ووايه تاسو شاهدان سئ چي موږ د الله تعالى فرمانبرداريو .

په څرګنده دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به د سهار په سنتو كي كله كله دا دواړه آياتونه ويل او اكثر به يې قل ياايها الكافرون او قل هو الله احد ويل، د دې حديث څخه دا هم معلومه سوه چي په لمانځه كي د سورة يوه برخه په خاصه توګه د مينځ څخه ويل مكروه نه دي .

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د لمانځه په پيل كي بسم الله ويل

﴿۷۸۶﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ صَلَاتَهُ بِ (بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ) . رواه الترمذي وقال هذا حديث ليس إسناده بذاك .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به خپل لمونځ په بسم الله الرحمن الرحيم سره پيلوی . ترمذي

**تخريج** : سنن الترمذي ۲\۱۴، رقم: ۲۴۵.

**تشريح** : په بسم الله د لمانځه پيل كولو مقصد دادی چي رسول الله ﷺ به د لمانځه په پيل كي بسم الله الرحمن الرحيم په كرار آواز سره ويل، بيا به يې قرائت پيل كوی، د كرار آواز يو قيد ځكه لګول سوی دی چي دا حديث د تيرو حديثونو خلاف نسي د كوم څخه چي ثابتيږي چي رسول الله ﷺ به د خپل لمانځه پيل د الحمد لله رب العالمين څخه كوی .

میرک شاه ويلي دي چي امام ترمذي دغه حديث ته ضعيف الاسناد ويل د فکر محل دی
ځکه چي دا حديث حسن دی او ددې اسناد بالکل صحيح دي .

**آمين په لوړ آواز ويل پکار دي که په کرار آواز ؟**

﴿٨٧٤﴾: وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ ( غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّآلِّيْنَ ) فَقَالَ آمِيْنَ مَدَّ بِهَا صَوْتَهُ . رواه الترمذي وأبو داود والدارمي وابن ماجه .

د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د غير المغضوب عليهم ولا الضالين وروسته په لوړ آواز سره آمين ويل اوريدلي دي . ترمذي، ابوداؤد ، دارمي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ٢\ ٢٧، رقم: ٢٤٨ وابوداؤد: ١\ ٥٧٤، رقم: ٩٣٢، والدارمي ١\ ٣١٥، رقم: ١٢٤٧ وابن ماجه ١\ ٢٧٨، رقم: ٨٥٥.

**تشريح** : په اوږده اواز سره د آمين ويلو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ په لوړ آواز سره امين وويل، يا دا مطلب چي په لفظ د آمين کي الف په مد سره يعني په غځولو سره ووايي .

د آمين ويلو مسئله د امامانو په نزد مبحث فيه ده، .په دې اړه د ټولو تر مخه په دې خبره پوهيدل پکار دي چي په دې مسئله کي خو ټول امامان متفق دي چي د سورة فاتحې وروسته آمين ويل د هر لمونځ کونکي لپاره سنت دی که منفرد وي يا امام، همداسي مقتدي ته هم آمين ويل سنت دي که امام يې ووايي که يا، اوس اختلاف په دې کي دی چي ايا آمين په کرار اواز سره وويل سي که په لوړ اواز سره، د امام شافعي رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په نزد په لوړ اواز سره ويل پکار دي، د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد آمين په کرار اواز سره ويل پکار دي هغوی د حديث په باره کي چي د هغه څخه امين په لوړ آواز سره ثابت دی او د شوافع وغيره مستدل دی دا وايي چي دا ټول حديثونه پر دې خبري محمول دي چي د اسلام په پيل کي رسول الله ﷺ د تعليم ورکولو په خاطر آمين په لوړ اواز سره وايه چي صحابه کرام پوه سي چي د سورة فاتحې وروسته آمين ويل پکار دي، صحابه کرام چي په دې پوه سوه نو بيا رسول الله ﷺ آمين په کرار اواز سره وايه، ابن همام رحمة الله عليه ويلي دي چي احمد رحمة الله عليه، ابو يعلي رحمة الله عليه، طبراني، دارمي او حاکم د شعبه رحمة الله عليه دا حديث نقل

کړی دی چي : علقمه ابن وائل د خپل پلار حضرت وائل ﷺ څخه نقل کوي چي هغه د رسول الله ﷺ سره لمونځ وکړ رسول الله ﷺ چي غير المغضوب عليهم ولا الضالين ته ورسيدی نو په کرار اواز سره يې آمين ووايه، د ابن عمر ﷺ په باره کي نقل سوي دي چي هغه وفرمايل: څلور شيان داسي دي چي امام ته په کرار اواز سره ويل پکار دي او هغه دادي: اول اعوذبالله ، دوهم بسم الله، دريم سبحانک اللهم او څلورم آمين.

د ابن مسعود ﷺ په باره کي هم نقل دي چي هغه به هم امين په کرار اواز سره وايه، ددې څخه پرته په دې خبره هم پوهيدل پکار دي چي د دعا کلمات په کرار اواز سره ويل غوره او صحيح دي ځکه چي الله تعالی خپله فرمايي (ادعوا ربکم تضرعا و خفية ) يعني د خپل رب څخه دعا په عاجزي او پټه وغواړئ.

او په دې کي شک نسته چي آمين هم دعا ده نو آمين کرار ويل په دې آيت باندي عمل کول دي او پر دې خبره اجماع ده چي آمين د قرآن کريم لفظ نه دی ځکه مناسب داده چي ددې آواز د قرآن پاک د اواز سره يو ډول نه وي څرنګه چي دا په مصحف (يعني د قرآن کريم په صفحو) کي ليکل جائز نه دي.

## د آمين برکت

﴿۷۸۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ زُهَيْرِ النُّمَيْرِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو زهير النميري ﷺ څخه روايت دی چي يوه شپه موږ د رسول الله ﷺ سره ووتلو

وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَأَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ قَدْ أَلَحَّ فِي الْمَسْأَلَةِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

او يو داسي سړي ته ورسيدو چي په سوال کولو کي يې د مبالغې څخه کار اخيستی رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْجَبَ إِنْ خَتَمَ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ بِأَيِّ شَيْءٍ يَخْتِمُ ؟ قَالَ بِآمِيْنَ. رواه أبو داود.

واجب يې کړل که مُهر يې کړل ، په حاضرينو کي يو سړي پوښتنه وکړه په څه شي سره يې مهر کړل ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : په آمين سره . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۷۷، رقم: ۹۳۸.

**تشريح** : (واجب سوه كه ختم يې كړه) ددې مطلب دادى كه دا سړې پر خپل دعا باندي په آمين ويلو سره مهر ولګوي يا پر آمين باندي ختم كړي نو دده لپاره جنت او مغفرت واجب سو يعني هغه د جنت او مغفرت حقدار سو يا د هغه دعا قبوله سوه.

د ختم دوې معناوي نقل سوي دي مهر لګول يا ختمول اوله معنى ددې حديث آمين خاتم رب العالمين په مناسبت زيات غوره او اولى دى، ددې مطلب دادى چي آمين د رب العالمين مهر دى ددې په وجه آفات او بلاګاني ختميږي ځرنګه چي په مهر سره خط ساتل كيږي يا هغه شيان قابل اعتماد كيږي چي پر هغه مهر لګيدلى وي.

د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو كه يو سړى د خپل پروردګار څخه دعا غواړي نو هغه ته پكار ده چي د دعاء دكلمو ويلو څخه وروسته دي آمين هم ووايي چي د هغه په بركته هغه د قاضي الحاجات په دربار كي د مقبوليت په مرتبې سره ونازول سي او هغه دعا كامله سي ځكه چي آمين په منزله د مهر دى.

**رسول الله ﷺ به د ماښام په لمانځه كي اوږد قرائت هم وايه**

﴿۷۸۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الْمَغْرِبَ بِسُوْرَةِ (الْأَعْرَافِ) فَرَّقَهَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ. رواه النسائي.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي رسول الله د ماښام په لمانځه كي سورة اعراف ووايه او په دواړو ركعتو كي يې دا سورت وويشى. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ۲\۱۷۰، رقم: ۹۹۰.

**تشريح** : رسول الله ﷺ د ماښام په لمانځه كي قرائت مختصر كړ خو كله به يې د جواز بيان لپاره اوږد قرائت هم وايه چي خلكو ته معلومه سي چي د ماښام په لمانځه كي اوږد قرائت ويل هم جائز دى، د ماښام په لمانځه كي سورة اعراف ويل ددې مقصد همدا وو، او كوم چي د وخت د تنګى تعلق دى په دې كي شک نسته چي د ماښام وخت د اوږد قرائت ګنجائش لري په خاصه توګه هر كله چي د شفق اطلاق پر سپين والي وكړل سي، په دواړو ركعتونو كي د ويش مطلب دادى چي رسول الله ﷺ به ددې سورت څه برخه په اول ركعت كي ويل او څه برخه به يې په دوهم ركعت كي ويل همدا سي پوره سورت به يې په دوو ركعتو كي ختموى.

## د سورة الفلق او سورة الناس فضيلت

﴿۷۹۰﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ كُنْتُ أَقُوْدُ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عقبة بن عامر ﷺ څخه روايت دی چي په يوه سفر کي مي د رسول الله ﷺ اوښ مهار

وَسَلَّمَ نَاقَتَهُ فِي السَّفَرِ فَقَالَ لِيْ يَا عُقْبَةُ أَلاَ أُعَلِّمُكَ خَيْرَ سُوْرَتَيْنِ قُرِئَتَا ؟

نيولی روان وم، ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل عقبه ! ايا زه تا ته دوه غوره سورتونه چي ويل کيږي ونه ښيم؟

فَعَلَّمَنِيْ ( قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَ قُلْ اَعُوْذُبِرَبِّ النَّاسِ) قَالَ فَلَمْ يَرَنِيْ

بيا يې ما ته (قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس) وښودل ، عقبه وايي هر کله چي

سُرِرْتُ بِهِمَا جِدًّا فَلَمَّا نَزَلَ لِصَلاَةِ الصُّبْحِ صَلَّى بِهِمَا صَلاَةَ الصُّبْحِ لِلنَّاسِ

رسول الله ﷺ ددې سورتو له کبله زه خوشحاله و نه ليدم نو د سهار په وخت کي په کښته کېدو سره يې د سهار لمونځ راکړ او په هغه کي يې دغه دواړه سورتونه وويل ،

فَلَمَّا فَرَغَ الْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ يَا عُقْبَةُ كَيْفَ رَأَيْتَ ؟ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي

کله چي د لمانځه څخه فارغ سو نو ما ته يې وويل : عقبه ! تا ددې فضيلت وليدی . احمد ، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۴\۱۴۹، ۱۵۰، وابوداؤد ۲\۱۵۲، رقم: ۱۴۶۲ والنسائي: ۲\۱۵۸، رقم: ۹۵۲.

**تشريح** : د غوره سورتونو مطلب دادی چي د شيطان مردود د مکر او فريب او د نفس د گمراهی څخه د الله تعالی د پناه غوښتلو په حالت کي معوذتين غوره سورتونه دي .

رسول الله ﷺ چي عقبه ﷺ ته د دغه سورتونو ښودلو وروسته وليدل چي هغه په دې سورتونو سره زيات خوشحاله نه سو ځکه چي د نورو سورتونو په ډول په دې سورتونو کي د الله تعالی د وحدانيت او پاکی بيان نسته نو رسول الله ﷺ د سهار په لمانځه کي دا داواړه سورتونه په ويلو سره دا وفرمايل: اې عقبه! تا ددې سورتونو فضيلت وليدی چي ما دا د سهار په لمانځه کي چي تر ټولو افضل لمونځ دي او په هغه کي اوږد قرائت ويل مستحب دی وويل .

## د جمعې په ورځ د ماښام د لمانځه قرائت

﴿۷۹۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ (قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ) وَ(قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ).

رواه في شرح السنة. ورواه ابن ماجه عن ابن عمر إلا أنه لم يذكر ليلة الجمعة

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د جمعې په شپه د ماښام په لمانځه کې (قل يا ايها الكافرون) او (قل هو الله احد) وويل. شرح السنه او ابن ماجه

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۳\۸۱، رقم: ۶۰۵. سنن ابن ماجه ۱\ ۲۷۲، رقم: ۸۳۳.

**تشريح**: په لمانځه کې د ماښام د لمانځه څخه مراد د ماښام فرض لمونځ دی، يعني رسول الله ﷺ به د جمعې په ورځ د ماښام په فرض لمانځه کې دا دواړه سورتونه ويل او دا هم احتمال دی چې د ماښام د لمانځه څخه د ماښام سنت مراد وي والله اعلم.

ابن حبان د قل هو الله الفاظ څخه وروسته دا الفاظ هم نقل کړي دي چې وفي العشاء سورة الجمعه والمنافقون يعني د جمعې په شپه کې به رسول الله ﷺ د ماخستن په لمانځه کې سورة جمعه او سورة منافقون ويل.

ابن ملک رحمة الله عليه ويلي دي دا حديث او دا دوه نور حديثونه پر دوام باندې محمول نه دي يعني د رسول الله ﷺ دا هميشه معمول (طريقه) نه وه بلکه کله به يې نور سورتونه هم ويل او کله به يې دې سورتونو قرائت کوی چې خلک پوه سي چې هر يو سورت ويل جائز دي يو خاص سورت ويل ضروري نه دی.

﴿۷۹۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَا أُحْصِيْ مَا سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ (قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ) وَ(قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ) رواه الترمذي. ورواه ابن ماجه عن أبي هريرة إلا أنه لم يذكر بعد المغرب.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې زه دا نه سم شميرلای چې ما څو ځله

د رسول الله ﷺ څخه د ماښام د لمانځه وړاندي سنتو كي او د سهار د لمانځه وړاندي دوه ركعاتو سنتو كي قل يا ايها الكافرون ويل اوريدلي دي . ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۲۹٦- ۲۹۷، رقم: ۴۳۱، سنن ابن ماجه: ۱\۳٦۹، رقم: ۱۱٦٦.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د ماښام په دوو ركعتو سنتو او د سهار په دوو ركعتو سنتو كي قل يا ايها الكافرون او قل هو الله احد دواړه سورتونه په دومره كثرت سره ويل چي زه هغه نه سم شميرلای .

﴿۷۹۳﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَاصَلَّيْتَ وَرَاءَ أَحَدٍ

حضرت سليمان بن يسار د ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت كوي چي ابو هريرة رضي الله عنه وويل: ما په هيڅ يو داسي سړي پسي لمونځ نه دی كړی

أَشْبَهَ صَلاَةً بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فُلاَنٍ قَالَ سُلَيْمَانَ صَلَّيْتُ

چي د رسول الله ﷺ د لمانځه مشابه وي پرته د فلاني سړي څخه (يعني حضرت علي رضي الله عنه يا دمديني حاكم چي د مروان د لوري ټاكل سوی وو) سليمان وايي ما هم په هغه سړي پسي لمونځ وكړ

خَلْفَهُ فَكَانَ يُطِيْلُ الرَّكْعَتَيْنِ الْأُوْلَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَيُخَفِّفُ الْأُخْرَيَيْنِ

هغه به د ماپښين په اولو دوو ركعتو كي اوږدوالی كوي او په آخري دوو . ركعتو كي به يې لنډوالی

وَيُخَفِّفُ الْعَصْرَ وَيَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ وَيَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ بِوَسَطِ

او د مازديگر په لمانځه كي به يې تخفيف كوی او په ماښام كي به يې كوچني كوچني سورتونه ويل او د ماخستن په لمانځه كي به يې درميانه سورتونه

الْمُفَصَّلِ وَيَقْرَأُ فِي الصُّبْحِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ . رواه النسائي وروى ابن ماجه إلى ويخفف العصر .

او د سهار په لمانځه كي به يې لوی سورتونه ويل . نسائي او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن النسائي ۲\۱٦۷، رقم: ۹۸۱، وابن ماجه ۱\۲۷۰، ۲۷۱، رقم: ۸۲۷.

**تشريح**: د فلاني سړي د تعين په اړه ځيني حضرات دا فرمايي چي د حضرت علي كرم الله

وجهه ذات مراد دی او د ځینو رایه داده چي د فلاني سړي څخه مراد هغه سړی مراد دی چي خلیفه مروان په مدینه کي حاکم ټاکلی وو .

په دې حدیث کي د ماپښین او مازدیګر قرائت په اجمالي توګه سره ذکر سوی دی دا نه دي ویل سوي دي چي رسول الله ﷺ به د ماپښین په لمانځه کي طوال مفصل ویل ، بلکه یوازي دومره ذکر سوي دي چي د ماپښین په لمانځه کي به یې اوږد قرائت وایه، همداسي د مازدیګر په لمانځه کي هم وضاحت نه دی سوی چي په هغه کي قصار مفصل ویل یا اوساط مفصل ، یوازي دومره ذکر سوي دي چي رسول الله ﷺ به د مازدیګر په لمانځه کي تخفیف کوی .

په هر حال د لمنځو د قرائت په اړه د فقهاؤ یو اصول او طریقه ټاکلې ده د هغې مقصد دادی چي په لمنځونو کي د قرائت ویلو په اړه په عملي توګه سره هیڅ خلل واقع نسي، او هغه دا چي د سهار او ماپښین په لمانځه کي طوال مفصل، د مازدیګر او ماخستن په لمانځه کي اوساط مفصل او د ماښام په لمانځه کي قصار مفصل وویل سي .

د دې مسئلې وضاحت د دې څخه مخکي هم د یو حدیث د تشریح په څنګ کي سوی دی او هلته د دې د اصطلاحي نومونو تعریفونه هم سوي دي ، یو وار بیا پوه سئ چي د فقهاؤ په اصطلاح کي مفصل د سورة حجرات څخه تر سورة والناس پوري سورتونه مراد دي ، دغه سورتونو ته مفصل د دې وجهي ویل کیږي چي د فصل معنی د جلاوالي ده نو د سورة حجرات څخه د دغه کوچني کوچني سورتو لړۍ پیل کیږي چي د یو بل په مینځ کي د بسم الله ویلو په وجه بیلیږي ، او بیا مفصل یعني د سورة حجرات څخه تر سورة والناس پوري سورتونه په درو درجو کي ویشل سوي دي : (۱) کوچني سورتونه، (۲) درمیانه سورتونه (۳) لوی سورتونه .

د سورة حجرات څخه تر سورة بروج پوري طوال مفصل یعني د مفصل لوی سورتونه دي .

د سورة بروج څخه تر سورة لم یکن پوري اوساط مفصل یعني د مفصل درمیاني سورتونه دي .

او د سورة لم یکن څخه تر سورة والناس پوري قصار مفصل یعني د مفصل کوچني سورتونه دي .

## په امام پسي د سورة فاتحې ویلو بیان

﴿۷۹۴﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كُنَّا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن الصامت رضی الله عنه څخه روایت دی چي موږ د نبي کریم ﷺ تر شا وو

فِيْ صَلَاةِ الْفَجْرِ فَقَرَأَ فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ لَعَلَّكُمْ تَقْرَؤُوْنَ

د سهار په لمانځه کي، قرائت يې پيل کړ نو پر رسول الله ﷺ باندي قرائت ويل بوج سول بيا چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو وه يې فرمايل: شايد تاسو يو څه وايا ست

خَلْفَ إِمَامِكُمْ ؟ قُلْنَا نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ لاَ تَفْعَلُوْا إِلاَّ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ

په خپل امام پسي، موږ عرض وکړ: هو، اې د الله رسوله! نو رسول الله ﷺ وفرمايل: پرته د الحمد لله څخه نور څه مه واياست

فَإِنَّهُ لاَ صَلاَةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ بِهَا . رواه أبو داود والترمذي وللنسائي معناه وفي رواية لأبي داود قال وأنا أقول مالي ينازعني القرآن ؟ فلا تقرؤوا بشيء من القرآن إذا جهرت إلا بأم القرآن .

ځکه چي ثوک الحمد لله و نه وايي نو د هغه لمونځ نه کيږي (ابوداؤد، ترمذي،نسائي) او د ابوداؤد په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په جواب اوريدو سره وفرمايل هر کله چي قرائت پر ما دروند سو نو په خپل زړه کي مي ويلى دي چي قرآن ولي پر ما دروند سوى دى هر کله چي جهري لمونځ وي نو پرته د الحمد لله څخه نور څه مه واياست.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\۵۱۵، رقم: ۸۲۳ والترمذي ۲\۱۱۶، رقم: ۳۱۱ والنسائي ۲\۱۴۱، رقم: ۹۱۹.

**تشريح**: رسول الله ﷺ په لمانځه کي په لوړ اواز سره قرات وايه وروسته مقتديان صحابه کرام پر ځاي د دې چي پته خوله سي د رسول الله ﷺ قرائت يې اوريدی او خپله يې هم قرات پيل کړ د هغه تنيجه دا سوه چي د مقتديانو قرائت د رسول الله ﷺ په قرائت کي اثرولوېدی او د رسول الله ﷺ په لمانځه کي حرج پيدا سو چي د هغه په وجه د رسول الله ﷺ لپاره قرائت ويل مشکل سول ځکه ډير واره پر کامل شي باندي د ناقص شی هم اثر کيږي څرنګه چي د کتاب الطهارت يو حديث تير سوى دى چي يوه ورځ رسول الله ﷺ د سهار په لمانځه کي قرائت پيل کړ بيا ناپامه ودريدی بيا د دې دريدو وجه يې دا بيان کړه چي داسي خلک په ما پسي لمونځ کوي چي د هغوى اودس ناقص دی د هغه په وجه زما پر لمانځه او قرائت اثر لويږي په ښکاره خو د دې حديث څخه دا معلوميږي چي په لمانځه کي سورة فاتحه ويل فرض ده مګر څه چي مخکي عرض سوى دى د امامانو په نزد په مسئله کي اختلاف دى د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دادى چي امام او منفرد يعني يوائي لمونځ کونکي لپاره د سورة فاتحې ويل واجب دى

مګر د مقتدي لپاره واجب نه دی که څه هم لمونځ د لوړ اواز وي يا د کرار اواز د هغوی دليل د قرآن کريم دا آيت دی :

وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا

ژباړه : (په لمانځه کي) چي کله قرآن کريم ويل کيږي نو اورئ يې او پټه خوله سئ .
امام ابوحنيفة رحمه الله دغه حديث پر ابتداء باندي محمول کوي يعني دا حکم د اسلام په ابتداء کي وو بيا منسوخ سو .

﴿۷۹۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ د جهري لمونځ څخه فارغ سو

صَلَاةٍ جَهَرَ فِيْهَا بِالْقِرَاءَةِ فَقَالَ هَلْ قَرَأَ مَعِيَ أَحَدٌ مِّنْكُمْ آنِفًا ؟ فَقَالَ رَجُلٌ

نو لمونځ کونکو ته به يې وفرمايل : ايا په تاسو کي يو چا زما سره اوس اوس (په لمانځه کي) قرائت وايه، يو سړي عرض وکړ

نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ إِنِّي أَقُوْلُ مَا لِيْ أُنَازِعُ الْقُرْآنَ. قَالَ فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ

هو، اې دالله رسوله!، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ما (په زړه کي) ويل څه وجه ده چي ما ته د قرآن په ويلو کي ستونزه پېښيږي ، د راوي بيان دي چي بيا خلک منعه سوه

الْقِرَاءَةِ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا جَهَرَ فِيْهِ بِالْقِرَاءَةِ مِنَ الصَّلَوَاتِ حِيْنَ سَمِعُوْا ذٰلِكَ مِنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه مالك وأحمد وأبو داود والترمذي والنسائي وروى ابن ماجه نحوه .

د رسول الله ﷺ سره په جهر لمنځو کي د قرآن ويلو څخه چي دا يې واوريدل د رسول الله ﷺ څخه. مالک، احمد، ابوداؤد، ترمذي، نسائي او ابن ماجه

**تخريج:** الامام مالک في الموطا ۱\ ۸۶– ۸۷، رقم: ۴۴ والامام احمد في مسنده ۲\ ۲۴۰، وابوداؤد ۱\ ۵۱۶، ۵۱۷، رقم: ۸۲۶ والترمذي ۲\ ۱۱۸، رقم: ۳۱۲ والنسائي ۲\ ۱۴۰، ۱۴۱، رقم: ۹۱۸ وابن ماجه : ۱\ ۲۷۶، رقم: ۸۴۸.

**تشریح** : د دې حدیث څخه په څرګنده معلومه سوه چې صحابه کرامو په جهري لمونځ کې په امام پسي مطلقا څه نه ویل نه به يې د سورة فاتحې قرائت کوی او نه د یو بل سورة او آیت نو د حنفیه مذهب ثابت سو چې په امام پسي د مقتدیانو قرائت کول جائز نه دی

کیدای سي چې دا حدیث دي د مخکې تیر حدیث لپاره ناسخ وي چې په هغه کې ویل سوي دي چې په امام پسي سورة فاتحه ویل پکار دي ابو هریره ﷺ وروسته اسلام راوړی دی ځکه د هغه روایت سوی حدیث به هم ددې حدیث څخه وروسته وي او ښکاره ده چې وروسته حکم د مخکې حکم لپاره ناسخ وي .

﴿۴۹۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَالْبَيَاضِيِّ قَالاَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمُصَلِّيَ يُنَاجِي رَبَّهُ فَلْيَنْظُرْ مَا يُنَاجِيهِ بِهِ وَلاَ يَجْهَرْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ بِالْقُرْآنِ . رواه أحمد .

د حضرت ابن عمر او بیاضي (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : لمونځ کونکی د الله تعالی مناجات کوي نو پکار دي چې کوم مناجات هغه کوي په هغه کې فکر کوي د بل ویونکي د ویلو پر وخت په لوړ آواز سره قرآن نه وو ایي . احمد .

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۶۷.

**تشریح** : د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چې کوم سړی قرآن کریم وایي که څه هم په لمانځه کې يې وایي یا د لمونځ څخه پرته نو هغه ته ددې خبرې خیال ساتل پکار دي چې د هغه اواز د بل لمونځ کونکي یا دوهم قاري پر اواز پورته نسي همداسي د یوه ذکر کونکي یا بیده سړي مخکې دي هم په لوړ اواز سره نه وایي چې دغو خلکو ته د هغه په وجه تکلیف ونه رسیږي .

## د امام پیروي کول

﴿۴۹۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوْا وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوْا . رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه

د حضرت ابو هریرة ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : امام ددې لپاره ټاکل سوی دی چې تاسو د هغه پیروي وکړئ هر کله چې هغه الله اکبر ووایي نو تاسو هم الله اکبر ووایاست

او کله چي هغه په لمانځه کي قرائت وايي نو تاسو پټه خوله اوسئ. ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۰۴- ۴۰۵، رقم: ۶۰۴، والنسائي ۲\ ۱۴۲، رقم: ۹۲۱ وابن ماجه: ۱\ ۲۷۶، رقم: ۸۴۶.

**تشريح**: فاذا كبر فكبروا په وضاحت کولو سره علامه ابن حجر فرمايي چي مقتدی دي تکبير د امام د تکبير ويلو وروسته وايي نه دي يې د هغه سره وايي او نه دي يې د هغه څخه مخکي وايي او دا حکم په تکبير تحريمه کي خو واجب دی البته په نورو تکبيرو کي مستحب دی د حديث دوهم جزء فاذا قراء څخه مراد مطلق قرائت دی يعني که څه هم امام په لوړ اواز سره قرائت کوي يا په کرار اواز سره قرائت کوي په دواړو صورتونو کي مقتديانو ته پټه خوله اختيارول پکار ده ځکه چي رسول الله ﷺ (فانصتوا) يعني چپ اوسئ وفرمايل، فاستمعوا يعني وا يې ورئ نه وفرمايل، ارشاد رباني دی :

وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُواْ لَهُ وَأَنصِتُواْ

ژباړه : هر کله چي قرآن کريم ويل کيږي نو (په لوړ آواز کي د ويلو په صورت کي) هغه اورئ او (د کرار آواز ويلو په صورت کي ) پټه خوله اوسئ، ددغه څخه معلومه سوه چي په امام پسي د مقتديانو قرائت ويل مطلق منعه دی که لمونځ جهري (لوړ آواز والا) وي او يا سري (کښته اوازوالا) وي.

## د سورة فاتحې په قرائت کي د امامانو مذهب

امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي مقتدي ته سورة فاتحه ويل که څه هم لمونځ جهري وي يا سري واجب دی او د سورة فاتحې څخه پرته بل سورة وغيره ويل جائز دی.

امام احمد رحمة الله عليه، امام مالک رحمة الله عليه او د يوقول سره سم خپله د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب هم دادی چي د مقتدي لپاره سورة فاتحه ويل په سري لمانځه کي واجب دی او په جهري لمانځه کي محض د امام قرائت اوريدل کافي دی.

د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد لمونځ سري وي که جهري په دواړو صورتونو کي قرائت د مقتدي لپاره ممنوع دی او د صاحبين يعني امام ابو يوسف او امام محمد رحمة الله عليه په نزد هم مقتدي ته ويل مکروه دی، امام محمد چي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه جليل القدر شاګرد وو او د فقه حنفيه امام دی فرمايي چي د صحابه کرامو د يو جماعت د قول مطابق په امام پسي که مقتدی د سورة فاتحې قرائت وکړي نو لمونځ فاسد کيږي نو په دغه وجه د احتياط تقاضا داده چي عمل دي پر هغه دليل وکړي چي زيات قوي او مضبوط وي د

حنفيه دليل دا حديث دی.

من كان له امام فقراءة الامام قراءة له

ژباړه: يعني په لمانځه کي د کوم سړي چي امام وي نو د امام قرائت د هغه (مقتدي) قرائت دی.

دا حديث بالکل صحيح دی، د بخاري او مسلم څخه پرته نور ټولو دا نقل کړی دی او په هدايه کي خو تر دې مذکور دي چي: عليه اجماع الصحابه يعني پر دې د صحابه کرامو اجماع او اتفاق وو.

## که د چا قران ياد نه وي نو څه ووايي؟

﴿۷۹۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِيْ أَوْفٰى قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن ابي اوفی رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّيْ لاَ أَسْتَطِيْعُ أَنْ آخُذَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْئًا فَعَلِّمْنِيْ مَا يُجْزِئُنِيْ

او و يې ويل: زما سره د قرآن کريم څخه د څه يادولو توان نسته نو ما ته يو داسي شی وښيه چي زما لپاره کافي وي،

قَالَ قُلْ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته دا وايه: (سبحان الله ......) (الله پاک دی او ټول تعريفونه الله لره دي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته الله ډير لوی دی او د الله د مرستي څخه پرته د بدو څخه د راګرځېدو او پر عبادت کولو (د هيچا) توان نسته)

إِلاَّ بِاللهِ. قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ هٰذَا لِلّٰهِ فَمَا ذَا لِيْ؟ قَالَ قُلْ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْنِيْ

هغه سړي عرض وکړ اې د الله رسوله! دا خو د الله جل جلاله لپاره سو زما لپاره څه دي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د ځان لپاره دا وايه: (اللهم ....) اې الله پر ما رحم وکړې

وَعَافِنِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ. فَقَالَ هٰكَذَا بِيَدَيْهِ وَقَبَضَهُمَا. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ

ما سلامت ولرې ما ته هدايت وکړې او ما ته روزي راکړې) نو هغه سړي په خپلو دواړو لاسو سره داسي اشاره وکړه او بند يې کړل نو رسول الله ﷺ وفرمايل

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّا هٰذَا فَقَدْ مَلَأَ يَدَيْهِ مِنَ الْخَيْرِ . رواه أبو داود وانتهت رواية النسائي عند قوله إلا بالله

ده خپل لاسونه د خير څخه ډک کړل. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۵۲۱، رقم: ۸۳۲، والنسائي ۲\۱۴۳، رقم: ۹۲۳.

**تشريح**: د حديث د آخري جملو مطلب دادی چي پوښتنه کونکي د قرائت يو بدل وپوښتی او رسول الله ﷺ هغه ته وښودل نو هغه په خپلو دواړو لاسونو سره اشاره وکړه او هغه ېې بند کړل او په خپل دې عمل سره ګويا هغه ددې خبري اقرار وکړ چي رسول الله ﷺ څه وفرمايل ما هغه رښتيا او حق وګڼل او هغه مي په يقين او اعتماد سره په زړه کي کښينول څرنګه چي يو خاص سړي ته يو عهده او اعلي شی لاس ته ورسي نو هغه شی په خپل موټو کي بند کړي.

مصنف مشکوٰۃ علیه الرحمة دا حديث په باب القرائت کي نقل کړی دی ددې څخه دا خبره ښکاره سوه چي پوښتنه کوونکي د قرآن کريم څخه دومره څه هم نه سوه يادولای چي د هغه سره ېې لمونځ صحيح سوی وای خو دلته يو شکل پيدا کيږي او هغه دا چي ليري معلوميږي چي يو سړی چي د عربي ژبي څخه پوره خبر وي ايا دومره ېې هم نه سوه يادولای چي هغه په لمانځه کي ووايي بيا داچي څومره کلمات هغه ته ښودل سوي دي که هغه د درو کلماتو برابر د قرآن څخه څه يادکړي نو هغه د لمانځه د ادا کولو لپاره بس وه او ددې لنډ جواب دادی چي پوښتنه کوونکي هغه وخت مسلمان سوی وو چي د لمانځه وخت راغلی او هغه په سمدستي توګه پر هغه قادر کيدای نه سو چي د قرآن څخه څه ياد کړي ځکه د آسانی او سهولت لپاره دا کلمات ورته وښودل سول.

بيا دا حديث به د اسلام پر پيل باندي محمول کيږي چي په هغه ورځو کي د ديني احکام او مسائل د نفاذ په اړه زياته اساني او سهولت سره سم دا کلمې ورته وښودل سوې.

## پر احکام الهي باندي د رسول الله ﷺ د عمل يو مثال

﴿۷۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَرَأَ (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى) قَالَ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى. رواه أبو داود

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به کله سبح اسم ربک الاعلی وايه نو

دا كلمات به يې ارشاد فرمايل : سبحان ربي الاعلى . ابوداؤد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\ ۲۳۲ وابوداؤد ۱\ ۵۴۹، رقم: ۸۸۳.

**تشريح**: رسول الله ﷺ چي پر احكام الهي باندي څومره عمل كوى ددې اندازه ددې حديث څخه كيږي چي د رسول الله ﷺ د مبارك ژوند بنيادي اصول هم دا وو چي پروردګار عالم كوم حكم وكړي سمدستي د هغه اطاعت او فرمانبردادري وكړي او د هغه وروسته په دغه حكم خپل متبعين هم روان كړي، رسول الله ﷺ چي به كله په لمانځه كي سورة اعلى وايه نو څرنګه چي ددې سورة د پيل په الفاظو كي سبح اسم ربک الاعلى مطلب دادى چي د خپل پروردګار پاكي بيان كړي چي د لوړي مرتبې خاوند دى، ځكه رسول الله ﷺ به د هغه پر ځاى راوړلو پر وخت دا وفرمايل چي سبحان ربي الاعلى زه د خپل پروردګار پاكي بيانوم چي ډير لويي مرتبې والا دى.

## په لمانځه كي د كومو آياتونو د قرآئت وروسته څه ويل پكار دي

﴿۸۰۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي ووايي

مِنْكُمْ بِالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ فَانْتَهٰى إِلٰى (أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِيْنَ) فَلْيَقُلْ

په تاسو كي (والتين والزيتون) او تر (اليس الله باحكم الحاكمين) پوري ورسيږي نو دي وايي

بَلٰى وَأَنَا عَلٰى ذٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِيْنَ . وَمَنْ قَرَأَ (لاَ أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ)

(بلى وانا على ذالک من الشاهدين) (هو، او زه پر دې شاهدي يم) او څوک چي (لا اقسم بيوم القيمة) ووايي

فَانْتَهٰى إِلٰى (أَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلٰى أَنْ يُّحْيِيَ الْمَوْتٰى) فَلْيَقُلْ بَلٰى. وَمَنْ قَرَأَ

او تر (اليس ذلک بقادر على ان يحيى الموتى) پوري ورسيږي نو دا دي ووايي (بلى) يعني هو، پر دې قادر دى، او څوک چي ووايي

(وَالْمُرْسَلاَتِ) فَبَلَغَ (فَبِأَيِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُوْنَ) فَلْيَقُلْ آمَنَّا بِاللّٰهِ. رواه أبو داود والترمذي إلى قوله وأنا على ذلك من الشاهدين.

والمرسلات او (تر فباي حديث بعده يومنون) پوري ورسيږي نو دا دي ووايي (امنابالله) موږ پر الله ایمان راوړی دی. ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۵۰، رقم: ۸۸۷، والترمذي ۵\ ۴۱۳، رقم: ۳۳۴۷.

**تشريح**: ددې اياتونو يا دا ډول نورو آياتونو د جواب ورکولو په اړه د علماؤ په نزد اختلاف دی ، امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي که دا آياتونه په لمانځه کي ويل کيږي يا د لمانځه څخه وروسته ويل کيږي په هر صورت ددې په جواب کي پورتني الفاظ ويل پکار دي او لمونځ که څه هم نفل وي يا فرض، امام مالک رحمة الله عليه فرمايي چي د لمانځه څخه دباندي ويل او په نفل لمنځو کي د قرائت ويلو په صورت کي خو جواب ورکول پکار دي په فرض لمنځو کي نه.

امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه فرمايي يوازي د لمانځه څخه دباندي ويلو په صورت کي جواب دي ورکړل سي په لمانځه کي نه، لمونځ که فرض وي يا نفل چي دا وهم رانسي چي دا الفاظ د قرآن کريم دي.

علامه توريشتي رحمة الله عليه فرمايي که يو سړی د حديث پر ظاهري اطلاق باندي په نظر کولو سره ووايي چي د رسول الله ﷺ دا حکم خو د لمانځه کونکي په اړه دی (نو پکار ده چي دا جواب په لمانځه کي هم ورکړل سي) نو موږ به وايو چي کيدای سي چي دا حکم د نفل لمنځو په باره کي وي د فرض لمنځو په باره کي نه وي ځکه چي خپله د رسول الله ﷺ په باره کي د حذيفه رضي الله عنه دا روايت منقول دی چي رسول الله ﷺ به د شپې په لمانځه کي هر کله چي يو داسي آيت ته به ورسيدی چي په هغه کي به د رحمت الهي ذکر کيدی نو رسول الله ﷺ به هلته په تم کېدو سره د پروردګار څخه د رحمت د طلب کولو خواست کوی او کله چي به يو داسي آيت ته ورسيدی چي په هغه کي به د عذاب الهي ذکر کيدی نو رسول الله ﷺ به هلته قرائت په تم کولو سره د پروردګار د عذاب څخه پناه غوښتل او د رسول الله ﷺ دا معمول يا حکم هيڅ صحابي هم د جهري فرضو لمنځو په اړه روايت کړی نه دی.

﴿۸۰۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَصْحَابِهِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو يو ټولۍ ته تشريف يووړ

فَقَرَأَ عَلَيْهِمْ سُورَةَ الرَّحْمٰنِ مِنْ أَوَّلِهَا إِلَى آخِرِهَا فَسَكَتُوا فَقَالَ لَقَدْ قَرَأْتُهَا

او دهغوی په وړاندي يې د سر څخه تر پايه پوري سورة الرحمن ووايه او صحابه کرامو پټه

خوله اوریدی کله چي ختم سو نو رسول الله ﷺ وفرمایل : ما وو ایه د غه سورت

عَلَى الْجِنِّ لَيْلَةَ الْجِنِّ فَكَانُوا أَحْسَنَ مَرْدُودًا مِنْكُمْ كُنْتُ كُلَّمَا أَتَيْتُ عَلَى قَوْلِهِ

د پیریانانو په وړاندي په هغه شپه چي پیریانانو اسلام قبلوی او د قرآن اوریدو لپاره یو ځای سوي وه هغوی ستاسو ځخه زیات ښه جواب ورکونکي وه کله چي به

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ قَالُوا لَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ فَلَكَ الْحَمْدُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

(فباي الاء ربكما تكذبان) وایه ، نو هغوی به ویل (لا بشئ .... فلک الحمد ) (اې پروردګاره! ستا په نعمتو کي داسي هیڅ نسته چي هغه مونږ دروا غ کړای سو او تعریف هم تالره دی ).
ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی .

**تخريج** : سنن الترمذي ۵\ ۳۷۲، ۳۷۳، رقم: ۳۲۹۱.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### په دوو رکعتو کي یو سورت ویل

﴿۸۰۲﴾ : عَنْ مُعَاذِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْجُهَنِيِّ قَالَ إِنَّ رَجُلاً مِّنْ جُهَيْنَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ

د معاذ بن عبد الله الجهني رضي الله عنه ځخه روایت دی چي د جهینه قبیلې یو سړي ما ته وویل چي هغه

سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي الصُّبْحِ ( إِذَا زُلْزِلَتْ) فِيْ

د سهار په لمانځه کي د رسول الله ﷺ ځخه (اذا زلزلت الارض) اورېدلی دی

الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا فَلَا أَدْرِيْ أَنَسِيَ أَمْ قَرَأَ ذٰلِكَ عَمْدًا . رواه أبو داود

په دواړو رکعتونو کي . زه نه سم ویلای چي رسول الله ﷺ په قصد سره داسي وکړل او که په هیره سره . ابوداؤد

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱\ ۵۱۰، ۵۱۱، رقم: ۸۱۶.

**تشريح** : مطلب دادی چي د سهار په دوو رکعتو کي يو سورة اذا زلزلت الارض زلزالها داسي وويلو چي په اول رکعت کي يې پوره سورت وواية بيا په دوهم رکعت کي يې هم هغه سورت پوره وواية او په ښکاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ داسي په قصد سره د بيان جواز لپاره کړی وو چي خلکو ته معلومه سي چي اصل سنت داسي هم ادا کيږي تر څو پوري چي د مسئلې تعلق دی نو خبره داده چي افضل تکرار کول دي يعني يو سورت دی په دوو رکعتو کي مکرر نه ويل کيږي او خصوصا په فرائض کي خو د دې خيال ساتل پکار دي .

﴿۸۰۳﴾: وَعَنْ عُرْوَةَ قَالَ إِنَّ أَبَا بَكْرِ الصِّدِّيْقِ صَلَّى الصُّبْحَ فَقَرَأَ فِيْهِمَا بِسُوْرَةِ الْبَقَرَةِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا . رواه مالك .

د حضرت عروة رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابوبکر صديق رضي الله عنه د سهار لمونځ وکړ او په دواړو رکعتو کي يې سورة بقرة وويل . مالک

**تخريج** : الامام مالک في الموطا ۱\۸۲، رقم: ۳۳.

**تشريح** : په دواړو رکعتونو کي د سورة بقره ويلو مطلب دادی چي د دې سورة څه برخه يې په يوه رکعت کي او دا يې هم د بيان جواز لپاره وکړل ځکه چي د رسول الله ﷺ پر دې هميشتوب ثابت نه دی بلکه رسول الله ﷺ به اکثر په يوه رکعت کي پوره سورت وايه او په دواړو رکعتو کي يو سورت همداسي په متفرقه توګه سره ويل نادر دي .

## حضرت عثمان رضي الله عنه به د سهار په لمانځه کي سورة يوسف زيات وايه

﴿۸۰۴﴾: وَعَنِ الْفَرَافِصَةِ بْنِ عُمَيْرِ الْحَنَفِيِّ قَالَ مَا أَخَذْتُ سُوْرَةَ يُوْسُفَ إِلاَّ مِنْ قِرَاءَةِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ إِيَّاهَا فِي الصُّبْحِ مِنْ كَثْرَةِ مَا كَانَ يُرَدِّدُهَا . رواه مالك

د حضرت فرافصه[۱] بن عمير الحنفي رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما سورة يوسف د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه په دا ډول ياد کړی دی چي هغه به اکثر د سهار په لمانځه کي وايه . مالک

**تخريج** : الامام مالک في الموطا ۱\۸۲، رقم: ۳۵.

---

۱ - فرافصه د مديني منورې او سيدونکی او مشهور تابعي دی ، د قبيلې بن حنفيه په لور د نسبت په وجه حنفي ورته ويل کيږي .

**تشريح** : كه دا اشكال پيدا اسي چي علماء خو په لمنځو كي يو خاص متعين سورت باندي هم هميشه ويل مكروه ليكي ځكه چي د قرآن كريم پاته سورتونه پريښودل لازم نسي حالانكه د حضرت عثمان رضي الله عنه دا معمول ددې منافي دى نو ددې جواب به داوي چي علماء چي مكروه ليكي ددې شخه د هغوى مراد په ټولو لمنځو كي پر يو متعين سورت باندي همېشتوب كول دي او د حضرت عثمان رضي الله عنه چي كوم معمول ثابت دى هغه داسي نه دى بلكه هغوى خو يوازي د سهار په لمانځه كي سورة يوسف ډير وايه په ټولو لمنځونو كي نه . ځيني علماء د سورة يوسف دا اثر نقلوي چي سورة يوسف په ويلو باندي هميشتوب كول د شهادت د سعادت حاصلولو سبب دى چي د هغه ښكاره ثبوت خپله د حضرت عثمان رضي الله عنه ذات دى چي شهيد سو .

﴿۸۰۵﴾: وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ قَالَ صَلَّيْنَا وَرَاءَ عُمَرَ ابْنِ الْخَطَّابِ الصُّبْحَ

د عامر بن ربيعة رضي الله عنه شخه روايت دى چي ما په عمر بن الخطاب رضي الله عنه پسي د سهار لمونځ وكړ

فَقَرَأَ فِيْهِمَا بِسُوْرَةِ يُوْسُفَ وَسُوْرَةِ الْحَجِّ قِرَاءَةً بَطِيْئَةً قِيْلَ لَهُ إِذًا لَقَدْ كَانَ

هغه په دواړو ركعتو كي سورة يوسف او سورة حج په كراره كراره وويل ، د عامر شخه پوښتنه وسول چي حضرت عمر رضي الله عنه به

يَقُوْمُ حِيْنَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ قَالَ أَجَلْ . رواه مالك .

د سهار په اول وخت كي د لمانځه لپاره دريدى ؟ هغه جواب وركړ : هو . مالك

**تخريج** : الامام مالک في الموطا ۱\ ۸۲، رقم: ۳۴.

**تشريح** : د سهار په لمانځه كي په اول وخت كي په اتفاق سره د ټولو په نزد جائز دى دا حديث پر جواز باندي محمول دى مختار يعني اوليت باندي نه دى ځكه چي ددې حديث شخه په هيڅ طريقه دا نه ثابتيږي چي حضرت عمر رضي الله عنه به هميشه په اول وخت كي دريدى .

﴿۸۰۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ مَا مِنَ الْمُفَصَّلِ سُوْرَةٌ صَغِيْرَةٌ وَلَا كَبِيْرَةٌ إِلَّا قَدْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّ بِهَا النَّاسَ فِي الصَّلَاةِ الْمَكْتُوْبَةِ . رواه مالك .

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کوي چي په مفصل سورتو کي هيڅ یو کوچنی یا لوی سورت رسول الله ﷺ په فرض لمانځه کي نه دی پرې ایښی چي ما د رسول الله ﷺ څخه نه وي اوریدلی. مالک

**تخریج**: لم نجده عند مالک، بل هو عند ابي داؤد بلفظه ۱\ ۵۱۰، رقم: ۸۱۴.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د بیان جواز په توګه مفصل ټوله سورتونه په جلا وختونو کي په ویلو سره خلکو ته دا وښودل چي په لمانځه کي د هر سورت ویل جائز دي.

﴿۸۰۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَرَأَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ بِ (حم الدُّخَانِ). رواه النسائي مرسلا.

د حضرت عبدالله رضی الله عنه څخه روایت دی چي د ماښام په لمانځه کي رسول الله ﷺ سورة حم الدخان ووایه. نسائي

**تخریج**: سنن النسائي ۲\ ۱۶۹، رقم: ۹۸۷.

**تشریح**: دلته دوه احتمال دي یا خو رسول الله ﷺ د ماښام په دواړو رکعتو کي حم الدخان پوري سورت ووایه یا دا چي د هغه څه برخه یې لږ لږ په دواړو رکعتو کي وویل والله اعلم.

========

# بَابُ الرُّكُوْعِ (د رکوع بیان)

د رکوع معنی په لغت کي کښته کېدل دي او د شریعت په اصطلاح کي د لمانځه یو رکن یعني د هغه حالت نوم دی کله چي په قیام کي د قرائت څخه د فارغیدو وروسته سر کښته کړي چي د قرآن او حدیث څخه ثابت دي د دې په باره کي دا امتیاز امت محمدیه ته حاصل دی چي د رکوع رکن یوازي د دې امت په لمانځه کي مشروع دی د نورو امتونو په لمنځو کي مشروع نه وو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### رکوع او سجده سم کوئ

﴿۸۰۸﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقِيْمُوا الرُّكُوْعَ

وَالسُّجُودَ فَوَاللهِ إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ بَعْدِي . متفق عليه

د حضرت انس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : رکوع او سجده په ښه ډول کوئ په الله دي مي قسم وي زه تاسو د شا د لوري څخه هم وینم . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۲۵ |۲ ، رقم: ۷۴۲ ومسلم ۱\ ۳۱۹ - ۳۲۰، رقم: ۱۱۰-۴۲۵.

**تشریح** : اقیموا الرکوع والسجود مطلب دا چي رکوع او سجده د قاعدې سره سم په کراره کراره په ښه اطمینان او سکون سره کوئ دا ارکان په تلوار سره مه کوئ چي په هغه سره نه رکوع په پوره توګه ادا سي او نه سجده ، په حقیقیتي معنی کي د سجدې ویلو مستحق وي. . د خپل تر شا وروسته لیدو مطلب دا دی چي څرنګه تاسو خلک زما په مخ خوا کي په نظر راځئ همداسي د معجزې په ډول تاسو خلک زما تر شا هم په نظر راځئ او ستاسو پر حرکاتو او سکناتو ټولو باندي زما نظر وي ، ددې مسئلې وضاحت په ښه ډول د باب صفة الصلوة په دریم فصل کي تیر سوی دی .

﴿۸۰۹﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كَانَ رُكُوعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ سُجُودُهُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ وَ إِذَا رَفَعَ مِنَ الرُّكُوعِ مَا خَلَا الْقِيَامَ وَالْقُعُودَ قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ . متفق عليه

د حضرت براء ﷛ څخه روایت دی چي د ناستي او ولاړي څخه پرته د رسول الله ﷺ رکوع ، سجده، د دوو سجدو په منځ کي ناسته او د رکوع څخه پورته کیدل دا څلور سره شیان به په یوه اندازه وه . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۲۷۶، رقم: ۷۹۲ ومسلم ۱\ ۳۴۳، رقم : ۱۹۳- ۴۷۱.

**تشریح** : په دې حدیث کي د رسول الله ﷺ د لمانځه د ارکانو مقدار داسي بیانیږي چي څلور ارکان یعني رکوع ، قومه ،سجده .او جلسه ټول په خپلو کي برابر وه، البته په قیام کي به به قرائت وایه او په قعده کي به به التحیات ویل ځکه نو دا دواړه ارکان به د پاته ارکانو په مقابله کي اوږده وه .

## د رسول الله ﷺ قومه او جلسه

﴿۸۱۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ قَامَ حَتَّى نَقُولَ قَدْ أَوْهَمَ ثُمَّ يَسْجُدُ وَيَقْعُدُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ حَتَّى نَقُولَ قَدْ أَوْهَمَ . رواه مسلم

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی کله چي به رسول الله ﷺ سمع الله لمن حمده وو وایه نو دریدی به تر دې چي زموږ به دا خیال سو چي رسول الله ﷺ شاید هغه رکعت پرېښودی بیا به رسول الله ﷺ سجدې ته تلی او د دواړو سجدو په منځ کي به دومره کښېنستی چي زموږ به بیا هم هغه خیال سو . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\ ۳۴۴، رقم: ۱۹۶- ۴۷۳.

**تشریح**: د حضرت انس رضی الله عنه د ارشاد مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د رکوع څخه سر پورته کړ نو په قومه کي به تر ډېره وخته پوري ولاړ وو تر دې چي ډېر واره تر دومره وخته پوري په قومه کي پاته کیدی چي موږ به په دې گمان کي اخته کېدو چي کیدای سي رسول الله ﷺ دا رکعت چي هغه د رکوع څخه رسول الله ﷺ فارغ سو ختم کړ او اوس د نوي سره لمونځ بې پیل کړ همداسي رسول الله ﷺ د پورته کیدو سره د دواړو سجدو په مینځ په جلسه کي تر دومره وخته پوري به کښېنستی چي موږ ته به خیال راغلی چي رسول الله ﷺ د اولي سجدې چي د هغه څخه بې اوس سر پورته کړی دی ختم کړې ده او په ښکاره دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ به په قومه او جلسه کي دومره اوږدوالی په نفل لمنځو کي کوی او دا هم امکان دی چي د بیان جواز په خاطر په فرض لمنځو کي هم کله کله کړی وي .

﴿۸۱۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقُولَ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي يَتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ. متفق علیه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به په خپل رکوع او سجده کي زیات وخت دا الفاظ ویل : سبحانک اللهم ربنا و بحمدک اللهم اغفرلي .... . بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۹۹، رقم: ۸۱۷ ومسلم ۱\۳۵۰، رقم: ۲۱۷- ۴۸۴.

**تشريح** : مطلب دادی چي په قرآن کريم کي الله تعالی فرمايلي دي چي فسبح بحمد ربک واستغفره يعني د خپل پروردگار د تعريف سره پاکي بيانوه او د هغه څخه بخښنه غواړه ځکه چي رسول الله ﷺ ددې حکم پر ځاي راوړلو لپاره به رکوع او سجود کي د خپل پروردگار تسبيح او تعريف کوي او د هغه څخه يې مغفرت غوښتی ځکه چي د خشوع او خضوع په ټولو مواقعو او احوالو کي د رکوع او سجود ډېره ښه موقع او ځای دی د ځينو نورو حديثو څخه هم دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به د رکوع او سجود څخه پرته ددې دعا ورد کوی په ځينو حديثو کي ذکر دي چي سورة اذا جاء په هغه کي دا ايت مذکور دی د نازليدو وروسته رسول الله ﷺ په اخر عمر کي دا ذکر کوی.

﴿۸۱۲﴾: وَعَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوحِ. رواه مسلم

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په سجده او رکوع کي دا الفاظ هم ويل: ډېر پاک دی د ملائکو او جبرائيل پروردگار. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۳۵۳، رقم: ۲۲۳- ۴۸۷.

## په سجده او رکوع کي قرانکريم ويل منعه دي

﴿۸۱۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا إِنِّي نُهِيتُ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خبردار! زه منعه کړل سوی يم

أَنْ أَقْرَأَ الْقُرْآنَ رَاكِعًا أَوْ سَاجِدًا فَأَمَّا الرُّكُوعُ فَعَظِّمُوا فِيهِ الرَّبَّ عَزَّ وَجَلَّ

چي په رکوع او سجده کي قرآن کريم ووايم، تاسو هم په رکوع کي د الله جل جلاله عظمت بيانوئ

وَأَمَّا السُّجُودُ فَاجْتَهِدُوا فِي الدُّعَاءِ فَقَمِنٌ أَنْ يُسْتَجَابَ لَكُمْ. رواه مسلم

او په سجده کي د دعاء غوښتلو هڅه وکړئ، مناسب داده چي هغه دعاء ستاسو لپاره قبوله سي. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۳۴۸، رقم: ۲۰۷- ۴۷۹.

**د لغاتو حل** : (قَمِن): جدير وخليق (مناسب).

**تشريح** : ځيني حضرات خو وايي چي دا نهي تنزيهي ده او د ځينو خيال دی چي دا نهي تحريمي ده او قياس هم دا وايي ځکه چي الله تعالی د لمانځه د ټولو حالتونو څخه د هر حالت د ذکر د انواع څخه د هر يوه نوع ذکر کولو لپاره ټاکلي دي مثلا قيام چي د لمانځه په هيئتونو او حالتونو کي تر ټولو افضل او لوی رکن دی د قرآن کريم د ويلو لپاره مقرر دی چي په ټولو اذکارو کي تر ټولو افضل او د اعلی درجي ذکر دی نو د الله تعالی له خوا د حالت قيام يوازي د قرآن کريم ويلو لپاره مقرر کولو ورسته هيڅ ډول ګنجائش نسته چي دده خلاف وکړل سي او يا که څوک دده خلاف وکړي نو هغه به بالفعل د حرام مرتکب وي يا د هغه دا کار به مکروه وي همداسي د نورو ارکانو په باره کي هم قياس کيدای سي دا وجه ده چي رسول الله ﷺ وفرمايل زه دده خبري څخه منعه کړل سوی يم چي زه په رکوع او سجده کي قرآن پاک ووايم ځکه چي رکوع او سجده دده لپاره ټاکل سوي دي چي په هغه کي د پروردګار عالم لويي بيان سي او دعا وغوښتل سي.

په رکوع کي د لويي بيانولو مطلب دادی چي سبحان ربي العظيم ووايي او په سجده کي د دعا غوښتلو حکم سوی دی نو پوه سه چي د دعا دوه ډولونه دي د دعا يو ډول خو دادی چي پروردګار ته د خپل مطلب او مراد لپاره خواست وکړل سي او د دعا دوهم ډول دادی چي د پروردګار حمد ،ثناء او تکبير وکړل سي او د هغه په ذکر کي مشغول سي ځکه چي د رحيم او کريم تعريف وغيره بيانول او د هغه په ذکر کي په کثرت سره د دعا کولو چي کوم حکم سوی دی په هغه کي دواړه ډوله دعاوي شاملي دي دده څخه دا معلومه سوه چي د حنفيه پر ذکر باندي اکتفاء کول او صريحا دعا څخه منعه کول هم د دعا حکم کي عيني پر ځای راوړل دي ځکه چي د الله تعالی ارشاد دی چي (من شغله ذکري عن مسئلتي اعطيته افضل ما اعطي السائلين) :کوم سړی چي زما ذکر د سوال کولو څخه منعه کړي داسي چي هغه سړی زما په ذکر کي د مشغوليدو په وجه زما څخه سوال ونه کړی نو زه به هغه سړي ته د هغه شيانو کوم چي غوښتونکو ته يې ورکوم غوره شي ورکوم، مګر شرط دادی چي هغه سړی هغه وخت د پروردګار په ذکر کي د زړه د اخلاصه بوخت وي.

ځيني حنفيه محققين په دغه دواړو شيانو کي دا تطبيق کوي چي په نوافل کي خو ښکاره دعا غوښتل پکار دي او په فرائض کي يوازي پر تسبيحات باندي اکتفاء کول پکار دي.

﴿۸۱۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي ووايي

الإِمَامُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُوْلُوا اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ

امام سمع الله لمن حمده نو تاسو اللهم ربنا لک الحمد وايا ست ځکه چي د چا قول موافق سي

قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . متفق عليه

د ملائکو د قول سره نو دهغه تير سوي ګناهونه بخښل کيږي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۸۳\۱۲، رقم: ۷۹۶ ومسلم: ۳۰۶\۱۱، رقم: ۷۱-۴۰۹.

**تشريح**: ددې موضوع سره متعلق د باب القرائت په اول فصل کي په ښه طريقه وضاحت سوی دی د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي کوم سړی دا عمل اختيار کړي نو انشاء الله د وعدې مطابق د هغه ټول صغيره ګناهونه بخښل سي د کبيره ګناهونو معامله داده چي که الله تعالی وغواړي نو هغه به هم په خپل فضل اوکرم سره و بخښي ځکه چي د هغه ذات ډېر رحيم ،کريم او غفور دی .

## د قومې دعاء

﴿۸۱۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ

إِذَا رَفَعَ ظَهْرَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ

د رکوع څخه ملا پورته کړل نو ويل به يې سمع الله لمن حمده ....... ( الله اوري څوک چي د هغه تعريف وکړي ، اې الله زموږ ربه بس يوازي ستا تعريف دی

مِلْءُ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءُ الْأَرْضِ وَمِلْءُ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ . رواه مسلم

په ټولو آسمانو او ځمکو کي او د هغه شيانو برابر چي ته يې غواړې . ) مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۳۴۶\۱۱، رقم: ۲۰۲-۴۷۶.

**تشريح**: حنيفه وايي چي په حديث کي په ذکر سوو کلمو کي د ربنا لک الحمد څخه وروسته

كلمې يعني ملا السماوات څخه تر اخره پوري يوازې په نفل لمنځو كي ويل پكار دي په فرائضو كي نه.

﴿۸۱۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ

اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ قَالَ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءُ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءُ

د ركوع څخه سر پورته كړی نو دا به يې ويل: اللهم ربنا ....(اې الله اې زموږ ربه بس يوازې ستا تعريف دی په ټولو آسمانو او ټولو

الْاَرْضِ وَمِلْءُ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ أَحَقُّ مَا قَالَ

مځكو كي او د هغه شي برابر چي ته يې وغواړې اې د تعريف او عظمت وروسته ته د هغه تعريف او تمجيد زيات وړيې كوم چي بنده يې كوي

الْعَبْدُ وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ اللّٰهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلاَ

يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. رواه مسلم

او موږ ټول ستا بندګان يو اې الله ستا وركړه څوک منعه كولای نه سي او نه څوک چا ته څه وركولای سي چي ته يې وركول نه غواړې او نه شتمن ستا د عذاب څخه شتمني خلاصولای سي.) مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۴۷، رقم: ۲۰۵– ۴۷۷.

---

﴿۸۱۷﴾: وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ وَرَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت رفاعة بن رافع رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ په نبي كريم ﷺ پسي لمونځ كوی

فَلَمَّا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ. فَقَالَ رَجُلٌ وَرَاءَهُ

كله چي رسول الله ﷺ د ركوع څخه سر را پورته كړی نو وه يې فرمايل: سمع الله لمن حمده، يو سړی چي په رسول الله ﷺ پسي يې لمونځ كوی دا يې وويل:

رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيْهِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ مَنِ

ربنالک الحمد حمدا كثيرا طيبا مباركا فيه، كله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو وه يې فرمايل:

الْمُتَكَلِّمُ آنِفًا ؟ قَالَ أَنَا قَالَ رَأَيْتُ بِضْعَةً وَثَلَاثِيْنَ مَلَكًا يَبْتَدِرُوْنَهَا أَيُّهُمْ يَكْتُبُهَا أَوَّلُ. رواه البخاري.

دا کلمات چا وويل ؟ يو سړي وويل هغه زه وم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ما د ديرشو څخه زياتي ملائكي وليدې چي ددې كلماتو په ثواب ليكلو كي يې تلوار كوئ چي څوک يې مخكي وليكي. بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۲۸۴، رقم: ۷۹۹.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د اركانو د تعديل حكم او د امامانو مذهب

﴿۸۱۸﴾: عَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاتُجْزِئُ صَلَاةُ الرَّجُلِ حَتّٰى يُقِيْمَ ظَهْرَهُ فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ. رواه أبو داود والترمذي والنسائي وابن ماجه والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابو مسعود الانصاري ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تر څو پوري چي لمونځ كونكی په ركوع او سجده كي خپله ملا سيده نه كړي نو د هغه لمونځ نه پوره كيږي. ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه او دارمي. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دی

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۵۳۳- ۵۳۴، رقم: ۸۵۵ والترمذي ۲\ ۵۱، رقم: ۲۶۵ والنسائي ۲\ ۱۸۳، رقم: ۱۰۲۶ وابن ماجه ۱\ ۲۸۲، رقم: ۷۸۰، والدارمي: ۱\ ۳۵۰، رقم: ۱۳۲۵.

**تشريح** : په شرح منية المصلي كي ليكلي دي چي تعديل اركان يعني په ركوع او سجده كي دومره دريدل پكار دي چي د بدن ټول اندامونه خپل خپل ځای ته ورسيږي، دديْ حديث په وجه د امام شافعي رحمة الله عليه، د امام مالک رحمة الله عليه، امام احمد رحمة الله عليه او په حنفيه كي د امام ابو يوسف رحمة الله عليه په نزد فرض دی او دديْ ادني مقدار د يوه تسبيح په اندازه دی د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په نزد تعديل د اركانو واجب دی

او بيا په منية المصلي كي داهم ليكلي دي چي د ركوع څخه د راپورته كيدو په وخت كي دريدل يعني قومه او په دواړو سجدو كي ناسته يعني جلسه او طمانيت دا ټول شيان هم د امام ابويوسف رحمة الله عليه په نزد فرض او د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په نزد سنت دی د علامه ابن همام رحمة الله عليه رايه داده چي د قومې او جلسې په باره كي مناسب او غوره دادی چي دې دواړو ته واجب وويل سي ، والله اعلم.

## د ركوع او سجدې تسبيحات

﴿۸۱۹﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ ( فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ)

د حضرت عقبة بن عامر ﷛ څخه روايت دی چي كله سبح اسم ربک العظيم ، نازل سو

قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِجْعَلُوْهَا فِيْ رُكُوْعِكُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ ( سَبِّحِ

نو رسول الله ﷺ وفرمايل دا په خپل ركوع كي واياست او كوم وخت چي سبح

اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِجْعَلُوْهَا فِيْ سُجُوْدِكُمْ . رواه أبو داود وابن ماجه والدارمي .

اسم ربک الاعلى نازل سو نو بيا يې وفرمايل : دا په خپل سجده كي واياست . ابوداؤد،ابن ماجه او دارمي

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱\ ۵۴۲، رقم: ۸۶۹، وابن ماجه ۱\ ۲۸۶، رقم: ۸۸۷ والدارمي ۱\ ۳۴۱، رقم: ۱۳۰۵

﴿۸۲۰﴾: وَعَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت عون بن عبدالله د ابن مسعود ﷛ څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَقَالَ فِيْ رُكُوْعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلَاثَ

هر كله چي په تاسو كي يو څوک ركوع وكړي نو په ركوع كي دي درې ځله سبحان ربي العظيم ووايي

مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ رُكُوْعُهُ وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ وَإِذَا سَجَدَ فَقَالَ فِيْ سُجُوْدِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ

او په دې سره دده ركوع پوره سوه او (دا درې ځله ويل) كمه اندازه ده ، او هر كله چي سجده وكړي نو په سجده كي دي درې ځله سبحان ربي

الْأَعْلٰى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ سُجُوْدُهُ وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ . رواه الترمذي وأبو داود ابن ماجه . وقال الترمذي ليس إسناده بمتصل لأن عونا لم يلق ابن مسعود .

الاعلى ووايي او په دې سره دده سجده پوره سوه او دا ادنا درجه ده .ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۵۰، رقم: ۸۸۶، والترمذي ۲\۴۶-۴۷، رقم: ۲۶۱ وابن ماجه ۱\ ۲۸۷، ۲۸۸، رقم: ۸۹۰.

**تشريح**: په ركوع او سجدو كي دا تسبيحات درې واره ويل د كامل سنت ادنى درجه ده كنه اصل سنت په يو وار ادا كيږي او د كمال اوسط درجه پنځه واره او اعلى درجه اووه واره ويل دي او د انتهايي كمال څه حد نسته اګر كه ځيني حضراتو لس واره ويلي دي او ځينو حضراتو خو تقريبا د قيام د مقدار پوري ويلي دي مګر په هر صورت پر امام باندي د مقتديانو رعايت كول لازم دي .

په فني توګه په دې خبره هم پوه سئ چي حديث منقطع مستدل جوړول غلط نه دی بلكه په اتفاق سره د ټولو په نزد د فضائل اعمال په اړه پر حديث منقطع باندي هم عمل كول جائز دي .

﴿۸۲۱﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّهُ صَلّٰى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ

د حضرت حذيفة ﵁ څخه روايت دی چي ده د رسول الله ﷺ سره لمونځ وكړ او ده مبارک به ويل په

رُكُوْعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ وَفِيْ سُجُوْدِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى وَمَا أَتٰى عَلٰى آيَةِ

ركوع كي سبحان ربي العظيم او په سجده كي به يې سبحان ربي الاعلى ويل او كله چي به يو آيت په قرائت كي راغلى

رَحْمَةٍ إِلاَّ وَقَفَ وَسَأَلَ وَمَا أَتٰى عَلٰى آيَةِ عَذَابٍ إِلاَّ وَقَفَ وَتَعَوَّذَ. رواه الترمذي وأبو داود والدارمي وروى النسائي وابن ماجه إلى قوله الأعلى . وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

د رحمت نو رسول الله ﷺ به ودريدى او دعاء به يې غوښتل او كله چي به د عذاب يو آيت راغلى نو دريدى به او پناه به يې غوښتل. ترمذي، ابوداؤد، دارمي، نسائي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۴۸، رقم: ۲۶۲ وابوداؤد ۱\ ۵۴۳، رقم: ۸۷۱، والدارمي ۱\ ۳۴۱، رقم: ۱۳۰۶، والنسائي ۲\ ۱۹۰، رقم: ۱۰۴۵ وابن ماجه ۱\ ۲۸۷، رقم: ۸۸۸.

**تشريح**: علماء حنفيه او علماء مالكيه دا حديث د رسول الله ﷺ پر نفل لمنځو باندي محمول كوي ځكه چي ددې حضراتو په نزد په فرض لمانځه كي د قرائت په مينځ كي دعا غوښتل او پناه غوښتل جائز نه دي بلكه دا حديث پر جواز باندي حمل كول هم ممكن دى ځكه چي كيداى سي چي رسول الله ﷺ كله د بيان جواز په خاطر په فرض لمانځه كي هم داسي كړي وي. شيخ جزري رحمة الله عليه ليكلي دي چي دا حديث مسلم نقل كړى دى نو د مشكواة مصنف ته دا حديث د دوهم فصل پرځاى په اول فصل كي نقل كول پكار وه.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

﴿۸۲۲﴾: عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قُمْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عوف بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ سره لمونځ وكړ،

فَلَمَّا رَكَعَ مَكَثَ قَدْرَ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ وَيَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهِ سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوْتِ وَالْمَلَكُوْتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ . رواه النسائي .

كله چي رسول الله ﷺ ركوع وكړه نو په ركوع كي د سورة بقرة د ويلو په اندازه ودريدى، رسول الله ﷺ به په ركوع كي سبحان ذي الجبروت...). (دا كيداى سي چي د تهجد يا لمر تندره نيولو لمونځ وي). نسائي

**تخريج:** سنن النسائي: ۲\۱۹۱، رقم: ۱۰۴۸.

**تشريح**: دا د فرض لمانځه ذکر نه دی بلکه د ځینو حضراتو په نزد د قول مطابق دا د تهجد لمونځ وو او ځیني حضرات وايي چي دا د لمر تندره نیولو لمونځ یعني نماز کسوف وو.

﴿۸۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنِ مَالِكٍ يَقُوْلُ مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ

د حضرت ابن جبیر ﷺ څخه روایت دی چي ما د انس بن مالک ﷺ څخه واوریدل چي ویل یې ما لمونځ نه دی کړی تر شا

أَحَدٍ بَعْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْبَهَ صَلاَةً بِصَلاَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى

د هیچا وروسته د رسول الله ﷺ څخه چي د هغه لمونځ د رسول الله ﷺ د لمانځه سره زیات ورته وي

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ هٰذَا الْفَتٰى يَعْنِيْ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ قَالَ فَحَزَرْنَا

پرته ددې زلمي څخه (یعني عمر بن عبد العزیز)، ابن جبیر وايي انس بن مالک وویل موږ اندازه ولګول

رُكُوْعَهُ عَشْرَ تَسْبِيْحَاتٍ وَّسُجُوْدَهُ عَشْرَ تَسْبِيْحَاتٍ. رواه أبو داود والنسائي

ددې زلمي د رکوع لس ځله د سبحان الله ویلو اندازه او د سجدې هم دغه اندازه ولګول، ابوداؤد او نسائي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\۵۵۱، رقم: ۸۸۸ والنسائي: ۲\ ۲۲۴، ۲۲۵، رقم: ۱۱۳۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي په څومره وخت کي هغوی رکوع یا سجده کول موږ به لس تسبیحات ویل نو هغوی به هم لس یا کم او زیات تسبیحات ویل.

﴿۸۲۴﴾: وَعَنْ شَقِيْقٍ قَالَ إِنَّ حُذَيْفَةَ رَأٰى رَجُلاً لاَ يُتِمُّ رُكُوْعَهُ وَلاَ سُجُوْدَهُ

د حضرت شقیق څخه روایت دی چي حذیفه ﷺ یو سړی ولیدی چي رکوع او سجده یې په پوره ډول سره نه کول،

فَلَمَّا قَضٰى صَلاَتَهُ دَعَاهُ فَقَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ مَا صَلَّيْتَ. قَالَ وَأَحْسَبُهُ قَالَ وَلَوْ

کله چي هغه لمونځ وکړ نو حضرت حذیفه ﷺ را وغوښتی او ورته وه یې ویل: تا لمونځ نه

وکړ، د راوي بیان دی چي زما دا خیال دی چي حذیفه هغه ته دا هم وویل :

مُتَّ مُتَّ عَلٰی غَيْرِ الْفِطْرَةِ الَّتِيْ فَطَرَ اللهُ مُحَمَّدًا ﷺ. رواه البخاري

که ته په دې حالت کي مړ سې چي داسي لمونځ کوې نو د هغه فطرت پر طریقه مړ نه سوې پر کومه چي الله ﷻ محمد ﷺ پیدا کړی دی. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۲۷۴–۲۷۵، رقم: ۷۹۳.

﴿۸۲۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْوَأُ

د حضرت ابو قتادة ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : بدترین

النَّاسِ سَرِقَةً الَّذِيْ يَسْرِقُ مِنْ صَلاَتِهِ. قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ وَكَيْفَ يَسْرِقُ

غله هغه دي چي په لمانځه کي غلا کوي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! څنګه غلا کیږي

مِنْ صَلاَتِهِ؟ قَالَ لاَ يَتِمُّ رُكُوْعَهَا وَلاَ سُجُوْدَهَا. رواه أحمد.

په لمانځه کي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چي رکوع او سجده پوره ونه وکړل سي. احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده : ۵\ ۳۱۰.

**تشریح**: د مال غلا کونکی سړی څخه د لمانځه غلا کونکي سړي ځکه خراب وي چي د مال غلا کونکی کم از کم د غلا د مال څخه په دنیا کي خوګټه اخلي او بیا دا چي د مالک د معاف کولو وروسته یا د سزا په توګه د اسلامي قانون سره سم خپل لاس پرېکولو سره د آخرت د مواخذې څخه و ژغورل سي، مګر ددې پرخلاف د لمانځه غلا کونکی سړی د ثواب په اړه د خپل نفس حق وهي او د هغه په بدله کي د آخرت عذاب اخلي مګر ددې تاوانونو او خطرو څخه پرته د هغه لاس ته نور هیڅ نه ورځي.

﴿۸۲۶﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُرَّةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا

د حضرت نعمان بن مرة ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

تَرَوْنَ فِي الشَّارِبِ وَالزَّانِيْ وَالسَّارِقِ ؟ وَذٰلِكَ قَبْلَ أَنْ تُنْزَلَ فِيْهِمُ الْحُدُوْدُ

تاسو د شرابي، زناكار، او غله په اړه څه فكر كوئ ؟ دا د هغه وخت پېښه ده چي حدود نه وه نازل سوي

قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ . قَالَ هُنَّ فَوَاحِشُ وَفِيْهِنَّ عُقُوْبَةٌ وَأَسْوَأُ السَّرِقَةِ

صحابه كرامو عرض وكړ الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي. رسول الله ﷺ وفرمايل : دا لوى ګناهونه دي او سزا لري خو بدترينه غلا

الَّذِيْ يَسْرِقُ مِنْ صَلاَتِهِ قَالُوْا وَكَيْفَ يَسْرِقُ مِنْ صَلاَتِهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ؟ قَالَ

هغه ده چي انسان يې په خپل لمانځه كي كوي، صحابوو عرض وكړ اې دالله رسوله ! د لمانځه غلا څنګه كيږي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :

لاَ يُتِمُّ رُكُوْعَهَا وَلاَ سُجُوْدَهَا . رواه مالك وأحمد وروى الدارمي نحوه .

چي ركوع او سجده پوره نه كوي. مالک ، احمد او دارمي .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۶۷، رقم: ۷۲ والامام احمد في مسنده ۳\ ۵۶ والدارمي: ۱\ ۳۵۰، رقم: ۱۳۲۸.

**تشريح**: : په نقل سوي روايت كي (تَرَوْنَ) د تا په زور سره معنى يې داده چي تاسو څه عقيده لرئ، مګر په يوه نسخه كي د تا په پيښ سره هم دى چي د هغه معنى داده چي ستا څه خيال دى، د راوي په الفاظو كي دا پوښتنه د حدود نازليدو مخكي وه، وجه سوال ښكاره كوي چي رسول الله ﷺ دا پوښتنه د صحابه كرامو څخه هغه وخت كړې وه كله چي د دغه كارو خرابي صحابه كرامو ته په ښه توګه معلومه نه وه هركله چي د دې بدو كارو حدود و ټاكل سول نو بيا د ټولو په ذهن كي د دې خرابي پخه سوه او په هغه كي څه شک او شبه پاته نه سوه .

==========

# بَابُ السُّجُوْدِ وَفَضْلِهِ

## د سجدې کيفيت او د هغې دفضيلت بيان

پر مځکه سر ايښودل او عاجزي ښکاره کول د سجدې لغوي معنی ده، د شريعت په اصطلاح کي سجده دې ته وايي چي د الله تعالی په مخکي د خپل عبوديت او کمال عجز او انکسارۍ د اظهار په توګه بنده خپل سر پر مځکه کښيږدي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سجدې اندامونه

﴿۸۲۷﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِرْتُ أَنْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته حکم سوی دی چي

اَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ اَعْظُمٍ عَلَى الْجَبْهَةِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَاَطْرَافِ

سجده وکړم پر اوو هډوکو، په تندي په دواړو لاسونو، په زنګنو، په پنجو

الْقَدَمَيْنِ وَلاَ نَكْفِتَ الثِّيَابَ وَالشَّعْرَ. متفق عليه

د پښو او دا حکم راکړل سوی دی چي په لمانځه کي نه جامې را ټولي کړو او نه وریښتان سم کړو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۹۷، رقم: ۸۱۲ ومسلم: ۱\۳۵۴، رقم: ۲۳۰-۴۹۰.

**د لغاتو حل**: (نَكفِ): نجمع ونضم (راټولول).

**تشريح** ددې حديث په ذريعه ښودل کيږي چي په سجده کي د بدن کوم کوم اندامونه پر مځکه ايښودل پکار دي نو حکم سوی دی چي د سجدې په وخت کي تندی، دواړه لاسونه، دواړه زنګنونه او د دواړو پښو پنجې پر مځکه لګول پکار دي.

د اکثرو امامانو مذهب دادی چي سجده په پزه او تندي دواړو سره کول پکار ده پر ته ددغه دواړو پر مځکه ايښودو سره سجده جائز نه ده مګر امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه او صاحبين فرمايي که صرف د تندي په ايښودو سره سجده وکړل سي نو جائز ده، البته د يو عذر

پرته داسي كول مكروه دي، د امام شافعي رحمة الله عليه او صاحبينو په نزد صرف د پزي پر مځكه ايښودو سره سجده كول جائز نه ده هو كه يو داسي عذر وي چي تندی پر مځكه ايښودل ممكن نه وي نو بيا جائز دي، په دې اړه د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه دوه قوله دي يو قول دادی چي دا جائز نه دي او دوهم قول دادی چي جائز دي مګر د كراهيت سره.

په سجده كي دواړي پښې پر مځكه ايښودل ضروري دي كه يو سړی په سجده كي دواړي پښي د مځكي څخه پورته كړي نو د هغه لمونځ فاسد كيږي او كه يوه پښه پورته كړي نو سجده مكروه كيږي په سجده كي دپښو ګوتي د قبلې خوا ته كول فرض دي كه څه هم يوه ګوته كښيږدي كه چيري ګوته د قبلې خوا ته نه وي نو جائز به نه وي.

په درمختار كي ذكر دي چي په تندي او دواړو پښو سره سجده كول فرض ده او په دواړو پښو كي كم تر كمه يوه ګوته پر مځكه ايښودل شرط دي او لاسونه او زنګنونه پر مځكه ايښودل سنت دي، د حنيفه او شافعيه مذهب دادی.

## په سجده كي د ويښتانو او جامو ليري كولو او راټولولو څخه ممانعت

د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي سجدې د تللو په وخت كي ويښتان او جامه په دې غرض سره راټولول چي هغه په خاورو نسي منعه دي، هسي هم ددې مقصد څخه پرته د جامې او ويښتانو راټولول يا لمن وغيره ترل ممنوع دي.

د ويښتانو راټولولو مطلب دادی چي د سر ويښتان په يو ځای كولو سره په لنګوټه، خولۍ وغيره كي دننه كړل سي چي په سجده كي زړيدلي نه وي ددې څخه هم منعه كړل سوې ده، ددې مسئله داده چي ويښتان همداسي پرېښودل پكار چي هغه هم سجده وكړي.

## په سجده كي د اطمينان حكم

﴿۸۲۸﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَدِلُوا فِي السُّجُودِ وَلَا يَبْسُطْ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ انْبِسَاطَ الْكَلْبِ. متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو په سجده كي اعتدال كوئ (يعني په اطمينان سره سجده كوئ) او په تاسو كي دي هيڅوک د سجدې په حالت كي د سپي په ډول څنګلي نه غوړوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۰۱، رقم: ۸۲۲ ومسلم: ۱\۳۵۵، رقم: ۲۲۳- ۴۹۳.

**تشريح**: په ښکاره خو دا معلوميږي چي په سجده کي د اعتدال څخه مراد دادی چي په سجده کي دي په اطمينان سره تم سي او په سجده کي چي کوم تسبيحات ويل کيږئ هغه دي په اطمينان سره وويل سي،

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي په سجده کي د اعتدال څخه مراد دادی چي ملا دي هواره وساتي، دواړه لاسونه دي پر مځکه کښيږدي څنګلي دي د مځکي څخه پورته او نس دي د زنګنونو څخه بيل وساتي.

## په سجده کي د لاسو او څنګلو ايښودو طريقه

﴿۸۲۹﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ وَارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ . رواه مسلم

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي تاسو سجده کوئ نو پر مځکه ورغوي کښيږدئ او څنګلي پورته لرئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۵۶، رقم: ۲۳۴- ۴۹۴.

**تشريح**: په سجده کي د لاسونو ايښودو طريقه داده چي د دواړو لاسونو ورغوي پر مځکه د غوږو مخته پراته وي، ګوتي په خپلو کي يو ځای وي او دا چي لاسونه خلاص وي په يو جامه وغيره کي د هغه د ننه پټول مکروه دي.

د څنګلو پورته ساتلو دوې معناوي کيدای سي: يو خو دا چي څنګلي د مځکي څخه پورته وي يا دا چي د دواړو بغلونو څخه پورته وي، بهر صورت دا حکم په خاصه توګه سره د نارينو لپاره دی ښځي په دې حکم کي شاملي نه دي ځکه چي ښځو ته په سجده کي د څنګلو پر مځکه د بغلونو سره د يو ځای ساتلو حکم دی په دې توګه د بدن څرګندوالی نه کيږي او پرده په ښه توګه وي.

﴿۸۳۰﴾: وَعَنْ مَيْمُونَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ جَافَى بَيْنَ يَدَيْهِ حَتّٰى لَوْ أَنَّ بَهْمَةً أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ تَحْتَ يَدَيْهِ مَرَّتْ . هٰذَا لفظ أبي داود كما صرح في شرح السنة بإسناده . ولمسلم بمعناه قالت كان النبي ﷺ إذا سجد لوشاءت بهمة أن تمر بين يديه لمرت (متفق عليه)

د حضرت ميمونة (رض) څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ سجده كول نو خپل لاسونه به يې بيل ساتل تر دې كه مرغومي په منځ كي تيريدل غوښتل نو تيريدای به سو. دا الفاظ دا بوداؤد دي لكه څنګه چي امام بغوي په شرح السنة كي په خپل سند سره بيان كړي دی د مسلم الفاظ دادي كله چي به يې سجده كول نو مرغومي كه غوښتل نو د رسول الله ﷺ د دواړو لاسو په منځ كي تيرېدای سو . بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): سنن ابي داؤد ١\ ٥٥٤، رقم: ٨٩٨، البغوي في شرح السنة ٣\ ١٤٥، ١٤٦، رقم: ٦٥٢.

**تشريح** : د لاسونو په منځ كي د فرق ساتلو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به په سجده كي خپل دواړه بازوګان د بغل څخه او نس د ورانه څخه بيل ساتی .

په حديث كي د مرغومي لپاره د بهمه لفظ استعمال سوی دی ، بهمه هغه مرغومي ته وايي چي پر خپل پښنو باندي ګرځېدل يې پيل كړي وي او كله چي پيدا سي نو هغه ته سخله وايي .

او د (هذا لفظ ابوداؤد) څخه د مشكوة شريف د مصنف مقصد پر صاحب د مصابيح باندي اعتراض كول دي چي دا حديث په دې الفاظو سره د ابوداؤد دی ،چي په لومړي فصل كي يې نقل كول نه وو پكار ځكه چي په لومړي فصل كي يوازي د شيخينو يعني امام بخاري او امام مسلم روايت سوي حديثونه نقل كيږي .

﴿٨٣١﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى يَبْدُوَ بَيَاضُ إِبْطَيْهِ . متفق عليه

د حضرت عبدالله بن مالک بحينة څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ سجده كول نو دواړه لاسونه به يې خلاص ساتل تردې چي د رسول الله ﷺ د بغلو سپين والی به معلوميدی

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١\ ٤٩٦، رقم: ٣٩٠، ومسلم ١\ ٣٥٦، رقم: ٢٣٥- ٤٩٥.

**تشريح** : بحينه د عبدالله د مور نوم دی او مالک د هغه د پلار نوم دی، دا وجه ده چي د مالک او ابن په مينځ كي الف په پاته ساتلو سره مالک په تنوين سره ويل كيږي چي خلكو ته دا غلط فهمي ونسي چي مالک د بحينه د زوی نوم دی بلكه په دې پوه سئ چي د بحينه زوی عبدالله دی او ابن مالک او ابن بحينه دواړه نسبتونه د هغه دي .

په هر حال په څرګنده دا معلوميږي چي عبدالله رضي الله عنه رسول الله ﷺ پر لمونځ كولو ليدلی وو

او هغه وخت د رسول الله ﷺ پر بدن مبارک جامه نه وه يا د هغه مراد به دا وي چي د رسول الله ﷺ بغل معلوميدی او د بغلو سپين والی يې ځکه ويلی دی چي د رسول الله ﷺ بغل مبارک بالکل سپين او پاک وو لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ ټول بدن مبارک د هنداري په ډول سپين او پاک وو ، د نورو خلکو په ډول د رسول الله ﷺ بغلونه تور او خيرن نه وه .

## په سجده کي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۸۳۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ فِيْ سُجُوْدِهِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ ذَنْبِيْ كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَاَوَّلَهُ وَآخِرَهُ وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ. رواه مسلم

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په سجده کي دا ويل : (اې الله زما ګناهونه و بخښې ټول کوچني او لوی ، لومړي او وروستني څرګند او پټ .)مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱/ ۳۵۰، رقم: ۲۱۶- ۴۸۳.

**تشريح** : مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به کله کله په سجده کي دا دعاء هم کول ، بيا دلته دا احتمال هم سته چي رسول الله ﷺ به دا دعاء د تسبيح يعني سبحان ربي العظيم سره ويل ، يا پرته د تسبيح څخه يوازي پر دغه دعاء به يې اکتفاء کول .

د پټو ګناهونو څخه مراد هغه ګناهونه دي چي د انسان د ليدو څخه پټ وي کنه الله تعالی ته خو پټ او څرګند ګناهونه يو ډول څرګند وي ، يعلم السر واخفی ، يعني الله تعالی خو د پټ څخه پټ شيانو څخه هم خبر دی .

﴿۸۳۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ فَقَدْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي يوه شپه ما رسول الله ﷺ په بستره کي و نه ليدی

مِنَ الْفِرَاشِ فَالْتَمَسْتُهُ فَوَقَعَتْ يَدِيْ عَلٰى بَطْنِ قَدَمَيْهِ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ وَهُمَا

نو ما رسول الله ﷺ و لټوی نو زما لاسونه د رسول الله ﷺ پر قدمو پريوتل دا وخت رسول الله ﷺ په سجده کي وو او دواړي پښي يې

مَنْصُوْبَتَانِ وَهُوَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اَعُوْذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ

ولاړي وې او رسول الله ﷺ په سجده کي دا ويل : (اې الله زه ستا د رضا مندی په ذريعه ستا د

غضب څخه پناه غواړم او ستا د معافي ورکولو په ذریعه

عُقُوبَتِكَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لاَ أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ.

رواه مسلم

ستا د عذاب څخه او زه پناه غواړم ستا د عذاب څخه د خلاصون دپاره ستا په پناه کي راځم او زه ستا تعریف شمیرلای نه سم ته همغسي یې لکه څرنګه چي تا خپل تعریف فرمایلی دی.) مسلم

**تخریج:** صحیح مسلم: ۱\۳۵۲، رقم: ۲۲۲- ۴۸۶.

**تشریح**: د دې حدیث څخه معلومه سوه چي ښځي ته په لاس ور وړلو سره د سړي او دس نه ماتیږي لکه څرنګه چي د حنفیه مذهب دی چي د ښځي مس کول او دس ماتونکی نه دی.

د (لا احصی ثناء علیک) مطلب دا دی چي اې پروردګاره! په ما کي دومره توان او طاقت نسته چي ستا داسي تعریف وکړم لکه څرنګه چي ستا د شان وړ دی ته داسي یې لکه څرنګه چي تا خپل تعریف داسي کړی دی:

فَلِلَّهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَرَبِّ الْأَرْضِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ٣٦ وَلَهُ الْكِبْرِيَاءُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ٣٧

ژباړه: ټول تعریفونه الله تعالی لره چي د آسمانونو، مځکو او جهانو پروردګار دی او په مځکي او آسمانو کي د هغه لپاره لویي او بزرګي ده او هغه غالب او حکیم ذات دی.

## سجده پروردګار ته د نژدې کېدو ذریعه ده

﴿۸۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهِ وَهُوَ سَاجِدٌ فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ. رواه مسلم

د حضرت ابو هریرة ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د بنده الله ﷻ ته ډیر نژدې کېدل هغه وخت وي چي هغه په سجده کي وي له دې کبله تاسو په سجده کي زیاته دعاء کوئ. مسلم

**تخریج:** صحیح مسلم: ۱\۳۵۰، رقم: ۲۱۵- ۴۸۲.

**تشریح**: هسي خو الله تعالی په هر وخت کي او په هر ځای کي خپلو بندګانو ته نژدې دی مګر تر ټولو زیات نژدې هغه وخت وي کله چي بنده په سجده کي وي یعني د سجدې په حالت کي

الله تعالی د بنده څخه راضي کيږئ او دعاء يې قبلوي ځکه نو رسول الله ﷺ حکم کړی دی چي په سجدې کي زياتي دعاوي غوښتل پکار دي چي د قبوليت درجې ته ورسيږي.

## د سجده تلاوت په وخت کي د شيطان ژړا

﴿۸۳۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَرَأَ ابْنُ آدَمَ السَّجْدَةَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي انسان د سجدې آيت وايي

فَسَجَدَ اعْتَزَلَ الشَّيْطَانُ يَبْكِي يَقُولُ يَا وَيْلَتَى أُمِرَ ابْنُ آدَمَ بِالسُّجُودِ

او بيا سجده کوي نو شيطان په ژړا تښتي او وايي افسوس! د آدم زوی ته د سجدې حکم وسو

فَسَجَدَ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَأُمِرْتُ بِالسُّجُودِ فَأَبَيْتُ فَلِي النَّارُ. رواه مسلم

نو هغه سجده وکړه نو د هغه لپاره جنت دی او ما ته د سجدې حکم وسو ما انکار وکړ نو زما لپاره د دوږخ اور دی. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۸۷، رقم: ۱۳۳ - ۸۱.

## ډيري سجدې د رسول الله ﷺ د ملگرتيا ذريعه ده

﴿۸۳۶﴾: وَعَنْ رَبِيعَةَ ابْنِ كَعْبٍ قَالَ كُنْتُ أَبِيتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ربيعه[1] بن کعب رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه به د شپې د رسول الله ﷺ په خدمت کي وم

وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوئِهِ وَحَاجَتِهِ فَقَالَ لِي سَلْ فَقُلْتُ أَسْأَلُكَ مُرَافَقَتَكَ فِي

رسول الله ﷺ ته مي د اوداسه او به د کوم شي (مسواک او داسي نور) چي به ضرورت وو هغه به مي ورکول، يوه ورځ رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل د دين او دنيا کوم خير چي غواړې هغه وغواړه ما عرض وکړ اې دالله رسوله! زه خو ستا ملگرتيا غواړم په

الْجَنَّةِ قَالَ أَوْ غَيْرَ ذٰلِكَ قُلْتُ هُوَ ذَاكَ قَالَ فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ.

رواه مسلم

---

۱ - د نوموړي نوم ربيعه ابن کعب او کنيت يې ابوفراس دی، په سفر او حضر کي به د رسول الله ﷺ سره ملگری وو، په کال (۶۳هـ) کي وفات سوی دی.

جنت کي، رسول الله ﷺ وفرمایل د دې پرته نور څه هم غواړې ؟ ما عرض وکړ بس هم دغه غواړم، رسول الله ﷺ راته وفرمایل : ته په زیاتو سجدو کولو سره د خپل نفس پر خلاف زما مرسته کوه .مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۳۵۳، رقم: ۲۲۶- ۴۸۹.

**تشريح** : حضرت ربيعه ﷺ به د رسول الله ﷺ په خدمت کي اوسیدی او د رسول الله ﷺ پر اړتیاوو وړاندي کولو مامور وو ځکه ددې خدمت او جذبې څخه د طاعت او فرمانبرداری په صله کي رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چي ته ددین او دنیا کوم خیر غواړې نو وه یې غواړه ، ظاهره ده چي یو وفادار خادم او ځان قربانونکی غلام د دې څخه زیات بله څه غوښتنه لري چي د هغه هغه بادار چي د هغه په خدمت کي ددین او دنیا عظیم سعادتونو سره نازولی دی په جنت کي هم د هغه د ملګرتیا سعادت ورته تر لاسه سي نو هغه وویل : اې الله رسوله ! زما تر ټولو لوی ارمان او لوی خواهش دادی چي څرنګه تاسو ما ته په خپل قدمونو کي ځای راکړی دی همداسي د جنت د نیک بختۍ څخه په ډکه فضا کي هم ستاسو د رفاقت شرف راته تر لاسه سي، مخکي خو رسول الله ﷺ وغوښتل چي ددې څخه پرته نور څه هم وغواړه مګر کله چي رسول الله ﷺ ولیدل چي هغه پر دغه خواهش اصرار کوي نو ورته یې وفرمایل : ددغه لوی سعادت تر لاسه کولو لپاره ته د زیاتو سجدو په ذریعه د خپل ذات سره زما مرسته کوه ، یعني که ستا دا اصرار دی او ددې خواهش پوره والی غواړې نو بیا راسره چي زه تا ته یو داسي لار وښیم چي تا به منزل مقصود ته ورسوي او هغه دا چي کله چي ته لمونځ کوې او د الله تعالی په دربار کي په زیاتو سجدو کولو سره د خپل عجز او بې چارۍ اظهار کوې او په سجده کي دعاء کوې ، او دېخوا ته زه به هم دعاء کوم او ستا ددغه خواهش د پوره کېدو لپاره به هڅه کوم مګر شرط دادی چي زه تا ته څه وښیم په هغه پوره پوره عمل کوه چي د سعادت د لار تر لاسه کولو تدبیر دادی او انشاءالله ددې څخه وروسته به ته خپل منزل مقصود ته ورسیږې

فتح قفل او چه کلید است اې عزیز     جنبش از دست تو خواهند نیز

یعني اې زما ګرانه ! که څه هم قلف په کیلي سره خلاصیږي مګر ستا د لاس حرکت هم ضروري دی.

د دې حدیث څخه معلومه سوه چي د بزرګانو خدمت کول او د هغوی رضا تر لاسه کول په حقیقت کي د سعادت او فضیلت د تر لاسه کولو ذریعه ده ، په خاصه توګه د رسول الله ﷺ رضا مد نظر ساتل ددین او دنیا تر ټولو لوی سعادت او خیر دی .

په دې حديث کې پر دې خبره هم خبرداری دی چې طالب صادق ته پکار ده چې د هغه مطلوب یوازې د آخرت نعمتونه وي چې هغه ته دوام او بقاء تر لاسه ده ، د دنيا د لذتونو خوا ته دې نظر نه کوي چې فاني او ختمېدونکي دي ، مګر شرط دا هم دی چې په بندګۍ کې د خپل طرف څخه څه قصور نه وي ځکه چې محض آرزو او خواهش منزل مقصود ته سړی نسي رسولای بلکه په دې کې د خپل خوا څخه هڅه او سعي ته هم دخل دی لکه څرنګه چې بزرګانو فرمايلي دي چې د يو آرزو او خواهش لپاره هڅه او سعي نه کول بلکه بيکاره ناسته پخه او سپنه پرې کول دي .

کارکن کار بگذر از گفتار کاندرين راه کار دارد کار

﴿۸۳۷﴾: وَعَنْ مَعْدَانَ ابْنِ طَلْحَةَ قَالَ لَقِيتُ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت معدان بن طلحه ﷛ څخه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ د آزاد کړل سوي غلام ثوبان ﷛ سره ملاقات وکړ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ أَعْمَلُهُ يُدْخِلُنِي اللّٰهُ بِهِ الْجَنَّةَ فَسَكَتَ

او هغه ته مې وويل: ما ته يو داسې عمل وښيه چې زه د هغه په کولو سره الله ﷻ ما په جنت کې داخل کړي هغه پټه خوله سو ،

ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَسَكَتَ ثُمَّ سَأَلْتُهُ الثَّالِثَةَ فَقَالَ سَأَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

ما بيا پوښتنه وکړه بيا هغه پټه خوله پاته وو ، په دريم ځل چې ما پوښتنه وکړه نو هغه وويل ما هم د رسول الله ﷺ څخه دا پوښتنه کړې وه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَلَيْكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ لِلّٰهِ فَإِنَّكَ لَا تَسْجُدُ لِلّٰهِ سَجْدَةً

د هغه په جواب کې رسول الله ﷺ راته وفرمايل : ته د الله ﷻ لپاره زياتې سجدې پر ځان لازمي کړه (يعني زياتې سجدې کوه)

إِلَّا رَفَعَكَ اللّٰهُ بِهَا دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْكَ بِهَا خَطِيئَةً، قَالَ مَعْدَانُ ثُمَّ لَقِيتُ أَبَا

ځکه چې ته د الله ﷻ لپاره کومه سجده کوې الله ﷻ به د هغې په بدله کې ستا مرتبې پورته کوي او د دې په سبب به ستا ګناهونه ليرې کوي ، معدان وايي د دې وروسته زه

الدَّرْدَاءِ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ لِي مِثْلَ مَا قَالَ لِي ثَوْبَانُ. رواه مسلم

د ابودرداء رضي الله عنه سره يو ځای سوم د هغه څخه مي هم دغه پوښتنه وکړه نو هغه هم دغه جواب راکړ کوم چي ثوبان راکړی وو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۵۳، رقم: ۲۲۵- ۴۸۸.

**تشريح**: د معدان رحمة الله عليه پر دوه واره سوال کولو باندي ثوبان رضي الله عنه ځکه جواب نه ورکړ ي د پوښتنه کونکي شوق زيات سي او د شوق په اور زياتېدو سره د جواب د ارزښت او عظمت احساس وکړل سي او عملي قوت يې پوره بيدار سي، د سجدو څخه مراد خاص سجدې نه دي بلکه د لمانځه سجدې هم مراد کيدای سي او سجده تلاوت او سجده شکر هم مراد کيدای سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د سجدې کولو طريقه

﴿۸۳۸﴾: عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليدی کله چي به هغه

سَجَدَ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ. رواه أبو داود والترمذي والنسائي وابن ماجه والدارمي.

سجده کول نو د لاسونو څخه وړاندي به يې دواړي ګونډې پر مځکه لګولې او کله چي به د سجدې څخه راپورته کيدی نو مځکي به يې لاسونه را پورته کول. نسائي، ابن ماجه، دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۲۴، رقم: ۸۳۸، والترمذي ۲\ ۵۶ رقم: ۲۶۸ والنسائي ۲\ ۲۰۵، رقم: ۱۰۸۵، وابن ماجه ۱\ ۲۸۶، رقم: ۸۸۲ والدارمي ۲\ ۳۴۷، رقم: ۱۳۲۰.

**تشريح**: د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام شافعي رحمة الله عليه مذهب هم دا دی چي د سجدې کولو مځکي دواړه زنګنونه پر مځکه کښېږدي دې وروسته دي دواړه لاسونه کښيږدي همداسي د سجدې څخه د راپورته کيدو مځکي بيا دواړه لاسونه بيا دواړه زنګنونه پورته کول پکار دي.

د ابوداود په یوه روایت کي دی چي رسول الله ﷺ د سجدې څخه د زنګنو په زور پورته کیدی او خپل دواړه لاسونه به یې پر ورونو ایښودل.

علماؤ د سجدې اندامونه پر مځکه ایښودو په اړه اصول ټاکلي دی او هغه دا چي د سجدې اندامونه پر مځکه ایښودل د مځکي د نژدېوالي په اعتبار دي یعني کوم اندام چي مځکي ته ډیر زیات نژدې وي مخکي هغه پر مځکه ایښودل پکار دي په دې ترتیب سره دي ټول اندامونه ایږدي او د سجدې څخه د راپورته کیدو په وخت کي ددې برعکس کیدل پکار دي یعني کوم اندام چي د مځکي سره تر ټولو زیات نژدې وي هغه تر ټولو وروسته پورته کول پکار دي.

پر مځکه د پزي او تندي ایښودو په اړه مسئله خو داده چي پزه او تندی دواړه د یو اندام په حکم کي دي چي دواړه اندامونه یو ځاي پر مځکه ایښودل پکار دي مګر د ځینو حضراتو په نزد پزه مځکي ته نژدې وي ځکه نو مخکي پزه ایښودل پکار دي ددې وروسته دي تندی ایږدي، علامه شمي فرمايي چي سجدې ته د تللو په وخت کي که د څه عذر مثلاً موزه، وغیره په وجه دواړه لاسونه مخکي ایښودل ګران وي نو اول دي دواړه لاسونه پر مځکه کښیږدي تر هغه وروسته دي دواړه ځنګنونه کښیږدي.

﴿۸۳۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَبْرُكْ كَمَا يَبْرُكُ الْبَعِيْرُ وَلْيَضَعْ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ. رواه أبو داود والنسائي. والدارمي قال أبو سليمان الخطابي حديث وائل بن حجر أثبت من هذا وقيل هذا منسوخ.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي په تاسو کي یو څوک سجده کوي نو داسي دي نه کښیني لکه څرنګه چي اوښ کښیني بلکه سجدې څخه د تلو په وخت کي دي مخکي خپل لاسونه پر مځکه لګوي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۲۵ رقم: ۸۴۰، والنسائي ۲\ ۲۰۷، رقم: ۱۰۹۰ والدارمي ۱\ ۳۴۷، رقم: ۱۳۲۱.

**تشریح**: د اوښ په ډول د نه کښېنستو مطلب دادی چي څرنګه اوښ د ناستي په وخت کي خپل دواړي ګونډې پر مځکه لګوي همداسي سجدې ته د تلو په وخت کي دواړي ګونډې مخکي پر مځکه لګول نه دي پکار.

رسول الله ﷺ د اوښ د ناستي سره مشابهت ورکړی دی د دې سربيره چي اوښ د ناستي پر وخت پر مخکه د پښو اېښودو څخه مخکي لاس اېږدي ددې وجه داده چي د انسان ګونډې په پښه کي وي او د حيوانانو ګونډې په لاسو کي وي، هر کله چي يو سړی سجدې ته د تلو په وخت کي پر مخکه دواړي ګونډې اېږدي نو د اوښ د ناستي سره به يې مشابهت وي .

په هر حال دا حديث د پورتني حديث مخالف دی ځکه چي لومړنی حديث خو پر دې خبره دلالت کوي چي مخکي ګونډې پر مځکه کښېښودل سي دا وجه ده چي په دې مسئله کي د علماؤ هم اختلاف دی څرنګه چي په پورتني حديث کي تشريح سوې ده ، جمهور علماء، امام اعظم رحمة الله عليه ، امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه پر پورتني حديث باندي چي د وائل ابن حجر رحمه الله څخه روايت دی عمل کولو سره وايي چي مخکي دواړي ګونډې دي پر مځکه ولګوي .

حضرت امام مالک رحمة الله عليه ، اوزاعي او ځيني نور علماء د حضرت ابوهريره رضي الله عنه پر دې حديث باندي په عمل کولو سره وايي چي مخکي پر مځکه دواړه لاسونه اېښودل پکار دي .

د دې دواړو حديثو په اړه علماء وايي چي د ابوهريره رضي الله عنه د دغه روايت څخه د وائل ابن حجر رحمة الله عليه پورته حديث زيات صحيح ، قوي او مشهور دی او د حفاظ حديث يو ډله دا حديث د صحت مرتبې په رسولو سره دې ته ترجيح ورکړې ده او د فن حديث دا قاعده ده چي هر کله دوه حديثونه د يو بل مخالف وي نو عمل به پر قوي او صحيح حديث باندي کيږي ، همدا وجه ده چي ځينو علماؤ د ابوهريره رضي الله عنه روايت د وائل د روايت په ذريعه منسوخ ګرځولی دی ، او په يوه روايت کي د ابن خزيمه رحمة الله عليه څخه هم روايت دی چي رسول الله ﷺ به سجدې ته تلی نو د سجدې پيل به يې د ګونډو څخه کوی ، دغه وجوهاتو ته د مشکوة مؤلف قال ابوسليمان ويلو سره اشاره کړې ده .

## د دوو سجدو په مينځ کي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۸۴۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَارْحَمْنِيْ وَاهْدِنِيْ وَعَافِنِيْ وَارْزُقْنِيْ . رواه أبو داود والترمذي .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د دوو سجدو په منځ کي دا دعاء ويل : (اې الله ! ما و بخښې پر ما رحم وکړې ما ته هدايت وکړې ما په عافيت کي ولرې او ما ته

رزق راکړي.) ابوداؤد او ترمذي

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۵۳۰- ۵۳۱، رقم: ۸۵۰، والترمذي ۲\ ۷۶، رقم: ۲۸۴.

﴿۸۴۱﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ بَيْنَ السُّجْدَتَيْنِ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ. رواه النسائي والدارمي.

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د دوو سجدو په منځ کي (رب اغفرلي) ويل. نسائي او دارمي

**تخريج:** سنن النسائي ۲\ ۲۳۱، رقم: ۱۰۹۰ والدارمي ۱\ ۳۴۸، ۳۴۹، رقم: ۱۳۲۴.

**تشريح:** دا روايت ابن ماجه رحمة الله عليه هم نفل کړی دی مګر د هغه روايت سوي دغه دعائيه کلمات درې واره مذکور دي يعني رسول الله ﷺ به د دواړو سجدو په مينځ کي دغه دعاوي درې واره ويلې.

## اَلْفَصْلُ الثالث (درېيم فصل)

### په تلوار سره د سجدې کولو منعه

﴿۸۴۲﴾: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ شِبْلٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالرحمن بن شبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده

عَنْ نُقْرَةِ الْغُرَابِ وَافْتِرَاشِ السَّبُعِ وَأَنْ يُّوَطِّنَ الرَّجُلُ الْمَكَانَ فِي الْمَسْجِدِ

د کارګه په ډول د مښوکي وهلو څخه او د حيوانانو په ډول د لاسونو غزولو څخه او د دې څخه چي سړی په مسجد کي ځای و ټاکی

كَمَا يُوَطِّنُ الْبَعِيْرُ. رواه أبو داود والنسائي والدارمي.

د اوښ په ډول. ابوداؤد، نسائي او دارمي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۵۳۸- ۵۳۹، رقم: ۸۶۲ والنسائي ۲\ ۲۱۴، رقم: ۱۱۱۱ والدارمي ۱\ ۳۴۸، رقم: ۱۲۲۳.

**تشريح** : په دې حديث كي د درو شيانو څخه منعه كيږي: اول شى خو دا چي څرنگه كارگه د داني ټولو لپاره ژر ژر پر مځكه موښكه وهلو سره داني ټولوي همداسي د سجدې څخه په تلواره سر نه پورته كوي، دوهم دا چي حيوانان د مثال په توگه سپى ، شرموښ او داسي نور چي څرنگه خپل مروندونه پر مځكه خپرولو سره كښيني همداسي د سجدې په وخت كي دي مروندونه پر مځكه نه خپروي ، دريم شى دا چي څرنگه اوښ د خپل ناستي لپاره يو ځاى ټاكي چي د هغه څخه پرته بل اوښ هلته نسي كښينستلاى همداسي په مسجد كي يو ځاى دي د ځان لپاره نه ټاكي چي پر هغه ځاى بل څوك نسي كښينستلاى ځكه چي مسجد د ټولو لپاره دى څوك چي چيري غواړي هلته كښينستلاى سي د ځان لپاره يو ځاى ټاكلو سره هلته دوهم سړى د ناستي څخه منعه كول مكروه او ممنوع دي .

علامه حلواني رحمة الله عليه ليكي چي زموږ د علماؤ په نزد دا مكروه دي چي په مسجد كي يو خاص جامه د دې لپاره و ټاكل سي چي د هغه پرته پر بله جامه به لمونځ نه كوي ځكه چي په دې ډول عبادت د هغه خاص جامې سره عادت جوړيږي چي د هغه څخه پرته پر يو بله جامه باندي لمونځ كول د سختى او گرانى باعث جوړيږي حال دا چي عبادت په عادت سي نو هغه پرېښودل پكار دي په دې وجه هميشه روژل نيول مكروه دي، دا مسئله پر دې قياس كيږي چي په مسجد كي يو ځاى د ځان لپاره ټاكل او هلته بل سړى د ناستي څخه منعه كول د شريعت په نگاه كي يو مستحسن كار نسي كيداى هر كله چي د هغه څخه مقصد هم ښه نه وي .

## د سجدو په مينځ كي اقعاء منعه ده

﴿۸۴۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَلِيُّ إِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي وَأَكْرَهُ لَكَ مَا أَكْرَهُ لِنَفْسِي لاَ تُقْعِ بَيْنَ السُّجْدَتَيْنِ . رواه الترمذي .

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې علي ! زه ستا لپاره هغه شى خوښوم كوم چي د ځان لپاره خوښوم او هغه شى ستا لپاره بد گڼم كوم چي د ځان لپاره بد گڼم نو ته د دوو سجدو په منځ كي اقعاء (د سپي په ډول ناسته) مه كوه . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۷۲، رقم: ۲۸۲.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ ذات اقدس خو د ټول عالم لپاره سر تر پايه رحمت او شفقت وو مګر د خپل امت د خلکو لپاره بې پايه شفيق وو د شفقت او محبت بې دا اثر وو چي کوم شی به بې د ځان لپاره خوښوی هغه به بې د خپل امت لپاره هم خوښوی او کوم چي به بې نه خوښوی هغه به بې د خپل امت لپاره هم نه خوښوی، ددې جذبې اظهار بې حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايه او دا بې ښکاره کړه چي زه د دواړو سجدو په مينځ کي اقعاء د ځان لپاره نه خوښوم ځکه ستا او د نورو خلکو لپاره بې هم نه خوښوم ددې څخه ځان وساتئ.

**د اقعاء تحقيق** : د اقعاء مطلب دادی چي داسي کښيني چي کوناټي بې پر مځکه لګولي وي او ورنونه او پنډۍ بې ولاړي وي او لاسونه بې پر مځکه ايښي وي څرنګه چي پر مځکه کښيني د اقعاء صحيح معنی خو داده البته ځيني حضراتو ددې مطلب دا اخيستی دی چي د دواړو سجدو په مينځ کي د پښو په پنجو دريدو سره پر پنډۍ چي کښيني ددې څخه ماسوا ددې نوري معناوي بې هم ليکلي دي په هر حال د اقعاء کوم شکل چي اختيار کړل سوی دی د دواړو سجدو په مينځ کي هغه اختيارول د ټولو علماؤ په اتفاق سره مکروه دی.

## په رکوع او سجده کي ملا سيده کول

﴿۸۴۴﴾: وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيِّ الْحَنَفِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَنْظُرُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلٰى صَلاَةِ عَبْدٍ لاَ يُقِيْمُ فِيْهَا صُلْبَهُ بَيْنَ رُكُوْعِهَا وَسُجُوْدِهَا. رواه أحمد.

د حضرت طلق بن علي الحنفي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله جل جلاله د هغه بنده لمانځه ته نه ګوري چي د خپل لمانځه په رکوع او سجده کي خپله ملا نه سيده کوي. احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۲.

**تشريح** : د الله جل جلاله په دربار کي هغه لمونځ د مقبوليت درجې ته رسيږي چي د هغه ټوله ارکان په پوره توګه سره اداء کړل سي که يور رکن د خپل قواعد او آداب سره سم صحيح نه وي نو لمونځ د مقبوليت درجې ته نه رسيږي رکوع او سجده د لمانځه مهم ارکان دی که په دې کي نقص پاته سي نو ګويا پوره لمونځ ناقص سو چي د هغه په وجه هغه لمونځ د پوره والي او کمال مرتبې ته نه رسيږي نو ددې حديث په ذريعه خبر ورکول کيږي چي په رکوع او سجدو کي پوره

احتیاط کول پکار دي یعني د مخکي رکوع او سجدې څخه د را پورته کیدو ورسته ملا په کړولو سره بغیر د دویمي رکوع او سجدې ژر ژر ولاړ سي نو هغه رکوع او سجده به د ادا کولو مستحق نه وي د هغه نتیجه به دا وي چي هغه لمانځه ته به خداوند قدوس و نه ګوري یعني هغه به قبول نه کړي .

## لاسونه هم سجده کوي

﴿۸۲۵﴾: وَعَنْ نَّافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُوْلُ مَنْ وَضَعَ جَبْهَتَهُ بِالْأَرْضِ فَلْيَضَعْ كَفَّيْهِ عَلَى الَّذِيْ وَضَعَ عَلَيْهِ جَبْهَتَهُ ثُمَّ إِذَا رَفَعَ فَلْيَرْفَعْهُمَا فَإِنَّ الْيَدَيْنِ تَسْجُدَانِ كَمَا يَسْجُدُ الْوَجْهُ . رواه مالك .

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چي ابن عمر رضي الله عنه به ویل ثوک چي خپل تندی پر مځکه ولګوي یعني سجده وکړي نو هغه ته پکار ده چي خپل لاسونه پر هغه ځای ولګوي چي پر کوم يې تندی ایښی وي بیا چي د سجدې څخه پورته کیږي نو دواړه لاسونه دي پورته کړي ځکه چي لاسونه هم داسي سجده کوي لکه څرنګه چي مخ سجده کوي ، مالک

**تخریج**: مالک في الموطا ۱\۱۶۳، رقم: ۶۰.

**تشریح**: لمونځ کونکی چي سجدې ته ځي نو یوازي د هغه تندی او پزه سجده نه کوي بلکه د هغه هر اندام په دربار الهي کي کښته کیږي او سجده کوي ځکه فرمایل سوي دي چي د سجدې په وخت کي لاسونه هم پر مځکه د تندي ایښودو پر ځای یعني د تندي برابر ایښول پکار دي چي د لاسونو سجده هم پوره سي .

### په سجدې کي دواړه لاسونه په کوم ځای کي کښیږدي .

ددې حدیث څخه معلومه سوه چي په سجده کي دواړه لاسونه دې د تندي برابر ایږدي د حنفیه مختار مذهب هم دادی د شافعیانو حضراتو په نزد مختار مذهب دادی چي په سجده کي دواړه لاسونه د اوږو برابر ایښودل پکار دي .

د حدیث الفاظ (فالیضع کفیه علي الذي ...الخ ) مطلب يې دادی چي دواړه لاسونه دي د تندي برابر کښیښودل سي مګر ددې معنی دا هم اخیستل کیدای سي چي دواړه لاسونه دي هم پر مځکه داسي کښیږدي څنګه چي تندی يې ایښی وي یعني مخ پر قبله دي ساتي . والله اعلم

============

# بَابُ التَّشَهُّدِ (د التحيات بيان)

د شهادت معنی شاهدي ورکول او داسي ربنتيا خبره کول چي په هغه کي زړه د ژبي سره وي يعني کومه خبره چي په ژبي سره ورکړل سي هغه په زړه کي هم وي، تشهد وايي شاهد کيدو ته او د هغه علم اظهار ته چي په زړه کي وي.

د شريعت په اصطلاح کي تشهد (اشهد ان لااله الا الله و اشهد ان محمدا رسول الله) او هغه ذکر چي د لمانځه په قعده کي يې وايي هغه ته هم ويلای سې ګويا التحيات ته تشهد ځکه وايي چي په دې کي د شهادتين کلمه هم ويل کيدای سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په تشهد کي د لاسو اېښودو طريقه

| |
|---|
| ﴿۸۴۶﴾: عَنْ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَعَدَ فِي التَّشَهُّدِ |
| د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ د تشهد لپاره کښېنستی |
| وَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ |
| نو چپه لاس به يې پر چپه ورانه او راسته لاس به يې پر راسته ورانه کښېښودی |
| الْيُمْنَى وَعَقَدَ ثَلَاثَةً وَخَمْسِينَ وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ و في رواية كَانَ إِذَا جَلَسَ فِي |
| او خپل لاس به يې د (۵۳) عدد په ډول بندوی او د شهادت په ګوتي سره به يې اشاره کول، په يو بل روايت کي دا الفاظ دي کله چي به رسول الله ﷺ کښېنستی په |
| الصَّلَاةِ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَرَفَعَ إِصْبَعَهُ الْيُمْنَى الَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ فَدَعَا |
| لمانځه کي نو دواړه لاسونه به يې پر خپلو ورنو اېښودل او د راسته لاس هغه ګوته چي د بټې ګوتي سره ده پورته کول او دعاء به يې غوښتل، |
| بِهَا وَيَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى بَاسِطَهَا عَلَيْهَا. رواه مسلم |

او چپه لاس به يې خلاص پر چپه ورون ايښودی . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۱\۴۰۸، رقم: ۱۱۵- ۵۸۰.

**تشريح:** د درو پنځوس عدد په ډول: مطلب دادی چي اهل حساب د شمير په وخت کي ګوتي څنګه بندوي هغوی هره ګوته د يو ټاکلي عدد لپاره ټاکل'ده چي هغه د يويز لپاره دلته کښېښودل سي او د لسيز او سليز او زريز لپاره فلانی فلانی ځای ، نو د راوي د ويلو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د شهادت ګوته د اشارې لپاره د پورته کولو وخت کي پاته ګوتي داسي بندولې لکه څرنګه چي د درو پنځوس لپاره ګوتي بندوي او د هغه صورت دادی چي غچې ګوته د هغه نژدې ګوته او د مينځ ګوته بنده کړل سي او د شهادت ګوته خلاصه کړل سي او د بټې ګوتي سره د شهادت د ګوتي په بيخ کي کښېښودل سي دې ته د درو پنځوس عدد وايي، امام شافعي رحمة الله عليه او د يوه روايت سره سم امام احمد رحمة الله عليه پر دغه حديث باندي د عمل کولو سره دا طريقه اختيار کړې ده.

## د حنفيه په نزد د شهادت د ګوتي پورته کولو طريقه

اوس تاسو د دروپنځوس عدد په وضاحت سره ووايه همداسي يو عدد تسعين (۹۰) دی د هغه شکل دا وی چي غچې ګوته او نژدې ګوته بنده کړل سي او د شهادت ګوته خلاصه سي او د بټې ګوتي سر د مينځ د ګوتي پر سر د ايښودو سره د حلقې شکل ورکړي امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمايي د شهادت د ګوتي د پورته کولو لپاره دا طريقه اختيارول پکار دي د امام احمد رحمة الله عليه يو قول هم دادی د امام شافعي رحمة الله عليه قول قديم هم دادی او دا طريقه د مسلم رحمة الله عليه د راتلونکي روايت څخه هم ثابته ده چي عبد الله بن زبير ﷺ څخه روايت دی همداسي احمد رحمة الله عليه او ابوداود رحمة الله عليه هم د حضرت وائل ابن حجر رض څخه نقل کړی دی .

د امام مالک رحمة الله عليه مذهب دادی چي د راسته لاس ټولي ګوتي دي بندي کړل سي او د شهادت ګوته دې پورته کړل سي .

په ځينو حديثو کي د ګوتو بندولو بغير د شهادت په ګوتي سره اشاره کول هم ثابت دي د ځينو حنفي علماوو په نزد داسي معلوميږي چي خپله د رسول الله ﷺ عمل به هم همداسي مختلف وو چي کله به يې اشاره بغير د حلقه جوړولو او کله به يې په عقد سره کول په دې وجه ددې مختلو حديثو توجيه چي د هغه څخه دا دواړه حديثونه ثابتيږي داسي کيږي .

ماوراء النهر یعني بخارا او سمرقند وغیره او د هندوستان حنفیه دا عمل د عقل او اشارت یعني د راسته لاس ګوتي بندولو سره د شهادت ګوته پورته کول ترک کړی دی ممکنه ده د صاحب مظاهر حق علامه نواب قطب الدین په زمانه کي د هندوستان حنفیه د عمل عقد او اشارت د پریښولو قائل وو خو اوس ټول حنفي ددې قائل دي که څه هم متدقمین کي دا عمل جاري وو خو متاخرینو په دې کي اختلاف کړی دی مګر. د حرمین او د عرب د نورو په رقمو علماوو په نزد مختار مذهب عقد و اشارت کول ذي.

علامه شیخ ابن الهمام رحمة الله علیه چي د هغه شمیر محققینو په حنفیه کي کیږي فرمایلي دي چي اول تشهد یعني په التحیات کي تر شهادتین پوري خولاس خلاص ساتل پکار دی او د تهلیل یعني لا اله الا الله ویلو ذکر کولو تسبیح ویلو په وخت کي ګوتي بندول پکار دي او د شهادت په ګوتي سره اشاره کول پکار دي موصوف لیکي چي د اشاره کولو څخه منعه کول د روایت څخه خلاف دی.

په محیط کي ذکر دي چي د راسته لاس د شهادت ګوته پورته کول د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه او د امام محمد رحمة الله علیه په نزد سنت دي او د امام ابو یوسف رحمة الله علیه څخه هم ثابت دي علامه نجم الدین زاهدي رحمة الله علیه فرمایي ز مونږ د علماوو په متفقه طور سره دا قول دی چي د اشارت عمل سنت دی هر کله چي د صحابهٔ کرام رضی الله عنهم تابعینو آئمه دین محدثین عظام فقهایي امت او د علماېي کوفه او د مدینه ټولو علماؤ مذهب دادی چي په التحیات کي د شهادت په وخت د راسته لاس د شهادت ګوته پورته کول یعني د وحدانیت اشاره کول پکار دي او دا چي ددې ثبوت کي ډېر حدیثونه او د صحابه رض اقوال وارد دي نو بیا په دې عمل کول اولي او ارجح دي.

د اشاره کولو طریقه داده چي کله کلمه شهادت ته ورسیږي نو د شافعیه په نزد الا الله ویلو په وخت د شهادت ګوته پورته کول پکار ده او د حنفیه په نزد کم وخت چي لا اله الا الله وایي نو ګوته دي پورته کړي او کله چي الا الله وواېي نو ګوته دې کښېږدي په دې سلسله کي دومره خبره هم نوره یاد ساتل پکار دي چي د ګوتي پورته خوا ته دي اشاره نه کوي چي د جهت وهم پیدا نه سي.

د حدیث الفاظ یدعوابها دې سره دعا غوښتلو مطلب دادی چي رسول الله صلي الله علیه وآله وسلم به د شهادت ګوته پورته کولو سره د وحدانیت اشاره کوله چي د هغه خوا ته په ترجمه کي اشارہ سوې ده یا د دعا څخه مراد ذکر دی ځکه چي ذکر کونکی هم د انعام او اکرام مستحق وي.

د حديث آخري جمله چي چپه لاس به يې پر خپلو ورنو خلاص ساتلو ددې مطلب دادی چي چپه لاس به يې زنګون ته نژدې يعني پر ورنو باندې خلاص مخ پر قبله اېښودی.

﴿۸۴۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم

إِذَا قَعَدَ يَدْعُو وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَيَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ

په لمانځه کي کښېنستی نو راسته لاس به يې پر راسته ورانه کښېښودی او چپه لاس به يې پر

الْيُسْرَى وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ السَّبَّابَةِ وَوَضَعَ إِبْهَامَهُ عَلَى إِصْبَعِهِ الْوُسْطَى وَيُلْقِمُ كَفَّهُ الْيُسْرَى رُكْبَتَهُ. رواه مسلم

چپه ورانه اېښودی او د شهادت په ګوته سره به يې اشاره کول او بټه ګوته به يې د منځنۍ ګوتي سره يو ځای کولو څخه حلقه جوړول او په چپه لاس سره به يې خپل چپه زنګون نيوی. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۴۰۸، رقم: ۱۱۳- ۵۷۹.

**تشريح**: څرنګه چي اوس مخکي ښودل سوي دي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي په التحيات کي کلمه شهادت د ويلو په وخت کي د راسته لاس ګوته پورته کولو په وخت دا طريقه اختيارول پکار دي چي غچې ګوته او د هغه نژدې ګوته بنده کړل سي او د بټې ګوتي سر د مينځ ګوتي پر سر اېښودو سره حلقه جوړه کړل سي او د شهادت ګوته پورته کړل سي.

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د التحيات ويلو سره د ناستي په وخت کي همداسي حلقه جوړول پکار ده مګر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد دا حلقه د ګوتي پورته کولو پر وخت جوړول پکار دي.

﴿۸۴۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به موږ د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره لمونځ کوی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا السَّلَامُ عَلَى اللهِ قَبْلَ عِبَادِهِ السَّلَامُ عَلَى جِبْرِئِيلَ السَّلَامُ

نو په ناسته کي به مو دا ويل : پر الله دي سلام وي د بندګانو څخه وړاندي پر جبرائيل عليه السلام دي سلام وي او سلام دي وي

عَلٰى مِيكَائِيلَ اَلسَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ فَلَمَّا انْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

پر ميکائيل عليه السلام او پر فلان دي سلام وي، يوه ورځ چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو

اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ قَالَ لَا تَقُوْلُوْا اَلسَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ فَاِذَا

نو مونږ ته متوجه سو او وه يې فرمايل : پر الله جل جلاله سلام مه وايا ست ځکه چي الله جل جلاله په خپله سلام دی کله چي

جَلَسَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَقُلِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ

تاسو لمونځ کوئ نو په ناسته کي دا واياست (التحيات لله والصلوات والطيبات السلام

عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ

عليک ايها النبي ورحمة الله وبركاته ، السلام علينا وعلى عباده الله

الصَّالِحِينَ فَإِذَا قَالَهَا أَصَابَتْ كُلَّ عَبْدٍ لِلّٰهِ صَالِحٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَشْهَدُ

الصالحين، څوک چي دا کلمات وايي نو د هغه سلام هر نيک بنده ته چي په آسمان او ځمکي کي وي رسيږي بيا دا کلمات رسول الله ﷺ پر دې الفاظو ختم کړل (اشهد

أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ ثُمَّ يَتَخَيَّرُ مِنَ الدُّعَاءِ

اَعْجَبَهُ اِلَيْهِ فَيَدْعُوْهُ . متفق عليه

ان لااله الاالله......) او ددې وروسته چي کومه دعاء به يې خوښه وه د الله څخه به يې غوښتل . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳۱۱۱، رقم: ۶۲۳۰ ومسلم ۳۰۱۱۱-۳۰۲، رقم: ۵۵-۴۰۲.

**تشريح** : ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي کله رسول الله ﷺ ته معراج حاصل سو او د الله تعالى په دربار کي حاضر سو نو د الله جل شانه په تعريف کي يې دا کلمات وويل :

التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ

ژباړه: ټول تعريفونه، مالي او بدني عبادتونه الله تعالی لره دي.
د دې په جواب کي د الله تعالی د لوري دا وفرمايل سول:

السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ

ژباړه: پر تا دي سلام وي او د الله تعالی رحمتونه او برکتونه.
د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل:

السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ

ژباړه: پر موږ دي هم سلام وي او د الله تعالی پر نيکو بندګانو دي هم سلام وي.
بيا جبرائيل عليه السلام وويل:

أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ

ژباړه: زه ددې شاهدي ورکوم چي د الله تعالی څخه پرته بل معبود نسته او شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله تعالی رسول دی.

په هر حال په (السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ) کي د نيکو بندګانو په قيد لګولو سره دې ته اشاره سوې ده چي پر بدبخت او بدکاره بندګانو باندي سلام ليږل يا هغوی ته سلام کول مناسب نه دي ددې سعادت حقدار او وړ هغه بندګان دي چي د خپل عقيدې، فکر، اعمال او کړنو په اعتبار د الله تعالی او د هغه د رسول په نظر کي خوښ وي چي صالح ورته ويل کيږي، او صالح بنده هغه دی چي د حقوق الله او حقوق العباد دواړو خيال په نظر کي ساتي او دواړه پوره کوي.

شيخ عبدالقادر جيلاني رحمة الله عليه فرمايلي دي چي صلاح په اصل کي د هغه حالت نوم دی چي په هغه کي د بنده ذاتي ارادې او خواهشات د مرګ پر ګودر راکښته سي او د الله تعالی په مراد او مقصد قائم پاته سي چي د هغه په وجه هغه بنده د صالح ويلو مستحق سي، نو بنده ته پکار ده چي هغه د پروردګار پر رضا او خواهش باندي په دې کيفيت سره راضي او خپل ټول امور الله تعالی ته داسي وسپاري لکه څرنګه چي نوی پيدا سوی ماشوم د تي ورکونکي په لاس کي يا مړی د غسل ورکونکي په لاس کي وي.

علماء ليکي چي هر کله بنده دې مرتبې ته ورسيږي او د هغه د بندګۍ او اطاعت جذبه دومره لطيفه او پاکه سي نو هغه په يقيني توګه سره د ټولو دنياوي او جسماني او نفساني آفات او بلاګانو څخه محفوظ او مامون وي، په آخر کي په دې خبره هم پوه سئ چي التحيات د دواړو

قعدو په مينځ كي ويل پكار ده او دا چي د مينځ قعده واجب ده او آخري قعده فرض ده .

《۸۴۹》: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْآنِ فَكَانَ يَقُولُ التَّحِيَّاتُ

موږ ته تشهد داسي را ښودل لکه څرنګه چي به يې د قرآن يو سورت را ښودی، رسول الله ﷺ به ويل : التَّحِيَّاتُ

الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ

الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ

وَبَرَكَاتُهُ سَلَامٌ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ

وَبَرَكَاتُهُ سَلَامٌ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ

وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ . رواه مسلم ، و لم اجد في الصحيحين و لا في الجمع بين الصحيحين سلام عليك و سلام علينا بغير الف ولام ولكن رواه صاحب الجامع عن الترمذي .

وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ ) مسلم. ما سلام عليک او سلام علينا بېله الف او لام څخه نه په صحيحين کي ليدلی دی او نه د بين الصحيحين په جمع کي مګر صاحب د جامع د ترمذي څخه روايت کړی دی .

**تخريج** : صحيح مسلم ۱\۳۰۲، ۳۰۳، رقم: ۶۰ - ۴۰۳، و سنن الترمذي ۲\۸۳، رقم: ۲۹۰.

**تشريح** : په دې روايت کي ابن عباس ﷺ د تشهد يعني التحيات کوم الفاظ چي نقل کړي دي پر هغه شافعيه حضرات عمل کوي او د التحيات دا الفاظ وايي مګر د حنفيه حضراتو په نزد دلته د ابن مسعود ﷺ روايت سوی تشهد الفاظو باندي چي ددې څخه په مخکي روايت کي تير سوي دي عمل کيږي د عبدالله ابن مسعود ﷺ روايت سوی حديث د تشهد په باره کي

محدثين صراحت كوي چي دا صحيح دی .
علامه ابن حجر شافعي رحمة الله عليه فرمايي چي د تشهد په اړه څومره حديثونه چي روايت دي په هغه ټولو كي د عبد الله ابن مسعود ﷺ روايت سوي حديثونه تر ټولو زيات دي .
امام احمد رحمة الله عليه هم د ابن مسعود ﷺ په حديث عمل كوي او صحابه او تابعين كي د اكثر اهل علم معمول هم د دوی د حديث مطابق وو بيا خپله د رسول الله ﷺ په باره كي نقل دي چي رسول الله ﷺ د ابن مسعود ﷺ روايت سوی حديث د تشهد په باره كي حكم فرمايلی وو چي دادی خلكو ته وښودل سي په مسند امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه كي نقل دي چي رسول الله ﷺ ابن مسعود ﷺ ته حكم وركړی وو چي هغه دا تشهد خلكو ته وروښيي .
په يو دوهم روايت كي ذكر دي چي ابن مسعود ﷺو فرمايل چي رسول الله ﷺ زما لاس ونيوی څرنګه چي ماته يې د قرآن تعليم راكوی همداسي ماته يې دا تشهد هم وښودی .
بيا د ابن مسعود ﷺ او ابن عباس ﷺ په روايتونو كي دا هم لوی فرق دی چي د ابن مسعود ﷺ او ابن عباس ﷺ روايت يوازي په مسلم كي نقل سوی دی هر كله چي د ابن عباس ﷺ روايت يوازي په مسلم كي نقل سوی دی د امام مالک رحمة الله عليه په باره كي ويلي دي چي هغوی هغه تشهد اختيار كړ كوم چي د حضرت عمر ﷺ څخه نقل دی التحيات لله الزاكيات لله الطيبات لله الصلواة عليک ايها النبي ...... الخ)
په هر حال علماء دا ليكي چي دا پوره بحث يوازي د اوليت او افضليت سره متعلق دی يعني د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د ابن مسعود ﷺ تشهد ويل افضل دی او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د ابن عباس ﷺ روايت سوی تشهد افضل دی مګر تر څوپوري چي د جواز سوال دی نو مسئله داده چي په دې كي كوم تشهد هم وغواړي ويل يې جائز دي .
د روايت اخري الفاظ (ولم اجد الخ ) څخه در اصل مولف مشكوة صاحب پر مصابيح باندي يو اعتراض كيږي هغه دا چي صاحب مصابيح د ابن عباس ﷺ څخه په روايت سوي تشهد كي سلام عليک او سلام علينا بغير الف لام ذكر كړی دی حالانكه دغسي دا روايت په بخاري او مسلم كي نقل دی نو د صاحب مصابيح دا روايت په اول فصل كي ذكر كول صحيح نه دی .والله اعلم .

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د اشارې پر وخت د شهادت ګوته متحرک اېښودل

﴿۸۵۰﴾: وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثُمَّ

د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه څخه روايت دی چې هغه وويل: بيا رسول الله ﷺ

جَلَسَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُسْرٰى

په لمانځه کې کښېنستی چپه پښه يې و غزول او چپه لاس يې پر چپه ورون کښېښودی

وَمَدَّ مِرْفَقَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى وَقَبَضَ ثِنْتَيْنِ وَحَلَقَ حَلْقَةً ثُمَّ رَفَعَ

او د راسته لاس څنګل يې د بغل څخه جلا کړه راسته لاس يې پر راسته ورون کښېښودی او دوې ګوتې يعني کوچنۍ او د هغې سره بله ګوته يې بنده کړه او د منځنۍ ګوتې او بټې ګوتې حلقه يې جوړه کړه او بيا يې پورته کړه

اِصْبَعَهُ فَرَاَيْتُهُ يُحَرِّكُهَا يَدْعُوْ بِهَا . رواه أبو داود والدارمي .

د شهادت ګوته ، ما وليدل چې رسول الله ﷺ به دې ګوتې ته حرکت ورکوی او په دې سره به يې اشاره کول .ابوداؤد او دارمي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۸۷، رقم: ۹۵۷، والدارمي ۱\ ۳۶۲، رقم: ۱۳۵۷.

**د لغاتو حل**: (وحد): اى فصل بين مرفقه وجنبه (څنګل او بغل بېلول).

**تشريح**: دا حديث د يو مسلسل حديث ټوټه ده چې په هغه کې د رسول الله ﷺ د ټول لمانځه تفصيل ذکر سوی دی په دې موقع باندې د لمانځه رعايت پيش نظر د جلسې کيفيت ذکر کول مقصد وه ځکه (ثم جلس) څخه يوازې دا ټوټه ذکر سوې ده .

ددې حديث څخه دا معلومېږي چې د شهادت ګوته په پورته کولو سره هغه متحرک اېښودل پکار ده د امام مالک رحمة الله عليه مذهب دادی چې د اشارې په وخت ګوته پورته کول پکار دي مګر د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد ګوته متحرک نه ده ساتل پکار ځکه چې ددې وروسته حديث لايتحرکها په ويلو سره په صراحت سره ددې فعل څخه منعه کړې ده .

تر څو پورې چې ددې حديث د الفاظو تعلق دی نو ويل كيدای سي چې دلته (يتحركها) يعني حركت وركولو څخه مراد ګوته پورته كول دي ځكه چې ګوته پورته كولو كي هم په هر حال حركت وي په دې توجيه په دې حديث او مابعد حديث كي تطبيق به هم وسي.

**د اشارې پر وخت ګوته متحرک ابښودل نه ده پکار**

﴿۸۵۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُشِيْرُ بِإِصْبَعِهِ إِذَا دَعَا وَلاَ يُحَرِّكُهَا. رواه أبو داود والنسائي وزاد أبو داود ولا يجاوز بصره إشارته.

د حضرت عبدالله بن زبير ﷺ څخه روايت دی چې كله به رسول الله ﷺ په لمانځه كي كلمه شهادت ويل نو په ګوتې سره به يې اشاره كول مګر دې ته به يې حركت نه وركوی. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۰۴، رقم: ۹۹۰ والنسائي ۳\۳۷، رقم: ۱۲۶۹.

**تشريح**: د ابوداود دا روايت سوي اخري الفاظ مطلب دادی چې د ګوته پورته كولو په وخت كي د رسول الله ﷺ نظر به پر ګوتي وو بلي خوا ته به يې نه كتل چې د خيالاتو رخ بلي خوا ته نسي بلكه د توحيد مضمون به يې په زړه كي وو او خشوع او خضوع ورته حاصله سي.

**اشاره يوازې په ګوته سره كول پكار ده**

﴿۸۵۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ إِنَّ رَجُلاً كَانَ يَدْعُوْ بِأَصْبَعَيْهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَحِّدْ أَحِّدْ. رواه الترمذي والنسائي والبيهقي في الدعوات الكبير.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې يو سړي په لمانځه كي په دوو ګوتو سره اشاره وكړه نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل په يوې ګوتي سره، په يوې ګوتي سره (اشاره كوه).

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۲۰، رقم: ۳۵۵۷ والنسائي ۳\۳۸، رقم: ۱۲۷۱.

**تشريح**: څرنګه چې ابوداؤد او نسائي صراحت كړی دی سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په قعده كي په ګوتو سره كلمه شهادت ويلو سره د واړو لاسونو سره د شهادت د ګوتو سره د وحدانيت اشاره كول، رسول الله ﷺ دا وليدل نو هغه يې ددې طريقې څخه منعه كړ او هغه ته يې حكم وركړ چې د قاعدې مطابق يوازې يوه ګوته يعني د راسته لاس د شهادت ګوته پورته كول پكاره ده.

## په قعده کي د لاسو په زور کښېنستل نه دي پکار

﴿۸۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَّجْلِسَ الرَّجُلُ فِي الصَّلاَةِ وَهُوَ مُعْتَمِدٌ عَلَى يَدِهِ . رواه أحمد وأبو داود . وفي رواية له نهى أن يعتمد الرجل على يديه إذا نهض في الصلاة

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ددې څخه منعه فرمايلې ده چي سړی په لمانځه کي په لاسو تکيه کولو سره کښېني، احمد او ابوداؤد. او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ ددې څخه منعه فرمايلې ده چي د سجدې څخه د خپلو لاسو په مرسته را پورته سي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۱۴۷، وابوداؤد ۱\ ۶۰۴، رقم: ۹۹۲.

**تشريح**: د حديث د اول جزء مطلب خو دادی چي هر کله يو سړی په قعده کي کښېنيني يا د قعدې څخه و درېږي نو هغه ته پکار ده چي د لاس په زور نه کښېنيني او نه ولاړ سي .

د دوهم جزء مطلب دادی چي د سجدې وغيره څخه د راپورته کېدو وخت هم د لاسونو مرسته اخيستل نه دي پکار يعني لاسونه پر مځکه د ايښودو بغير دي د ګونډو په مرسته راپورته سي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه عمل پر دې حديث دی .

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد لاسونه پر مځکه ايښودو سره د سجدې وغير څخه راپورته کېدل صحيح دي، د هغه مستدل هغه حديث دی چي د هغه څخه ثابتيږي چي رسول الله ﷺ د راپورته کېدو په وخت کي لاسونه پر مځکه ايښودل، حنفيه ددې حديث تاويل دا کوي چي رسول الله ﷺ دا کار پر ضعف او سپين ږيرتوب باندي محمول وو چي هغه وخت به د ضعف او کمزوري په وجه رسول الله ﷺ لپاره بغير د لاسو ايښودلو ممکن نه وه ځکه د لاسونو په زور به پورته کيدی کنه رسول الله ﷺ به بغير د څه عذر لاسونه پر مځکه د ايښودو سره نه راپورته کيدی .

## د قعدو په اندازه کي فرق

﴿۸۵۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الأُوْلَيَيْنِ كَأَنَّهُ عَلَى الرَّضْفِ حَتَّى يَقُوْمَ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي

د حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د اولو دوو رکعتو په ناسته کي دومره کښېنستی لکه پر تودي ډبري چي ناست وي تر هغو چي دريدی به . ترمذي، ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۰۶، رقم: ۹۹۵، والترمذي ۲\۲۰۲، رقم: ۳۶۶ والنسائي ۲\۲۵۳، رقم: ۱۱۷۵

**د لغاتو حل**: (الرَضف): الحجارة المحماة على النار (پر اور توده سوې ډبره).

**تشريح**: مطلب دادی چي څرنګه يو سړی پر توده ډبري تر زيات وخت پوري نسي کښېنستلای بلکه ژر راپورته کيږي همداسي رسول الله ﷺ به په اوله قعده کي يوازي التحيات ويل نوري دعا ګاني درود وغيره به يې نه وايه ځکه د التحيات په ويلو سره به پورته کيدو د دې برعکس په آخري قعده کي د التحيات سره به يې درود او نوري دعاګاني هم ويلې ځکه چي په هغه کي به د ناستي مقدار په اولي قعدې کي د ناستي مقدار څخه زيات وو .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

《۸۵۵》: عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به موږ ته تشهد داسي رابنودل

كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْآنِ بِسْمِ اللهِ وَبِاللهِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ

لکه د قرآن کريم يو سورت ، او هغه تشهد دادی: بِسْمِ اللهِ وَبِاللهِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ

وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى

وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى

عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ

عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ

وَرَسُوْلُهُ أَسْأَلُ اللهَ الْجَنَّةَ وَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ النَّارِ . رواه النسائي .

وَرَسُوْلُهُ أَسْأَلُ اللهَ الْجَنَّةَ وَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ النَّارِ . نسائي .

**تخریج:** سنن النسائي ۲\۲۴۳، رقم: ۱۱۷۴.

## د شهادت ګوته د شیطان لپاره د تکلیف باعث ده

﴿۸۵۶﴾: وَعَنْ نَّافِعٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنِ عُمَرَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چي کله به عبد الله بن عمر رضي الله عنه په لمانځه کي کښېنستی نو اېښودل يې

يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَأَشَارَ بِأُصْبَعِهِ وَأَتْبَعَهَا بَصَرَهُ ثُمَّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ

دواړه لاسونه پر زنګنو او په ګوتي سره به يې اشاره کول او نظر به يې پر ګوته ساتی بیا يې وویل چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

لَهِيَ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنَ الْحَدِيْدِ. يَعْنِيْ السَّبَابَةَ. رواه أحمد.

دا ګوته (پورته کول) پر شیطان باندي تر اوسپني زیاته سخته ده. احمد

**تخریج:** الامام احمد في مسنده ۲\۱۱۹.

**تشریح:** مطلب دا دی چي د شیطان خواهش خو دا دی چي هر سړی په ضلالت، ګمراهي، کفر او شرک کي اخته کړي مګر کله چي هغه یو لمونځ کونکي ویني چي د هغه د خواهش خلاف د کفر او شرک څخه بیزاري کولو سره د شهادت په ګوته په اشاره کولو سره د الله وحدانیت ښکاره کوي نو د هغه په امیدونو پرښه پریوځي او هغه وخت هغه ته دومره سخت تکلیف ورسیږي څومره چي د نیزې وغیره په وهلو سره رسیږي.

## تشهد په کرار اواز ویل سنت ده

﴿۸۵۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ كَانَ يَقُوْلُ مِنَ السُّنَّةِ إِخْفَاءُ التَّشَهُّدِ. رواه أبو داود والترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي هغه به ویل چي تشهد کرار ویل سنت دی. ابوداؤد او ترمذي. ترمذي دا هم روایت کړي دي چي دا حدیث حسن غریب دی

**تخریج:** سنن ابي داؤد: ۱\۶۰۲، رقم: ۹۸۶، والترمذي ۲\۸۴– ۸۵، رقم: ۲۹۱.

**تشريح** : هر کله چې يو صحابي د يو کار په باره کې دا ووايي چې دا سنت دی نو د هغه دا قول به د قال رسول الله ﷺ په حکم کې وي يعني هغه حديث به مرفوع وي د ابن مسعود رضی الله عنه د دې حديث پيش نظر د جمهور محدثينو او فقهاؤ مذهب دادی چې تشهد يعني التحيات په کرار اواز سره ويل پکار ده.

==========

# بَابُ الصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَ فَضْلِهَا

## د درود شريف د فضيلت بيان

په لغوي توګه د صلوة معنی دعا، رحمت او استغفار ده او د درود مطلب دی د بندګانو له خوا د رسول الله ﷺ لپاره د الله تعالی څخه داسي رحمت غوښتل چې د دنيا او آخرت دواړو خير پکښې شامل وي.

الله تعالی بندګانو ته پر رسول الله ﷺ باندي د صلوة او سلام يعني درود ليږلو حکم کړی دی: ارشاد رباني دی:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا

ژباړه: اې مؤمنانو! پر رسول الله ﷺ باندي رحمت او سلام وليږئ.

د امت د علماؤ پر دې خبره اجماع ده چې د الله تعالی دا حکم د وجوب لپاره دی ځينو حضراتو ويلي دي څومره چې د رسول الله ﷺ نوم مبارک واوريدل سي هغومره واره درود ويل پکار دی ځيني حضرات وايي چې په ټول ژوند کې يوازي يو وار د رسول الله ﷺ د نبوت ګواهي ورکول فرض ده همداسي په پوره عمر کې يوازي يو وار پر رسول الله ﷺ درود ويل فرض دی د دې وروسته زيات نه زيات درود ويل مستحب، مسنون او د شعار اسلام څخه دی چې په هغه کې د بې حسابه اجر او ثواب وعده ده.

قاضي ابوبکر رحمة الله عليه فرمايي الله تعالی پر مؤمنانو فرض کړي دي چې پر رسول الله ﷺ باندي درود او سلام وليږئ په دې اړه يو خاص وخت ټاکلی نه دی ځکه واجب دي چې درود او سلام زيات تر زياته وويل سي، او په دې اړه غفلت ونه کړل سي مګر ځينو حضراتو د قاضي ابوبکر رحمة الله عليه د دې قول په مقابله کې لومړني قول ته ترجيح ورکړې ده.

## په التحيات كي درود ويل سنت دي كه فرض ؟

امام شافعي رحمة الله عليه په التحيات كي درود ويلو ته فرض ويلي دي مگر علماؤ صراحت كړى دى چي د امام شافعي رحمة الله عليه دا قول نادر دى ، په دې مسئله كي د امام شافعي رحمة الله عليه موافق هيڅ عالم نسته .

د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه معتمد او مفتى به قول دادى كه يو سړى په يو مجلس كي څو واره د رسول الله ﷺ نوم مبارك واوري نو پر هغه باندي يوازي يو وار درود ويل واجب دي او هر وار ويل مستحب دي او په التحيات كي درود ويل سنت دي .

## د صلوة او سلام الفاظ د انبياؤ څخه پرته د بل چا لپاره جائز دى كه يا ؟

د علماؤ په نزد په دې خبره كي اختلاف دى چي د انبياؤ څخه پرته د نورو خلكو د نومو سره د صلوة او سلام الفاظ استعمال جائز دي كه يا ، د مثال په توگه د رسول الله ﷺ د نامه سره د صلى الله عليه وسلم يا د نورو انبياؤ د نومو سره عليه السلام وايي او ليكي، نو همداسي د انبياؤ څخه پرته د يو بل چا لپاره ددې الفاظو استعمال جائز نه دى ، البته د نورو خلكو د نومو سره غفرله ، رحمه الله، رضي الله عنه او داسي نور الفاظ استعماليداى سي .

علامه طيبي رحمة الله عليه نقل كړي ذي چي د انبياؤ څخه پرته د نورو خلكو لپاره درود ويل خلاف اولى دى ، ځينو حضراتو ورته حرام او مكروه هم ويلي دي .

په دې مسئله كي صحيح خبره داده چي پرته د انبياؤ او ملائكو باندي صلوة او سلام ليږل ابتداء او مستقلا ليږل مكروه تنزيهي دي ځكه چي دا د اهل بدعت شعار دى ، البته د انبياؤ سره پر هغوى ليږل جائز دي مثلا داسي ويل كيداى سي : صلى الله على محمد وعلى آله واصحابه وسلم، يعني پر محمد ﷺ باندي، دهغوى پر آل او اولاد باندي او د هغوى پر صحابه كرامو دي د الله تعالى رحمتونه او بركتونه وي . والله اعلم .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړى فصل)

### په تشهد كي د درود ويلو طريقه

﴿۸۵۸﴾: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي لَيْلٰى قَالَ لَقِيَنِي كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ فَقَالَ اَلاَ

د حضرت عبد الرحمن بي ابي ليلى رضي الله عنه څخه روايت دى چي زما سره كعب بن عجره ملاقات وكړ هغه وويل : ايا

أُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً سَمِعْتُهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ فَقُلْتُ بَلٰى

زه تا ته هغه شى تحفه نه کړم کوم چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي وو، ما ورته وويل ولي نه

فَاهْدِهَا لِيْ فَقَالَ سَاَلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ

خامخا يې را تحفه کړه، نو هغه وويل موږ د رسول ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې دالله رسوله!

كَيْفَ الصَّلٰوةُ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ فَاِنَّ اللّٰهَ قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ قَالَ

موږ پر تاسو او اهل بيتو څنګه درود ووايو؟ الله ﷻ خو د سلام ليږلو طريقه موږ ته ښودلې ده،
رسول الله ﷺ وفرمايل:

قُولُوا اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى

داسي واياست: اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى

آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ

آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ

كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيمَ وعلى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ . متفق عليه ، الا ان مسلما لم يذكر على ابراهيم في الموضعين .

كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيمَ وعلى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٠٨، رقم: ٣٣٧٠ ومسلم ١\٣٠٥، رقم: ٦٦-٤٠٦.

**تشريح**: د صحابه کرامو رضي الله عنهم د سوال مقصد دادى چي الله تعالى موږ ته کوم حکم راکړى دى چي پر تاسو باندي درود او سلام استوو نو د سلام کولو طريقه خو موږ ته معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ موږ ته دا ښودلې ده چي په التحيات کي دي موږ السلام عليک ايها النبي وايو او س دا راته هم وښياست چي درود څرنګه وايو.

د صحابه کرامو دا قول چي: الله تعالى موږ ته راښودلي دي چي پر رسول الله ﷺ باندي سلام څرنګه استوو ددې مطلب دادى چي رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي په ذريعه موږ ته د سلام

لیږلو تعلیم راکړی دی دې ته د الله تعالی له خوا تعلیم څکه ویل سوی دی چي په حقیقت کي د رسول الله ﷺ تعلیم د الله تعالی تعلیم دی رسول الله ﷺ چي کوم احکام فرمایلي دي هغه يې د خپل ذهن څخه نه دي فرمایلي بلکه هغه احکام د وحي په ذریعه د الله تعالی له خوا رسول الله ﷺ ته ورکړل سوي دي هغه يې د خپل ژبي مبارکي په ذریعه جاري کړل .

## د آل تعریف او پلټنه

آل اهل او عیال ته وایي ددې معنی د تابعدار هم اخیستل. کیدای سي په وعلی آل محمد کي د آل د تعین په اړه د علماؤ اختلاف دی ځیني حضرات وایي چي آل محمد څخه مراد یوازي د رسول الله ﷺ اهل او عیال دی او ځیني حضرات وایي چي د آل څخه تابعدار مراد دي ځیني حضرات وایي چي هرمومن د آل محمد څخه دی، ځینو ویلي دي چي هر متقي په آل محمد کي شامل دی دا ټول د علماؤ اقوال دي مګر په ښکاره دا معلومیږي چي په دې حدیث کي د آل څخه مراد تابعدار دي که څه هم ځیني علماء د آل تفسیر په اهل بیت کړی دی یعني ددې حضراتو په نزد آل محمد څخه اهل بیت یعني هغه خلک مراد دي چي پر هغوی صدقه حرامه ده او هغوی ته بني هاشم ویل کیږي .

امام فخر الدین رازي رحمة الله علیه ویلي دي چي په اهل بیت کي ازواج مطهرات د رسول الله ﷺ بیبیاني مبارکي او اولاد شامل دي دا د حضرت علي رضي الله عنه ربط هم دی په دې ټولو سره د بي بي فاطمې رضي الله عنها په وجه ډیر زیات وو څکه هغوی هم په اهل بیت کي داخل دي .

په (کما صلیت علي ابراهیم) کي یوازي د حضرت ابراهیم علیه السلام تخصیص سوی دی بل یو نبي نه دی ذکر سوی ددې وجه داده چي اول خو حضرت ابراهیم علیه السلام د رسول الله ﷺ مشر نیکه دی دوهم دا چي په اصول دین کي شریعت محمدي د هغوی تابع دی .

اې الله پر محمد ﷺ باندي برکت نازل کړې ددې مطلب دادی چي الله تعالی چي زموږ نبي او سردار رحمت عالم ﷺ ته کوم شرف او فضیلت ورکړی دی او کومه بزرګي چي يې ورکړې ده هغه همیشه او باقي ولرې .

د روایت په اخري الفاظو کي الا ان مسلما لم یذکر .....الخ: ددې مطلب دادی چي مسلم کوم روایت نقل کړی دی د هغه څخه مخکي او په نورو دوو درودو کي علی ابراهیم الفاظ نسته یعني د هغه الفاظ داسي دي کما صلیت علي ابراهیم او کما بارکت علی ابراهیم .

﴿۸۵۹﴾: وَعَنْ اَبِي حُمَيْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ قَالَ قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى أَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى أَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ. متفق عليه

د حضرت ابو حميد ساعدي رضي الله عنه څخه روايت دی چي صحابه کرامو د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې دالله رسوله ! موږ پر تاسو څنګه درود ووايو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : داسي ووايا ست : اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى أَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى أَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱٦۹، رقم: ٦۳٦۰ ومسلم ۱\۳۰٦۱، رقم: ٦۹- ۴۰۷.

**تشريح**: د درود الفاظ په مختلفو طريقو سره راغلي دي څرنګه چي اوس تاسو وليدل په اول حديث کي د درود الفاظ څه نور دي هغه ويل کافي دي په ځينو روايتونو کي و ارحم کما رحمت وترحمت الفاظ هم ذکر دي خو دا الفاظ په صحيح توګه نه دي ثابت .

ځينو محدثينو وضاحت کړی دی چي په کوم حديث کي دا الفاظ وترحم علي محمد وآل محمد کما ترحمت علی ابراهيم وعلی آل ابراهيم هم اضافه ده هغه حديث حسن دی . والله اعلم

## د درود شريف فضيلت

﴿۸٦۰﴾: وَعَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ وَاحِدَةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ عَشْرًا . رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي پر ما يو ځل درود ووايي نو الله تعالی به پر هغه لس ځله رحمت نازل کړي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۰٦۱، رقم: ۷۰- ۴۰۸.

**تشريح**: لکه څرنګه چي د الله تعالی ارشاد دی: من جاء بالحسنة فله عشر امثالها : يعني کوم سړی چي يوه نيکي کوي نو د هغه لپاره د هغه په مثل د لسو نيکيو ثواب ورکول کيږي

ځکه کوم سړی چي پر رسول الله ﷺ باندي يو وار درود استوي نو الله تعال د دغه زيري سره سم پر هغه سړي لس رحمتونه نازلوي.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

﴿۸۶۱﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي درود وو ايي پر ما

صَلاَةً وَّاحِدَةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ عَشْرَ صَلَوَاتٍ وَحَطَّتْ عَنْهُ عَشْرُ خَطِيْئَاتٍ

يو ځل نو الله تعالى به پر هغه لس ځله رحمت نازل کړي او د هغه لس گناهونه به معاف کړي

وَرُفِعَتْ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ. رواه النسائي.

او لس لوړي درجې به ورکړي. نسائي

**تخريج:** سنن النسائي: ۱۳\۵۰، رقم: ۱۲۹۶.

﴿۸۶۲﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلَى النَّاسِ بِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلاَةً. رواه الترمذي.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به په خلکو کي تر ټولو ما ته نژدې هغه څوک وي چي پر ما يې زيات درود ويلي وي. ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي: ۲\۳۵۴، رقم: ۴۸۴.

**تشريح:** ابن حبان رحمة الله عليه د دغه حديث په وضاحت کولو سره ويلي دي چي د رسول الله ﷺ دا لوی زيری چي پر محدثينو کرام رحمة الله عليهم زيات صادق راځي ځکه چي دوی د محدثينو څخه زيات پر رسول الله ﷺ درود نه استوي ځکه د قيامت په ورځ به په ټولو خلکو کي تر ټولو زيات دا مقدسه طبقه وي.

## ملائكي د امتيانو سلام رسول الله ﷺ ته رسوي

﴿۸۶۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلّٰهِ مَلٰئِكَةً سَيَّاحِيْنَ فِي الْأَرْضِ يُبَلِّغُوْنِيْ مِنْ أُمَّتِيَ السَّلَامَ. رواه النسائي والدارمي.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله ډيري ملائكي پر مځکه گرځي هغوى ما ته زما د امت سلام رارسوي. نسائي او دارمي.

**تخريج:** سنن النسائي ۳\۴۳، رقم: ۱۲۸۱ والدارمي ۲\۴۰۹، رقم: ۲۷۷۴.

**تشريح**: ددې حديث تعلق د هغه خلکو سره دى چي د روضة اقدس (د نبي کريم ﷺ روضه مبارکه) څخه ليري اوسيږي او هغوى ته په روضه اقدس کي د حاضرۍ عزت نه وي حاصل سوى داسي خلک چي پر رسول الله ﷺ باندي لږيا ډير شمېر کي سلام واستوي نو ملائکي د هغوى سلام په دربار نبوت کي په ډير عقيدت او احترام سره وړاندي کوي.

البته هغه حضرات چي الله تعالى د خپل محبوب د روضه اقدس د حاضرۍ په سعادت نازولي وي نو هغوى چي په دربار نبوت کي سلام وړاندي کوي نو رسول الله ﷺ ته د رسولو لپاره د ملائکو ضرورت نه وي ځکه چي په روضه اقدس باندي د حاضريدونکي سلام رسول الله ﷺ خپله اوري.

ددې حديث څخه پر څو خبرو باندي رڼا لويږي: اول دا چي رسول الله ﷺ ته حيات جسماني حاصل دى څرنگه چي په دنيا کي رسول الله ﷺ ته ژوند حاصل وو همداسي په قبر کي هم ژوند ورته حاصل دى، دوهم دا چي د رسول الله ﷺ د امت خلک چي پر رسول الله ﷺ باندي سلام ليږي نو رسول الله ﷺ خوشحاله کيږي چي د سلام استونکو په حق کي د انتهايي سعادت او خوشبختۍ خبره ده، دريم شى دا چي کله ملائکي د يو امتي سلام دربار نبوت کي وړاندي کوي نو ددې مطلب دا وي چي سلام د قبوليت درجې ته رسيدلى دى او د راتلونکي حديث څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د سلام استونکو د سلام جواب هم ورکوي ، او په يو روايت کي ذکر دي چي کله ملائکي د سلام رسولو سره دربار نبوت کي حاضريږي نو د سلام استونکي نوم هم اخلي مثلا هغوى ورځي ورته وايي چي يا رسول الله مولانا محمد قطب الدين ابن محي الدين په خدمت يا برکت کي سلام عرض کوي يا ستاسو يو ادنى غلام عبدالله جاويد ابن محمد عبدالحق په خدمت اقدس کي سلام وړاندي کوي يا فقير محمد اصغر په خدمت

عاليه كي سلام عرض كوي.

جال مي دهم در آرزو اې قاصد آخر باز گو  در مجلس آن نازنين حرفې كه از مامي رود

## رسول الله ﷺ د سلام ليږونكي جواب وركوي

﴿۸۶۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلاَّ رَدَّ اللّٰهُ عَلٰي رُوْحِيْ حَتّٰى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلاَمَ. رواه أبو داود والبيهقي في الدعوات الكبير.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي هيڅوك داسي نسته چي پر ما سلام ووايي مگر الله يې زما روح بيرته را رسوي چي زه د هغه د سلام جواب وركړم. ابوداؤد، بيهقي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\ ۵۳۴، رقم: ۲۰۴۱.

**تشريح:** د اهل سنت والجماعت دا مسلمه عقيده ده چي رسول الله ﷺ (زموږ مور او پلار دي تر قربان وي) په عالم برزخ كي ژوندى دى نو ددې حديث څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ په عالم برزخ كي ژوندى نه دى بلكه كله چي يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كي سلام وړاندي كوي نو هغه وخت د رسول الله ﷺ روح مبارك جسم مبارك ته بيرته راځي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم د سلام جواب وركوي.

ددې تعارض جواب دادى چي د حديث الفاظ د روح بيرته راتلو مطلب دا نه دى چي روح مبارك د رسول الله ﷺ په مقدس بدن كي هر وخت موجود نه وي يوازي د سلام استولو په وخت كي د هغه څه وخت لپاره بدن ته ستنيږي بلكه ددې مطلب دادى چي د رسول الله ﷺ روح مبارك هر وخت د رب العالمين مشاهده كي مستغرق وي ځكه هغه د حالت استغراق او مشاهدې څخه آخوا كولو سره هغه عالم طرف ته متوجه كيږي چي رسول الله ﷺ د خپلو امتيانو درود او سلام واوري او د هغه جواب وركړي د روح مبارك دا متوجه كول او اگاه كول د دې الفاظو سره تعبير كړل سوى دى چي الله تعالى زما روح ماته بيرته راكړي كنه ټول انبياء صلوٰة الله عليهم اجمعين په خپلو قبرونو كي ژوندي دي.

اوس سوال دا پاته سو چي په حديث كي مذكوره فضيلت په خاصه توگه د هغو خلكو سره

متعلق دى چي په روضة اقدس باندي حاضرى وركوي او د هغه زيارت كوي يا په عامه توگه سره د ټولو خلكو لپاره دى . نو په ښكاره دا معلوميږي چي دديځ فضيلت تعلق په عمومي طور سره دى يعني كه څه هم يو سړى د رسول الله صلي الله عليه وسلم پر مزار اقدس په حاضريدو سره سلام وړاندي كوي يا د يو ليري سيمي څخه سلام استوي البته فرق يوازي دومره دى چي كووم سړى پر روضة اقدس باندي د حاضريدو سره سلام وړاندي كوي نو رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه د ملائكو د واسطې څخه پرته خپله اوري او چاته چي پر روضة اقدس باندي د حاضري شرف نسي حاصليداى نو د هغوى سلام د ملائكو په واسطه اوري څرنگه چي په دريم فصل كي به د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د راتلونكي حديث څخه معلومه سي .

## قبرونه كورونه مه جوړوئ

﴿۸٦٥﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لاَ تَجْعَلُوا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: مه گرځوئ

بُيُوتَكُمْ قُبُورًا وَّلاَ تَجْعَلُوا قَبْرِيْ عِيدًا وَصَلُّوا عَلَيَّ فَإِنَّ صَلاَتَكُمْ تَبْلُغُنِيْ حَيْثُ كُنْتُمْ . رواه النسائي

خپل كورونه د قبرو په ډول او زما پر قبر اختر او خوشحالي مه كوئ البته پر ما درود واياست ځكه چي ستاسو درود ما ته را رسيږي كه څه هم تاسو هر چيري ياست . نسائي

**تخريج**: لم نجده عند النسائي وهو عند ابي داؤد ۲\ ۵۳۴، رقم: ۲۰۴۳.

**تشريح**: د حديث د اول جزء دري مطلبه كيداى سي: اول دا چي كورونه د قبرو په ډول مه كڼئ چي څرنگه مړى په خپل كوركي پراته وي تاسو هم په خپلو كورونو كي د مړو په ډول اوسئ چي په هغه كي نه عبادت كوى نه لمونځ كوي بلكه څرنگه چي په مسجدونو كي په عبادت او لمونځ كولو سره د هغه انوار او بركات حاصليږئ همداسي په خپلو كورونو كي هم عبادت او لمونځ كوئ چي د هغه انوار او بركات كور او كورنۍ ته هم ورسيږي او د هغه صورت دا كيدل پكار دى چي فرض لمنځونه په مسجدونو كي ادا كوئ او سنت او نفلونه خپل كور ته په راتلو سره اداء كوئ ځكه چي نفلونه د مسجدو په نسبت په كور كي اداء كول زيات افضل دي .

دوهم مطلب دا کیدای سي چي په خپلو کورونو کي مړي مه ښخوئ په دې صورت کي دا اشکال مه پیدا کوئ چي خپله رسول الله ﷺ خو په خپل کور کي ارام فرما دی ځکه چي دا یوازي د رسول الله صلي الله علیه وسلم سره مختص دی د بل چا لپاره داسي کول نه دي پکار.

دریم مطلب دا کیدای سي: چي قبرونه د سکونت ځای مه جوړوئ ځرنګه چي نن صبا د اولیاء مزارات او پر هدیرو باندي د هغوی پر خادمانو هستوګنه اختیار کړې ده چي د زړه نرمي او د مزاج شفقت او رحمت ختم نسي بلکه داسي کول پکار دي چي د قبرونو زیارت کولو سره او پر هغوی فاتحه خواني وغیره ویلو سره خپلو کورونو ته بیرته راسئ.

د حدیث دوهم جزء چي زما قبر د اختر په ډول میله مه ګرځوی ددې مطلب دادی چي زما قبر د عید ګاه په ډول مه ګڼئ چي هلته په جمع کیدو سره زیب وزینت او لهو ولعب سره خوشحالی کوئ لکه ځرنګه چي یهود او نصاری د خپلو انبیاوو پر قبرونو باندي دا ډول حرکتونه کوي.

ددې حدیث ددې جزء ځخه د نن صبا په نامه ملایانو او بدعت پرستو ته سبق حاصلول پکار دی چي هغوی د اولیاء الله مزارات د نفساني خواهشات او دنیاوي اغراضو منبع او مرجع جوړه کړې ده او ددې مقدس بزرګانو مزارات باندي د عرس په نامه د دنیا هغه خرافات او هنګامه آرائي کوي چي په هغه کفر او شرک هم خندا کوي خو افسوس دادی چي د هغوی حلوه ګانو نذر ونیاز وغیره د هغوی پر عقل د نفس پرستي او هوس کاري هغه پردې اچولي دي چي د هغه په موجودګي کي نه هغوی ته نعوذ بالله د قرآني احکام ضرورت سته او نه د یو حدیث حاجت دی، الله دي دغه خلکو ته هدایت وکړې. آمین.

ځیني علماء ددې جزء تشریح داسي کړې ده چي د اختر په ډول په کال کي یوازي یو واریا دوه واره زما د قبر زیارت ته مه راځی بلکه اکثر یعني زیات حاضریږئ په دې صورت کي رسول الله ﷺ د خپل قبر د زیات زیارت او په دې محیط کي علم وعرفان او منبع امن او سکون باندي اکثر د امت خلکو ته د حاضری ترغیب ورکړی دی.

د حدیث د اخري جزء مطلب دادی چي پر ما باندي زیات درود لیږئ که یو سړی زما د روضې ځخه لیري وي نو هغه ته دا خیال نه دی کول پکار بلکه هغه ته پکار دي چي پر خپل ځای باندي ناست پر ما باندي درود ووایي هغه ماته رارسیږي همداسي رسول الله ﷺ هغه مشتاقان زیارت ته چي هغوی ته د روضې اقدس د حاضری خوشبختي حاصله نسي تسلي ورکړې ده که د مجبوری په وجه تاسو زما ځخه لیري یاست مګر تاسو ته پکار ده چي توجه او حضور زړه

څخه غافل نسئ.

## د درود شريف نه ليږلو سزا

﴿۸۶۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

رَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ وَرَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ دَخَلَ عَلَيْهِ

د هغه چا پزه دي په خاورو ولړل سي چي د هغه په وړاندي زما يادونه وسي او هغه پر ما درود ونه وايي او د هغه چا پزه دي په خاورو ولړل سي چي پر هغه راسي

رَمَضَانُ ثُمَّ انْسَلَخَ قَبْلَ أَنْ يُغْفَرَ لَهُ وَرَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ أَدْرَكَ عِنْدَهُ أَبَوَاهُ الْكِبَرَ فَلَمْ يُدْخِلاَهُ الْجَنَّةَ. رواه الترمذي

د رمضان (مياشت) راسي او تيره سي مگر هغه بخښنه تر لاسه نه کړي او هغه چا پزه دي په خاورو ولړل سي چي د هغه مور او پلار دواړه يا په هغو کي يو د سپينږيرتيا حالت ته ورسيږي او هغوی هغه په جنت کي داخل نه کړئ. ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\ ۵۱۴. رقم: ۳۵۴۵.

**تشريح**: په دې حديث کي د درو ډولو خلکو لپاره سزا بيانيږي: لومړی تر ټولو مخکي د هغه خلکو په باره کي ويل سوي دي چي د هغوی مخکي د رسول الله ﷺ نوم مبارک واخستل سي او درود نه ووايي نو د هغه دي پزه په خاورو ککړه سي يعني ذليل، خوار او هلاک سي.

په ښکاره خو ددې حديث څخه دا معلوميږي چي په يوه مجلس کي کله هم د رسول الله ﷺ نوم مبارک واخستل سي نو هر وار صلي الله عليه وسلم ويل واجب کيږي ځکه چي ددې په پرېښودو سره په شدت سره د سزا بيان سوی دی حال دا چي داسي نه ده ځکه چي په تيرو صفحو کي ښودل سوي دي چي هر وار درود ليږل واجب نه دی يوازي يو وار درود ويل واجب دی البته هر وار درود ويل مستحب او افضل دی او س ددې حديث توجيه به دا کيږي چي د وجوب دليل د آخرت سزا ده او ددې سزا تعلق د آخرت سره نه دی ځکه ددې انتهائي امر دادی چي دا سزا د هر وار درود ويلو پر استحباب باندي دلالت کوي نه پر وجوب باندي.

دوهم ډول خلک چي د هغوی لپاره سزا بیانیږي هغه دي چي د روژې حقوق نه ادا کوي نه خو سمه روژه نیسي اونه په روژه کي په پوره ذوق اوشوق سره عبادت کوي دا تول شیان د مغفرت او بخښني ذریعه وي ځکه فرمایل سوي دي چي د هغوی په باره کي دي تباهي او هلاکت وي چي په روژه کي ددې مقدسي میاشتي د فضل او شرف څخه محروم کیږي د هغه تنیجه داسي چي ددې میاشتي د بخښني په سعادت سره هم نسي پالللاي او دا میاشت په خپل ټولو سعادتونو سره تیریږي ، دریم داسي خلک دي چي د هغوی سره ددې وعید تعلق دی چي هغه د مور پلار اطاعت کونکي او فرمانبردار نه وي د حدیث حاصل دادی چي کومو خلکو د موراو پلار سره حسن سلوک ونه کړ د هغوی حقوق یي ادا نه کړل د هغوی د رضامندي او خوښی خیال یې ونه کړ او په خاصه توګه د هغوی په سپین ږیرتوب کي یې د هغوی خدمت و نه کړ نو په حقیقت کي هغه ډیر بد نصیبه دی ځکه چي هغوی د دا شیانو په پرېښودلو سره د آخرت عذاب او تاوان پر سر اخستی دی چي دا شیان په جنت کي د داخلید و سبب او ذریعه دي .

## د درود شریف فضیلت

﴿۸۶۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ طَلْحَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ ذَاتَ يَوْمٍ

د حضرت ابوطلحه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه ورځ تشریف راوړ

وَالْبِشْرُ فِيْ وَجْهِهِ فَقَالَ إِنَّهُ جَاءَنِيْ جِبْرِيْلُ فَقَالَ إِنَّ رَبَّكَ يَقُوْلُ أَمَا يُرْضِيْكَ

او پر مخ مبارک یې د خوښی اثرات وه ، رسول الله ﷺ وفرمایل : جبرائیل علیه السلام ما ته راغلی او ویل یې ستا پروردګار وفرمایل : ایا ستا دا خوښه نه ده

يَا مُحَمَّدُ أَنْ لاَّ يُصَلِّيْ عَلَيْكَ أَحَدٌ مِّنْ أُمَّتِكَ إِلاَّ صَلَّيْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا وَلاَ يُسَلِّمُ

اې محمد ! چي ستا په امت کي یو څوک پر تا درود ووایي او زه پر هغه لس ځله رحمت نازل کړم ، او سلام ووایي

عَلَيْكَ أَحَدٌ مِّنْ أُمَّتِكَ إِلاَّ سَلَّمْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا ؟ . رواه النسائي والدارمي

ستا امت پر تا او زه لس ځله پر هغه سلام ولیږم. نسائي او دارمي .

**تخریج**: سنن النسائي ۳\۴۴، رقم: ۱۲۸۴، والدارمي ۲\۴۰۸، رقم: ۲۷۷۳.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د خپل امت په حق کي ډير زيات مشفق او مهربان وو او د امت لپاره د خير طلب گارو، د رسول الله ﷺ انتهايي غرض او خواهش وو ځکه د جبرائيل عليه السلام په ذريعه ورته زيری ورکړل سو نو مخ مبارک يې د خوشحالی څخه وځليدی دا لويی زيری يې صحابه کرامو ته او د هغوی په ذريعه ټول امت ته ورسوی.

## د درود شريف او سلام ويلو حد معلوم نه دی

﴿۸۶۸﴾: وَعَنْ أُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُكْثِرُ الصَّلَاةَ عَلَيْكَ

د حضرت ابی بن کعب ﷺ څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ: اې د الله رسوله! زه پر تاسو باندي ډير درود وايم

فَكَمْ أَجْعَلُ لَكَ مِنْ صَلَاتِي فَقَالَ مَا شِئْتَ قَالَ قُلْتُ الرُّبُعَ قَالَ مَا شِئْتَ فَإِنْ

نو تاسو ما ته وواياست چي زه د خپل اعمالو څخه د دې لپاره څومره وخت وټاکم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: څومره چي ته غواړې، که زيات کوې نو ستا لپاره غوره دی، ما عرض وکړ څلورمه حصه وخت ورته وټاکم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل څومره چي ته غواړې که

زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ قُلْتُ النِّصْفَ قَالَ مَا شِئْتَ فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ قَالَ

زيات کوې نو ستا لپاره غوره ده، ما بيا عرض وکړ: نيم وخت ورته وټاکم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: څومره چي ته غواړې که زيات کوې نو ستا لپاره غوره دی، ما بيا عرض وکړ:

قُلْتُ فَالثُّلُثَيْنِ قَالَ مَا شِئْتَ فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ قُلْتُ أَجْعَلُ لَكَ صَلَاتِي

دريمه برخه وخت ورته وټاکم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: څومره چي ته غواړې که زيات کوې نو ستا لپاره غوره دی. ما عرض وکړ: د خپلي دعاء ټول وخت ورته وټاکم؟

كُلَّهَا قَالَ إِذًا تُكْفَى هَمَّكَ وَيُغْفَرُ لَكَ ذَنْبُكَ. رواه الترمذي

رسول الله ﷺ وفرمايل دا کافي ده او ستا د دين او دنيا مقصدونه به پوره کړل سي او ستا گناهونه به ليري کړل سي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۴۹، رقم: ۲۴۵۷.

**تشریح**: په (اجعل لک من صلاتي) کي لفظ د صلوة څخه مراد دعا ده، د ابی ابن کعب ﷺ

د ویلو مطلب دا وو چي زما خواهش دی چي پر تا ډیر زیات درود ووایم ما د خپل وختونو څخه یو خاص وخت د دې لپاره مقرر کړی دی چي زه په هغه وخت کي پر تاسو ډیر زیات زیات درود ووایم نو تاسو یې و ټاکئ چي د هغه وخت څومره برخه زه ستاسو په درود کي تیره کړم.

رسول الله ﷺ د هغه پر دې درخواست د درود ویلو لپاره د هغه وخت څه برخه مقرره نه کړل بلکه هغه یې د هغه پر اختیار پریښودل او وه یې فرمایل چي ته خپله پوهیږې چي د درود ویلو څومره فضیلت دی او ددې څه څه فضائل او برکات دي ددې مقدس کار لپاره ستا سعادت چي څومره وخت غواړې مقرر کړه خو په دې پوه سه چي ته ددې کار لپاره څومره زیات وخت ورکړې هغومره به ستا په حق کي غوره وي هر کله چي هغه د خپل پوره وخت درود شریف ویلو باندې د صرف کولو اظهار وکړ نو رسول الله ﷺ د اطمینان او خوشحالۍ اظهار وفرمایه چي تا یو مستقل وخت ددې مقدس کار لپاره خاص کولو سره او حقیقت د دنیا او آخرت خیر او مقاصد حاصل کړ هر کله چي بنده خپله غوښتنه او رغبت د الله تعالی په خوښ او محبوب شي کي خرځ کړي او د الله تعالی رضا او خوښي خپل خواهشاتو او خپلو مقصدو باندي مقدم کړي نو الله تعالی د هغه ټول امور او حاجات کي د هغه مددگار او حامي کیږي چي د هغه په وجه د هغه ټوله دنیوي او دیني مقصدونه پوره کیږي (من کان لله کان الله له) یعني څوک چي د الله تعالی سي نو الله تعالی د هغه سي.

ددې څخه معلومه سوه چي درود شریف دا برکت او فضیلت لري چي کوم سړی چي وظیفه کوي او د خپل ژوند یو ضرورت جزء یې جوړ کړی وي نو د هغه لپاره دین او دنیا دواړه ځایه په اساني او سهولتونه فراهم کیږي او د هغه ټول د خیر مقصدونه پوره کیږي.

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله علیه فرمایي کوم وخت چي زما شیخ عبد الوهاب متقي رحمة الله علیه زه د مدینې منورې د زیارت لپاره رخصت کړم نو دا الفاظ یې ارشاد فرمایل ځه او یاد لره چي په دې لاره کي د فرض ادا کولو وروسته هیڅ عبادت د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي د درود ویلو څخه نسته نو خپل وختونه دي په مقدسه مشغله کي یوازي کوه او په څه بل شي کي مه مصروف کیږه، شیخ عبدالحق رحمة الله علیه فرمایي ما عرض وکړ او که ددې لپاره یو شمیر و ټاکل سي چي زه په دومره شمیر کي درود شریف ووایم شیخ عبدالحق رحمة الله علیه وفرمایل په دې اړه یو شمیر ټاکل شرط نه دی بلکه درود شریف په دومره کثرت سره ویل چي په هغه سره رطب اللسان صفت کونکي سي او په دې رنگ کي رنگین سي او په دې کي مستغرق سي.

د حصن حصين مصنف علام په مفتاح كي ليكلي دي چي پر رسول الله ﷺ باندي درود شريف ويل ددې بې شميره فائدې دي او د دنيا او اخرت لپاره د هغه بې شميره ميوې مرتب كيږي خصوصا تنگی او پريشاني ليري كيږي يو خاصكار او مطلب پوره كيدو په اړه په دې باره كي تجربه سوې ده خپله زما تجربه ده چي زه اكثر د خوف او د هلاكت په ځاي كي راګير سم او ماته هلته پر رسول الله ﷺ باندي په درود ويلو باندي نجات حاصل سوی دی.

## د درود شريف وروسته دعاء قبليږي

﴿۸۶۹﴾: وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ بَيْنَمَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت فضالة بن عبيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ تشريف فرما وو

قَاعِدٌ إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ فَصَلَّى فَقَالَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

چي يو سړی حاضر سو، لمونځ يې وكړ او بيا يې دا دعاء وغوښتل: اې الله ما و بخښې او پر ما رحم وكړې، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَجِلْتَ أَيُّهَا الْمُصَلِّي إِذَا صَلَّيْتَ فَقَعَدْتَ فَاحْمَدِ اللّٰهَ

اې لمونځ كونكې! تا تلوار وكړ هر كله چي ته لمونځ وكړې نو په آخر كي كښينه او د الله جل جلاله تعريف داسي وكړه

بِمَا هُوَ أَهْلُهُ وَصَلِّ عَلَيَّ ثُمَّ ادْعُهُ قَالَ ثُمَّ صَلَّى رَجُلٌ آخَرُ بَعْدَ ذٰلِكَ فَحَمِدَ

چي د هغه د عظمت وړ وي بيا پر ما درود ووايه بيا چي د الله جل جلاله څخه څه غواړې هغه و غواړه، راوي وايي د دې وروسته يو بل سړی راغلی لمونځ يې وكړ د الله جل جلاله تعريف يې وكړ

اللّٰهَ وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

او پر نبي ﷺ يې درود ووايه ، نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل :

وَسَلَّمَ أَيُّهَا الْمُصَلِّي ادْعُ تُجَبْ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي نحوه.

اې لمونځ كونكې! د ځان لپاره دعاء وكړه قبوله به سي. ترمذي، ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۶۳۷، رقم: ۱۴۸۱ والترمذي ۵\ ۴۸۲، رقم: ۳۴۷۶، والنسائي ۳\ ۴۴-۴۵، رقم: ۱۲۸۳

﴿۸۷۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنْتُ أُصَلِّي وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما لمونځ کوی او نبي کریم ﷺ حاضر وو

وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ مَعَهُ فَلَمَّا جَلَسْتُ بَدَأْتُ بِالثَّنَاءِ عَلَى اللهِ ثُمَّ الصَّلَاةِ

او ابو بکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه هم ورسره وه کله چي زه د لمانځه وروسته کښېنستم نو د الله جل جلاله تعریف مي بیان کړ بیا مي درود ووایه

عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ دَعَوْتُ لِنَفْسِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

پر نبي ﷺ او بیا مي د ځان لپاره دعاء وکړل (د دې په اورېدو سره) رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَلْ تُعْطَهْ سَلْ تُعْطَهْ. رواه الترمذي

غواړه یې دربه کړل سي، غواړه یې دربه کړل سي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۲\۴۸۸، رقم: ۵۹۳.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دریم فصل)

### د اُمي پلټنه

﴿۸۷۱﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که څوک خوښوي

أَنْ يُكْتَالَ بِالْمِكْيَالِ الْأَوْفَى إِذَا صَلَّى عَلَيْنَا أَهْلَ الْبَيْتِ فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى

چي هغه ته پوره ثواب ورسیږي نو کله چي زموږ پر اهل بیتو درود وایي نو هغه ته پکار دي چي داسي درود ووایي: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى

مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ وَ أَزْوَاجِهِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَذُرِّيَّتِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ كَمَا

مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ وَ أَزْوَاجِهِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَذُرِّيَّتِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ كَمَا

صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ . رواه أبو داود

صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ١\٦٠١، رقم: ٩٨٢.

**تشريح**: ځرنګه چي د رسول الله ﷺ نور ډیر نومونه دي چي د رسول الله ﷺ پر مختلفو خصوصیاتو او صفاتو دلالت کوي همداسي د رسول الله صلي الله علیه وسلم یو خاص او عظیم الشان لقب امي هم دی د رسول الله صلي الله علیه وسلم دا لقب مبارک په تورات انجیل او د اسمان په نازل سوي ټولو کتابونو کي ذکر سوی دی امي په لغت کي هغه سړي ته وایي چي لیک او لوست ېې زده نه وي نه یو مکتب او مدرسې ته تللی وي او نه يې د چا ځخه تعلیم حاصل کړی وي او امي منسوب دی ام یعني د مور خوا ته په دې مناسبت سره مطلب دا سو چي داسي سړی چي د مور د نس ځخه د پیدا کونکي بچي په ډول وي چي هغه ته چا د لیکلو او نه د ویلو تعلیم ورکړی وي .

هر کله چي رسول الله ﷺ دې دنیا ته د آخري نبي په حیثیت سره را واستول سو نو الله تعالی د یو استاذ مکتب او تعلیم محتاج ونه ګڼئ بلکه خپل د دین او دنیا د ټولو علومو سره په پوره طور سره دې دنیا ته را واستوی په دې دنیا کي رسول الله صلي الله علیه وسلم نه خو په یوه مکتب کي قدم کښیښودی او نه يې د کوم استاذ شاګردي وکړه بلکه په ښکاره يې نه لیکل وکړه نه ویل په دې وجه ده مبارک ته امي ویل کیږي .

| | |
|---|---|
| نګار من که به مکتب رفط و خط نه نوشت | بغمزه مسئله آموز صد مدرس شد |
| یتیمي که نا کرده قرآن درست | کتب نانه چند ملت بشست |
| به تعلیم و آداب او راچي نسبت | که خود زا آغاز او آمد مودب |

ځیني حضرات وایي چي امي په اصل کي ام القرای یعني د مکې و خواته منسوب دی چي د ټولي مځکي اصل دی .

## درود شریف نه ویونکی بخیل دی

﴿۸۷۲﴾: وعن علي قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْبَخِيْلُ الَّذِيْ مَنْ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ . رواه الترمذي ورواه أحمد عن الحسين

بن علي رضي الله عنهما . وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح غريب .

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : بخيل هغه سړی دی چې د هغه په وړاندې زما يادونه وسي او هغه پر ما درود ونه وايي . ترمذي او احمد ، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح غريب دی

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۱۵، رقم: ۳۵۴۶ والامام احمد في مسنده: ۱\۲۰۱.

**تشريح**: مطلب دادی چې يو بخيل خو د مال وي چې هغه د مال د خواهش په وجه د خپل طبعي جبلت په تقاضا بخل کوي چې چاته خپل مال نه ورکوي مگر لوی بخيل هغه سړی دی چې د خپل غفلت او سستۍ د غلطي په وجه د رسول الله ﷺ پر نامه مبارک د خولي ژبي او خپل زړه درود يوه کلمه هم نا باسي او همداسي هغه د نعمت د شکر او حق لحاظ هم نه کوي حال دا چې د رسول الله ﷺ پر امت هغه احسان او انعام دی چې د امت خلک د رسول الله ﷺ پر نامه مبارک خپل ځانونه هم قربان کړي نو کم دی او بيا په مجلس کي د رسول الله صلي الله عليه وسلم مبارک ذکر کوي او د هغه نوم مبارک واخستل سي او د هغه د ژبي څخه او د هغه د زړه څخه د درود شريف څو الفاظ راونه وځي.

## درود رسول الله ﷺ ته رسيږي

﴿۸۷۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ عِنْدَ قَبْرِي سَمِعْتُهُ وَمَنْ صَلَّى عَلَيَّ نَائِيًا أُبْلِغْتُهُ . رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چې زما د قبر سره پر ما درود ووايي نو زه هغه اورم او څوک چې د ليري څخه پر ما درود ووايي نو هغه ما ته را رسيږي . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۲\۲۱۸، رقم: ۱۵۸۳.

**تشريح**: مطلب دادی چې که چاته زما د قبر د زيارت سعادت حاصل سي او هغه دلته پا حاضريدو سره سلام استوي نو زه پرته د يو واسطې د هغه سلام اورم او چاته چې دا سعادت نه حاصليږي بلکه هغه چې د کوم ځای څخه پر ما سلام را استوي نو د هغه سلام ملائکي سياحين يعني سيل کونکي ملائکي ماته را رسوي او د سلام جواب زه په دواړو صورتونو کي ورکوم.

ددې حديث څخه اندازه ولګيدل چي پر رسول الله ﷺ باندي سلام استولو څومره فضيلت او سعادت دی او دا چي رسول الله ﷺ باندي سلام استونکي ته په خاصه توګه سره هغه سړي ته چي په کثرت سره پر رسول الله ﷺ باندي سلام استوي څومره شرف او مرتبه چي ده ته حاصله ده که چاته د يوه سلام جواب هم د دربار نبوت حاصل سي نو ډير لوی سعادت دی نو بيا څه چي برابر او د هر سلام ورته جواب ورکول کيږي.

بهر سلام مکن رنجه درجواب آن لب که صد سلام مرابس يکې جواب از تو

## د درود شريف فضائل

﴿۸۷۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ مَنْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاحِدَةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَمَلَائِكَتُهُ سَبْعِيْنَ صَلَاةً. رواه أحمد.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روايت دی چي څوک پر نبي کريم ﷺ يو ځل درود ووايي نو الله او ملائکي پر هغه اويا ځله درود وايي. احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۱۸۷.

**تشريح**: په ښکاره خو دامعلوميږي چي د يو وار درود ويلو دا ثواب د جمعې د ورځي سره متعلق دی ځکه چي دا ثابته ده چي حج اکبر کوم حج چي د جمعې په ورځ وي د اويا حجو برابر دی.

که دا حديث موقوف دی يعني د عبدالله ابن عمر رضی الله عنه قول دی مګر بيا هم د مرفوع په حکم کي دی ځکه چي هيڅ صحابي د اعمالو ثواب د خپل ځان څخه نسي بيانولای تر څو چي هغه د رسول الله ﷺ څخه نه وي اوريدلي ځکه يقيني خبره ده چي حضرت عبدالله رضی الله عنه به دا مضمون د رسول الله ﷺ څخه اوريدلی وي.

﴿۸۷۵﴾: وَعَنْ رُوَيْفِعٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ صَلَّى عَلٰى

د حضرت رويفع رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي درود ووايي پر

مُحَمَّدٍ وَقَالَ اَللّٰهُمَّ أَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِيْ. رواه أحمد.

محمد رضی الله عنه باندي او بيا ووايي (اې الله ده ته هغه ځای ورکړې چي د قيامت په ورځ ستا په نزد

مقرب دی) نو د هغه شفاعت واجب کیږي. احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده: ۱۰۸\۴.

**تشریح**: د مقام مقرب څخه مراد مقام محمود دی چي د قیامت په ورځ به د رسول الله ﷺ په دریدو سره د الله تعالی ثناء او تعریف بیان کړي او د بندګانو په حق کي به شفاعت کوي.

د رسول الله ﷺ شفاعت د ټولو مسلمانانو لپاره ثابت دي او د هر امتي لپاره به شفاعت کوي مګر بیا هم هغه سړی ته چي د درود څخه وروسته مذکوره دعاء وایي په یوه خاصه درجه حاصل وي چي د هغه لپاره به د رسول الله ﷺ شفاعت واجب وي، یا په نورو الفاظو کي داسي هم ویل کیږي چي د دې ارشاد څخه په حقیقت کي د داسي سړي د خاتمې بالخیر وخوا ته اشاره مقصد ده چي انشاء الله تعالی د داسي سړي خاتمه به په خیر وي.

﴿۸۷۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ (د کور څخه) ووتی

حَتّٰى دَخَلَ نَخْلاً فَسَجَدَ فَأَطَالَ السُّجُوْدَ حَتّٰى خَشِيْتُ أَنْ يَّكُوْنَ اللّٰهُ تَعَالٰى

او یو باغ ته داخل سو بیا یې اوږده سجده وکړه تر دې چي زما بیره پیدا سوه چي الله تعالی

قَدْ تَوَفَّاهُ. قَالَ فَجِئْتُ أَنْظُرُ فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ مَا لَكَ؟ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ. قَالَ

وفات کړی دی، ما د رسول الله ﷺ په لور وکتل چي رسول الله ﷺ خپل سر مبارک راپورته کړ او ویې فرمایل: په ته څه وسول؟ ما رسول الله ﷺ د پیښي څخه خبر کړی، راوي وایي چي

فَقَالَ إِنَّ جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ لِيْ أَلَا أُبَشِّرُكَ أَنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُوْلُ

نبي کریم ﷺ وفرمایل: جبرائیل علیه السلام ما ته وویل: ایا زه تا ته د دې زیری در نه کړم؟ چي الله پاک فرمایي:

لَكَ مَنْ صَلّٰى عَلَيْكَ صَلَاةً صَلَّيْتُ عَلَيْهِ وَمَنْ سَلَّمَ عَلَيْكَ سَلَّمْتُ عَلَيْهِ. رواه أحمد

څوک چي پر محمد ﷺ یو ځل درود ووایي زه به پر هغه رحمت نازل کړم او څوک چي پر محمد ﷺ سلام ووایي زه به پر هغه سلام ولیږم. احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده: ۱۹۱\۱.

**د لغاتو حل:** (نخلا): اى بستان نخل. (د خرما باغ).

**تشريح**: امام حنبل رحمة الله عليه په خپل نورو روايتونو په آخر كي دا الفاظ هم نقل كړي دي او ويلي يې دي چي دا حديث صحيح دى او د سجده شكر په اړه تر دې زيات صحيح حديث زما په نظر كي نسته او دا روايت په مختلفو طريقو سره روايت دى.

## د دعاء قبلېدل پر درود باندي موقوف وي

﴿۸۷۷﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ إِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوْفٌ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَا يَصْعَدُ مِنْهُ شَيْءٌ حَتّٰى تُصَلِّيَ عَلٰى نَبِيِّكَ. رواه الترمذي.

د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دى چي دعاء تر هغه وخته پوري د آسمان او مځكي په منځ كي زړېدلې وي او د هغه څخه هيڅ شى پورته نه ځي تر څو پوري چي ته پر نبي كريم ﷺ درود ونه ليږې. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۳۵٦، رقم: ۴۸٦.

**تشريح**: مطلب دادى چي د دعا قبوليت پر درود شريف باندي موقف دى، درود شريف خپله مقبول دى ځكه د دې په توسط او وسيلې سره دعا هم قبليږي.

مور مسكن هو سي داشت كه در كعبه رسد  دست در پايي كبوتر زده ناگاه رسيد

په حصن حصين كي نقل دي چي شيخ ابو سليمان داراني رحمة الله عليه وفرمايل هر كله چي تاسو د الله تعالى په مخكي د خپل يو حاجت د تكميل لپاره د دعا لاس اوږد كړئ نو پيل د رسول الله ﷺ د درود شريف پر ويلو كوئ د دې وروسته چي څه غواړې د هغه لپاره دعا وكړئ او دعا پر درود شريف باندي ختموئ يعني د دعا مخكي دي هم درود شريف وايي او د دعا وروسته هم، نو بيا الله جل جلاله دا ددعا ضرور قبلوي ځكه چي د الله تعالى رحم او كرم څخه دا ډيره ليري خبره ده چي هغه دي دواړه درودونه خو قبول كړي مگر د دوو درودو په مينځ كي دعا نه كړي قبوله.

علامه طيبي رحمة الله عليه ددې حديث په باره كي فرمايي دا هم ممكنه ده چي دا خپله د حضرت عمر رضي الله عنه قول وي په دې صورت كي به دا حديث موقوف وي او دا هم ممكنه ده چي د رسول الله ﷺ ارشاد وي په دې صورت كي به دا حديث مرفوع وي او صحيح دادى چي دا حديث موقوف دى يعني د حضرت عمر رضي الله عنه قول دى مگر محققين علماء دا حديث فرمايي چي

ا. ډول خبره هیڅ راوي د خپل ځان څخه نسي کولای څرنګه چي ددې باب په حدیث نمبر (۸۷۴) په تشریح کس ښودل سوي دي ځکه دا حدیث روایة خو موقوف دی مګر حکما مرفوع دی.

==============

# بَابُ الدّعَاءِ فِي التّشَهّد

## په تشهد کي د دعاء بیان

په آخري قعده کي د التحیات او درود شریف وروسته دعا غوښتل سنت دي د فقي په کتابو کي لیکلي دي چي لمونځ کونکی دي د التحیات او درود شریف وروسته د خپلي خوښي سره سم دعاء غواړي مګر دعا دې د عامو خلکو د کلام (خبرو) مشابه نه وي لکه څوک چي دعا غوښتل پیل کړي چي یا الله ماته ډوډی راکړې ماته جامې راکړې دا ډول دعا غوښتل مناسب نه دي. اوس په باب التشهد کي هم تاسو هغه حدیث وو ایه چي د ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی په هغه کي هم دا لفاظ نقل سوي دي چي هغه ته رسول الله ﷺ د التحیات تعلیم په ورکولو سره فرمایلي دي چي بیا هغه دعاګاني اختیار کړه کومي چي ته خوښوې او په تشهد کي د رسول الله صلي الله علیه وسلم دعاګاني نقل سوي دي چي په تشهد کي به بې هغه دعاګاني ویلې نو د خوښي څخه مراد د رسول الله ﷺ نقل سوي دعاګاني کیدای سي.

په هر حال حاصل دادی چي په تشهد کي هغه دعاګاني ویل کوم چي د رسول الله ﷺ څخه نقل سوي دي زیات اولی او افضل دي ځکه چي هغه دعاګاني د دنیا او آخرت د دواړو مقصدو جامع دي په دې باب کي هغه دعاګاني نقل کیږي کوم چي رسول الله ﷺ په تشهد کي ویلې یا د هغه تعلیم بې نورو خلکو ته ورکړی دی.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په تشهد کي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۸۷۸﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو فِي الصَّلَاةِ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي دعاء غوښتل (یعني د

لمانځه وروسته) او دا به يې ويل :

اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ

(اې الله زه ستا پناه غواړم د قبر د عذاب څخه د مسيح دجال د فتنې څخه

وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ

او پناه غواړم د ژوند او مرګ د فتنې څخه، اې الله ! زه ستا پناه غواړم د ګناه څخه

وَالْمَغْرَمِ فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ مَا أَكْثَرَ مَا تَسْتَعِيذُ مِنَ الْمَغْرَمِ فَقَالَ إِنَّ الرَّجُلَ

او د پور څخه)، د دې په اوريدو سره يو سړي عرض وکړ اې د الله رسوله ! د تعجب خبره ده تاسو د پور څخه پناه غواړئ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا غَرِمَ حَدَّثَ فَكَذَبَ وَوَعَدَ فَأَخْلَفَ . متفق عليه

هر کله چې سړی پوروړی سي نو چې خبري کوي دروا غ وايي او چې وعده کوي نو د وعدې خلاف ورزي کوي د پور ادا کولو لپاره چې څه چم کيږئ د هغه لپاره د دروا غو عذرونه جوړوي او د پور ادا کولو وعده په عام ډول سره نه پوره کوي . بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲ ۳۱۷، رقم: ۸۳۲، ومسلم ۱\ ۴۱۲، رقم: ۱۲۹ – ۵۸۹.

**تشريح**: دجال به په آخره زمانه کي قيامت ته نژدې پيدا کيږي چې د خدايي دعوه به وکړي او خلک به خپل مکر او فريب سره ګمراه کوي ددې مفصل ذکر به انشاءالله تعالی د مشکوة شريف په اخري بابو کي راسي .

**دجال ته مسيح ولي وايي ؟** دجال ته مسيح ځکه وايي چې د هغه يوه سترګه به چپه وي يعني هغه به يو سترګی وي او هغه به ممسوح وي ځکه په دې مناسبت سره هغه ته مسيح ويل کيږي د ممسوح مطلب دی د ټولو نيکيو خير او برکت څخه بالکل ليري ناآشنا او داسي لکه چي په هغه کله ددی شيانو سايه هم نه وي لوېدلې او ښکاره ده چي دومره خراب خصلتونه حاصل دجال څخه ماسوا بل څوک کيدای سي .

## حضرت عيسیٰ عليه السلام ته د مسيح ويلو وجه څه ده ؟

د حضرت عيسی عليه السلام لقب هم مسيح دی چي د هغه اصل مسيحا دی او مسيحا په

عبراني ژبه کي مبارک ته وايي يا دا چي د مسيح معنی ده ډېر سيل کونکی (ډېر ګرزېدونکي)، قيامت ته نژدې به حضرت عيسي عليه السلام دې دنيا ته د آسمان څخه را کښته کړل سي او د دنيا څخه به د ګمراهي او ضلالت بيخونه وباسي او بيا به پر ټوله نړۍ باندي د الله تعالی د خليفه په حيثيت پر حکمرانۍ کولو باندي مامور کړل سي او په دې اړه به نوموړي ته د امور سلطنت سنبالولو او د الله دين او په نړۍ کي د دين خپرولو او د دجال وژلو لپاره تقريبا په پوره دنيا کي ګرځيدل وي ځکه په دې مناسبت سره مسيح د حضرت عيسی عليه السلام لقب مبارک وګرځيدی. په هر حال د لفظ مسيح اطلاق پر حضرت عيسي عليه السلام او دجال ملعون دواړو باندي کيږي او د دواړو په مينځ کي امتيازي فرق دادی چي هر کله يوازي مسيح وليکل سي نو ددې څخه حضرت عيسي عليه السلام مراد دی او هر کله چي دجال ملعون مراد وي نو لفظ مسيح دجال سره مقيد کيږي يعني دجال ليکل او ويل کيږي.

رسول الله ﷺ په دعا کي د شپږو شيانو څخه د الله تعالی پناه غوښتې ده: اول د قبر د عذاب څخه، دوهم د دجال د فتنې څخه، دريم د ژوند د فتنې څخه، څلورم د مرګ د فتنې څخه، پنځم د ګناه څخه، شپږم د پور څخه، داشپږ شيان د خپل هيبت، هلاکت، ديني او دنياوي تاوانونو په وجه ډېر ارزښت لري، که ددې شيانو څخه الله تعالی چاته نجات ورکړی نو پر هغه باندي بې خپل فضل او کرم وکړ نو ددين او دنيا کاميابي رحمت او سعادت به بې په نصيب سي او که خدای مه کړه يو بد نصيب ته په دې کي يو هم پيش سو نو پوه سئ چي دنيا به بې تباه سي او د آخرت ټولو سهولتونو آسانيو رحمتونو او سعادتونو څخه بهٔ محرومه سي او د عذاب خداوندي مستحق به سي ځکه رسول الله ﷺ خپله ددغه شيانو څخه د پناه غوښتلو سره د امت لپاره د تعليم دروازه خلاصه کړې ده چي هر مسلمانه ته پکار ده چي د خپل پروردګار څخه د دغه سختو او هيبت ناکو شيانو پناه وغواړي چي پروردګار بې د هغه څخه محفوظ او مامون وساتي.

د قبر عذاب او د دجال فتنه خو بالکل ښکاره شيان دي، ددې د تشريح او وضاحت ضرورت نسته البته د ژوند فتنه داده چي د صبر او رضا د نيستۍ په وجه د ژوند په مصيبتو او بلاګانو کي اخته سي کوم چي بې د هدايت او د حق د لاري څخه منعه کړي او د ژوند په ګمراهۍ او ضلالت کي بې وغورځوي.

د مرګ د فتنې څخه مراد دادی چي لعنتي شيطان د زکندن په حالت کي د خپل مکر او د فريب جال اوارولو سره او د مړکيدو په حالت کي په زړه کي دا وسوسې او شبهې ورواچوي په

آخري لحظه چي هغه د همیشه نجات او عذاب دار او مدار دی په خرابي او گمراهي کي بې غورځوي چي د دي دنیا څخه د رخصت کېدونکي نعوذبالله په ایمان او یقین سره نه بلکه د کفر او شک سره وفات سي همداسي د منکر نکیر د سوالونو سختي د قبر عذاب شدت او د عقبی په عذاب کي گرفتا ري هم د مرگ فتنې دي الله تعالی دي ددې ټولو څخه هر مسلمان محفوظ او مامون کړي. آمین

لفظ ماثم یا خو مصدر دی یعني گناه کول یا ددې څخه مراد هغه شی دی چي د گناه باعث وي.

په هر حال ددې مطلب دادی چي هغه گناوي موږ د الله تعالی څخه پناه بې غواړو چي د هغه په نتیجه کي بنده د آخرت د عذاب او د الله تعالی د ناراضگۍ اخلي بیا د هغه شیانو څخه د الله پناه چي د گناه کیدو ذریعه وي یا د هغه په اختیارولو سره بنده د سیده لاري څخه لیري کیږي او د ضلالت او گمراهۍ پر لار روانیږي.

## د پور څخه د پناه غوښتلو وجه

د پور څخه پر پناه غوښتلو باندي یو صحابي ته تعجب وسو چي په پور کي داسي کومه خرابي ده چي د هغه څخه پناه وغوښتل سي بلکه په دې سره خو ډیر ضرورتمندو ته کار پیدا کیږي او په دنیاوي معاملاتو کي تر ډیره حده پوري مرسته رسیږي رسول الله صلي الله علیه وسلم ددې قباحت او خرابۍ د بنیادي حقیقت خواته توجه وگرځول چي هغه یقینا داسي شی دی چي د هغه څخه پناه غوښتل پکار ده اول خو په دنیاوي اعتبار سره هم د یو چا پوروړی کیدل ښه خبره نه ده بلکه د دین او اخرت چي کوم تعلق دی نو ددې په وجه د داسي شیانو کول کیږي چي د شریعت په نظر کي نه یوازي دا چي داسي شیان معیوب دي بلکه اکثر پور غوښتونکي په سوونو بهانې لټوي، غلطي خبري جوړوي او د خپل مقصد پوره کولو لپاره لوی لوی درواغ ویلو کي هیڅ اندېښنه هم نه محسوس کوي.

د دې څخه وروسته دوهمه مرحله د پور د ادا کولو وي چي پوروړی د پور اخیستو وخت ټاکي چي په هغه کي د پور د ادا کولو وعده کوي مگر تجربه شاهده ده چي ډیر لږ پوروړي به داسي وي چي پر ټاکلي وخت به پور ادا کوي کنه اکثر خلک وعده خلافي کوي، دلته نه یوازي دا ي وعده خلافي کوي بلکه د نه ادا کولو په عذر کي هر ډول درواغ وایي، همداسي د پور په وعده خلافي او درواغ ویلو سره گناه کار کیږي، او بیا د نه ادا کولو دا عذر یو وار یا دوه واره نه ختمیږي همداسي پوروړي پر له پسې درواغ وایي هر وار وعده خلافي کوي او همداسي د گناه بار زیاتوي، ظاهره ده چي دا شیان د الله تعالی د عذاب او د آخرت د نیوکي سبب کیږي

ځکه نو د داسي غلط شي څخه د الله تعالی پناه غوښتل سوې ده .

## د لمانځه وروسته د کومو شیانو څخه پناه غوښتل پکار ده

﴿۸۷۹﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَرَغَ أَحَدُكُمْ

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي فارغ سي په تاسو کي یو څوک

مِنَ التَّشَهُّدِ الْآخِرِ فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنْ أَرْبَعٍ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَمِنْ عَذَابِ

د آخري تشهد څخه نو د څلورو شیانو څخه د ساتلو لپاره د الله جل جلاله څخه دعاء غواړئ ۱: د دوږخ د عذاب څخه ۲: د عذاب څخه

الْقَبْرِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ وَمِنْ شَرِّ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ . رواه مسلم

د قبر ۳: د ژوند او مرګ د فتنې څخه ۴: د مسیح دجال د شر او فتنې څخه . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۴۱۲، رقم: ۱۳۴– ۵۹۰.

**تشریح**: مطلب دادی چي په اخري قعده کي د تشهد څخه د فراغت وروسته دغه دعاء ویل کیږي: اللهم اني اعوذبك من عذاب جهنم ومن عذاب القبر ومن فتنة المحيا والممات ومن شر المسيح الدجال . ترجمه: اې الله! زه پناه غواړم په تا سره د دوږخ د عذاب څخه د قبر د عذاب څخه د ژوند او مرګ د فتنې څخه او د مسیح دجال د شر او فتنې څخه .

﴿۸۸۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهُمْ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به ده ته ښودل

هٰذَا الدُّعَاءَ كَمَا يُعَلِّمُهُمُ السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ يَقُولُ قُولُوا اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ

دا دعاء داسي لکه قرآن کریم چي به یې ښودی، فرمایل به یې داسي دعاء غواړئ: (اې الله زه ستا پناه غواړم

مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ

د دوږخ د عذاب څخه او ستا پناه غواړم د قبر د عذاب څخه او پناه غواړم د فتنې څخه د مسیح

الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ. رواه مسلم

دجال او د ژوند او مرگ د فتنې څخه) مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۴۱۳. رقم: ۱۳۴- ۵۹۰.

## د تشهد او درود څخه وروسته دعاء

﴿۸۸۱﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرِ الصِّدِّيقِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوبکر صديق[1] ﷺ څخه روايت دی چي ما وويل : اې دالله رسوله !

عَلِّمْنِي دُعَاءً أَدْعُو بِهِ فِي صَلَاتِي قَالَ قُلْ اللَّهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا

ما ته يوه دعاء و ښيه چي په لمانځه کي يې کوم (يعني دلمانځه وروسته) رسول الله ﷺ وفرمايل : ووايه : (اې الله ! ما پر خپل ځان ډير ظلم کړی دی

وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ. متفق عليه

او ستا څخه پرته څوک گناهونه نه سي بخښلای ته ما په خاص ډول سره و بخښې او پر ما رحم وکړې ته بخښونکی او رحم کونکی يې) .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۳۱۷، رقم: ۸۳۴ ومسلم ۴\ ۲۰۷۸، رقم: ۴۸- ۲۰۷۵.

**تشريح**: په دې روايت کي لفظ کثيرا په ثاء ممثله سره ذکر سوی دی او د مسلم په ځينو روايتونو کي په باء موحده سره يعني کبيرا ذکر کړل سوی دی نو دا دعا په دواړو الفاظو سره ويل کيږي يعني کله خو کثيرا او کله کبيرا ويلای سي.

---

[1] - د نوموړي نوم عبد الله او کنيت يې ابوبکر دی او لقب يې صديق او عتيق دی، د محققينو مطابق د نوموړي اصل نوم عبد الكعبه وو ، بيا رسول الله ﷺ د هغه نوم عبد الله کښېښودی ، د پلار نوم يې عثمان او کنيت يې ابوقحافه وو ، په ټولو مسلمانانو نارينوو کي يې لومړی اسلام راوړ او په هجرت کي د رسول الله ﷺ د غار ملگری وو ، د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته نوموړی خليفه جوړ کړل سو ، په کال (۱۳هـ) کي د (۶۳) کالو په عمر وفات سو او په روضه اطهر کي د فن کړل سو .

## د سلام ګرځولو بيان

﴿۸۸۲﴾: عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كُنْتُ أَرَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ حَتَّى أَرَى بَيَاضَ خَدِّهِ. رواه مسلم

حضرت عامر بن سعيد د خپل پلار ښخه روايت کوي چي ما رسول الله ﷺ راسته او چپه لوري ته په سلام ګرځولو سره ليدلی دی تر دې چي د رسول الله ﷺ د بغلو سپين والی به ما ليدی (يعني دومره زيات مخ به يې ګرزوی) مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۴۰۹، رقم: ۱۱۹- ۵۸۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د سلام ګرځولو په وخت کي خپل مخ مبارک دومره ګرځوی چي منور باړخو مبارک به يې معلوم سو.

د حضرت سعد ﷺ پر سعادت قربان چي هغوی ته به په لمانځه کي د رحمت عالم صلي الله عليه وسلم طرف مبارک نصيب کيدلی.

کاشکي اندر نمازم جاشود پهلويي تو تابه تقريب سلام افتد نظر بر رويي تو

### د لمانځه وروسته دي امام د مقتديانو خواته مخ کوي او کښيني به

﴿۸۸۳﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمرة بن جندب ﷺ ښخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ

إِذَا صَلَّى أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ. رواه البخاري.

لمونځ وکړ نو زموږ په لور به يې مخ کړ. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۳۳، رقم: ۸۴۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي کله به جماعت به ختم سو نو خپل مخ مبارک به يې د مقتديانو خواته په متوجه کولو سره کښينستی.

﴿۸۸۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْصَرِفُ عَنْ يَمِينِهِ. رواه مسلم

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د لمونځ کولو څخه وروسته به رسول الله ﷺ راسته لوري ته راګرزيدی. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۱\ ۴۹۲، رقم: ۶۱- ۷۰۸.

﴿۸۸۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لاَ يَجْعَلُ أَحَدُكُمْ لِلشَّيْطَانِ شَيْئًا

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي په تاسو کي دي هيڅوک په خپل لمانځه کي د شيطان لپاره برخه و نه ټاکي يعني دا امر لازم کول چي

مِنْ صَلٰوتِهِ يَرَى أَنَّ حَقًّا عَلَيْهِ أَنْ لاَ يَنْصَرِفَ إِلاَّ عَنْ يَمِينِهِ لَقَدْ رَأَيْتُ

(دلمانځه وروسته) راسته لوري ته راوګرزي ځکه چي ما ليدلی دی

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَثِيْرًا يَنْصَرِفُ عَنْ يَّسَارِهِ. متفق عليه

رسول الله ﷺ زيات وخت چپه لوري ته راګرزيدونکی. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۳۳۷، رقم: ۸۵۲، ومسلم ۱\ ۴۹۲، رقم: ۵۹- ۷۰۷.

**تشريح**: ددې حديث حاصل دادی چي رسول الله ﷺ به د سلام ګرځولو وروسته کله خو راسته خوا ته ګرځيدی او چپه خوا ته به کښينستی او ډيره واره داسي سوي دي چي د سلام ګرځولو څخه وروسته به يې دعاء کول او د خپل حجرې مبارکي خوا ته چي چپه خوا ته وه هلته به يې تشريف وړی او کله به يې ددې برعکس کوی چي چپه خوا څخه په ګرځېدو سره به راسته خوا ته کښينستی.

لومړنی طريقه پر اوليت يعني غوره والي باندي حمل کړل سوې ده ځکه چي په دې کي د راسته خوا څخه پيل کيږي او د رسول الله ﷺ فعل به اکثر داسي وو، مګر ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چي دوهم صورت چپه خوا ته ګرځېدل که څه هم رخصت يعني جائز دی او دا صورت به اختياريږي هم کم مګر سنت ته د واجب درجه ورکول صحيح نه دي ځکه يوازي په لومړني صورت يعني راسته خوا ته ګرځېدل لازم او واجب ګرځول نه دي پکار او د شارع د لوري ورکړل سوی رخصت چي هغه دوهم صورت دی ناقابل اختيار وګڼل سي ځکه په دې حديث کي وارد دي چي حق تعالی دا خبره خوښوي چي د هغه د لوري پر ورکړل سوو رخصتونو باندي

عمل وکړل سي لکه څرنګه چي هغه پر عزيمتونو باندي عمل کول خوښوي.

يعني څرنګه چي د الله تعالى په نزد دا شی غوره او محبوب دی چي هغه عمل دي اختيار کړل سي چي په هغه کي عزيمت يعني اوليت وي همداسي د هغه په نزد دا شی هم قابل قبول او غوره دی چي هغه اعمال هم اختيار کړل سي چي الله تعالى اولى او افضل نه وي ټاکلي بلکه په هر حال يې جائز ټاکلي دی

شوافع حضراتو ددغه حديث څخه د مصلى لپاره دا درميانه طريقه اختيار کړې ده چي هغوی خپل ضرورت او سهولت کومي خوا ته چي ووينې نو هغه خوا ته دي وګرځي يعني که د هغه کور وغيره د هغه راسته خوا ته وي نو هغه ته راسته خوا ته ګرځېدل پکار دي او که چپه خوا ته وي نو هغه ته چپه خوا ته ګرځېدل پکار دي، د حضرت علي رضی الله عنه څخه هم منقول دي چي رسول الله ﷺ به کله مقتديانو خوا ته هم مخ کولو سره او شا قبلې ته کولو سره کښينستی لکه څرنګه چي په پورتني حديث کي تير سول.

په لمانځه کي د شيطان برخه ځکه ويل سوي دي چي هر کله يو سړی يو غير لازم شی پر خپل ځان باندي د واجب او لازم کېدو اعتقاد کوي نو ګويا هغه د شيطان تابع سو او د هغه د لمانځه کمال ولاړی، علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي په دې کي پر دې خبره دليل دی چي کوم سړی يو امر مستحب په مستقله توګه سره اختيار کړي او هغه ته د لازم درجه ورکړي او پر جواز باندي عمل ونه کړي نو پوه سه چي شيطان د هغه د ګمراه کولو لپاره هغه ته رسيدلی دی.

آرمان چي اهل بدعت په خپلو ګريوانونو کي په سر کښته کولو سره وګوري چي هغوی امر مستحب څه چي خلاف شريعت شيان او بدعات پر خپل ځان باندي لازم او واجب ګرځولو سره ځان يې د ضلالت او ګمراهۍ په شيله کي اچولې دی او پر ځان يې شيطان مسلط کړی دی.

دا څلور حديثونه يعني حديث عامر، حديث سمره، حديث انس او حديث عبدالله رضي الله عنهم ددې باب د موضوع سره اړوند خو نه دي البته ددې د متعلقاتو څخه دي.

## د لمانځه وروسته دعاء

﴿۸۸۶﴾: عَنْ الْبَرَاءِ قَالَ كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت براء رضی الله عنه څخه روايت دی چي کله به موږ په رسول الله ﷺ پسي لمونځ کوی

وَسَلَّمَ أَحْبَبْنَا أَنْ تَكُونَ عَنْ يَمِينِهِ يُقْبِلُ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ قَالَ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ

نو زموږ زړه به دا غوښتل چي موږ د رسول الله ﷺ راسته لوري ته يو چي دلمانځه څخه وروسته رسول الله ﷺ زموږ لوري ته مخ کړي او کښيني، براء رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي ويل يې

رَبِّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ أَوْ تَجْمَعُ عِبَادَكَ. رواه مسلم

(اې زما ربه! ما د خپل عذاب څخه وساتې په هغه ورځ چي ته خپل بندګان را پاڅوې يا يوځای کوي.) مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۴۹۲- ۴۹۳، رقم: ۶۳- ۷۰۹.

**تشريح**: يا خو به رسول الله ﷺ دا دعاء د تواضع او عاجزۍ په وجه کول يا مقصد يې امت ته تعليم ورکول وه چي خلک د لمانځه څخه وروسته دا دعاء کوي، په تبعث او تجمع کي راوي ته شک دی چي رسول الله ﷺ تبعث فرمايلي دي او که تجمع، په هر حال دا دعاء په دواړو الفاظو کي په يوه لفظ سره ويل کيږي.

**د لمانځه وروسته مقتديانو ته د امام څخه مخکي ولاړيدل ښه نه دي**

﴿۸۸۷﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ إِنَّ النِّسَاءَ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دی چي ښځي د رسول الله ﷺ په زمانه کي

وَسَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ قُمْنَ وَثَبَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

کله چي به ښځو فرض لمونځ وکړ نو سمدستي به ولاړيدې او کور ته به تلې، رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلَّى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ فَإِذَا قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ. رواه البخاري. وسنذكر حديث جابر بن سمرة في

باب الضحك إن شاء الله تعالى.

او نور ټول لمونځ کونکی به ناست وه تر څه وخته چي به د الله جل جلاله رضا وه کله چي به رسول الله ﷺ ولاړ سو نو نور خلک به هم ولاړ سول او تلل به. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۴۹، رقم: ۸۶۶.

**تشريح** : ددې ارشاد مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کي به هم ښځو د خلکو سره په رسول الله ﷺ پسي جماعت کوی هغه وخت د ښځو دا رواج وو چي څرنګه به رسول الله ﷺ سلام ګرځوی نو ښځي به سمدستي ولاړيدلې چي په لاره کي د خلکو سره يو ځای رواني او ګډې نسي نو خپلو کورو ته به رواني سوې.

د لمانځه وروسته د رسول الله ﷺ د ناستي په باره کي يو دائمي معمول مذکور نه دی چي د ټولو لمنځونو وروسته به هغه هميشه د دومره وخت لپاره کښينستی بلکه ددې انحصار د وختو پر اختلاف باندي وو د سلام ګرځولو سره خو به رسول الله ﷺ اللهم انت السلام .....الخ تر ويلوپوري به ناست وو او کله به دومره کښينستی چي د دعاء څخه د فارغيدو وروسته به يې قرآن کريم وايه او صحابه کرامو ته به يې د احکام الهي تعليم ورکوی او کله به د سهار په لمانځه کي پر مصلي باندي تر لمر ختلو پوري ناست وو.

د حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي د امام لپاره د دا ډول ضرورت پر وخت د لمانځه وروسته پر مصلي باندي تر لږ ساعته پوري ناسته مستحب ده او همداسي مقتديانو ته دا پکار ده چي تر څوپوري امام د مصلي څخه نه وي ولاړ سوی نو هغوی دي هم نه ولاړيږي (وسنذکر حديث جابر بن سمره في باب الضحک انشاء الله تعالی) او د جابر بن سمره هغه حديثونه چي په هغه کي به د لمانځه وروسته تر لمر ختلو پوري د رسول الله ﷺ ناسته مذکوره ده چي صاحب مصابيح دلته نقل کړي دي انشاءالله تعالی موږ به يې په باب الضحک کي نقل کړو.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### دلمانځه وروسته دعاء

﴿۸۸۸﴾: عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ أَخَذَ بِيَدِي رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روايت دی چي (يوه ورځ) رسول الله ﷺ زه تر لاس ونيولم

فَقَالَ إِنِّي لَأُحِبُّكَ يَا مُعَاذُ. فَقُلْتُ وَأَنَا أُحِبُّكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ. قَالَ فَلَا تَدَعْ أَنْ

او وه يې فرمايل اې معاذ! زما ستا سره مينه ده، ما عرض وکړې اې د الله رسوله! زه هم ستا سره مينه لرم، رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر لمانځه وروسته دا دعاء کوه او هيڅ کله يې مه پرېږده:

تَقُوْلَ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ رَبِّ أَعِنِّيْ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي إلا أن أبا داود لم يذكر قال معاذ وأنا أحبك .

(اې زما ربه ! زما مرسته وکړې چي زه ستا ذکر وکړم او ستا شکر ادا کړم او په ښه ډول ستا عبادت وکړم) احمد، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۲۴۴ – ۲۴۵ وابوداؤد ۲\ ۱۸۰ – ۱۸۴، رقم: ۹۹۶، والترمذي ۵\ ۴۹۲، رقم: ۳۴۹۹ والنسائي: ۳\ ۶۳، رقم: ۱۳۲۱.

**تشريح**: د ښه عبادت مطلب دادی چي هر يو عبادت وي که بدني وي يا مالي په پوره کمال او د زړه په حضور په هغه کيفيت سره وسي ګويا چي عبادت کونکی الله جل شانهويني او د هغه عبادت کوي د کتاب الايمان په يوه حديث کي هم د ښه عبادت دا مطلب بيان سوی دی ددې وضاحت په ښه طريقه سوی دی ددې حديث څخه معلومه سوه چي که يو سړی يو انډيوال لري نو د هغه لپاره مستحب دی چي هغه د خپلي دوستي او محبت اظهار د هغه سره وکړي .

دا حديث پر دې فعل او قول (اخذ بيدي او يقول انا احبک) سره اړوند دی د دې اصطلاح او تعريف علماء او محدثين په ښه توګه پيژني د عوامو ددې سره تعلق نسته ځکه د هغوی مخکي ددې د وضاحت ضرورت نسته .

## د سلام ګرزولو طريقه

﴿۸۸۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ

كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَّمِيْنِهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ خَدِّهِ

سلام و ګرزوی نو راسته لوري ته يې السلام عليکم ويل تر دې چي د راسته لوري د بغل سپين والی به يې معلوميدی

الْأَيْمَنِ وَعَنْ يَسَارِهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْسَرِ . رواه أبو داود والنسائي والترمذي ولم يذكر الترمذي حتى يرى

بیاض خده. ورواه ابن ماجه عن عمار بن یاسر.

او چپه لوري ته په سلام گرزولو سره به یې ویل السلام علیکم تر دې چي د چپه بغل سپین والی به یې معلومیدی. ابوداؤد، نسائي او ترمذي

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۰۶، رقم: ۹۹۶، والترمذي ۵\۴۹۲، رقم: ۳۴۹۹ والنسائي ۳\۶۳، رقم: ۱۳۲۱

**تشریح**: ابوداؤد او نسائي دا روایت په دغه الفاظو سره نقل کړی دی مګر امام ترمذي په خپل روایت کي (حتی یری بیاض خده) نه دی نقل کړی بلکه هغه یوازي دا نقل کړي دي چي (کان یسلم عن یمینه السلام علیکم ورحمة الله وعن یساره السلام علیکم ورحمة الله)

په ځرګنده دا معلومیږي چي ابن ماجه رحمة الله علیه د عمار بن یاسر ﷺ څخه دا حدیث پوره داسي نقل کړی نه دی چي د ترمذي په ډول د هغه یو څه برخه یې نقل کړې ده.

**رسول الله ﷺ به اکثر د لمانځه وروسته چپه خوا ته په ګرځېدو سره کښېنستی**

﴿۸۹۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ أَكْثَرُ انْصِرَافِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ إِلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ إِلَى حُجْرَتِهِ. رواه في شرح السنة.

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه وروسته زیات وخت چپه لوري ته ګرزیدی یعني د خپلي حجرې په لور. شرح السنة

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۳\۲۱۰- ۲۱۱. رقم: ۷۰۲.

**تشریح**: مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ د حجرې مبارکي دروازه په مسجد کي چپه محراب ته وه ځکه رسول الله ﷺ چي به د لمانځه څخه فارغ سو نو اکثر به چپې خوا ته ګرځیدی او خپلي حجرې مبارکي ته به یې تشریف وړی.

**د فرض وروسته د سنت لپاره د ځای بدلول پکار دي**

﴿۸۹۱﴾: وَعَنْ عَطَاءِ الْخُرَاسَانِيِّ عَنِ الْمُغِيْرَةِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

حضرت عطاء خراساني د حضرت مغیرة ﷛ څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّي الْإِمَامُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي صَلَّى فِيْهِ حَتَّى يَتَحَوَّلَ. رواه

أبو داود وقال عطاء الخرساني لم يدرك المغيرة.

امام دي په هغه ځای کي لمونځ نه کوي چي (اوس يې) لمونځ کړی دی بلکه لږ آخوا دې خوا دي سي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۰۹–۴۱۰، رقم: ٦١٦.

**تشريح**: دلته دا حکم ورکول سوی دی چي کوم ځای فرض لمونځ سوی وی هلته دي سنت نه کول کيږي بلکه د هغه ځای څخه په لږ آخوا کيدو سره او ځای بدليدو سره په دوهم ځاي کي دي سنت کوي په دې اړه په دې خبره پوهيدل پکار ده چي ددې حديث څخه په ښکاره خو دا معلوميږي چي دا حکم په خاصه توګه د امام لپاره دی مقتدي په دې کي نه دی شامل حالانکه داسي نه ده بلکه دا حکم په مجموعي توګه سره د امام او مقتدي د ټولو لپاره دی.

فرض او سنت دواړه يو ځاي د کولو څخه منعه ځکه سوې ده چي يو راتلونکی دا ګمان و نه کړي چي لمونځ کونکي اوس فرض کوي يا دا چي دواړه ځايونه د قيامت په ورځ د پروردګار په مخ کي د لمونځ کونکي د اطاعت ګزاري ګواهي ورکوي چي د هغه سره د هغه په مرتبه کي اضافه وسي. ملا علي قاري رحمة الله عليه ليکلي دي چي د ځينو علماوو قول دادی چي دا حکم د هغه فرض لمنځونو په باره کي دی چي د هغه وروسته سنت موکده دی او کم فرض لمنځو وروسته چي سنت نه سي ويلاي لکه سهار او مازديګر نو د هغه په باره کي دا حکم نه دی خو د ځينو علماؤ دا رايه ده چي دا حکم د ټولو لمنځونو په باره کي يو ډول دی.

﴿۸۹۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَضَّهُمْ عَلَى الصَّلَاةِ وَنَهَاهُمْ أَنْ يَّنْصَرِفُوا قَبْلَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ. رواه أبو داود.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به صحابه کرامو ته د لمانځه ترغيب ورکوی او ددې څخه به يې منعه فرمايل چي هغوی دې د لمانځه څخه وروسته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيرته ستنيدو څخه مخکي وګرزي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۴۱۳، رقم: ٦٢۴.

**تشريح**: د حديث د اول جزء مطلب دادی چي يا خو به رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه کرامو ته مطلقا د لمانځه کولو تاکيد فرمايه يا هغوی ته به يې ددې خبري رغبت ورکوی چي

لمونځ په جماعت کولو سره ادا کړي . د رسول الله ﷺ د ارشاد د دوهم جزء مطلب دا دی چې هر کله لمونځ ختم سي او د دعا وغیره څخه فارغ سي نو تر څو پوري چې زه نه یم ولاړ سوی نو مقتدیان دي نه ولاړيږي چې په لاره کي ښځي او نارینه یو ځای نسي ځرنګه چې مخکي حدیث کي تیر سوي دي چې د لمانځه وروسته به رسول الله ﷺ او نور خلک ناست وه تر دې چې ښځي به په ولاړيدو سره ولاړې نو مخکي به رسول الله ﷺ پورته کيدی او د هغه وروسته به نور خلک پورته کيدل او خپلو کورونو ته به تلل په دې صورت کي دا نهي تنزيهي ده . دا هم احتمال دی چې دلته مخکي د پورته کیدو څخه مراد د مسبوق پورته کيدل وي په دې صورت کي به ددې ارشاد مطلب داوی چې تر څو پوري امام سلام نه وګرځوي تر هغه وخته پوري دي مسبوق په خپلو پاته رکعتونو کي د ویلو لپاره نه دريږي بلکه کله چې امام سلام وګرځوي بیا دي مسبوق ولاړسي دلته په دې خبره باندي هم پوه سه چې دا صورت يعني د مسبوق د امام سلام ګرځولو څخه مخکي پورته کیدل د حنفیه په نزد حرام دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د تشهد وروسته د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۸۹۲﴾: عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به دا دعاء کول

فِيْ صَلاَتِهِ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الثَّبَاتَ فِي الْأَمْرِ وَالْعَزِيْمَةَ عَلَى الرُّشْدِ وَأَسْأَلُكَ

په لمانځه کي : ژباړه( اې الله ! زه ستا څخه په دين کي ثابت قدمي غواړم او قصد کول

شُكْرَ نِعْمَتِكَ وَحُسْنَ عِبَادَتِكَ وَأَسْأَلُكَ قَلْبًا سَلِيْمًا وَلِسَاناً صَادِقًا وَأَسْأَلُكَ

شکر ته او سوال کوم چې ما ته د خپلو نعمتو د شکر ادا کولو توفيق راکړې او ستا د ښه عبادت توفيق راکړې او ما ته قلب سليم او رښتوني ژبه راکړې

مِنْ خَيْرِ مَا تَعْلَمُ وَأَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا تَعْلَمُ وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا تَعْلَمُ . رواه النسائي وروى أحمد نحوه .

او ما ته هغه خیر هم راکړې چې ته یې غواړې زه د هغه بدی څخه چې تا ته معلومه ده پناه غواړم او د هغه گناهو څخه چې تا ته معلوم دي معافي غواړم) نسائي او احمد.

**تخریج**: سنن النسائي ۳\ ۵۴، رقم: ۱۳۰۳. والامام احمد في مسنده: ۴\ ۱۲۳.

**تشریح**: دا دعا هم د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکي څخه د امت د تعلیم لپاره ارشاد فرمایل سوې ده چې د امت خلک دي داسي دعا غواړي او تر څو چې د رسول الله ﷺ د ذات تعلق دی نو رسول الله ﷺ ته دا ټول شیان او سعادتونه حاصل وه چې د هغه خوا ته په دعا کي اشاره سوې ده او د ټولو گناهونو څخه رسول الله ﷺ محفوظ وو او ټول مخکي او ورستني گناهونه یې بخښل سوي دي.

د سیده لاري قصد کول: مطلب دادی چې اې الله ماته ددې خبري توفیق راکړې چې تا د هدایت کومه لار ښودلې ده همیشه پر هغه ثابت قدمي سره قائم اوسم او هدایت د خپل ژوند لپاره لازم ونیسم ستا د نعمت د شکر او عبادت د حسن خواست کوم ددې مطلب دادی چې اې الله ماته ددې خبري توفیق راکړې چې ستا څخه هغه نعمتونه چې تا ماته راکړي دي ستا اطاعت او فرمانبرداري کي داسي صرف کړم چې ستا د احکامو او فرمان پابند سم او د کومو شیانو څخه چې تامنعه کړي ده د هغه څخه و ژغورل سم او ستا عبادت په پوره شرطونو او ادبونو او پوره ارکانو سره ادا کړم.

سلیم زړه: هغه زړه ته وایي چې د خرابو عقیدو، کمزور خیالاتو، غلط اعتقادات او نظریات څخه پاک وي او د نفساني خواهشاتو خوا ته د هغه میلان نه وي او دا چې هغه د ماسوی الله څخه خالي وي د دعا جمله واسا لک خیر ما تعلم کي لفظ ما موصوله دی یا موصوفه او عائد یې محذوف دی همداسي په دې جمله کي لفظ من زائد دی یا بیانیه او مبین محذوف دی گویا په اصل کي دا عبارت داسي دی اسا لک شیئا هو خیر ما تعلم یعني زه تا ته د هغه شي خواست کوم چې د هغه په باره کي ته پوهیږې چې هغه ښه دی یعني زه د داسي شي خواست نه کوم چې د هغه په باره کي زما خیال دی چې هغه ښه دی ځکه چې بنده خو یو شی ښه گڼي حالانکه په حقیقت کي هغه ښه نه وي ځکه زه هغه شی غواړم چې ستا په نزد ښه دی همداسي و اعوذبک من شر ماتعلم: مطلب هم دادی چې زه د هغه خراب شي څخه پناه غواړم چې ستا په نزد خراب دی او د هغه په باره کي ستا فیصله ده چې د بنده په حق کي د خرابۍ باعث وي.

﴿۸۹۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ صَلَاتِهِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي

بَعْدَ التَّشَهُّدِ أَحْسَنَ الْكَلَامِ كَلَامُ اللهِ وَأَحْسَنُ الْهُدٰي هَدْيُ مُحَمَّدٍ . رواه النسائي

د تشهد څخه وروسته دا ويل: (په کلامو کي غوره کلام د الله کلام دی او غوره هدايت د محمد ﷺ هدايت دی.) نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۵۸، رقم: ۱۳۱۰.

## د رسول الله ﷺ د سلام طريقه

﴿۸۹۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ تَسْلِيْمَةً تِلْقَاءَ وَجْهِهِ ثُمَّ تَمِيْلُ إِلَى الشِّقِّ الْأَيْمَنِ شَيْئًا . ترمذي

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي سلام د مخ لور ته او بيا لږ راسته لوري ته مخ گرزولو سره کوی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۹۰-۹۱، رقم: ۲۹۶.

**تشريح**: مطلب دا چي کله به رسول الله ﷺ سلام گرځوی نو دا طريقه به يې اختيارول چي د سلام پيل به يې د قبلې خوا ته کوله بيا په مينځ کي به يې راسته خوا ته دومره مخ مبارک وگرځوی چي د بارخو مبارک سپين والی به يې معلوميدی لکه څرنگه چي مخکي روايتونو کي تير سوی دی همداسي به يې سلام پوره کوی.

ددې حديث څخه په ښکاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي يو سلام راسته طرف ته گرځوی، امام مالک رحمة الله عليه ددې پيش نظر فرمايي چي په لمانځه کي يوازي يو سلام مشرع دی امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه، امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په نزد په اتفاق سره په لمانځه کي راسته او چپه دواړو خواوو ته سلام مشروع دی ځکه چي په دې اړه ډير زيات حديثونه وارد دي چي د هغو څخه ثابتيږي چي چپه او راسته دواړو خواوو ته سلام گرځول پکار دي.

اوس ددې حديث تاويل ددې درو امامانو له خوا داسي چي يو سلام به د رسول الله صلي

الله عليه وسلم په لوړ اواز سره کوی او دوهم سلام به يې په کرار اواز سره، ځکه بي بي عائشې رضي الله عنها دلته په لوړ اواز سره د ویونکي سلام ته اعتبار ورکړ او یوازي دا یو یې ذکر کړ.

## د سلام ګرځولو په وخت کي د جواب نیت

﴿۸۹۶﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَّرُدَّ عَلَى الْإِمَامِ وَنَتَحَابَّ وَأَنْ يُّسَلِّمَ بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ. رواه أبو داود.

د حضرت سمرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به موږ ته حکم راکوی چي په هر سلام ګرځولو کي د امام د سلام د جواب نیت وکړو په خپلو کي مینه وساتو او هر یو دي بل ته سلام کوي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۶۰۹/۱، رقم: ۱۰۰۱.

**تشريح**: د اول حکم مطلب دادی چي مقتدیان سلام ګرځوي نو هغه وخت دي هغوی دا نیت وکړي چي موږ د امام د سلام جواب ورکوو ددې صورت دادی چي کوم مقتدیان چي د امام راسته خوا ته وي هغوی دي په دوهم سلام کي او کوم مقتدیان چي په چپه خوا کي وي هغوی دي په اول سلام کي د امام د سلام جواب ورکوي. ددې څخه دا خبره معلومه سوه چي هر کله امام سلام وګرځوي نو هغه دي هغه وخت دا نیت وکړي چي زه مقتدیانو ته سلام کوم.

د دوهم حکم مطلب دادی چي مسلمانان دي په خپلو کي یعني لمونځ کونکو او د الله تعالی دټولو بندګانو سره محبت کوي د هغوی سره دي په خوش اخلاقی او ښهٔ اخلاقو مخامخ کیږي

د دریم حکم مطلب دادی چي څرنګه امام د سلام ګرځولو په وخت کي پر مقتدیانو باندي د سلام او مقتدیان د سلام ګرځولو په وخت کي د امام د سلام د جواب نیت کوي همداسي ټول مقتدیان دي په لمانځه کي د سلام ګرځولو په وخت کي یو بل ته د سلام نیت کوي داسي چي راسته خوا ته سلام ګرځولو په وخت کي د چپه خوا مقتدیانو نیت کول پکار دی او هر لمونځ کونکي ته دا پکاره ده چي په دواړو سلامو کي د ملائکو هم نیت کوي ځکه چي په حدیثو کي ددې حکم هم ورکول سوی دی او د حنفیه ځیني علماء وایي چي دا سنت دی اګر که نورو حضراتو دا پرې ایښي دي.

==========

# بَابُ الذِكْرِ بَعْدَ الدُّعَاءِ

## تر لمانځه وروسته د ذکر بیان

په دې باب کې هغه حدیثونه ذکر کیږي چې د هغه څخه د لمانځه وروسته د دعا او نورو اورادو او وظائف ویلو ارزښت او فضیلت ښکاره کیږي دلته د ذکر لفظ عام دی چې پر دعا، اورادو او وظائفو ټولو باندې حاوي دی.

په دې مسئله کې اختلاف دی چې د فرض لمانځه وروسته سنت کیږي د هغه وروسته لمونځ کونکی دعاء، اوراد او وظائف لپاره څومره کېښېنستلای سي، په در مختار کې لیکلي دي چې د فرض لمانځه وروسته په سنتو کې تاخیر کول مکروه دی البته اللهم انت السلام (تر پایه پوري) په اندازه د دعاء وغیره کولو لپاره ناسته ثابته ده.

د علامه حلواني رحمة الله علیه قول دادی چې د اورادو او وظائفو ویلو په غرض سره د فرضو او سنتو په درمیانه وقفه کې څه پرواه نسته، دا قول کمال رحمة الله علیه هم اختیار کړی دی.

علامه حلبي رحمة الله علیه په دغه دواړو قولونو کې تطبیق داسې پیدا کړی دی چې دلته د مکروه څخه مراد مکروه تحریمي وا نه خیستل سي بلکه مکروه تنزیهي مراد دی نو په دغه دواړو قولونو کې اختلاف نه پاته کیږي ځکه چې د لومړني قول مطلب به دا وي چې د اورادو او وظیفې ویلو لپاره د سنت په کولو کې زنډ کول د ګناه خبره نه ده البته مکروه تنزیهي ده یعني که زنډ ونه کړل سي نو غوره به وي، همداسې د علامه حلواني رحمة الله علیه د قول مطلب به دا وي چې د فرض لمانځه کولو څخه وروسته د اوراد او وظیفې ویلو لپاره په سنتو کې زنډ کولو کې که څه هم پرواه نسته مګر مناسب داده چې زنډ ونه کړل سي همداسې دا دواړه قوله پر خپل خپل ځای صحیح کیږي او په دواړو کې تضاد هم نه پاته کیږي.

د صاحب در مختار د یوه قول مطلب دادی چې کیدای سي د فرض او سنت په مینځ کې دعاء، اوراد او وظیفه وویل سي نو تعارض لیري کیږي.

د دې وروسته نوموړی فرمایي چې مستحب داده چې د لمانځه څخه وروسته درې واره استغفرالله وویل سي، آیة الکرسي، معوذات (یعني قل هو الله احد، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس) وویل سي او سبحان الله، الحمدلله او الله اکبر دې درې دیرش ځله هر یو وویل سي، او بیا یو وار تهلیل یعني لا اله الا الله وحده لاشرک ..... الخ، ویلو سره د سل عدد

دي پوره کړل سي ، ددې ځخه وروسته دي دعا وغواړي او پر دغه جمله دي دعاء ختم کړي :
سبحان ربک رب العزۃ عما یصفون و سلام علی المرسلین والحمد للہ رب العالمین .
د جماعت ختمېدو ځخه وروسته چي سنت وکړل سي نو مقتديانو ته پکار ده چي صفونه مات کړي يعني د سنت کولو لپاره دي په صف بندي سره نه درېږي بلکه مخته او شا ته دي ودرېږي او امام ته هم پکار ده چي هغه هم د امت د مصلی ځخه په آخوا کېدو سره مخته يا شاته او يا راسته او چپه خوا ته سي چي د وروسته راتلونکو لمونځ کونکو دا خيال نه سي چي اوس لا جماعت ولاړ دی او يو لمونځ کونکی په دې خيال کي په امام پسي اقتداء کولو سره د لمانځه لپاره ودرېږي او د هغه اقتداء به فاسد سي .
په غه شي کي هم اختلاف دی چي د سلام گرځولو ځخه وروسته دعاء او اوراد وغيره ويلو لپاره امام ته راسته خوا ته گرځېدو سره کښېنستل افضل دي يا چپه خوا ته ؟ صحيح قول دا دی چي هغه ته اختيار دی ، مگر د اکثرو حضراتو رايه دا ده چي چپه خوا ته په گرځېدو سره ناسته په اتفاق سره د ټولو په نزد افضله ده ځکه چي حجره شريفه دې خوا ته ده .
که يو سړی د فرض لمانځه ځخه وروسته سنت وکړي او د هغه وروسته په حديث کي راغلي اوراد او وظائف ووايي نو دا به د هغه بعديت منافي نه وي کوم چي په احاديث کي مذکور دي چي د لمانځه ځخه وروسته فلانی دعاء يا وظيفه دي وويل سي ، که يو سړی د فرض لمانځه کولو سره مخکي سنت وکړي بيا د هغه وروسته مذکوره اوراد او وظائف ووايي نو داسي به نسي ويل کيدای چي دی د فضيلت ځخه محروم سو ځکه چي د حديث مقصد خو دا دی چي اوراد او وظائف دي د لمانځه ځخه وروسته وويل سي که ځه هم د سنت ځخه وروسته وي بلکه د سنت ځخه وروسته ويل زيات مناسب دي .
همداسي د صحيح حديثو ځخه ثابته ده چي د سهار او ماښام د لمنځونو ځخه وروسته (لا اله الا اللہ وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو علی کل شئ قدير) لس واره ويل پکار دي ، يا د دغه لمنځونو ځخه وروسته د آيت الکرسي ويل د حديثو ځخه ثابت دي ، که يو سړی ماښام د فرض لمانځه کولو ځخه وروسته سنت وکړي او د هغه وروسته آية الکرسي يا پورتنی تهليل ووايي نو د حديث سره سم هغه ته به فضيلت حاصلېږي کوم چي د فرض ځخه وروسته ورته حاصلېږي .
ځيني خلک په دا فکر کولو سره چي تلوار هم وسي او د پورتنيو شيانو د ويلو فضيلت هم تر لاسه سي د ماښام په سنتو کي آيت الکرسي وايي دا محض وهم دی ځکه چي د حديثو ځخه ثابته ده چي رسول اللہ ﷺ به د ماښام په سنتو کي قل يا ايها الکافرون او قل هو اللہ احد وايه .

دي پوره کړل سي ، ددې څخه وروسته دي دعا وغواړي او پر دغه جمله دي دعاء ختم کړي :
سبحان ربک رب العزة عما یصفون و سلام علی المرسلین والحمد لله رب العالمین .

د جماعت ختمېدو څخه وروسته چي سنت وکړل سي نو مقتدیانو ته پکار ده چي صفونه مات کړي یعني د سنت کولو لپاره دي په صف بندي سره نه دریږي بلکه مخته او شا ته دي ودریږي او امام ته هم پکار ده چي هغه هم د امت د مصلی څخه په آخوا کېدو سره مخته یا شاته او یا راسته او چپه خوا ته سي چي د وروسته راتلونکو لمونځ کونکو دا خیال نه سي چي اوس لا جماعت ولاړ دی او یو لمونځ کونکی په دې خیال کي په امام پسي اقتداء کولو سره د لمانځه لپاره ودریږي او د هغه اقتداء به فاسد سي .

په دغه شي کي هم اختلاف دی چي د سلام ګرځولو څخه وروسته دعاء او اوراد وغیره ویلو لپاره امام ته راسته خوا ته ګرځېدو سره کښېنستل افضل دي یا چپه خوا ته ؟ صحیح قول دادی چي هغه ته اختیار دی ، مګر د اکثرو حضراتو رایه داده چي چپه خوا ته په ګرځېدو سره ناسته په اتفاق سره د ټولو په نزد افضله ده ځکه چي حجره شریفه دې خوا ته ده .

که یو سړی د فرض لمانځه څخه وروسته سنت وکړي او د هغه وروسته په حدیث کي راغلي اوراد او وظائف ووایي نو دا به د هغه بعدیت منافي نه وي کوم چي په احادیث کي مذکور دي چي د لمانځه څخه وروسته فلانی دعاء یا وظیفه دي وویل سي ، که یو سړی د فرض لمانځه کولو سره مخکي سنت وکړي بیا د هغه وروسته مذکوره اوراد ووظائف ووایي نو داسي به نسي ویل کیدای چي دی د فضیلت څخه محروم سو ځکه چي د حدیث مقصد خو دادی چي اوراد او وظائف دي د لمانځه څخه وروسته وویل سي که څه هم د سنت څخه وروسته وي بلکه د سنت څخه وروسته ویل زیات مناسب دي .

همداسي د صحیح حدیثو څخه ثابته ده چي د سهار او ماښام د لمنځونو څخه وروسته (لا اله الاالله وحده لاشریک له له الملک وله الحمد وهو علی کل شئ قدیر) لس واره ویل پکار دي ، یا ددغه لمنځونو څخه وروسته د آیت الکرسي ویل د حدیثو څخه ثابت دي ، که یو سړی ماښام د فرض لمانځه کولو څخه وروسته سنت وکړي او د هغه وروسته آیة الکرسي یا پورتنی تهلیل ووایي نو د حدیث سره سم هغه ته به فضیلت حاصلیږي کوم چي د فرض څخه وروسته ورته حاصلیږي .

ځیني خلک په دا فکر کولو سره چي تلوار هم وسي او د پورتنیو شیانو د ویلو فضیلت هم ترلاسه سي د ماښام په سنتو کي آیت الکرسي وایي دا محض وهم دی ځکه چي د حدیثو څخه ثابته ده چي رسول الله ﷺ به د ماښام په سنتو کي قل یا ایها الکافرون او قل هو الله احد وایه .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د لمانځه په ختمېدو سره الله اكبر ويل

﴿۸۹۷﴾: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُنَّا نَعْرِفُ انْقِضَاءَ صَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّكْبِيرِ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ د لمانځه ختمېدل به په تكبير ويلو سره پيژندل كيده (يعني د لمانځه په آخر كي به يې په لوړ آواز سره تكبير وايه). بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۲۵، رقم: ۸۴۲، ومسلم: ۱\۴۱۰، رقم: ۱۲۰- ۵۸۳.

**تشريح**: پر لمانځه ختميدو باندي د الله اكبر ويلو څخه مراد ذكر دی څرنګه چي په صحيحين كي دابن عباس رضی اللہ عنہ روايت نقل دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي د فرض لمانځه د فراغت وروسته د خلكو لپاره په لوړ اواز سره ذكر ټاكلی وو بيا ابن عباس رضی اللہ عنہ وايي چي ما به د لمانځه اختتام ددې په ذريعه پيژندی يعني كله چي به خلكو په لوړ اواز سره ذكر كوی نو ماته به معلومه سوه چي لمونځ سوی دی، د ابن عباس رضی اللہ عنہ دا قول نقل كړی ديكوم چي دلته ذكر سوی دی ددې څخه معلومه سوه چي د تكبير څخه مراد مطلق ذكر دی .

مګر په دې خبره باندي پوه سی چي امام شافعي رض دا ذكر بالجهر د امت پر تعليم محمول كړی دی د بيهقي وغيره په كرار اواز سره ذكر كولو باندي صحيحين ددې حديث څخه استدلال كړی دی او رسول الله ﷺ به صحابه كرامو ته دا حكم وركوی چي هغوی تهليل اوتكبير په لوړ اواز سره نه كوي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چي تاسو كوڼ او غائب نه يادوی (يعني الله تعالى) هغه خو ستاسو سره دی او نژدې دی .

ځينو حضراتو ويلي دي چي دلته د تكبير څخه مراد هغه تكبير دی چي د لمانځه وروسته تسبيح او تحميد سره لس واره يا ديرش واره ويل كيږي د ځينو محققينو دا رايه ده چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي د لمانځه وروسته يو واريا درې واره تكبير ويل كيدی .

د ځينو علماء قول دادی چي د ابن عباس رضی اللہ عنہ د دا روايت تعلق د منیٰ د ورځو سره دی چي هلته به يې د تشريق تكبيرات ويل په هر حال دا ټول اقوال مختنه په اينبو دو سره هم تر ټولو لوی صورت د ابن عباس رضی اللہ عنہ په دې قول سره وارد كيږي چي څه وجه ده چي ابن عباس رض به د سلام

سره خو د لمانځه اختتام نه پيژندی او تکبير سره به يې پيژندی چي لمونځ سوی دی .

ددې يو جواب خو دا کيدای سي چي ابن عباس رضي الله عنه هغه وخت کم عمر وو ځکه ممکنه ده چي هغه هميشه عبادت کي نه شريکيدی يا دا احتمال دی چي هغه به په جماعت کي خو شريکيدی مګر په وروسته صف کي به دريدی ځکه تر هغه پوري د رسول الله ﷺ د اواز ځخه د رسيدو په وجه هغه به پر سلام باندي د لمانځه اختتام نه پيژندی بلکه کله چي به مقتديانو په لوړ اواز سره تکبير وايه نو هغه به په دې پوه سو چي لمونځ ختم سو. والله اعلم

## د فرض وروسته د رسول الله ﷺ د ناستي اندازه

﴿۸۹۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها ځخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ سلام وګرزوی

لَمْ يَقْعُدْ إِلاَّ مِقْدَارَ مَا يَقُولُ اللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلاَمُ وَمِنْكَ السَّلاَمُ تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلاَلِ وَالإِكْرَامِ . رواه مسلم

نو ددې دعاء ويلو په اندازه به ناست وو : (اې الله ! ته سالم يې، او ستا ځخه د بندګانو د ټولو آفتونو ځخه سلامتي ده اې د عظمت او بخښني خاونده ، ته برکت والا يې ) مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۴۱۴، رقم: ۱۳۶- ۵۹۲.

**تشريح** : د حضرت عائشې رضي الله عنها د ارشاد مطلب دا دی چي د کوم فرض لمانځه وروسته سنت نه وي لکه د سهار او مازديګر لمونځ نو د هغه سلام ګرځولو وروسته د رسول الله ﷺ تر دې زياته ناسته هم ثابته ده له دې کبله علماء وايي چي د دغه لمنځو وروسته تر لمر ختلو او لمر لوېدلو پوري په ذکر کي مصروف کيدل مستحب دی .

د سلام وروسته د نه کښينستلو يوه توجيه دا هم سوې ده چي رسول الله ﷺ به د لمانځه پر هيئت يوازي تر دومره وخته پوري کښينستی چي دا دعا وواييي يا دا چي رسول الله ﷺ به اکثر يوازي دومره کښينستی .

دلته چي کومه دعا ذکر سوې ده په هغه کي دا الفاظ هم ويل کيدای سي: (واليک يرجع السلام فحينا ربنا بالاسلام واد خلنا دار السلام ) حال دا چي دا الفاظ د حديثو ځخه ثابت نه دي بلکه وروسته د دې الفاظو اظافه هم سوې ده .

﴿۸۹۹﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د لمانځه سلام وګرزوی

مِنْ صَلَاتِهِ اسْتَغْفَرَ ثَلَاثًا وَقَالَ اللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ

ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ. رواه مسلم

نو درې ځله يې بخښنه غوښتل بيا يې دا ويل: اللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۴۱۴، رقم: ۱۳۶– ۵۹۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي څرنګه به رسول الله ﷺ سلام وګرځوی نو مخکي به يې درې واره استغفار وايه د هغه وروسته به يې پورتنی دعاء ويل.

په ځينو روايتونو کي ذکر سوي دي چي رسول الله ﷺ به درې واره استغفار داسي وايه (استغفر الله الذي لا اله الا هو الحي القيوم و اتوب اليه)

## د فرض لمانځه وروسته دعاء

﴿۹۰۰﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

د حضرت مغيرة بن شعبة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

يَقُولُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ مَكْتُوبَةٍ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ

د هر فرض لمانځه وروسته دا ويل: لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ

وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا

وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا

مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. متفق عليه

مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۲۵، رقم: ۸۴۴، ومسلم: ۱\۴۱۴-۴۱۵، رقم: ۱۳۷-۵۹۳.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ دغه دعا او نوري دعاوي او کلمات اذکار چي په مختلفو حديثونو کي ذکر دي د لمانځه څخه وروسته به يې ويلې، علماء ليکي چي رسول الله ﷺ به په ځينو وختونو کي د سلام ګرځولو وروسته پرته د څه ويلو څخه ودريدی او په ځينو وختو کي به يې پورتني دعا او د اذکار څخه به يې څه يا ټول ه ويل.

څرنګه چي په حديثونو کي د لمانځه وروسته مختلفي دعاوي ثابتي دي له دې کبله ځينو علماؤ د دغه ويلو ترتيب داسي کړی دی چي اول دي استغفار وويل سي دديې وروسته اللهم انت السلام تر اخره پوري وويل سي بيا دديې وروسته دي لااله الا الله وحده لاشريک له تر آخره پوري وويل سي دديې دعاګانو پرته نوري هم زياتي دعاګاني په حديثو کي ذکر سوي دي چي د هغه په باره کي ثابت دي چي رسول الله ﷺ به د لمانځه وروسته ويلې.

په دې خبره باندي هم پوه سه چي د وروسته څخه مراد دا نه دی چي دا دعاګاني د فرض لمنځو وروسته متصل وويل سي که چيري د سنتو وروسته هم دا دعا ووايي دې ته هم د لمانځه وروسته ويل کيدای سي.

﴿۹۰۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه څخه روايت دی چي. کله به رسول الله ﷺ

إِذَا سَلَّمَ مِنْ صَلٰوتِهِ يَقُوْلُ بِصَوْتِهِ الْاَعْلٰى لَا إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ

سلام وګرزوی نو په لوړ آواز سره به يې ويل: لااله الاالله ....) (د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته، هيڅوک د هغه شريک نسته

الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ

پاچاهي هغه لره ده او ټول تعريفونه هغه لره دي هغه پر هر شی قادر دی، د ګناهو څخه د منعه کيدو او د عبادت کولو توان

اللهُ وَلاَ نَعْبُدُ إِلاَّ إِيَّاهُ لَهُ النِّعْمَةُ وَلَهُ الْفَضْلُ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ

د الله څخه پرته بل هيڅوک نه سي ورکولای د هغه څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او موږ يوازي

د هغه عبادت کوو نعمتونه د هغه دي او د هغه لپاره برزګي ده د هغه لپاره غوره تعریف دی او
پرته د الله څخه بل د عبادت وړ نسته

مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ . رواه مسلم

د هغه لپاره خالص دين اختيارو و که څه هم کافريې بد ګڼي ).مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۴۱۵-۴۱۶،رقم: ۱۳۹-۵۹۴.

**تشریح**: علماء ليکي چي رسول الله ﷺ به دا دعا او کلمات هم د امت د تعليم لپاره په لوړ اواز سره ويل، امام نووي رحمة الله عليه په کتاب مهذب کي ليکلي دي دا دعا او ددې څخه ماسوا نوري دعاوي په کرار اواز سره ويل افضل دی که امام وي يا منفرد هو که ددې خبري ضرورت وي چي يوه دعا يو چا ته زده کول وي نو هغه په لوړ اواز سره ويل پکار دي ،دا دعا د رسول الله ﷺ په لوړ اواز سره پر دې محمول ده چي د رسول الله ﷺ مقصد صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دا ښودل وو چي په لوړ اواز سره ويل او کله چي خلکو ته دا ياده سوه نو بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم په کرار اواز سره ويل او بيا په کرار اواز سره ويل افضل سوه.

## د لمانځه وروسته د کومو شيانو څخه پناه غوښتل پکار ده

﴿۹۰۲﴾: وَعَنْ سَعْدٍ أَنَّهُ كَانَ يُعَلِّمُ بَنِيهِ هٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ وَيَقُوْلُ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ

حضرت سعد رضي الله عنه وايي چي هغه به خپلو ماشومانو ته دا کلمات ښودل او ويل به يې رسول ﷺ به

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَعَوَّذُ بِهِنَّ دُبُرَ الصَّلَاةِ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنَ

د لمانځه وروسته په دغه الفاظو سره پناه غوښتل : ( اې الله ! زه ستا پناه غواړم له

الْجُبْنِ وَأَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَأَعُوْذُ بِكَ مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَأَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ

الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ . رواه البخاري .

بزدلۍ ، بخل او بېکاره عمر، د دنيا د فتنې او د قبر د عذاب څخه د ساتلو لپاره ستا پناه
غواړم). بخاري

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۳۵-۳۶،رقم: ۲۸۲۲،

**تشریح**: دلته د جبن څخه مراد د اطاعت جرئت نه کول دي، د بخل څخه مراد دادی چي بل ته

په مال، علم او خير خواهي سره گټه ونه رسوي، د بېكاره عمر مطلب دادی چي انسان د ژوند هغه مرحلې ته ورسيږي چيري چي په عقل كي خلل راسي اندامونه ضعيف سي طاقت او قوت جواب وركړي او داسي سړی بالكل شل او گوډ او په معذور كيدو سره ددين او دنيا د دواړو ناكاره جوړ سي داسي عمر څخه پناه غوښتل پكار ده ځكه چي د انساني ژوند حاصل او مقصود خو يوازي دادی چي د الله تعالى په عبادت كي مصرف سي د هغه نعمتونو په ښه ډول شكر اداء كړي او دا ښكاره ده چي په داسي ناكاره عمر كي هيڅ سړي نه په پوره توگه عبادت كولای سي او نه په شكر ادا كولو كي مشغول پاته كيدای سي، همداسي د ژوند او عمر چي كوم مقصد دی هغه فوت سي الله تعالى دي موږ ټول د داسي بيكاره ژوند څخه و ژغوري .آمين.

## د لمانځه وروسته تسبيح او د هغه فضيلت

﴿۹۰۳﴾: وَعَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أَنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابوهريرة ﷜ څخه روايت دی چي فقيران مهاجرين رسول الله ﷺ ته راغلل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا قَدْ ذَهَبَ أَهْلُ الدُّثُورِ بِالدَّرَجَاتِ الْعُلَى وَالنَّعِيمِ الْمُقِيمِ

او عرض يې وكړ چي شتمنو درجات او د جنتو نعمتونه تر لاسه كړل ،

فَقَالَ وَمَا ذَاكَ قَالُوا يُصَلُّونَ كَمَا نُصَلِّي وَيَصُومُونَ كَمَا نَصُومُ وَيَتَصَدَّقُونَ

رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه چي د دې لامل څه دی ؟ هغوی وويل: هغوی لمونځ كوي څنگه چي موږ لمونځ كوو او روژې نيسي څنگه چي موږ روژې نيسو او هغوی خيرات كوي

وَلاَ نَتَصَدَّقُ وَيُعْتِقُونَ وَلاَ نُعْتِقُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَلاَ

او موږ يې نه سو كولای، هغويئ غلامان آزادوي او موږ يې نه سو آزادولای ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

أُعَلِّمُكُمْ شَيْئًا تُدْرِكُونَ بِهِ مَنْ سَبَقَكُمْ وَتَسْبِقُونَ بِهِ مَنْ بَعْدَكُمْ وَلاَ يَكُونُ

ايا زه تاسو ته داسي شی ونه ښيم چي د هغه له كبله تاسو د هغو خلكو څخه مخكي سئ چي ستاسو څخه وړاندي يې اسلام راوړی دی او د هغه خلكو څخه هم په مرتبه كي زيات سئ چي

ستاسو څخه وروسته به پيدا كيږي او نه به وي

أَحَدٌ أَفْضَلَ مِنْكُمْ إِلاَّ مَنْ صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُمْ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ

هيڅوك غوره او افضل تر تاسو خو يوازي هغه څوك چي هغه هم هغه عمل كوي كوم چي تاسو يې كوئ، هغوى عرض وكړ: هو، اې د الله رسوله! نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

تُسَبِّحُونَ وَتُكَبِّرُونَ وَتَحْمَدُونَ دُبُرَ كُلِّ صَلاَةٍ ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ مَرَّةً قَالَ أَبُو

د هر لمانځه وروسته (سبحان الله الحمد لله الله اكبر) درو ديرش (۳۳) ځله وايا ست، وويل ابو

صَالِحٍ فَرَجَعَ فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا

صالح راوي چي دد ې پېښې وروسته فقيران مهاجرين بيا د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سول او عرض يې وكړ:

سَمِعَ إِخْوَانُنَا أَهْلُ الأَمْوَالِ بِمَا فَعَلْنَا فَفَعَلُوا مِثْلَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

زموږ شتمن ورونه زموږ د دې عمل څخه په خبريدو سره هغوى هم په دې عمل پيل كړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ. متفق عليه وليس قول ابي صالح الى آخره الا عند مسلم و في رواية للبخاري تسبحون في دبر كل صلوة عشرا و تحمدون عشرا و تكبرون عشرا بدل ثلثا وثلثين.

دا د الله ﷻ فضل دى هغه چي چا ته يې غواړي وركوي يې. بخاري او مسلم، د بخاري په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي پر ځاى د درو ديرش ځله د هر لمانځه وروسته لس ځله سبحان الله، لس ځله الحمد لله او لس ځله الله اكبر وايي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري: ۲\۳۲۵، رقم: ۸۴۳، ومسلم: ۱\۴۱۶ - ۴۱۷، رقم: ۱۴۲ - ۵۹۵.

**تشريح**: په اول روايت كي دا فرمايل سوي دي چي په هر لمانځه پسې سبحان الله، الحمد لله او الله اكبر درو ديرش واره ووايي په دې كي درې احتماله دي: اول خو ا چي دا درې سره كلمات په مجموعي طور سره درو ديرش واره وويل سي همداسي سبحان الله يو ولس واره الله

اکبر یوولس واره او الحمدلله یوولس واره ، دوهم دا چي دا دري سره بيل بيل درو ديرش درو ديرش واره وويل سي، د مشائخو عمل پر دې دی او دا افضل هم دی او دا چي ددې صراحت هم په ځينو روايتونو کي موجود دی، دريم دا چي دا درې سره کلمات په يوځای کولو سره درو ديرش واره وويل سي همداسي په هغه کي هر يو به هم درو ديرش واره وويل سي .

## شکر کوونکی شتمن تر صبر کوونکي غريب غوره دی

د حديث اخري الفاظ: ذالک فضل الله.....الخ، مطلب دا دی چي الله تعالی شتمنو خلکو ته پر تاسو فضيلت درکړی دی نو دا صرف د هغه فضل او کرم دی هغه چي چا ته غواړي په خپل فضل او کرم سره په نازولو سره د هغوی په قدمونو کي د مال او دولت امبار لګوي نو تاسو ته پکار ده چي په دې معامله کي د صبر لمن ونيسئ او پر تقدير الهي باندي راضي سئ چي هغه ځينو بندګانو ته پر ځينو باندي فضيلت او بزرګي ورکړې ده .

په دې کي دې ته اشاره ده چي شکر کونکی شتمن تر صبر کونکي غريب ډير غوره دی مګر ورسره دومره خبره هم ده چي شتمن د خپل مال او دولت په معامله کي د مختلف ډول ګناهونو د بيري په وجه خالي نه وي هر کله چي فقير او غريب د ګناهو د بيري چي د دولت په وجه صادريږي په امن کي وي .

امام غزالي رحمة الله عليه په احياء العلوم کي فرمايي چي په دې مسئله کي اختلاف دی لکه څرنګه چي حضرت جنيد رحمة الله عليه او اکثر اهل الله د فقر د فضيلت قائل دي او د ابن عطاء قول دا دی چي شاکر او شتمن چي د دولت حق اداء کوي د صابر غريب څخه افضل دی .

﴿۹۰۴﴾: وَعَنْ كَعْبِ ابْنِ عُجْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعَقِّبَاتٌ

د حضرت کعب بن عجرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د لمانځه وروسته د ويلو څو الفاظ دي

لَا يَخِيبُ قَائِلُهُنَّ أَوْ فَاعِلُهُنَّ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ

چي د هر فرض لمانځه وروسته ويونکی د ثواب څخه نه نااميده کيږي يعني (۳۳) ځله

تَسْبِيحَةً وَثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَحْمِيدَةً وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ تَكْبِيرَةً . رواه مسلم

سبحان الله (۳۳) ځله الحمد لله او (۳۴) ځله الله اکبر ويل. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۱\۴۱۸، رقم: ۱۴۴-۵۹۶.

**﴿۹۰۵﴾**: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَبَّحَ

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي سبحان الله ووایي

اللهَ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ حَمِدَ اللهَ ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ كَبَّرَ اللهَ ثَلٰثًا وَّ

د هر لمانځه وروسته (۳۳) ځله او الحمدلله (۳۳) ځله او الله اکبر (۳۳) ځله وایي

ثَلاَثِيْنَ فَتِلْكَ تِسْعَةٌ وَ تِسْعُوْنَ وَ قَالَ تَمَامُ الْمِائَةِ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ

یعني ټول یو کم سل او د سلو تعداد پوره کولو څخه وروسته دا کلمات ووایي: لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ

لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ غُفِرَتْ خَطَايَاهُ

لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. نو د هغه ګناهونه بخښل کیږي

وَلَوْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ. رواه مسلم

که څه هم د دریاب د ځګ برابر وي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۱\۴۱۸، رقم: ۱۴۶-۵۹۷.

**تشریح**: په ځینو روایتونو کي د له الحمد څخه وروسته یحیي و یمیت او په ځینیو روایتونو کي بیده الخیر الفاظ هم نقل سوي دي، پورتني الفاظ چي د لمانځه وروسته وویل سي د هغه مختلف شمیر منقول دي رسول الله ﷺ به خپله هم دا په بیل عددو سره ویل ځکه دا کلمات په حدیثو کي د پورتني شمیر څخه په کم شمیر سره هم چي وویل سي نو اصل سنت ادا کیږي، حافظ زین عراقي فرمایي چي پورتني ټول شمیرونه غوره دي او کوم عددونه چي تر ټولو زیات دي هغه د الله تعالی په نزد تر ټولو خوښ دي. ددې تسبیحاتو په اړه د رسول الله ﷺ په باره کي ثابت دي چي رسول الله ﷺ به دا پر خپل ګوتو ویل او دا هم نقل دي چي رسول الله ﷺ به صحابه رضي الله عنهم ته فرمایل چي دا پر ګوتو شمیرئ ځکه چي د قیامت په ورځ به د ګوتو څخه پوښتنه کیږي او د جواب لپاره به ګوتي شاهدي ورکوي د صحابه کرامو په باره کي نقل سوي دي چي هغو به د خرما پر مندکو ویل په هر حال دا تسبیحات پر ګوتو ویل افضل دي او د

خرما وغيره پر منډ کو ويل هم جائز دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د دعاء قبليدو وخت

﴿۹۰۶﴾: عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ ؟ قَالَ جَوْفَ اللَّيْلِ الْاٰخِرِ وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوْبَاتِ . رواه الترمذي .

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله ! دعاء کوم وخت زياته قبليږي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د شپې د نيمي آخري درميانه برخه او د فرض لمنځو وروسته . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۹۲، رقم: ۳۴۹۹.

### د لمانځه وروسته معوذات ويل

﴿۹۰۷﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ أَمَرَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْرَأَ بِالْمُعَوِّذَاتِ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي والبيهقي في الدعوات الكبير .

د حضرت عقبة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ما ته حکم راکړی دی چي زه د هر لمانځه وروسته معوذات ووايم (هغه سورتونه چي په پيل کي يې اعوذ وي، او هغه د قرآن کريم آخري دوه سورتونه دي) احمد، ابوداؤد، نسائي او بيهقي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۱۵۵ و ابوداؤد ۲\۱۸۱، رقم: ۱۵۲۳ والنسائي ۳\۶۸، رقم: ۱۳۳۶.

**تشريح** : د قرآن معوذات هغه سورتونو ته وايي چي د هغه په پيل کي اعوذ لفظ وي يعني قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس دلته د دغه دواړو سورتونو لپاره د معوذاتو د جمع صيغه ځکه استعمال سوې ده چي اقل جمع دوه ده او ځيني علماء وايي چي قل هو الله او قل يا ايها الكافرون هم معوذات کي غالبا داخل دي يعني قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ته په امتياز ورکولو سره ټول معوذات سره تعبير کړل شوي دی ګويا دده قول مطابق رسول الله صلي الله عليه وسلم د څلورو سورتونو يعني قل اعوذ برب الفلق، قل اعوذ برب الناس، قل هو الله احد او قل يا ايها الكافرون د ويلو حکم ورکړی دی .

## تر لمر ختلو او لمر لوېدو پورې په ذكر كې بوخت كېدل

﴿۹۰۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْ أَقْعُدَ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغه خلكو سره زما ناسته

مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ

چې د سهار د لمانځه وروسته تر لمر راختلو پورې د الله جل جلاله ذكر كوي زما په نزد غوره ده تر دې

أُعْتِقَ أَرْبَعَةً مِّنْ وُّلْدِ إِسْمَاعِيْلَ وَلَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَّذْكُرُوْنَ اللّٰهَ مِنْ صَلَاةِ

چې د حضرت اسماعيل علیہ السلام د اولاد څخه څلورو غلامان آزاد سي او دا چې زه كښېنيم د هغه قوم سره چې د الله جل جلاله ذكر كوي وروسته تر لمانځه

الْعَصْرِ إِلٰى أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً . رواه أبو داود

د مازديگر تر لمر لوېدو پورې زما په نزد د دې څخه غوره ده چې زه څلور غلامان آزاد كړم. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۴\۷۳-۷۴، رقم: ۳۶۶۷.

**تشريح**: په ښكاره دا معلومېږي چې د حديث آخري الفاظو كي هم د څلورو غلامانو څخه مراد د حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه څلور غلامان دي او دا هم احتمال دی چې دلته څلور غلامان مطلقا مراد وي، حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد خاصوالى رسول الله ﷺ ځكه وكړ چې هغوى افضل عرب دي او خپله رسول الله ﷺ هم د هغوى په اولاد كي دی.

﴿۹۰۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى الْفَجْرَ فِيْ جَمَاعَةٍ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چې د سهار لمونځ په جماعت سره وكړ

ثُمَّ قَعَدَ يَذْكُرُ اللّٰهَ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ كَانَتْ لَهُ كَأَجْرِ حَجَّةٍ

او تر لمر ختلو پورې د الله جل جلاله په ذكر كولو كي ناست وو او د لمر ختلو وروسته يې دوه ركعته نفل وكړل نو هغه ته د يوه حج

وَّعُمْرَةٍ . قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَامَّةٍ تَامَّةٍ تَامَّةٍ . رواه الترمذي

او يوې عمرې ثواب رسيږي ، د راوي بيان دی چي د ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : د پوره حج او عمرې ثواب د پوره حج او عمرې ثواب د پوره حج او عمرې ثواب . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۴۸۱، رقم: ۵۸٦.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم سړی د سهار لمونځ په جماعت سره وکړي او هغه په مسجد كي او پر هغه مصلی باندي تر لمر ختلو پوري د الله تعالى په ذكر كي پرله پسې بوخت وي د هغه وروسته دوه ركعته نفل لمونځ وكړي نو د حج او عمرې ثواب ورته حاصليږي كه د ذكر په حالت كي د طواف لپاره يا د علم د طلب لپاره په مسجد كي د وعظ مجلس ته د ورتلو لپاره د مصلی څخه ولاړسي يا همداسي سړی د هغه ځای څخه په ولاړيدو سره خپل کورته راسي او د الله تعالى په ذكر كي بوخت سي نو هغه ته هم ذكر سوی ثواب تر لاسه كيږي .

د ذكر څخه د فارغيدو وروسته دوه ركعته لمونځ د لمر يوه نيزه پورته كيدو وروسته كول پكار دی چي د كراهيت وخت ختم سي او دغه لمانځه ته د اشراق لمونځ وايي او اكثر په حديثو كي ددې نوم صلوة الضحىٰ هم نقل دی، په ښكاره دا معلوميږي چي دا دواړه لمنځونه يو دي چي د هغه جلا جلا دوه نومونه دي ددې ابتدايي وخت د لمر پورته كيدو وروسته پيل كيږي او انتهايي وخت يې د لمر لوېدو مخكي دی په ابتدايي وخت كي كيدونكي لمانځه ته اشراق وايي او په انتهايي وخت كي كيدونكي لمانځه ته د څاښت لمونځ وايي، فرمايل سوي دي چي داسي سړي ته د حج او عمرې دواړو ثواب حاصليږي د حج ثواب خو د فرض لمانځه په جماعت سره اداء كولو په وجه تر لاسه كيږي او د عمرې ثواب د نفل لمانځه يعني د اشراق لمونځ كولو په وجه ورته تر لاسه كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د دوو لمنځو په مينځ كي وقفه كول پكار ده

﴿۹۱۰﴾: عَنِ الْأَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ صَلَّى بِنَا إِمَامٌ لَّنَا يُكَنّٰى أَبَا رِمْثَةَ قَالَ

د حضرت ازرق بن قيس رضي الله عنه څخه روايت دی چي زموږ امام چي نوم يې ابو رمثه وو موږ ته لمونځ راكړ او وه يې ويل

صَلَّيْتُ هٰذِهِ الصَّلاَةَ أَوْ مِثْلَ هٰذِهِ الصَّلاَةَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دا لمونځ یا ددې لمانځه په ډول ما د رسول الله ﷺ سره کړې وو

قَالَ وَكَانَ أَبُوْبَكْرٍ وَّعُمَرَ يَقُوْمَانِ فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ عَنْ يَمِيْنِهِ وَكَانَ رَجُلٌ

او ابو رمثه دا بیان هم وکړ چي ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه په اول صف کي د رسول الله ﷺ راسته لوري ته ولاړ وه او یو سړی وو

قَدْ شَهِدَ التَّكْبِيْرَةَ الْأُوْلٰى مِنَ الصَّلاَةِ فَصَلّٰى نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ

چي د لمانځه په لومړی تکبیر کي په لمانځه کي حاضر سو ، د لمانځه وروسته رسول الله ﷺ

سَلَّمَ عَنْ يَّمِيْنِهِ وَعَنْ يَّسَارِهِ حَتّٰى رَأَيْنَا بَيَاضَ خَدَّيْهِ ثُمَّ انْفَتَلَ كَانْفِتَالِ أَبِيْ

راسته او چپه طرف ته سلام وګرزوی تر دې چي موږ د رسول الله ﷺ د بلغو سپین والی ولیدی ، بیا رسول الله ﷺ یوې خوا ته راوګرزیدی د ابورمثه په ډول وګرزیدی ،

رِمْثَةَ يَعْنِيْ نَفْسَهُ فَقَامَ الرَّجُلُ الَّذِيْ أَدْرَكَ مَعَهُ التَّكْبِيْرَةَ الْأُوْلٰى مِنَ

هغه سړي چي په اول تکبیر کي شامل سوی وو ودریدی او دوه رکعته لمونځ یې پیل کړ ،

الصَّلاَةِ يَشْفَعُ فَوَثَبَ عُمَرُ فَأَخَذَ بِمَنْكِبَيْهِ فَهَزَّهُ ثُمَّ قَالَ اجْلِسْ فَإِنَّهُ

حضرت عمر رضی الله عنه ودریدی او د هغه سړي دواړو اوږو ته یې حرکت ورکړ بیا یې ورته وویل کښېنه ، ځکه چي

لَمْ يَهْلِكْ أَهْلُ الْكِتَابِ إِلاَّ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ بَيْنَ صَلَوَاتِهِمْ فَصْلٌ . فَرَفَعَ النَّبِيُّ

اهل کتاب له دې کبله هلاک سول چي هغوی به د دوو لمنځو په منځ کي څه فرق نه کوی ، د دې په اورید و سره رسول الله ﷺ راپورته کړې

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَصَرَهُ فَقَالَ أَصَابَ اللّٰهُ بِكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ . رواه أبو داود

سترګي او وه یې فرمایل : د خطاب زویه ! الله جل جلاله ته راه حق ته ورسولې . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\۱ ۶۱۱ - ۶۱۲ ، رقم: ۱۰۰۷.

**تشریح** : د حدیث په پیل کي ابورمثه رضي الله عنه د خپل قول (دا لمونځ) څخه دې ته اشاره کړې وه کوم چي هغه د رسول الله ﷺ سره کړی وو او هغه د ماپښين یا مازدیګر لمونځ وو .
په لفظ (مثل هذه الصلوة) کي د حرف او راوي ته شک څرګندوي یعني ددې روایت راوي ته شک دی چي ابورمثه رضي الله عنه هذه الصلوة فرمایلي دي او که مثل هذه الصلوة .
فرمایل سوي دي چي یو سړی (په وروسته راتلو سره ) په تکبیر اولی کي شریک سو ، دلته د تکبیر اولی قید ددې لپاره لګول سوی دی چي دا څرګنده سي چي هغه سړی مسبوق نه وو چي د خپل پاته لمانځه لپاره پوره کولو لپاره د سلام څخه وروسته ولاړ سوی وای بلکه هغه د جماعت سره په لومړي رکعت کي ګډون کړی وو او هغه د سلام څخه وروسته د سنت مؤکده کولو لپاره ولاړ سوی وو ،
د فرق څخه مراد یا خو په سلام ګرځولو سره فرق کول دي یا د ځای په بدلولو سره فرق کول مراد دي، لکه څرنګه چي د ابوهریره رضي الله عنه په یو روایت کي منقول دي چي په تاسو کي یو سړی لمونځ کوي هغه ته څه ګرانه ده چي هغه مخکي ولاړ سي یا وروسته راسي یا راسته خوا ته په آخوا کېدو سره ودرېږي (یعني د یوه لمونځ کولو سره د دوهم لمونځ کولو لپاره مخکني ځای څخه آخوا کېدل پکار دي) او یا په خبرو کولو او د مسجد څخه په وتلو سره فرق کول مراد دي لکه څرنګه چي د مسلم په یوه روایت کي د حضرت سائب رضي الله عنه څخه نقل دي چي هغه وویل موږ ته رسول الله ﷺ حکم راکړی وو چي موږ د دوو لمنځو په مینځ کي وصل نه کوو تر څو پوري چي خبري ونه کړو یا د باندي ونه وځو (او په دې توګه د دواړو لمنځونو په مینځ کي وقفه وکړو) .
دا حدیث د کتاب د مصنف په دې باب یعني باب الذکر بعد الصلوة کي ذکر کولو سره دې ته اشاره کړې ده چي د فرق څخه مراد د فرض لمانځه څخه وروسته ذکر پرېښودل دي یعني د فرض لمانځه څخه وروسته پکار ده چي ذکر وکړل سي چي د دې د دعاګانو په صورت کي حدیثونه مذکور دي ، ددې څخه وروسته په ولاړېدو سره دي سنت وکړي .
دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د فرض لمانځه سره د نفل لمانځه یو ځای کول نه دي پکار یعني د دواړو لمنځونو په مینځ کي دومره توقف پکار دی چي په دواړو کي یوه اشتباه نه وي .

## د لمانځه وروسته تسبيحات

﴿۹۱۱﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ أُمِرْنَا أَنْ نُّسَبِّحَ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا

د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ ته حکم راکړل سوی دی چي موږ د هر لمانځه وروسته (۳۳) ځله سبحان الله

وَّثَلَاثِيْنَ وَنَحْمَدَ ثَلَاثًا وَّثَلَاثِيْنَ وَنُكَبِّرَ أَرْبَعًا وَّثَلَاثِيْنَ فَأُتِيَ رَجُلٌ فِي الْمَنَامِ

(۳۳) ځله الحمد لله او (۳۴) ځله الله اكبر ووايو، يوه انصاري په خوب كي يوه ملائكه وليدل

مِنَ الْأَنْصَارِ فَقِيْلَ لَهُ أَمَرَكُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُسَبِّحُوْا

هغې ووېل: رسول الله ﷺ تاسو ته دا حکم درکړی دی چي تاسو تسبيح واياست

فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ كَذَا وَكَذَا قَالَ الْأَنْصَارِيُّ فِيْ مَنَامِهِ نَعَمْ قَالَ فَاجْعَلُوْهَا

د هر لمانځه وروسته دومره دومره ، انصاري ملائكي ته په خوب كي وويل هو، ملائكي ورته وويل تاسو د دې درو کلمو شمېر وټاكئ

خَمْسًا وَّعِشْرِيْنَ خَمْسًا وَّعِشْرِيْنَ وَاجْعَلُوْا فِيْهَا التَّهْلِيْلَ فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا

پنځه ويشت پنځه ويشت او په دې كي لا اله الا الله پنځه ويشت ځله شامل كړئ، كله چي سهار سو

عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَافْعَلُوْا . رواه أحمد والنسائي والدارمي

نو هغه انصاري د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او خوب يې ورته ووايه، رسول الله ﷺ وفرمايل: په دې عمل کوئ. احمد، نسائي او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۸۴، والنسائي ۳\ ۷۶، رقم: ۱۳۴۹، والدارمي ۱\ ۳۶۰، رقم: ۱۳۵۴.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د دې ارشاد څخه (په دې عمل کوئ) مراد به غالبا دا وي چي څرنګه تاسو ته د تسبيح ويلو حکم سوی دی دغسي يې هم واياست او څرنګه چي ملائكو په خوب كي در ته ښودلي دي هم هغسي يې هم واياست او دا هم د ذکر يوه طريقه ده ځکه رسول الله ﷺ د هغه استحکام وکړ، که رسول الله ﷺ يې تصديق نه وای کړی نو صرف خوب به په دې اړه څه حجت نه وای.

## د آیة الکرسي فضیلت

﴿۹۱۲﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى أَعْوَادِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د لرګي

هٰذَا الْمِنْبَرِ يَقُوْلُ مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُوْلِ

پر دغه منبر اوریدلي دي چي څوک د هر لمانځه وروسته آیة الکرسي ووایي نو هغه د مرګ څخه پرته هیڅ شی

الْجَنَّةِ إِلاَّ الْمَوْتَ وَمَنْ قَرَأَهَا حِيْنَ يَأْخُذُ مَضْجَعَهُ آمَنَهُ اللّٰهُ عَلٰى دَارِهِ وَدَارَ

جنت ته د تلو څخه نه سي منعه کولای ، څوک چي د بیده کیدو پر وخت آیة الکرسي ووایي نو الله تعالی د هغه

جَارِهِ وَأَهْلِ دُوَيْرَاتٍ حَوْلَهُ . رواه البیهقي في شعب الإیمان وقال إسناده ضعیف

او د هغه د همسایه او څو مره کورونه چي د هغه د کور شاوخوا وي ټول په امن کي لري . بیهقي

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۴۵۸\۲، رقم: ۲۳۹۵.

**تشریح** : د حدیث د لومړنیو جملو څخه یو اشکال واقع کیږي هغه دا چي مرګ په جنت کي د داخلیدو مانع دی بلکه مرګ خو جنت ته د تلو ذریعه ده نو پکار خو دا وه چي پر ځای ددې چي دا فرمایل سوي دي : لم یمنعه من دخول الجنة الا الموت یعني هغه جنت ته د تلو څخه ماسوا د مرګ څخه بل شی منعه کولای نسي دا فرمایل سوي وای چي لم یمنعه من دخول الجنة الا الحیوة یعني هغه جنت ته د تلو څخه د ژوند ماسوا بل شی نسي منعه کولاي ځکه چي انسان دي په دې دنیا کي د ژوند په جا ل کي مبنتی دی هر کله چي ژوند ختم سي او مرګ راسي نو په جنت کي داخلیدل به هغه وخت ممکن سي نو په جنت کي د داخلیدو مانع مرګ نه دی بلکه ژوند دی . ددې مختصر جواب علامه طیبي رحمة الله علیه دا ورکړی دی چي د بنده او جنت په مینځ کي د مرګ یوه پرده ده چي یو خوا ته خو ژوند دی هر کله چي دا پرده لیري سي یعني بنده ته مرګ راسي نو هغه سمدستي په جنت کي دا خلیږي .

ځیني حضرات فرمایي چي دلته د مرګ څخه مراد د بنده د قیامت په ورځ د قبر څخه د

راپورته سي سمدستي راپورته کيدو مخکي په قبر کي داخليدل دي هر کله چي بنده د قبر څخه راپورته سي سمدستي په جنت کي داخل سي .دا حديث که څه هم ضعيف دی مګر څرنګه چي مخکي هم ښودل سوي دي چي د فضائل اعمال په اړه په ضعيف حديث باندي هم عمل کول جائز دی د حديث اول جزء نسائي ابن حبان او طبراني هم نقل کړی دی په يوه روايت کي آيت الکرسي سره قل هوالله ويل هم مذکوره دي.

## د سهار او ماښام د لمانځه وروسته د ذکر فضيلت

﴿۹۱۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ غَنْمٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

حضرت عبد الرحمن بن غنم رضی الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ قَالَ قَبْلَ أَنْ يَنْصَرِفَ وَيَثْنِيَ رِجْلَيْهِ مِنْ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ وَالصُّبْحِ لاَ إِلٰهَ

څوک چي د لمانځه د ځای څخه د پورته کيدو مخکي د ماښام او د سهار تر لمانځه دا کلمات: لاَ إِلٰهَ

إِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ

إِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ

وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ عَشْرَ مَرَّاتٍ كُتِبَ لَهُ بِكُلِّ وَاحِدٍ عَشْرُ حَسَنَاتٍ

وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ، لس واره ووايي نو د هغه لپاره د هر ځل په بدله کي لس نيکی ليکل کيږي

وَمُحِيَتْ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَّرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِّنْ كُلِّ

او لس بدی ليري کيږي او لس درجي يې لوړيږي او دا کلمات د هغه لپاره د هر بد شی څخه

مَكْرُوْهٍ وَحِرْزًا مِّنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ وَلَمْ يُحِلَّ لِذَنْبٍ اَنْ يُّدْرِكَهُ إِلاَّ الشِّرْكُ

او د رټل سوی شيطان څخه آمن جوړيږي او پرته د شرک څخه هيڅ يو ګناه هغه د هلاکت په لور نه سي بيولای،

وَكَانَ مِنْ أَفْضَلِ النَّاسِ عَمَلاً إِلاَّ رَجُلاً يَفْضُلُهُ يَقُوْلُ أَفْضَلَ مِمَّا قَالَ . رواه

أحمد. وروى الترمذي نحوه عن أبي ذر إلى قوله إلا الشرك ولم يذكر صلاة المغرب ولا بيده الخير وقال هذا حديث حسن صحيح غريب.

او هغه کس د عمل په اعتبار غوره انسان دی پرته د هغه چا څخه چي دده څخه زيات عمل کوي هغه به تر ده افضل وي. احمد او ترمذي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۲۷ و سنن الترمذي ۵\۴۸۱، رقم: ۳۴۷۴.

## د سهار د لمانځه وروسته د ذکر فضيلت

﴿۹۱۴﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا قِبَلَ

د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ډله ولېږل په لور

نَجْدٍ فَغَنِمُوْا غَنَائِمَ كَثِيْرَةً وَأَسْرَعُوْا الرَّجْعَةَ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَّا لَمْ يَخْرُجْ مَا

د نجد ، دا ډله ډير غنيمت سره ژر راستنه سول ، په موږ کي يو سړی وويل چي ددغه ډلي سره نه وو تللی

رَأَيْنَا بَعْثًا أَسْرَعَ رَجْعَةً وَلاَ أَفْضَلَ غَنِيْمَةً مِنْ هٰذَا الْبَعْثِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

موږ هيڅ داسي ډله نه ده ليدلې چي دومره ژر راسي او دومره د غنيمت مال يې راوړی وي. (د دې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلاَ أَدُلُّكُمْ عَلٰى قَوْمٍ أَفْضَلَ غَنِيْمَةً وَأَفْضَلَ رَجْعَةً ؟ قَوْمًا

ايا زه تا ته هغه قوم ونه ښيم چي د غنيمت په مال کي زيات او په ستنېدو کي غوره وي ، دا هغه خلک دي چي

شَهِدُوْا صَلاَةَ الصُّبْحِ ثُمَّ جَلَسُوْا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ حَتّٰى طَلَعَتِ الشَّمْسُ عَلَيْهِمْ

د سهار په لمانځه کي حاضريږي او تر لمر ختلو پوري ناست وي د الله ﷻ ذکر کوي

فَأُوْلٰئِكَ أَسْرَعُ رَجْعَةً وَّأَفْضَلُ غَنِيْمَةً. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

لا نعرفه إلا من هذا الوجه وحماد بن أبي حُميد هو الضعيف في الحديث

دا هغه خلک دي چي په ستنېدو کي افضل دي او په غنيمت کي زيات دي .ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۲۲، رقم: ۳۵۶۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي د هغه لښکر خلکو ته يوازي د دنيا دولت حاصل سو کوم چي فاني دی او ددې جماعت خلکو ته لږ شان وخت کي ډېر زيات ثواب حاصل سو چي باقي پاتيدونکی دی لکه چي د الله رب العزت ارشاد دی:

مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ اللَّهِ بَاقٍ

ژباړه: څه چي ستاسو سره دي هغه فاني دي او څه چي د الله تعالی سره دي هغه باقي دي.

نو ددې ډلي خلک نه يوازي دا چي د مال غنيمت په اعتبار د هغه لښکر د خلکو څخه افضل ثابت سول بلکه په ژر راستنېدو کي هم د هغوی څخه زيات سول.

========

# بَابُ مَا لاَ يَجُوْزُ مِنَ الْعَمَلِ فِي الصَّلٰوةِ وَ مَايُبَاحُ مِنْهُ

## په لمانځه کي د رواه او نا رواه شيانو بيان

په دې باب کي د هغه شيانو ذکر کيږي چي په لمانځه کي اختيارول يې جائز دي او د داسي شيانو ذکر هم کيږي چي په لمانځه کي اختيارول يې حرام، مکروه يا مباح دی او د هغه سره په لمانځه کي په يو حيثيت سره اثر هم لويږي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په لمانځه د ترچي کوونکي په جواب کي يرحمک الله ويل لمونځ فاسدوي

﴿۹۱۵﴾: عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ قَالَ بَيْنَا أَنَا أُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت معاوية بن حکم رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ سره لمونځ کوی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَقُلْتُ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ فَرَمَانِي الْقَوْمُ

ناڅاپه يو سړي و نوږل ما (يرحمک الله) وويل، (د دې په اوريدو سره) خلکو زما په لور

بِأَبْصَارِهِمْ فَقُلْتُ وَا ثُكْلَ أُمِّيَاهُ مَا شَأْنُكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ فَجَعَلُوا يَضْرِبُونَ

سترکي کړې ما په خپل زړه کي وويل مور دي در باندي بوره سي تاسو ولي ما ته گورئ، خلکو وهل پیل کړل

بِأَيْدِيهِمْ عَلَى أَفْخَاذِهِمْ فَلَمَّا رَأَيْتُهُمْ يُصَمِّتُونَنِي لَكِنِّي سَكَتُّ فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ

د خپلو لاسونو پر خپلو ورنو (چي زه پټه خوله سم) هر کله چي ما وليدل چي هغوی زما پټه خوله كول غواړي (نو په غصه سوم) مگر پټه خوله سوم، کله چي رسول الله ﷺ لمونځ وکړ

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبِأَبِي هُوَ وَأُمِّي مَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ

زما مور او پلار دي تر قربان وي دده مبارک شخه وړاندي او وروسته ما هيڅوک دومره مهربانه استاذ نه دی ليدلی

أَحْسَنَ تَعْلِيمًا مِنْهُ فَوَاللَّهِ مَا كَهَرَنِي وَلَا ضَرَبَنِي وَلَا شَتَمَنِي قَالَ إِنَّ هَذِهِ

قسم په الله! رسول الله ﷺ زه نه وترټلم نه يې ووهلم او نه يې راته څه بد ورد وويل بلكه دا يې وفرمايل: دا

الصَّلَاةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ إِنَّمَا هُوَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ

لمونځ دی په دې کي هيڅ داسي يو خبره نه ده پکار کوم چي د خلکو سره کيږي لمونځ خو د تسبيح، تكبير

وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ أَوْ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ يَا رَسُولَ

او قرآن كريم ويلو نوم دی، يا دا ډول نور څه يې وفرمايل، ما عرض وکړ اې د الله رسوله!

اللَّهِ إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ وَقَدْ جَاءَ اللَّهُ بِالْإِسْلَامِ وَإِنَّ مِنَّا رِجَالًا يَأْتُونَ

زما د جاهلیت زمانه نژدې ده (يعني نوی مسلمان سوی یم) او بېله شكه الله جل جلاله مونږ ته دين اسلام راکړی دی او په مونږ کي ځيني داسي خلک دي چي ځي

الْكُهَّانَ قَالَ فَلَا تَأْتِهِمْ قَالَ وَمِنَّا رِجَالٌ يَتَطَيَّرُونَ قَالَ ذَاكَ شَيْءٌ يَجِدُونَهُ

کوډ کړانو ته ، رسول الله ﷺ وفرمايل ته هغوی ته مه ورځه، ما عرض وکړ او په موږ کي ځيني خلک بدفالي کوي، رسول الله ﷺ وفرمايل دا هم يو شی دی چي هغوی يې تر لاسه کوي

فِي صُدُورِهِمْ فَلَا يَصُدَّنَّهُمْ قَالَ قُلْتُ وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ قَالَ كَانَ نَبِيٌّ مِنْ

په خپلو زړونو کي يعني وهم دی هغوی د څه کار څخه نه منعه کوي ، ما بيا عرض وکړ او په موږ کي ځيني خلک خط کاږي ، رسول الله ﷺ وفرمايل يو نبي وو

الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ . رواه مسلم . قوله لكني سكت هكذا وجدت في صحيح مسلم وكتاب الحميدي وصحح في جامع الاصول بلفظه كذا فوق لكني .

په نبيانو کي چي خط به يې کښی (د لته د خط څخه مراد د علم رمل کرښي دي) د چا خط چي د هغه پيغمبر سره سم سي نو هغه هغه شی تر لاسه کوي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱/۳۸۱-۳۸۲، رقم: ۳۳-۵۳۷.

**د لغاتو حل** : (كَهَرَنِي): اى زجرني (زه يې وترټلم). (يَخُطونَ): قال الشيخ علي القاري ناقلا عن ابن عباس: ان الخط هو ان يُجعل خطوط في الارض بالعجلة كيلا يلحقها العدد، ثم يمحو منها خطين خطين على مهل، فان بقي خطان فهو علامة النجاح وان بقي واحد فهو علامة الخيبة وهو نوع من التنجيم. مرقات بتصرف.

**تشريح** : وَاثكل اُمياهُ: يعني ستا مور دي تا ورک کړي ددې الفاظو تشريح مخکي هم په خپل ځای کي تيره سوې ده، هلته ښودل سوي دي چي د اهل عرب په نزد به دا الفاظ پر داسي وخت استعماليدل هر کله چي د مخاطب شي خبر يا څه فعل به د تعجب قابل وو .

په ښکار دا معلوميږي چي په لمانځه کي به څوړونکی الحمد لله ويلې وي او د هغه په جواب کي معاويه ﷺ يرحمک الله وويل د حديث څخه معلومه سوه چي په لمانځه کي د ترڅي په جواب کي يرحمک الله ويل حرام دی په دې سره لمونځ فاسد کيږي اوس اشکال دا پيدا کيږي چي معاويه ﷺ يو لمونځ ماتونکی کار وکړ نو رسول الله ﷺ هغه ته د لمانځه کولو په دوهم وار حکم ولي نه ورکړ، ددې جواب دا دی چي هغه نوی مسلمان سوی وو د اسلام قبلولو بې ډيري زياتي ورځي نه وې تيري سوي ځکه هغه ته معلومه نه وه چي په لمانځه کي خبري کول

منسوخ سوي دي او په خبرو کولو سره لمونځ باطل کيږي ځکه رسول الله ﷺ د هغه د ناخبرتيا په وجه هغه ته دوهم وار د لمانځه کولو حکم ورنه کړ، امام نووي رحمة الله عليه فرمايي که يو سړي په لمانځه کي يرحمک الله ووايي نو د هغه لمونځ باطل کيږي ځکه چي په دې کي بل سړي ته خطاب کول راځي او که يو سړى يرحمه الله ووايي نو لمونځ دده نه باطل کيږي . د ابن همام رحمة الله عليه قول دى که يو سړي د خپل نفس لپاره يرحمک الله ووايي نو د هغه لمونځ نه فاسد کيږي لکه څرنګه چي په يرحمني الله ويلو سره لمونځ نه فاسد کيږي .

ارشاد نبوي (ان هذه الصلوة لا يصلح فيها شيء من کلام الناس ) په لمانځه کي د انسان خبره کول مناسبه نه ده په دې کي کلام الناس ځکه فرمايل سوى دى چي د دې حکم څخه هغه تسبيحات او اذکار وځي کوم چي په لمانځه کي ويل کيږي اګر که هغه د انسان خبري دي مګر د هغه څخه د انسان خطاب کولو يا د هغوى د پوهيدلو اراده نه وي نو دلته د کلام الناس څخه مراد هغه خبري دي چي په هغه کي خلکو ته خطاب سوى وي يا خپله د مخاطب اراده وي .

فقهاء ليکي که يو سړى د يوه لمونځ کونکي څخه د لمانځه په حالت کي پوښتنه وکړي چي ستا سره څه او کوم ډول مال دى او هغه په جواب کي دا آيت ووايي (الخيل والبغال والحمير ) آسونه غاتري او خرونه يا د لمونځ کونکي مخته يو کتاب پروت وي او د يو سړي مخته د يحيى په نامه يو څوک ولاړ وي او هغه سړى د خطاب کولو په نيت دا ايت ووايي يٰيحى خذ الکتاب: اې يحيى دا کتاب واخله نو په دې صورتونو کي لمونځ کونکي که څه هم د قرآن اياتونه يې ويلي دي مګر دا اياتونه د دوهم سړي د خطاب کولو په نيت دي ځکه لمونځ يې فاسد کيږي هو که د خطاب اراده نه وي بلکه د قرائت په ارادې سره يې ووايي نو لمونځ يې نه فاسد يږي .

## کاهن چاته ويل کيږي ؟

په عربو کي کاهن هغه خلکو ته وايي چي د پيريانو، شيطانانو او د ارواح خبيثه سره تعلق لري او شيطانانو به د رواغ او رشتيا خبرونه هغوى ته ويل همداسي هغو خلکو ته د علم غيب په دعوه کولو سره د شيطانانو او جنات رسول سوي خبرونه د غيب ويلو سره خلکو ته رسول داسي خلکو ته ورتلو څخه رسول الله صلي الله عليه وسلم منعه فرمايلې ده، په يوه بل روايت کي ذکر سوي دي چي رسول الله صلي الله عليه سلم وفرمايل کوم سړى چي يو عراف يا کاهن ته ورځي او د هغه وربنودل سوي خبري رشتيا ګڼي نو هغه بيشکه پر محمد ﷺ نازل سوو شيانو څخه انکار وکړ، دا روايت امام احمد رحمة الله عليه د حضرت ابو هريره ﷺ څخه په صحيح سند سره نقل کړى دى .

**عراف چاته وايي** ؟ د کاهن تعريف خو معلوم سو اوس په دې پوه سئ چي عراف چاته ويل کيږي، عراف هغه سړي ته ويل کيږي چي د يو عمل، جادو او منتر په ذريعه د يوه يوه شي حقيقت بيانوي د غلا د شيانو معلومات ورکوي او د ورک سوي کور حال او ځای ورته ښيي دوی ته د ورتلو څخه هم رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده.

**د رمل عمل** : څرنگه چي د جنات او شياطين يا علم نجوم په ذريعه د غيب د خبرو معلومولو ځيني خلک هڅه کوي همداسي د رمل په ذريعه هم څه خلک پټو خبرو ته د رسيدو هڅه کوي نو رمل د هغه علم نوم دی چي په هغه کي د خطونو په کښلو سره او د هغه په ذريعه په حساب معلومولو سره په پټو خبرو د پوهيدو هڅه کوي د حديث د الفاظو څخه خو په ښکاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د رمل په باره کي يوه داسي کليه بيان کړې ده چي د هغه څخه تر يو حده پوري د علم جواز راوځي حالانکه داسي نه ده مخکي خو په دې پوه سئ چي هغه نبي چي په علم رمل پوهيدی او خطونه يې کښل هغه حضرت ادريس عليه السلام يا حضرت دانيال عليه السلام وو ددې وروسته حديث خوا ته راسئ د رسول الله ﷺ د اشاد څخه د علم جواز نه معلـ ميږي ځکه چي بقول خطابي رحمة الله عليه دلته رسول الله ﷺ تعليق بالمحال کړی دی يعني رسول الله ﷺ فمن وافق خطه د زجر په وجه فرمايلې ده د هغه مطلب دادی چي د بل چا خط راکښل د هغه نبي د خط کښلو موافق نسي کيدای ځکه چي هغه خو د هغه نبي معجزه ده او معجزه يوازي د نبي تر ذاته پوري محدوده وي بيا دا که يو خط راکاږي او وايي چي دا د هغه نبي د خط راکښلو مطابق دی نو دا غلطه خبره ده ځکه چي د خط موافقت په صحيح توگه د تواتر يا نص څخه ثابتيدای سي چي د رسول الله ﷺ څخه نقل وي د رسول الله ﷺ څخه دا نقل سوي نه دي نو ارشاد نبوي څخه دا حاصل سو چي هر کله يو رمال په علم پوهيدونکی او د هغه نبي په خط کي موافق نسي کيدای نو علم رمل اختيارول هم صحيح نه دی همداسي دوې نوري سلسلې دي چي د هغه مدار پر حساب دی چي په اصطلاح کي عمل تکسير او عمل تخريج سره نومول کيږي د هغه په باره کي هم د محققين علماؤ او مشائخو دا فيصله ده چي دا اعمال هم شرعا جائز نه دي او ددې هم هغه حکم دی کوم چي پورته ذکر سوی دی د آخر عبارت مطلب دادی چي لفظ د کذا د صحت نښه ده يعني که دا ضرورت محسوس وي چي په عبارت کي پر داسي لفظو باندي چي د هغه په باره کي د عدم صحت گمان سوی وي نو يو داسي نښه دي ورکول سي چي د هغه په ذريعه د هغه لفظ صحيح کيدل ثابت سي نو پر داسي موقع باندي په هغه لفظ کذا ليکي د هغه مطلب به دا وي چي دا الفاظ داسي صحيح دي ددې حديث لفظ

لكني اصول كي دى خو مصابيح كي نسته په دي صورت كي دا ممكن وو چي ددې لفظ د عدم صحت ګمان كيداى ځكه چي صاحب جامع الاصول په دې لفظ كذا ليكلو سره ددې خبري صحيح تصحيح كړې ده چي دا لفظ په اصول كي داسي دى او دا صحيح دى.

**په لمانځه كي د سلام جواب منعه دى**

﴿۹۱۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ به رسول الله ﷺ ته سلام ادا كوى

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ

د لمانځه كولو په حالت كي او رسول الله ﷺ به جواب راكوى بيا چي كله موږ د نجاشي څخه راستانه سو

سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فِي الصَّلَاةِ

نو موږ سلام ادا كړ رسول الله ﷺ ته خو زموږ د سلام جواب يې را نه كړ، موږ عرض وكړ اې دالله رسوله! موږ به تاسو ته لمانځه په حالت كي سلام ادا كوى

فَتَرُدُّ عَلَيْنَا فَقَالَ إِنَّ فِي الصَّلَاةِ شُغْلاً. متفق عليه

او تاسو به جواب راكوى، رسول الله ﷺ وفرمايل په لمانځه كي بوختيا ده يعني ذكر الهي يا د قرآن كريم قرائت په داسي حالت كي انساني خبري كول منعه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۷۲، رقم: ۱۱۹۹ ومسلم ۱\۳۸۲، رقم: ۳۴-۵۳۸.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د پيغمبرى په وخت كي د حبشه هيواد پاچا عيسائي وو د هغه لقب نجاشي وو هغه عالم هم وو كله چي د تورات او انجيل په ذريعه هغه ته د رسول الله ﷺ نبي برحق كيدل معلوم سول نو هغه د رسول الله ﷺ پر رسالت ايمان راوړلو سره د الله تعالى په عبادت كونكو بندګانو كي شامل سو د هجرت په نهم كال هغه وفات سو نو رسول الله ﷺ ډير افسوس وكړ د نجاشي د رسول الله ﷺ سره ډير عقيدت وو كوم وخت چي مسلمانانو د مكې د كفارو دلاسه په سختتو تكليفو كي مبتلا سوه او د هغوى د سرونو خطره سوه نو اكثر صحابه كرامو د رسول الله ﷺ په ارشاد د نجاشي پاچا د حبشې په خوا هجرت وكړ هغه په خپل هيواد كي د صحابه كرامو ډير زيات خدمت وكړ او د هغوى سره په ډير زيات حسن سلوك سره راغلل،

وروسته چي صحابه کرامو ته علم وسو چي رسول الله ﷺ د مکې معظمې څخه په هجرت کولو سره مدينې منورې ته تشريف وړی دی نو هغوی هم مدينې منورې ته راغلل .

د دغه وخت واقعه ابن مسعود رضي الله عنه بيانوي چي د حبشې څخه راستنېدونکې قافله کې زه هم شريک وم کوم وخت چي موږ خلک مدينې شريفي ته په رسيدو سره په دربار نبوت کې حاضر سو نو رسول الله ﷺ هغه وخت لمونځ کوی موږ د معمول مطابق رسول الله ﷺ ته سلام وکړ مګر رسول الله ﷺ زموږ د سلام جواب نه راکړ بيا د لمانځه څخه د فارغه کيدو وروسته رسول الله ﷺ زموږ څخه پوښتنه وکړل چي لمونځ خپله يو ډير لوي شغل دی يعني په لمانځه کي قرآن کريم او تسبيحات او دعا مناجات ويلو شغل د دومره ارزښت او عظمت حامل دی چي په داسي صورت کي د بل سړي سره د سلام کولو څه ګنجائش نسته ښکاره ده چي عاشق او معشوق چي يو ځای سي نو بيا د دريم کس ګنجائش نسته يا دا چي د لمونځ کونکي فرض دی چي هغه په لمانځه کي پوره انهماک مصروفيت سره مشغول وي تر څو چي په لمانځه کي ېې وواييي هغه فکر کوي او د لمانځه څخه ماسوا بل خوا ته خيال متوجه نه کړي ددې څخه معلومه سوه چي په لمانځه کي د سلام جواب ورکول يا د چا سره خبري کول حرام دي ځکه چي په دې سره لمونځ فاسد کيږي .

## د سر يا لاس په اشاره سره د سلام جواب ورکول لمونځ نه فاسدوي

په شرح منيه کي ليکلي دي که يو لمونځ کونکي د يو چا د سلام جواب د لاس يا سر په اشاره سره ورکړي يا همداسي يو څوک د لمونځ کونکي څخه يو شی وغواړي او هغه د لاس يا سر په اشاره سره د هو يا نه اشاره وکړي نو د هغه لمونځ نه فاسديږي البته مکروه کيږي .

## په لمانځه کي د ځمکي سمولو مسئله

﴿۹۱۷﴾: وَعَنْ مُعَيْقِيبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ يُسَوِّي التُّرَابَ حَيْثُ يَسْجُدُ قَالَ إِنْ كُنْتَ فَاعِلاً فَوَاحِدَةً . متفق عليه

حضرت معيقيب رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه د هغه سړي په اړه چي په سجده کي به يې خاوره ځان څخه پاکول روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل که داسي کول ضروري وي نو يوازي يو ځل (يې کوه) بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۷۹، رقم: ۱۲۰۷، ومسلم: ۱\۳۸۷، رقم: ۴۷-۵۴۶.

**تشريح** : په شرح منيه کي ليکلي دي چي د لمانځه په حالت کي د سجدې د ځای څخه ډبري وغيره ليري کول يا مځکه برابرول مکروه دی هو که صورت داسي وي چي د سجدې ځاي د ډبرو ماسوا د کښته پورته په وجه پر مځکه پرته د برابرولو څخه پر هغه ځای سجده کول ممکن نه وي نو د هغه ځای څخه دي ډبري ليري کړل سي او مځکه دي پاکه کړل سي هغه هم يو وار يا دوه واره نه تر دې زيات.

## په لمانځه کي پر تشو لاسونه ايښودل منعه دي

﴿۹۱۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَصْرِ فِي الصَّلَاةِ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په لمانځه کي پر تشي د لاس ايښودلو څخه منعه فرمايلي ده. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۸۸، رقم: ۱۲۲۰ ومسلم: ۱\۳۸۷، رقم: ۴۶– ۵۴۵.

**د لغاتو حل**: (الخَصْرِ): هو وضع اليدين على الخاصرة: (پر تشي لاس ايښودل).

**تشريح** : په دغه روايت کي لفظ د خصر دی، په ځينو روايتونو کي نهی عن الاختصار او ان يصلي مختصرا الفاظ هم نقل دي

## د خصر تعريف

خصر په لغت کي ملا او تشي ته وايي، د علماؤ په نزد د خصر او اختصار تعريف پر ملا يا تشي باندي لاس ايښودل دي، د حديث خلاصه داده چي په لمانځه کي دي هيڅوک پر خپل تشي يعني بغل باندي په لاس ايښودو سره نه دريږي.

## په لمانځه کي خصر ولي ممنوع دی ؟

سوال دا پيدا کيږي چي په لمانځه کي پر تشي باندي دلاس ايښودو څخه ولي منعه فرمايل سوې ده؟ جواب دادی چي ددې مختلف وجوهات دي اول خو دادی چي پر ملا باندي لاس ايښودو سره دريدل په ټولنيز حيثيت سره يو ښه خبره نسي کيداي، پوهيدونکي پوهيږي چي اکثر پر ملا لاس د ايښيدو سره دريدل يا تلل د دنيا د هغه بد نصيبو طريقه ده چي هغوی ته د دنيا او ټولني په هره طبقه کي په ذلت او حقارت کتل کيږي يعني نرښځيان.

ددې ماسوا په يوه بل حديث کي په وضاحت سره ددې توجيه دا فرمايل سوې ده چي

اختصار د اهل نار د ارام د حالت يوه ذريعه ده د هغه تشريح داسي كيږي چي د قيامت په ورځ د حشر په ميدان كي هر كله چي ټول خلک د حساب او كتاب په انتظار كي ولاړ وي نو هغه وخت به د مشقت د كثرت او تماشي په وجه هغه خلک چي د هغوی په برخه كي د دوږخ اور دی پر خپلو تشو به لاسونه ايښي وي چي همداسي د څه وخت لپاره ارام ورته محسوس سي څرنگه چي په عام طور سره موږ وينو هر كله چي يو سړی تر ډير وخت پوري ولاړ ستړی سي نو پر يوه پښه باندي د پوره بدن بوج اچولو سره او پر تشي باندي لاس ايښودو سره دريږي يا دا چي په حديث كي د لهل نار څخه مراد يهوديان دي چي د هغوی عادت داسي دی چي داسي دريږي . دريمه وجه د يو روايت په رڼا كي داده چي كوم وخت شيطان تر ټلي مځكي ته راكښته سي او هغه لعنتي وګرځول سي نو هغه وخت هغه پر خپل تښو باندي لاسونه ايښي ولاړ وي

دا ټوله وجوهات په فكر كي ساتلو سره پر تشي د لاس ايښودو سره دريدل د اهل نار او شيطان ملعون صفت دی ځكه د هغوی مشابهت څخه د ځان ساتني لپاره مسلمان دي ددې خبري څخه منعه سي چي هغوی دي پر تشي د لاس ايښودو سره نه دريږي، نهي عن الخصر صحيح مطلب او صحيح تشريح چي صحابه كرامو او علماء سلف څخه نقل دي پورتني ذكر سوې ده مگر ځينو حضراتو ددې حديث تشريح دا هم كړي ده چي خصر د مخصره په معنی كي دی، مطلب بې دا دی چي په لمانځه كي د لكړي په زور دريدل نه دي پكار ددې، ددې څخه پرته نوري شرحي هم سوي دي مگر څرنگه چي پورته ښودل سوي دي صحيح تشريح او وضاحت هم هغه دی كوم چي پورته ذكر سو . اشعة اللمعات .

## په لمانځه كي شاو خوا كتل څرنگه دي؟

﴿۹۱۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْاِلْتِفَاتِ

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه چي په لمانځه كي آخوا دېخوا كتل څنگه دي ؟

فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ . متفق عليه

رسول الله ﷺ وفرمايل دا په غافله كولو تښتول دي شيطان د انسان په غافله كولو د هغه لمونځ تښتوي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۳۴، رقم: ۷۵۱، ولم نجده عند مسلم.

**تشریح** : مطلب دادی هر کله چي يو سړی په لمانځه کي په پوره توجه او ادب سره نه درېږي بلکه آخوا دېخوا ګوري نو شيطان مردود د داسي لمونځ کونکي د لمانځه کمال تښتوي يعني د داسي لمانځه کمال نه پاته کېږي، دلته د آخوا او دېخوا کتلو څخه مراد دادی چي په لمانځه کي يو سړی څټ واړوي يوې او بلي خوا ته داسي وګوري چي مخ د قبلې څخه واوړي، دا مسئله داده چي ددغه سړي لمونځ مکروه کېږي او که يو سړی په لمانځه کي آخوا دېخوا داسي وګوري چي د مخ سره سره سينه هم د قبلې د خوا څخه بالکل وګرځوي نو د هغه لمونځ فاسد کېږي د سترګو په کونجانو سره آخوا دېخوا کتلو سره نه خو لمونځ فاسد کېږي او نه مکروه کېږي، البته داهم خلاف اولی دی .

## آسمان ته مه ګورئ

﴿۹۲۰﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَنْتَهِيَنَّ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل خلك دي منعه سي

أَقْوَامٌ عَنْ رَفْعِهِمْ أَبْصَارَهُمْ عِنْدَ الدُّعَاءِ فِي الصَّلَاةِ إِلَى السَّمَاءِ أَوْ لَتُخْطَفَنَّ أَبْصَارُهُمْ . رواه مسلم

په لمانځه کي د دعاء پر وخت د آسمان لوري ته د کتلو څخه منعه سي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۲۱، رقم: ۱۱۸- ۴۲۹.

**تشريح** : د خلکو متنبه کولو لپاره رسول الله ﷺ دا د زجر په ډول فرمايلي دي چي خلکو ته پکار ده چي په لمانځه کي د دعا غوښتلو په وخت کي خپل نظر د اسمان خوا ته نه کوي کنه د هغوی نظر به ختم سي .

په دې اړه مسئله داده چي په لمانځه کي مطلقا او په خاصه توګه د دعا په وخت کي د آسمان خوا ته نظر پورته کول مکروه دي په دې سره ددې خبري وهم پيدا کېږي نعوذبالله چي الله تعالی لپاره په اسمان کي ځای مقرر دی چي هغه يوازي په آسمان کي موجود دی حالانکه هغه د مکانيت څخه پاک دی هغه هر ځای موجود دی .

د لمانځه څخه پرته پر نورو موقعو باندي د اسمان خوا ته د نظر پورته کولو په باره کي اختلاف دی ځيني علماء وايي چي داهم مکروه دی اود ځينو حضراتو رايه داده چي جائز دی

خو صحيح خبره داده چي د لمانځه پرته په نورو موقعو کي هم د دعا په وخت نظر پورته کول نه دی پکار په يوه روايت کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به خپل نظر مبارک د اسمان خواته پورته کوی کله چي دا آيت نازل سو (والذين هم في صلوتهم خاشعون) نو رسول الله ﷺ به خپل نظر مبارک ښکته ساتی.

## کوچنی پر اوږه کښېنول او لمونځ کول

﴿۹۲۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّ النَّاسَ

د ابو قتاده ؓ څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليدی چي خلکو ته يې لمونځ ورکوی

وَأُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ عَلَى عَاتِقِهِ فَإِذَا رَكَعَ وَضَعَهَا وَإِذَا رَفَعَ مِنَ السُّجُوْدِ أَعَادَهَا. متفق عليه

او د ابو العاص لور امامه د رسول الله ﷺ پر اوږه وه کوم وخت چي به رسول الله ﷺ رکوع کول نو امامه به يې ښکته کړل او چي د سجدې څخه به پورته کيدی نو پر خپلو اوږو به يې کښېښول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\ ۵۹۰، رقم: ۵۱٦ و مسلم ۱\ ۳۸٦، رقم: ۴۲- ۵۴۳.

**تشريح**: ابو العاص ؓ د رسول الله ﷺ زوم وو د هغه واده د رسول الله ﷺ د لور بي بي زينب رضي الله عنها سره سوی وو د هغې د لور نوم امامه وه.

## يو اشکال او د هغه جواب

دلته دا اشکال پيدا کيږي چي په لمانځه کي د رسول الله ﷺ امامه پورته کول او ښکته کول او بيا په لوړولو سره کښېنستل فعل کثير سو، فعل کثير هغه دی چي يو کار په وار وار وکړل سي او خصوصا په دواړو لاسونو سره وکړل سي او که فعل کثير هم نه وي نو فعل قليل په کيدو کي څه شک نسته ځکه چي د لمانځه په حالت کي دا فعل مکروه خو ضرور وو مگر په پوهه کي نه راځي چي رسول الله ﷺ دا سي ولي وکړل.

خطابي رحمة الله عليه ددې جواب دا ورکړی دی چي د رسول الله ﷺ امامه پورته کول او کښېنول په قصد سره نه وو بلکه امامه رسول الله ﷺ سره ډيره زياته بلده وه او رسول الله ﷺ د هغه سره ډيره زياته مينه وه ځکه هغه به د لمانځه په حالت کي هم راغله رسول الله صلي الله عليه

وسلم پوري به وموښتل او د رسول الله ﷺ پر اوږه مباركه د ختو سره كښېنستل بيا چي ركوع په وخت د اوږې څخه به وغورځېدل ګويا همداسي به د رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه غورځول د رسول الله ﷺ فعل نه سو بلكه ددې فعل نسبت رسول الله ﷺ نه مجازا سوى دى ددې توجيه پيش نظر دا هم نه سي ويل كيداي چي دا فعل كثير وو ځكه چي فعل كثير خو هغه فعل ته وايي چي پرله پسې وكړل سي او دلته پرله پسې نسي تر لاسه كيداى.

يوه توجيه داهم كيداى سي چي د رسول الله ﷺ دا عمل د هغه وخت دى هر كله چي په لمانځه كي عمل كثير حرام سوى نه وو يا دا هم كيداى سي چي دا فعل يوازي د رسول الله ﷺ سره مخصوص وو.

## په لمانځه كي د اررمۍ پر وخت خوله بندول

﴿۹۲۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي

تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ. رواه

په تاسو كي يو چا ته د لمانځه په وخت كي اررمۍ راسي نو تر خپله وسه دي هغه بنده كړي ځكه چي د اررمۍ پر وخت شيطان په خوله كي ننوزي. مسلم،

مسلم .وفي رواية البخاري عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ

د بخاري په يوه روايت كي دا الفاظ دي هر كله چي چا ته په لمانځه كي اررمۍ راسي

فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ وَلَا يَقُلْ هَا فَإِنَّمَا ذٰلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ يَضْحَكُ مِنْهُ.

نو تر څو پوري چي ممكن وي هغه دي بنده كړي او (ها) دي نه كوي ځكه چي دا د شيطان د لوري ده په دې پوري هغه خاندي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\۲۲۹۳، رقم: ۵۹ - ۲۹۹۵، صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۶۱۱، رقم: ۶۲۲۶

**تشريح**: د نس ډكولو، د حواس پر چټلتيا او د بدن پر درروندوالي په وجه اررمۍ راځي او دا په عبادت كي د سستۍ باعث جوړيږي ځكه ددې نسبت يې شيطان ته كړى دى چي د اررمۍ كولو په وخت كي شيطان په خوله كي ننوځي يعني په داسي حالت كي د هغه لپاره د لمونځ كونكي د

دوکه کولو او د عبادت څخه د منعه کولو ډیره ښه موقع هغه ته په لاس ورځي، او د هغه د خندا څخه مراد دادی چي هغه په داسي حالت کي د لمونځ کونکي په لیدو سره (یعني ارږمی کولو) ډیر خوشحاله کیږي ځکه چي په دې سره په عبادت کي سستي پیدا کیږي چي د شیطان لعین عین منشا ده. نو فرمایل سوي دي چي کله یو چا ته په لمانځه کي ارږمی راسي نو هغه ته پکار ده چي حتی الامکان هغه بنده کړي او په داسي صورت کي د خولې بندولو طریقه دا پکار ده چي شونډان یو ځای کړل سي او لاندي شونډه په غاښونو سره ونیول سي یا کله چي ارږمی راسي نو د چپه لاس شا دي پر خوله کښېږدي.

ځیني حضرات فرمایي چي د ارږمی بندولو تر ټولو غوره طریقه داده چي کله ارږمی راسي نو سمدستي په زړه کي دا خیال کول پکار دی چي رسول الله ﷺ ته هیڅکله ارږمی نه ده راغلې، محض په دې خیال سره به ارږمی بنده سي دا طریقه مجربه ده.

## د رسول الله ﷺ د پیریانو سره یوه پېښه

﴿۹۲۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عِفْرِيتًا مِنَ الْجِنِّ تَفَلَّتَ الْبَارِحَةَ لِيَقْطَعَ عَلَيَّ صَلَاتِي فَأَمْكَنَنِي اللّٰهُ مِنْهُ

په پیریانو کي یو یو (غټ پیری) نن شپه ناڅاپه راغلی چي زما لمونځ خراب کړي مگر الله جل جلاله ما ته پر هغه قدرت راکړی

فَأَخَذْتُهُ فَأَرَدْتُ أَنْ أَرْبِطَهُ عَلَى سَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ حَتَّى تَنْظُرُوا إِلَيْهِ

ما هغه ونیوی او اراده مي وکړه چي د مسجد په یوې ستني پوري یې وتړم چي تاسو ټول خلک یې ووینئ

كُلُّكُمْ فَذَكَرْتُ دَعْوَةَ أَخِي سُلَيْمَانَ رَبِّ هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي فَرَدَدْتُهُ خَاسِئًا. متفق علیه

سمدستي ما ته د خپل ورور سلیمان علیه السلام دا دعاء را په یاد سول چي: (اې زما ربه! ما ته داسي پاچاهي راکړه چي زما څخه وروسته هیچا ته مناسبه نه وي) نو ما هغه خوار کړه سوی

و شړی . بخاري او مسلم .

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۵۴. رقم: ۴۶۱، و مسلم ۱\ ۳۸۴، رقم: ۳۹- ۵۴۱.

**تشریح:** مطلب دادی چي حضرت سلیمان علیه السلام کوم پیریان په جزیرو کي بندي کړي وه په هغوی کي یو سرکښ پیری جوړیدو سره رسول الله ﷺ ته راغلی چي د رسول الله ﷺ په لمانځه کي خلل واچوي یعني د وسوسو پیدا کولو سره د هغه دلمانځه کمال ختم کړي مګر الله ﷻ رسول الله ﷺ پر هغه برلاسی کړ او رسول الله ﷺ هغه ونیوی .

د حضرت سلیمان علیه السلام په دعاء کي د پاچاهي څخه مراد د جنات او شیطانانو مسخر کول او پر هغوی تصرف حاصلول وه، حضرت سلیمان علیه السلام د الله تعالی څخه دا دعاء د ځان لپاره غوښتې وه او دا مرتبه یې یوازي د ځان لپاره غوښتې وه ځکه رسول الله ﷺ دا ونه غوښتل چي هغه شیطان د مسجد نبوي د ستني تړلو سره داسي طریقه اختیار کړي ي په هغه سره د سلیمان علیه السلام پر دغه ځانګړتیا باندي اثر ولویږي او د خپل تصرف اظهار وسي کنه رسول الله ﷺ ته خپله هم دا ځانګړتیا او مرتبه ، او پر شیطانانو او جناتو باندي د تصرف قدرت د حضرت سلیمان علیه السلام څخه زیات وو . د دې حدیث څخه معلومیږي چي د شیطان مس کول لمونځ نه ماتوي .

## په لمانځه کي په یو خاص شي سره اشاره کېدای سي

﴿۹۲۴﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا ته چي

نَابَهُ شَيْءٌ فِي صَلَاتِهِ فَلْيُسَبِّحْ فَإِنَّمَا التَّصْفِيْقُ لِلنِّسَاءِ .وفي رواية قال التسبيح للرجال والتصفيق للنساء .

په لمانځه کي یو خبره پېښه سي (یعني څوک رابولي یا یو شی غواړي) نو هغه دي (سبحان الله) ووایي او لاسونه ټکول (چکچکي کول) د ښځو لپاره خاص دي ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل سبحان الله ویل د نارینوو لپاره دي او لاسونه ټکول د ښځو لپاره دي . بخاري او مسلم .

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۱۶۷، رقم: ۶۸۴، ومسلم ۱\ ۳۱۸، رقم: ۱۰۶- ۴۲۲.

**تشریح:** مطلب دادی چي د لمانځه په حالت کي که یو خاص واقعه پېښه سي ، مثلاً یو چا په کور کي لمونځ کوئ او دباندي په دروازه کي یو چا آواز وکړ یا کور ته د راتللو اجازه یې

وغوښتل او هغه ته معلومه نه وه چي د كور خاوند لمونځ كوي او په كور كي يو بل داسي سړى هم موجود نه وي چي د هغه د آواز جواب وركړي نو په داسي صورت كي لمونځ كونكي ته پكار ده چي هغه په لوړ آواز سره سبحان الله ويلو سره په لمانځه كي د بوختيا اشاره وكړي.

همداسي كه يوه ښځه لمونځ كوي نو په پورتني صورت كي د هغې لپاره دا حكم دى چي هغه سبحان الله نه وايي بلكه لاس دي ټكوي او د باندي آواز كونكى دي پوه سي چي په كور كي يو ازي ښځه موجود ده او هغه هم لمونځ كوي ، د ښځي د سبحان الله ويلو څخه ځكه منعه سوې ده چي څرنگه هغه خپله د غير خلكو مخته نسي راتلاى همداسي هغه خپل آواز هم غير خلكو ته نسي اورولاى. او پر داسي موقع باندي د ښځو لپاره د لاس وهلو هم يوه طريقه ده هغه دا چي د راسته لاس ورغوى د چپه لاس په شا سره ووهي ، د يوه لاس ورغوى دي د بل لاس په ورغوي سره نه وهي ، لكه څرنگه چي سندري ويونكي ښځي لاسونه وهي ځكه په داسي لاسونو وهلو سره لمونځ فاسديږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په لمانځه كي د سلام جواب وركول نه دي پكار

﴿۹۲۵﴾ : عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ به نبي كريم ﷺ ته سلام ادا كوى

وَهُوَ فِي الصَّلاَةِ قَبْلَ أَنْ نَّأْتِيَ أَرْضَ الْحَبَشَةِ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ أَرْضِ

او رسول الله ﷺ به په لمانځه كي وو او د سلام جواب به يې راكوى، او دا پېښه و حبشې ته د ستنېدو څخه وړاندي وه ، بيا چي موږ راستانه سوو

الْحَبَشَةِ أَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّيْ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ حَتّٰى إِذَا قَضٰى

د حبشې څخه نو د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او دا وخت هغه مبارك لمونځ كوى ما سلام ادا كړ مگر رسول الله ﷺ زما د سلام جواب رانه كړ ، كله چي فارغ سو

صَلاَتَهُ قَالَ إِنَّ اللهَ يُحْدِثُ مِنْ أَمْرِهِ مَا يَشَاءُ وَإِنَّ مِمَّا أَحْدَثَ أَنْ لاَّ تَتَكَلَّمُوْا

د لمانځه څخه نو وه يې فرمايل : الله جل جلاله چي خپل كوم حكم غواړي هغه څرگندوي او اوس

الله ﷻ دا حكم ثرګند كړى دى چي خبري مه كوئ

فِي الصَّلاَةِ فَرَدَّ عَلَيَّ السَّلاَمَ وَقَالَ إِنَّمَا الصَّلاَةُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللهِ فَإِذَا كُنْتَ فِيهَا فَلْيَكُنْ ذٰلِكَ شَأْنُكَ . رواه أبو داود .

په لمانځه كي، بيا رسول الله ﷺ زما د سلام جواب راكړ او وه يې فرمايل: لمونځ د قرآن ويلو او د الله د ذكر كولو لپاره دى هر كله چي ته د لمانځه په حالت كي يې نو تا ته يوازي دغه كول پكار دي. ابوداؤد

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\۵۶۷، ۵۶۸، رقم: ۹۲۴.

**تشريح:** ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي دا حديث ددې خبري دليل دى چي د لمانځه څخه د فراغت وروسته جواب وركول مستحب دى همداسي كه يو څوک استنجاء كوي، يا قرآن كريم وايي او بل سړى په دې حالت كي هغه ته سلام وكړي نو د هغه لپاره دا مستحب ده چي ددغه كارونو څخه د فارغه كېدو وروسته د سلام جواب وركړي.

## په لمانځه كي په اشاره سره د سلام د جواب وركولو مسئله

﴿۹۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قُلْتُ لِبِلاَلٍ كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دى چي ما بلال ﷺ ته وويل چي رسول الله ﷺ به د لمانځه په حالت كي كله چي به موږ ورته سلام وكړ

وَسَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ حِينَ كَانُوا يُسَلِّمُونَ عَلَيْهِ وَهُوَ فِي الصَّلاَةِ قَالَ كَانَ يُشِيرُ بِيَدِهِ، رواه الترمذي و في رواية للنسائي نحوه و عوض بلال صهيب .

څنګه جواب راكوى؟ حضرت بلال ﷺ وويل: رسول الله ﷺ به په خپل لاس سره اشاره كول، ترمذي او صاحب نسائي دا روايت صهيب ته منسوب كړى دى. ترمذي او نسائي

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\۲۰۴، رقم: ۳۶۸.

**تشريح:** كله چي به رسول الله ﷺ د لمانځه په حالت كي وو او يو چا به ورته سلام وكړ نو رسول الله ﷺ به د لاس په اشارې سره جواب وركوى، او د اشارې كولو طريقه دا وه چي د لاس پنجه خلاصولو سره د لاس ورغوى به يې د مځكي خوا ته اړوى، لكه څرنګه چي په ابوداؤد وغيره كي ددې وضاحت هم سوى دى او كله به يې يوازي د ګوتو په اشاره كولو باندي اكتفاء كول.

## په لمانځه کي د سلام جواب د لاس یا سر په اشاره سره ورکول مکروه دي

په فتاوی ظهیریه کي مذکور دي که یو سړی د لمانځه په حالت کي د یو چا د سلام په جواب کي په لاس یا سر سره اشاره وکړي نو د هغه لمونځ نه فاسد کیږي.

په خلاصه کي یې لیکلي دي که یو سړی د لاس یا سر په شارې سره جواب ورکړي نو د هغه لمونځ نه فاسد کیږي.

صحیح او مفتی به قول چي په شرح منیه او شامي وغیره کي مذکور دی هغه دادی چي لمونځ کونکي ته د چا د سلام جواب په لاس یا سر اشارې سره ورکول مکروه تنزیهي دي، اوس به ددې حدیث توجیه دا کیږي چي رسول الله ﷺ د لمانځه په حالت کي د سلام جواب د لاس مبارک په اشارې سره هغه وخت ورکوی چي په لمانځه کي خبري کول منعه سوې نه وې مګر کله چي په لمانځه کي هر ډول خبري کول منعه سوې نو د سلام جواب هم په ژبه او اشاره سره ورکول منسوخ سول ځکه چي اشاره کول هم یو ډول د خبرو په معنی کي دي.

## په لمانځه کي د نوږي وروسته حمد ویل

﴿۹۲۷﴾: وَعَنْ رِفَاعَةَ ابْنِ رَافِعٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت رفاعة بن رافع ﷺ څخه روایت دی چي ما په رسول الله ﷺ پسي لمونځ کوی

وَسَلَّمَ فَعَطَسْتُ فَقُلْتُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ مُبَارَكًا عَلَيْهِ

په لمانځه کي ما ته نوږی راغلی نو ما د لمانځه په حالت کي (الْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ مُبَارَكًا عَلَيْهِ

كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ

كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى) وویل، کله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو موږ ته متوجه سو

فَقَالَ مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ ثُمَّ قَالَهَا الثَّانِيَةَ مَنِ

او وه یې فرمایل: په لمانځه کي چا دا کلمات وویل؟ هیچا جواب نه ورکړ تو ل پټه خوله سول، رسول الله ﷺ بیا پوښتنه وکړل،

الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ ثُمَّ قَالَهَا الثَّالِثَةَ مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ

تول پته خوله سول، رسول الله ﷺ په دريم ځل پوښتنه وکړه چي په لمانځه کي چا خبري وکړې؟

فَقَالَ رِفَاعَةُ أَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي

نو رفاعه رضي الله عنه وويل: زه وم، اې دالله رسوله! رسول الله ﷺ وفرمايل: قسم دی په هغه ذات وي

نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ ابْتَدَرَهَا بِضْعَةٌ وَثَلَاثُونَ مَلَكًا أَيُّهُمْ يَصْعَدُ بِهَا. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي.

چي د هغه په لاس کي زما ساه ده د ديرشو څخه زياتو ملائكو د دې كلماتو د وړلو لپاره تلوار كوی چي څوک يې وړاندي يوسي. ترمذي.، ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\۴۸۹، رقم: ۷۷۳ والترمذي ۲\۲۵۴، ۲۵۵، رقم: ۴۰۴ والنسائي: ۲\۱۴۵، رقم: ۹۳۰.

**تشريح**: ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي په لمانځه کي ترچي کونکي ته حمد (الحمد لله) ويل جائز دي مګر غوره داده چي حمد په زړه کي ووايي يا د غوره والي د خلاف کولو څخه د ساتني په خاطر د ترچي څخه وروسته پته خوله سي لکه څرنګه چي په شرح مينه کي مذکور دي.

## ارږمی کول د شيطان اثر دی

﴿۹۲۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّثَاؤُبُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ارږمی کول

فِي الصَّلَاةِ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ. رواه الترمذي و في اخرى له ولابن ماجة فليضع يده على فيه.

په لمانځه کي د شيطان د لوري وي هر كله چي په تاسو كي چا ته په لمانځه کي ارږمی راسي نو څومره چي ممکن وي هغه دي بنده کړي (ترمذي) او ترمذي په بل ځای کي او د ابن ماجه په يوه روايت کي دا الفاظ هم دي چي هغه دي پر خپل خوله لاس كښيږدي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۲۰۶، ۳۰۶، رقم: ۲۷۰.

**تشريح** : مخکي هم ښودل سوي دي چي اړږمی راتلل د شیطان د اثر په وجه وي ځکه چي اړږمی په عبادت کي سستي او د خوب او غفلت باعث جوړیږي او شیطان په دغه شیانو سره خوشحاله کیږي ځکه نو اړږمی د شیطان خوا ته منسوب سوې ده .

## لمانځه ته د ورتګ په لار کي ګوتي په ګوتو کي اچول منعه دي

﴿۹۲۹﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت کعب بن عجرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي

تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ ثُمَّ خَرَجَ عَامِدًا إِلَى الْمَسْجِدِ فَلاَ يُشَبِّكَنَّ

په تاسو کي یو څوک اودس وکړي او په ښه ډول اودس وکړي بیا د لمانځه په اراده د مسجد په لور روان سي نو یو په بله دي ګوتي نه سره ننباسي

بَيْنَ أَصَابِعِهِ فَإِنَّهُ فِي صَلاَةٍ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي والدارمي

ځکه چي دی په لمانځه کي دی .. احمد ،ترمذي، ابوداؤد ،نسائي،دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۴۱، وابوداؤد ۱\۳۸۰، رقم: ۵۶۲ والترمذي ۲\۲۲۸، رقم: ۳۸۶لم نجده عند النسائي، سنن الدارمي ۱\۳۸۱، رقم: ۱۴۰۴.

**تشريح** : د حدیث د لومړني جز مطلب دادی هر کله چي یو سړی اودس کوي نو هغه ته پکار ده چي د اوداسه د ټولو شرطونو او اذبونو خیال وساتي او د زړه په حضور سره اودس کوي چي اودس په پوره کمال او حسن سره ادا سي ، علماء لیکي څومره توجه او د زړه حضور چي په اودس کي حاصل سي هغومره به په لمانځه کي خشوع او توجه پیدا کیږي .

تشبیک څه ته وايي ؟ د حدیث د دوهم جز مطلب دادی چي هر کله د اوداسه څخه وروسته د لمانځه په ارادې سره د مسجد په لور روان سي نو په لار کي دي د ګوتو په مینځ کي تشبیک نه کوي یعني د یوه لاس ګوتي دي د دوهم لاس په ګوتو کي اچولو سره لوبو کولو سره دي نه څي ځکه چي هغه د لمانځه په نیت سره د کور څخه وتلی دی نو ګویا هغه په لمانځه کي دی او د خشوع او خضوع خلاف کېدو په وجه تشبیک په لمانځه کي منعه دی ځکه لمانځه ته د تلو په لار کي هم ممنوع دی پر دې دا قیاس کیدای سي چي کوم شی په لمانځه کي ممنوع دی نو هغه لمانځه ته د ورتګ پر محال هم ممنوع دی .

د دې حديث څخه په دې خبره خبرداری ورکول مقصد دی چې بنده ته پکار ده چې د لمانځه په لاره کې په حضور او خشوع او ادب سره ځي ، امام بخاري رحمة الله عليه په خپل کتاب صحيح بخاري کې يو باب په مسجد کې تشبيک پر موضوع باندې قائم کړی دی په هغه کې دوه حديثونه نقل کړي دي ددواړه حديثونه پر دې خبره دلالت کوي چې په مسجد کې د ګوتو په مينځ کې تشبيک جائز دی علماؤ ليکلي دي چې ددې حديث څخه دا ثابت سوي ممانعت تعلق د هغه صورت کې دی هر کله چې سړی د ګوتو په مينځ کې تشبيک محض د لوبو او تفريح په خاطر کوي او سړی يې د تمثيل په طريقه وکړي نو جائز دی ، يا د بخاري د روايت سوي احاديث توجيه دا هم کيدای سي چې ددې حديث تعلق د هغه وخت سره دی هر کله چې د ګوتو په مينځ کې د تشبيک د منعه حکم لا نه وو سوی . والله اعلم .

## په لمانځه کې شاوخوا کتلو سره ثواب کميږي

﴿۹۳۰﴾: وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ اللّٰهُ

د حضرت ابوذر ؓ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: الله ﷻ

عَزَّ وَجَلَّ مُقْبِلاً عَلَى الْعَبْدِ وَهُوَ فِيْ صَلَاتِهِ مَا لَمْ يَلْتَفِتْ فَإِذَا الْتَفَتَ انْصَرَفَ

عَنْهُ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي والدارمي

متوجه وي د بنده په لور هر کله چې هغه په لمانځه کې آخوا دېخوا نه ګوري او څه وخت چې هغه آخوا دېخوا وګوري نو د الله تعالی د کرم نظر د هغه څخه ليري سي . احمد ، ابوداؤد ، نسائي او دارمي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۷۲، وابوداؤد ۱\ ۵۶۰، رقم: ۹۰۹ والنسائي ۳\ ۸، رقم: ۱۱۹۴ والدارمي ۱\ ۳۹۰، رقم: ۱۴۲۳.

**تشريح**: ابن مالک رحمة الله عليه فرمايلي دي چې د الله تعالی څخه د مخ ګرځولو مراد دادی هر کله چې لمونځ کونکی د لمانځه په حالت کې غاړه ګرځولو سره آخوا دېخوا ګوري نو د هغه په ثواب کې هم کمي کيږي .

امام ترمذي د حضرت انس ؓ څخه يو صحيح روايت نقل کړی دی چې د هغه الفاظ دادی هر کله چې بنده په لمانځه کې ودريږي نو پروردګار د هغه طرف ته متوجه کيږي مګر کله چې بنده په لمانځه کې آخوا دېخوا ګوي او خپل نظر غير طرف ته متوجه کوي نو الله تعالی

فرمايي اې انسانه ! ته كومي خوا ته گورې ستا لپاره زما څخه څه هم غوره سته چي هغه خوا ته چي ستا نظر متوجه كيږي، زما خوا ته خپل مخ وگرځوه ، بيا چي بنده دوهم وار آخوا گوري نو څرنگه چي د هغه شيان سره لايق وي د هغه بنده د خوا څخه مخ اړوي .

## په لمانځه كي د سجدې ځاى ته كتل پكار دي

﴿۹۳۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا أَنَسَ اِجْعَلْ بَصَرَكَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل : اې انس ! په لمانځه كي خپل نظر هلته لره

حَيْثُ تَسْجُدُ . رواه البيهقي في سننه الكبير من طريق الحسن عن أنس يرفعه

چيري چي سجده كوې ، بيهقي ، سنن كبير په طريقه حسن د انس څخه مرفوعا روايت كړى دى .

**تخريج** : البيهقي في السنن الكبرى ۲\۲۸۴،

**تشريح** : د دې حديث څخه په ظاهره خو دا معلوميږي چي په ټول لمانځه كي نظر د سجدې پر ځاى ساتل پكار دي، د شافعيانو عمل پر دې دى ، مگر علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايلي دي چي مستحب دادي چي د قيام په حالت كي نظر د سجدې پر ځاى، په كورع كي د قدم پر ځاى، په سجده كي د پزي خوا ته او د ناستي په حالت كي نظر پر زنگون ساتل پكار دي، دا مذهب د حنفيه هم په لږ اضافتو سره دى چي د سلام په وخت كي نظر پر اوږو باندي ساتل پكار دي ، د ځينو علماؤ دا قول هم دى چي په حرم شريف كي نظر پر كعبې ساتل پكار دي .

د دې حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي په لمانځه كي ستركي بندول مكروه دي ، په اصل مشكوة كي د رواه څخه وروسته ځاى خالي دى او بيا وروسته يو شارح د البيهقي څخه تر آخر پوري د عبارت اضافه كړې ده .

## په لمانځه كي په شا وخوا كتلو باندي سزا

﴿۹۳۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بُنَيَّ إِيَّاكَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل : اې زويه ! ځان وساته

وَالْاِلْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ فَإِنَّ الْاِلْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ هَلَكَةٌ فَإِنْ كَانَ لَابُدَّ فَفِي

په لمانځه كي د آخوا د بخوا كتلو څخه ځكه په لمانځه كي شا وخوا كتل د هلاكت سبب دى كه

كتل ضروري وي

التَّطَوُّعِ لاَ فِي الْفَرِيْضَةِ . رواه الترمذي .

نو په نفل لمانځه كي څه پروا نسته مګر په فرض لمانځه كي هيڅكله داسي مه كوه .ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۴۸۴، رقم: ۵۸۹.

**تشريح**: په لمانځه غاړه آخوا دېخوا ګرځولو سره په آخرت كي د هلاكت سبب ځكه دی چي داسي كونكی په اصل كي د شيطان اطاعت كوي ځكه چي د شيطان هم مقصد دا وي چي بنده په لمانځه كي په پوره توجه سره نه وي بلكه د هغه نظر آخوا ديخوا خپروي .

د حديث الفاظ فان كان لا بد ، مطلب دادی كه ستا احساس شعور، او سعادت د دې خبري څخه متاثر كيږي چي ستا په لمانځه كي نقصان راسي يا د لمانځه كمال ختم سي نو كم از كم په فرض لمانځه كي خو داسي مه كوه چي آخوا ديخوا كتلو سره د هغه لمونځ كمال ختم كړې هلته نفل لمونځ كي خو تر يوه حده پوري نرمي هم كيدای سي ځكه چي نفل لمونځ د فرض لمانځه په مقابله كي اسان دی چي د فرض لمانځه لپاره ډير زيات او د كامل اهتمام ضرورت وي او په دې كي لږ تاوان هم په اخروي حيثيت سره د تباهۍ او هلاكت باعث جوړيدای سي او د عقلمندۍ او سعادت غوښتنه خو دا كيدل پكار ده چي آخوا ديخوا كتلو سره په نفل لمانځه كي هم څه تاوان پيدا كول نه دي پكار چي په حقيقت كي د نفل لمانځه نقصان د فرض لمانځه د نقصان باعث دی ځكه چي نوافل په حقيقت كي د فرائضو تكميل كونكي دي نو د حديث د دې جملې څخه دا مطلب اخيستل كيدای نسي چي په نفل لمانځه كي آخوا دېخوا كتل مكروه نه دي بلكه د دې خبري رغبت وركول دي چي فرض لمونځ د خپل عظمت او اهميت په اعتبار دا خبره نسي برداشت كولای چي د دې ډول افعالو كولو سره په لمانځه كي دي نقصان پيدا سي .

په ظاهره خو دا معلوميږي چي دا حديث دا خبره واضح كوي چي په لمانځه كي آخوا دېخوا كتلو كراهيت د فرض لمانځه په نسبت په نفل لمانځه كي كم دی .

## په لمانځه كي د ستر ګو په كونجانو سره كتل مكروه نه دي

﴿۹۳۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْحَظُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ستر ګو په كونجانو كتل

فِي الصَّلاَةِ يَمِينًا وَّشِمَالاً وَلاَ يَلْوِيْ عُنُقَهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ. رواه الترمذي والنسائي

په لمانځه کي يوې او بلې خوا ته مګر غاړه به يې د شا په لور نه ګرزول. ترمذي او نسائي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\۴۸۲-۴۸۳، رقم: ۵۸۷ والنسائي ۳\۹-۱۰، رقم: ۱۲۰۰.

**تشريح:** رسول الله ﷺ په لمانځه کي راسته او چپه خوا ته د سترګو په ګونجانو سره ځکه کتل چي خلکو ته معلومه سي چي په لمانځه کي آخوا دېخوا کتلو سره لمونځ نه باطل کيږي، يا د وروسته ولاړو مقتديانو احوال کتلو لپاره به رسول الله ﷺ داسي کتل.

په هر حال د دې حديث څخه معلومه سوه چي د غاړي په ګرځولو سره آخوا دېخوا کتل مکروه دي مګر داسي کتل چي غاړه ونه ګرځي مکروه نه دي که څه هم داسي کتل هم غوره نه دي.

## په لمانځه کي شيطان اثرات

﴿۹۳۴﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَفَعَهُ قَالَ الْعُطَاسُ وَالنُّعَاسُ وَالتَّثَاؤُبُ فِي الصَّلاَةِ وَالْحَيْضُ وَالْقَيْءُ وَالرُّعَافُ مِنَ الشَّيْطَانِ.

رواه الترمذي.

حضرت عدي بن ثابت د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه مرفوعا روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ترچی کول، اررمی کول، حيض جاري کيدل، قی وهل او د پزي څخه وينه راتلل په لمانځه کي دا ټول د شيطان د لوري دي. ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي: ۲\۸۱-۸۲، رقم: ۲۷۴۸.

**تشريح:** مطلب دادی که دا شيان په لمانځه کي پيدا سي نو شيطان ډير زيات خوشحاله کيږي ځکه په دغه شيانو سره پر لمانځه اثر لويږي، دلته د ترچي کولو څخه زيات ترچی کول مراد دی نو دا حديث د هغه روايت خلاف نه دی چي په هغه کي فرمايل سوي دي چي ترچی ايله کوئ ځکه د دغه ترچي کولو څخه مراد په معتدلي طريقې سره ترچي کول دي او د معتدل اطلاق تر دې کم باندي کيږي.

د دغه دواړو حديثو په مينځ کي د تطبيق ظاهري وجه دا کيدای سي چي د لمانځه څخه پرته په نورو وختونو کي ترچی الله ﷻ خوښوي او مکروه ترچی هغه دی چي په لمانځه کي راسي. په دغه شيانو سره شيطان ځکه خوشحاله کيږي چي ترچی د قرائت او د زړه د حضور

مانع دی ، اربړمی او ترچې په عبادت کي د سستۍ باعث دی او حيض او په پزه کي وينه او قی راتلل د لمانځه مفسدات دي يعني لمونځ ماتوي .

په حديث کي د درو شيانو (ترچې، اربړمی، پرکالي) د ذکر څخه وروسته د لفظ في الصلوة ذکر کولو سره د آخر درو شيانو :حيض، قی، په پزه کي وينه راتلل بيل کړل سوي دي او ددې څخه دې ته اشاره مقصد ده چي مخکني درې شيان مفسد صلوة نه دي بلکه مکروه دي او کوم چي آخري درې شيان دي هغه مفسد صلوة دي يعني په هغو سره لمونځ فاسد کيږي .

## په ژړا کولو سره لمونځ نه باطليږي

﴿۹۳۵﴾: وَعَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الشِّخِّيْرِ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ

حضرت مطرف بن عبد الله بن شخير د خپل پلار څخه روايت کوي چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّيْ وَلِجَوْفِهِ أَزِيْزٌ كَأَزِيْزِ الْمِرْجَلِ يَعْنِيْ يَبْكِيْ .

رسول الله ﷺ دغه وخت لمونځ کوی او د رسول الله ﷺ د سينې څخه داسي آواز راتلی لکه د ديګ د ابشيدو آواز چي وي (يعني ژړل يې)

وفي رواية قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَفِيْ صَدْرِهِ أَزِيْزٌ كَأَزِيْزِ الرَّحَا مِنَ الْبُكَاءِ . رواه أحمد وروى النسائي الرواية الأولى وأبو داود الثانية

او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي چي ما نبي کريم ﷺ پر لمونځ کولو وليدی او د رسول الله ﷺ د خولې څخه داسي آواز راتلی لکه د ژرندی آواز چي راځي او دا د رسول الله ﷺ د ژړا آواز وو . احمد .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۴\۲۵ والنسائي: ۳\۱۳، رقم: ۱۲۱۳.

**تشريح** : ددې حديث څخه معلومه سوه چي په ژړا سره لمونځ نه باطل کيږي په هدايه کي ددې مسئلې وضاحت داسي سوی دی که يو سړی په لمانځه کي ډير ژاړي او دوږخ يا د عذاب وغيره ذکر او په ياد سره په متاثر کيدو سره آه کوي يا په لوړ اواز سره وژاړي نو د هغه لمونځ نه باطل کيږي او که يو سړی د جسماني درد او تکليف د شدت په وجه آه وکړي يا په لوړ اواز سره وژاړي نو د هغه لمونځ ماتيږي .

## په لمانځه کې شګې لیرې کول

(۹۳۶): وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ

د حضرت ابو ذر رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چې دریږي

أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلاَةِ فَلاَ يَمْسَحُ الْحَصَى فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة.

په تاسو کې یو څوک د لمانځه لپاره نو په لاسو سره دې شګې نه لیرې کوي ځکه چې د الله جل جلاله رحمت د هغه په وړاندې وي. احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۵۰، وابوداؤد ۱\ ۵۸۱، رقم: ۹۴۵ والترمذي ۲\ ۲۱۹، رقم: ۳۷۹ والنسائي ۳\۶، رقم: ۱۱۹۰ وابن ماجه ۱\ ۳۲۷- ۳۲۸، رقم: ۱۰۲۷.

**تشريح**: رحمت مخته وي ددې مطلب دادی چې هر کله یو سړی دنیا ته مخ په اړولو سره د لمانځه په حالت کې د خپل پروردګار په مخکې ودریږي نو هغه وخت د هغه مخ ته د الله جل جلاله رحمت نازلیږي ځکه داسې مقدس او باعظمت موقع باندې لمونځ کونکې لپاره مناسب نه وي چې هغه په ډېرو سره بازی وکړي یا ددې قسم بل څه کار کولو سره د بې ادبې معامله وکړي چې د هغه په وجه الله تعالی د فضل او رحمت د نواز څخه محرومه سي.

## د سجدې د ځای پاکولو د پاره په خوله پوکل نه دي پکار

(۹۳۷): وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلاَمًا لَنَا يُقَالُ لَهُ أَفْلَحُ إِذَا سَجَدَ نَفَخَ فَقَالَ يَا أَفْلَحُ تَرِّبْ وَجْهَكَ. رواه الترمذي.

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ زموږ غلام ولیدی چې د هغه نوم افلح وو چې هغه به سجدې ته تلی نو پوه به یې کوی (چې خاوري لیري کړي) د دې په لیدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: اې افلح! خپل مخ په خاورو ولړه. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۲۲۰- ۲۲۱، رقم: ۳۸۱.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چې د سجدې ځای په پوه کولو سره مه پاکوئ بلکه پریږده چې مخ دې په خاورو ولړل سي ځکه چې په دربار الهي کې د حاضری پر وخت د

عجز او بيكسي د اظهار دا بهترينه ذريعه ده او په دې سره ډير زيات ثواب حاصليږي .

**پر تشو باندي لاسونه نيول د دوږخيانو د آرام صورت دی**

﴿۹۳۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلاِخْتِصَارُ فِي الصَّلاَةِ راحة أَهْلِ النَّارِ . رواه في شرح السنة .

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په لمانځه كي پر تشي لاس ايښودل د دوږخيانو د راحت صورت دی . شرح السنة

**تخريج** : البغوي في شرح السنة: ۳\ ۲۴۷– ۲۴۸، رقم: ۷۳۰.

**تشريح** : ددې باب په څلورم نمبر حديث د تشريح په څنګ كي د خصر او اختصار وضاحت سوی دی هلته دا هم ښودل سوي دي چي د حشر ميدان كي هر كله چي دوږخيان په ولاړه ولاړه ډير زيات تكليف محسوس كړي نو هغوی به پر خپلو تشو لاس په ايښودو سره ودريږي او همداسي به هغوی د څه وخت لپاره د ارام او سكون خواهش وكړي ځكه رسول الله ﷺ په لمانځه كي پر تشو لاس د ايښودو سره د دريدو منعه فرمايلې ده چي د دوږخيانو سره يې مشابهت نه وي .

**په لمانځه كي مار او لړم مړ كول**

﴿۹۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُقْتُلُوْا اْلأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلاَةِ الْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ . رواه احمد و ابوداؤد والترمذي و للنسائي معناه .

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :دوه تور په لمانځه كي وژنئ يعني مار او لړم . احمد ، ابوداؤد .ترمذي مګر نسائي ددې حديث مفهوم بيان كړی دی .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۲\ ۲۳۳، وابوداؤد ۱\ ۵۶۶، رقم: ۹۲۱ والترمذي ۲\ ۲۳۳، رقم: ۳۹۰ والنسائي ۳\۱۰، رقم: ۱۲۰۱.

**تشريح** : ابن ملك رحمة الله عليه فرمايي چي په داسي حالاتو كي هر كله چي د لمانځه كولو په وخت كي مار يا لړم مخته راسي نو د هغه په يو يا دوه واره وژل پكار دي ددې زيات نه دي

وهل پکار ځکه چي بيا به عمل کثير سي کم چي په هغه سره لمونځ فاسد کيږي په شرح منيه کي د ځينو مشائخو قول مذکور دی يعني په لمانځه کي د مار لړم د وژلود حکم په هغه صورت کي دی هر کله چي لمونځ کونکي ته ډير زيات يعني درې قدمه پرله پسې تلل نه وي او نه زيات مشغوليت وي يعني ددې ضرورت پيښ نسي او که يو لمونځ کونکي د مار يا لړم وژلو په غرض پرله پسې درې قدمه ځي يا پرله پسې درې واره حمله پر وکړي نو د هغه لمونځ فاسد کيږي ځکه چي دومره زيات تلل يا دومره مشغوليت اختيارول عمل کثير دی.

سرخسي رحمة الله عليه په مبسوط کي ذکر کړي دي پيا ېې ويلي دي چي بهتره داده چي په دې اړه دا فرق ونه کړل سي يا درې قدمه په تلو سره يا درې حملې کولو سره لمونځ نه فاسد کيږي ځکه چي د اوداسه ماتيدو په صورت کي د زيات تلو سهولت ورکړل سوی دی همداسي په دې مسئله کي هم سهولت ورکړل سوی دی مگر په تحقيقي طور سره صحيح خبره داده چي درې قدمه په تلو سره يا درې واره حمله کولو سره لمونځ نه فاسد کيږي.

البته دومره سهولت دی چي پر داسي موقع باندي هر کله چي مار يا لړم په لمانځه کي مخ ته راسي او د هغه وژل ضروري وي نو په داسي صورت کي د هغوی د وژلو لپاره لمونځ ماتول مباح دی څرنگه چي د مظلوم فرياد رسی يا ډوبيدونکي حالت او هلاکت څخه د بچ کيدو په وجه لمونځ ماتول مباح دی يعني که د يو سړي د چيت څخه د لوېدو يا په اور کي د لويدو يا په څاه وغيره کي د لويدو قوي خطره وي او نژدې ورسره يو سړی په لمانځه کي وي نو په دغه صورت کي لمونځ کونکی د هغه د ژغورلو کوښښ وکړي يا همداسي يو لمونځ کونکي ته د لمانځه په حالت کي د خپل يا ماسوا د خپل ځان څخه د يو شي د ضائع کيدو بيره وي او د هغه قيمت تر يو درهم پوري وي نو هغه ته د هغه شی د ساتني لپاره لمونځ ماتول جائز دي.

ددې حديث څخه په ښکاره دا معلومه سوه چي يوازي تورمار وژلای سې حالانکه داسي نه ده بلکه په حديث کي د تورمار تخصيص محض تغليبا سوی دی په هدايه کي ليکلي دي د هر قسم مارانو وژل جائز دی د تور مار تخصيص نسته.

## رسول الله ﷺ به د لمانځه په حالت کي دروازه خلاصول

﴿۹۴۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي تَطَوُّعًا

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ (په کور کي) نفل لمونځ کوی

وَالْبَابُ عَلَيْهِ مُغْلَقٌ فَجِئْتُ فَاسْتَفْتَحْتُ فَمَشٰى فَفَتَحَ لِي ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى مُصَلَّاهُ

او دروازه به يې بندول كله چي به زه كور ته راتلم نو رسول الله ﷺ به دروازه خلاصول بيا به مصلا ته ولاړى او په لمانځه كي به بوخت سو ،

وَذَكَرَتْ اَنَّ الْبَابَ كَانَ فِي الْقِبْلَةِ. رواه ابوداؤد والترمذي و روي النسائي نحوه

بي بي عائشة وايي دروازه د قبلې په لور وه .ابوداؤد، ترمذي او نسائي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٣١، ٢٣٤ وابوداؤد ١\٥٦٦، رقم: ٩٢٢ والترمذي ٢\٤٩٧، رقم: ٦٠١ والنسائي ٣\١١، رقم: ١٢٠٥.

**تشريح**: مطلب دادى چي دروازه د قبلې خوا ته وه ځكه رسول الله ﷺ د دروازې خلاصولو لپاره تشريف راوړ نو د رسول الله ﷺ مخ مبارك به د قبلې خوا ته نه ګرځيدلو ځكه چي قباء مخ ته وه پيا چي مصلي ته به بېرته دوهم وار تشريف راوړلو نو په وروسته به راتلو چي شاېې د قبلې خوا ته نه سي .

علماء ليكي چي د رسول الله ﷺ حجره مباركه زياته پراخه او عريضه نه وه بلكه ډيره تنګه وه ځكه د يوه قدم څخه زيات تلل به نه پريوتل چي عمل كثير دى مګر ددې باوجود يو اشكال بيا هم واقع كيږي چي دوه قدمه تلل دروازه خلاصول او بيا مصلي ته واپس راتلل دا ټول په يوځاي كيدو سره عمل كثير كيږي ددې جواب دادى چي دا افعال به پرله پسې مسلسل نه وو چي عمل كثير وسي .

## په لمانځه كي اودس ماتېدل

﴿۹۶۱﴾: وَعَنْ طَلْقِ ابْنِ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت طلق بن علي ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي

فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيَنْصَرِفْ وَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيُعِدِ الصَّلٰوةَ . رواه ابوداؤد و روي الترمذي مع زيادة ونقصان.

په لمانځه كي د يو چا هواء خارج سي نو هغه ته پكار ده چي ولاړ سي اودس وكړي او دوهم ځل لمونځ وكړي، ابوداؤد .

**تخریج** : سنن ابي داؤد ۱\۱۴۱، رقم: ۲۰۵، والترمذي ۳\۴۶۹، رقم: ۱۱۶۶.

**تشریح** : لکه څرنګه چي ددې حدیث څخه معلومه سوه که د لمانځه په حالت کي د چا باد ووځي نو هغه ته اودس کول دوباره لمونځ کول افضل دی مګر د فقهي د شرائطو مطابق که یو سړی په اودي کولو سره لمونځ د سره نه وکړي بلکه کم ځاي چي بې لمونځ پرې ایشی وو پر هغه ځاي د پاته لمونځ پیل وکړي نو جائز دی د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه دا مذهب دی او هغوی ددې حدیث څخه دا ثابته کړې ده مګر امام شافعي رحمة الله علیه امام مالک رحمة الله علیه او امام احمد رحمة الله علیه په نزد دا جائز نه دی . دا مسئله خو خپله د باد وتلو ده که یو سړی د لمانځه په حالت کي قصدا باد وباسي نو پر هغه دوهم وار اودس کول او لمونځ د سره کول واجب دي .

﴿۹۴۲﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَحْدَثَ أَحَدُكُمْ فِيْ صَلَاتِهِ فَلْيَأْخُذْ بِأَنْفِهِ ثُمَّ لِيَنْصَرِفْ . رواه أبو داود

د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي په تاسو کي د یو چا اودس مات سي نو هغه دي خپل پزه ونیسي او او داسه ته دي ولاړ سي . (چي خلک پوه سي چي د اوداسه ضرورت ورته سوی دی) ابو داؤد .

**تخریج** : سنن ابي داؤد ۱\۶۶۶، رقم: ۱۱۱۴.

**تشریح** : مطلب دادی چي د لمانځه په حالت کي که د یو سړي باد پرې سي نو هغه ته پکار ده چي په پزه نیولو سره اوداسه ته ولاړ سي چي خلک داګمان وکړي چي د پزي څخه بې وینه راغلې د پزي نیولو حکم ددې لپاره سوی دی چي داسي سړی پر موقعه باندي د شرمندګي څخه بچ سي ځکه چي دا ښکاره کول چي ددې سړي باد ووځي په عام طور سره د شرمندګی باعث جوړیږي بیا خلک ددې په باره کي څه خبري نه کوي بلکه دا وګڼري چي د هغه د پزي څخه وینې راغلې چي د هغه په وجه د لمانځه څخه دباندي ووتی .

ځکه علماء لیکي که د یو سړي څخه داسي کار وسي چي د خلکو په نظر کي معیوب او د اعتراض وړ وي نو هغه ته پکار ده چي هغه کار پټ وساتي او په خلکو باندي بې نه کي ښکاره چي خلک بې په بې عزتي پسي نه سي او نه د هغه خوا ته یو عیب منسوخ سي کم چي هغه پټول غواړي او د هغه دا پټول په دروغ کي نه شامليږي بلکه د معاریض د قسم څخه به هم نه وي او

معارض ځخه داسي واقعه بيانول دي چي د واقعې پوره وضاحت نه وي داسي انداز ته تعريض وايي .

﴿۹۴۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا

د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :هر کله چي

اَحْدَثَ اَحَدُكُمْ وَقَدْ جَلَسَ فِيْ آخِرِ صَلٰوتِهٖ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ فَقَدْ جَازَتْ صَلٰوتُهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث اسناده ليس بالقوي و قد اضطربوا في اسناده .

په تاسو کي د يو چا اودس مات سي او هغه د لمانځه په آخري ناسته کي وي او سلام يې نه وي گرزولی نو د هغه لمونځ پوره سو . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۲۶۱، رقم: ۴۰۸.

**تشريح**: : د حديث په پورتني صورت کي د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي که يو سړی په قصده اودس مات کړي نو د هغه لمونځ پوره کيږي ځکه چي د هغوی په نزد د لمونځ کونکي د خپل ځه فعل په ذريعه د لمانځه ځخه وتل ضروري دي يعني که يو سړی د لمانځه پوره ارکان د اداکولو وروسته لمونځ په مکمل طور سره ختمول غواړي نو د هغه لپاره ضروري ده چي ځه داسي کار اختيار کي چي د لمانځه د خاتمې ذريعه جوړه سي لکه ځرنګه چي سلام ګرځول دي .

نو په دې خبره پوه سی چي د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد لمونځ يوازي د سلام په ذريعه ختمول فرض دی بلکه يو سړی که د لمانځه د ټولو ارکانو وروسته د سلام ګرځولو پر ځای ځه دوهم کار وکړي چي د لمانځه منافي وي نو د هغه لمونځ پوره کيږي ځکه چي هغه د لمانځه د ارکان پوره کولو وروسته داسي کار کړی دی چي دلمانځه د خاتمې باعث جوړيږي اګر که هغه به د واجب په پرېښودو ګناه کار وي خو فرض به ادا سي ځکه چي د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد د سلام په ذريعه لمونځ پوره کول واجب دی صاحبين يعني امام ابويوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په نزد قصدا اودس ماتول شرط نه دی بلکه دا حضرات فرمايي چي مذکوره صورت کي د چا اودس خپله مات سي نو بيا هم د هغه لمونځ پوره کيږي يعني لمونځ پوره ادا کيږي .

نو د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد دا حديث قصدا اودس ماتولو باندي محمول دی او د صاحبين په نزد مطلق دی خو څوک قصدا اودس مات کي يا خپله يې اودس مات سي داحديث حنفيه خو خصوصا د صاحبين د مذهب مويد دی بخلاف د امام شافعي رحمة الله عليه چي د هغوی په نزد لمونځ يوازي د سلام په ذريعه پوره کول فرض دی .

حديث مضطرب هغه حديث ته وايي چي په مختلفو الفاظو او مختلفو وجهو سره نقل سوی وي او دا شی د حديث د ضعف علامت دی ځکه چي د حديث داسي روايت کيدل ددې خبري دليل دی چي د حديث روايتونه حديث په پوره طور سره ياد نه سي پاته . ملا علي قاري دا حديث ضعف او مظطرب نه دی تسليم کړي بلکه هغوی وويل چي دا حديث په مختلفو طريقو سره روايت دی چي امام طحاوي نقل کړی دی او اصول حديث کي دا خبره مسلم ده چي د ضعيف حديث په متعدد طرق سره روايت کيدل د هغه د حسن قريب کوي .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

**د رسول الله ﷺ يوه پېښه**

﴿۹۲۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ فَلَمَّا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ لمانځه ته تشريف راوړی کله چي

كَبَّرَ انْصَرَفَ وَأَوْمَأَ إِلَيْهِمْ أَنْ كَمَا كُنْتُمْ ثُمَّ خَرَجَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ جَاءَ وَرَأْسُهُ

اقامت وسو نو خپلو صحابوو ته يې مخ راوګرزوی او په اشاره سره يې وويل چي پر خپل خپل ځای ودريږئ، په دې اشاره کولو سره رسول الله ﷺ د مسجد څخه ووتی غسل يې وکړی او په داسي حال کي راغلی چي د سر مبارک څخه يې

يَقْطُرُ فَصَلَّى بِهِمْ فَلَمَّا صَلَّى قَالَ إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا فَنَسِيتُ أَنْ أَغْتَسِلَ . رواه أحمد . وروى مالك عن عطاء بن يسار نحوه مرسلا .

د اوبو څاڅکي څڅېدل او صحابه کرامو ته يې لمونځ ورکړ ، د لمانځه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : زه جنب وم ، غسل کول راڅخه هير سوی وو ، احمد او مالک .

**تخريج :** الامام احمد في مسنده ۲\۴۴۸.

## د ګرمۍ څخه د ساتنې لپاره د حضرت جابر رضي الله عنه طريقه

﴿۹۴۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنْتُ أُصَلِّي الظُّهْرَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې ما به د ماپښين لمونځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره کوی

فَآخُذُ قَبْضَةً مِّنَ الْحَصٰى لِتَبْرُدَ فِيْ كَفِّيْ أَضَعُهَا لِجَبْهَتِيْ أَسْجُدُ عَلَيْهَا لِشِدَّةِ الْحَرِّ. رواه أبو داود وروى النسائي نحوه.

او د شګو يو ډک موټ به مې ساتی چې پر هغو سجده وکړم او د ګرمي مځکې د ګرمۍ څخه ځان وساتم. ابوداؤد، نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۲۸۲، رقم: ۳۹۹ والنسائي ۲\۲۰۴، رقم: ۱۰۸۰.

**تشريح**: د دې حديث څخه دا خبره څرګنديږي چې په لمانځه کې دومره اندازه کار کول معاف دي او دومره کار عمل کثير هم نه دی.

## په لمانځه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د شيطان يو عجيبه معامله

﴿۹۴۶﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم لمونځ کوی

فَسَمِعْنَاهُ يَقُولُ أَعُوذُ بِاللهِ مِنْكَ ثُمَّ قَالَ أَلْعَنُكَ بِلَعْنَةِ اللهِ ثَلاَثًا وَبَسَطَ يَدَهُ

چې موږ دا ځيني واوريدل: (زه ستا څخه د خلاصون لپاره د الله جل جلاله پناه غواړم) بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: (پر تا دې د الله لعنت وي) دا الفاظ رسول الله صلی الله علیه وسلم درې ځله وويل بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم مخ په وړاندې سو

كَأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ شَيْئًا فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الصَّلاَةِ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ سَمِعْنَاكَ

لکه چې يو شی نيول غواړي، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمانځه څخه فارغ سو نو موږ عرض وکړ اې دالله رسوله! موږ ستا څخه په لمانځه کې داسې خبرې واوريدلې

تَقُولُ فِي الصَّلاَةِ شَيْئًا لَمْ نَسْمَعْكَ تَقُولُهُ قَبْلَ ذٰلِكَ وَرَأَيْنَاكَ بَسَطْتَ يَدَكَ

چي تا په لمانځه کي يو ځه ويل او تر دې مخکي هم هيڅکله او رېدلي نه وي او موږ ته وليدلې چي لاس دي وړاندي کړی

قَالَ إِنَّ عَدُوَّ اللّٰهِ إِبْلِيسَ جَاءَ بِشِهَابٍ مِنْ نَارٍ لِيَجْعَلَهُ فِي وَجْهِي فَقُلْتُ أَعُوذُ

رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله دښمن شيطان د اور د سکروټو سره راغلی وو چي هغه زما په مخ کي واچوي نو ما وويل چي زه ستا څخه د الله ﷻ په ذريعه پناه غواړم

بِاللّٰهِ مِنْكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قُلْتُ أَلْعَنُكَ بِلَعْنَةِ اللّٰهِ التَّامَّةِ فَلَمْ يَسْتَأْخِرْ

درې ځله ما دا الفاظ وويل بيا ما وويل زه پر تا پوره لعنت وايم د خدای لعنت درې ځله، مگر هغه زما د مخه څخه ليري نه سو

ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ أَرَدْتُ أَخْذَهُ وَاللّٰهِ لَوْلَا دَعْوَةُ أَخِينَا سُلَيْمَانَ لَأَصْبَحَ مُوثَقًا

بيا ما د هغه د نيولو اراده وکړه قسم په خدای که زموږ د ورور سليمان عليه السلام دعاء نه وای نو سهار به شيطان تړل سوی وای

يَلْعَبُ بِهِ وِلْدَانُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ. رواه مسلم

او د مديني ماشومانو به ورباندي لوبي کولای. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۱/ ۳۸۵، رقم: ۴۰- ۵۴۲.

**تشريح**: ددې باب په نهم نمبر حديث د تشريح په ضمن کي ددې وضاحت سوی دی چي حضرت سليمان عليه السلام پيريانو د تابع کولو او پر هغوی د تصرف کولو لپاره دعا غوښتې وه چي قبوله سوه او جنات د هغوی فرمانبردار سوه رسول الله ﷺ نو په دې سوچ سره چي په دې معامله کي د حضرت سليمان عليه السلام امتيازي حيثيت پريوځي رسول الله ﷺ پيری خپل تابع کول نه وغوښتل ددې حديث څخه دا خبره په پوره قوت سره ثابتيږي چي شيطان يقينا د جنات د قوم څخه نه دی.

## په لمانځه کي په اشاره سره د سلام جواب ورکولو مسئله

﴿۹۴۷﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ إِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ وَهُوَ يُصَلِّي

د نافع رضي الله عنه څخه روايت دی چي عبد الله بن عمر رضي الله عنه د يو سړي په خوا کي تير سو چي هغه لمونځ کوی

فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَرَدَّ الرَّجُلُ كَلَامًا فَرَجَعَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللهِ بْنِ عُمَرَ فَقَالَ لَهُ إِذَا

هغه ته يې سلام وکړ هغه په خوله د سلام جواب ورکړ، عبدالله بن عمر رضي الله عنه بيا هغه ته ورغلی او هغه ته يې وويل هر کله چې

سُلِّمَ عَلَى أَحَدِكُمْ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَلَا يَتَكَلَّمْ وَلْيُشِرْ بِيَدِهِ. رواه مالك.

تاسو ته د لمانځه په حالت کې سلام وکړل سي نو د هغه په خوله جواب مه ورکوئ بلکه په لاس سره اشاره کوئ. مالک.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱٦۸، رقم: ۷٦.

**تشريح**: په دې باب کې د ابن عمر رضي الله عنه يو روايت تير سوی دی د هغه د تشريح په ضمن کې د لمانځه په حالت کې د سر يا لاس په اشارې سره د جواب ورکولو په مسئله کې وضاحت سوی دی دا حکم مخکښې وو وروسته په اشاره سره هم جواب ورکول منسوخ سوی دی.

==========

# بَابُ السَّهْوِ

## د سجده سهو بيان

د لمانځه سنتونه او مستحبات که پاته سي نو په هغه سره په لمانځه کي څه خرابي نه راځي يعني لمونځ صحيح کيږي او د لمانځه د فرضونو څخه که يو شی په هيره سره يا په قصد سره پاته سي نو لمونځ فاسد کيږي او د هغه هيڅ يو تدارک نسته چي د هغه په وجه دلمانځه دوهم وار کول ضروري کيږي ، د لمانځه د واجباتو څخه که يو شی په قصد سره پرېښودل سي نو د هغه هم تدارک نسي کيدای او لمونځ فاسديږي ، او که د لمانځه د واجباتو څخه يو شی په قصد سره نه بلکه په هيره سره پاته سي نو د هغه تدارک کيدای سي او هغه تدارک دادی چي په آخري ناسته کي د التحيات ويلو څخه وروسته راسته خوا ته يو وار سلام ګرځولو سره دوې سجدې وکړي او د سجدې وروسته بيا قعده (ناسته) وکړي او په التحيات، درود شريف او دعاء (اللهم ربنا اتنا .....) ويلو سره سلام وګرځوي او دغه سجدو ته سجده سهوه ويل کيږي .

په دې خبره هم پوه سئ چي د رسول الله ﷺ په هغه اقوال کي چي د شرعي شيانو خبر ورکولو او د ديني احکامو سره متعلق دي نه خو کله سهوه سوې ده او نه دا ممکن ده، هو د رسول الله ﷺ په افعالو کي به سهوه کېدل هغه هم په دې حکمت سره چي د امت خلک ددا ډول سهوو مسائل زده کړي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### در کعتونو د شمير د هيري په صورت کي د سجده سهوي حکم

﴿۹۴۸﴾:وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ يُصَلِّي جَاءَهُ الشَّيْطَانُ فَلَبَسَ عَلَيْهِ حَتَّى لاَ يَدْرِيَ كَمْ

کله چي په تاسي کي يو څوک د لمانځه لپاره ودريږي نو شيطان راسي او هغه په شک کي اچوي تر دې چي هغه ته ياد نه سي چي څومره

صَلَّى فَإِذَا وَجَدَ ذَلِكَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ . متفق عليه

رکعته يې وکړل چې د اسې حالت د رته پېښ سي نو کښېنئ دوې سجدې وکړئ يعني سجده سهو . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۰۴، رقم: ۱۲۳۲ ومسلم: ۱\۳۹۸، رقم: ۸۲-۳۸۹.

**تشريح**: په حديث کې چې کوم صورت بيان سوی دی هغه د سهوي سره متعلق نه دي بلکه د شک صورت دی او د شک او سهو په مينځ کې دا فرق دي چې په سهو کې د يو جانب تعين وي (چې فلانی شی هير سو) او په شک کې تردد وي چې ايا دا صحيح دي يا هغه او د شيطان ملعون څه مجال وو چې هغه رسول الله ﷺ په شک او شبه کې اخته کړی دی ، هو غلبه استغراق او آخرت ته د بې پايه توجه په وجه رسول الله ﷺ څخه به سهوه کېدل ، د سجده سوه واجب کېدو په اړه د شک او سهو دواړو يو ډول حکم دی ، په دې مسئله کې پوره وضاحت د راتلونکي حديث په تشريح کې وګورئ

﴿۹۴۹﴾: وَعَنْ عَطَاءِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ

حضرت عطاء بن يسار د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلَمْ يَدْرِ كَمْ صَلَّى ثَلَاثًا أَمْ

هر کله چې تاسو ته په لمانځه کې شک پيدا سي چې څو مره لمونځ يې کړی دی يعني درې که

أَرْبَعًا فَلْيَطْرَحِ الشَّكَّ وَلْيَبْنِ عَلَى مَا اسْتَيْقَنَ ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ

څلور رکعته نو خپل شک دې ليري کړي او د يو خاص شمير يقين دې وکړي او بيا دې د هغه يقين پر بناء لمونځ پوره کړي بيا دې دوې سجدې وکړي مخکې تر دې چې

يُسَلِّمَ فَإِنْ كَانَ صَلَّى خَمْسًا شَفَعْنَ لَهُ صَلَاتَهُ وَإِنْ كَانَ صَلَّى إِتْمَامًا لِأَرْبَعٍ

سلام وګرځوي که هغه پنځه رکعته کړي وي نو دا دوې سجدې به هغه شپږ جوړ کړي او که پوره څلور يې کړي وي

كَانَتَا تَرْغِيمًا لِلشَّيْطَانِ. رواه مسلم و رواه مالك عن عطاء مرسلا وفي

روايته شفعا بهاتين السجدتين.

نو دا سجدې به د شيطان د ذلت باعث سي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۴۰۰، رقم: ۸۸- ۵۷۱ والامام مالک في الموطا ۱\۹۵، رقم: ۶۲.

**تشريح**: په دې صورت کي مسئله داسي ده چي يو څوک لمونځ کوي او د لمانځه په دوران کي په شک کي اخته سي او لمونځ کونکي ته دا خبره ياد نه وي چي هغه څو رکعته کړي دي نو هغه ته پکار ده چي هغه د کم عدد تعين وکړي او د هغه غالب گمان کولو سره دي لمونځ وکړي، د مثال په توگه هغه ته دا شبهه وي چي معلومه نه ده چي ما درې رکعته کړي دي يا څلور، نو په دې صورت کي هغه ته د درو رکعتو تعين کولو سره لمونځ پوره کول پکار دي، بيا په آخري قعده کي د التحيات ويلو څخه وروسته د سلام گرځولو څخه مخکي راسته خوا ته د سلام گرځولو سره د سهوي دوې سجدې کول ورته پکار دي، د بخاري په روايت کي د سلام گرځولو څخه مخکي د سجده سهو کولو قيد نسته په دې وجه د امامانو په نزد دلته په دې خبره کي اختلاف دی چي سجده د سلام گرځولو څخه مخکي کول پکار دي يا د سلام گرځولو څخه وروسته، د دې مسئلې تفصيل به موږ وروسته د يو حديث د تشريح په څنگ کي بيان کړو.

په حديث کي د سجده سهو گټه هم ښودل سوې ده، فرمايل سوي دي که يو سړی په پورتني صورت کي د درو رکعتو په تعين کولو سره يو رکعت نور وکړي حال دا چي هغه په حقيقت کي څلور رکعته مخکي کړي وه همداسي د هغه پنځه رکعته سول نو دا پنځه رکعته به د هغه دوو سجدو په وجه د هغه لمونځ شفع (يعني جفت) کړي، ځکه چي هغه د دوو سجدو په يو ځای کېدو سره به د شپږ رکعته په حکم کي سي او که هغه په حقيقت کي درې رکعته کړي وي او د سهوي په صورت کي هغه د درو په تعين کولو سره يو رکعت نور وکړ او د هغه څلور رکعته پوره سول نو د هغه دواړې سجدې به د شيطان د ذلت سبب جوړې سي يعني په دې صورت کي هر کله چي هغه څلور رکعته کړي دي نو د دوو سجدو ضرورت نه وو چي هغه لمونځ جفت کړي څرنگه چي په اول (يعني د پنځه رکعتو کولو په صورت) کي د هغه دواړو سجدو ضرورت وو، مگر د دې دواړو سجدو چي په ظاهره زياتي معلومېږي دا گټه سوه چي په دې سره د شيطان ذلت او ناکامي وسول ځکه چي د شيطان مقصد خو دا وو چي هغه لمونځ کونکی په شک او شبهې کي اخته کولو سره هغه د عبادت څخه منعه کړي، حال دا چي لمونځ کونکی د هغه برعکس په نور کولو سره د عبادت د پرېښودو پر ځای په هغه کي نور زياتوب وکړ او زياتوب

يقيني خبره ده چي د شيطان د ناكامۍ او نامرادۍ باعث دی، د دې حديث څخه په ظاهره دا معلوميږي چي د شک په صورت کي اقل (کم) اختيارپکار دي ، پر تحری (غالب گمان) باندي عمل نه دی کول پکار ، د جمهورو امامانو دا مذهب دی، د امام ترمذي رحمة الله عليه قول دادی چي په اهل علم کي د ځينو حضراتو مذهب دادی چي د شک په صورت کي لمونځ دوهم وار کول پکار دي يعني که د لمانځه په مينځ کي يو چا ته د رکعتونو د شمير په اړه شک پيدا سي نو هغه ته پکار ده چي هغه لمونځ د سره وکړي .

په دې مسئله د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب حاصل دادی که يو سړي ته په لمانځه کي شک سي چي څومره رکعتونه يې کړي دي که د هغه سړي عادت د شک کولو نه وي نو هغه ته پکار ده چي بيا د سره لمونځ وکړي او که د هغه سړي عادت د شک کولو وي نو پر خپل غالب گمان باندي دي عمل وکړي يعني څومره رکعتونه چي هغه ته په غالب گمان سره ياد وي نو هغومره رکعتونه دي وگڼي چي سوي دي او که غالب گمان يې يوې خوا ته نه وي نو کم عدد دي اختيار کړي او په يو رکعت نور کولو سره دي لمونځ پوره کړي او بيا دي سجده سهو وکړي .

په دې خبره هم پوه سئ چي پر غالب گمان باندي د عمل کولو وجه داده چي په شريعت کي د غالب گمان اختيارولو اصل موجود دی لکه يو سړی په داسي ځای کي لمونځ کول غواړي چي هلته هغه ته د قبلې خوا نسي معلوميدلای نو د هغه لپاره حکم دی چي هغه د کومي خوا په باره کي غالب گمان وکړي چي دې خوا ته قبله ده نو هغه خوا ته په مخ کولو سره دي لمونځ وکړي د هغه لمونځ به وسي، د غالب گمان اختيارولو په اړه حديثونه هم نقل دي ، په صحيحينو کي د ابن مسعود رضي الله عنه يو روايت دی چي د هغه الفاظ دادي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي په تاسو کي يو چا ته په لمانځه کي شک واقع سي نو هغه ته پکار ده چي د صحيح رايي قائمولو سره دي لمونځ پوره کړي ، دا حديث شمني رحمة الله عليه هم په شرح نقايه کي نقل کړی دی او په جامع الاصول کي هم د نسائي څخه يو حديث پر تحری باندي د عمل کولو د صحيح کېدو په اړه منقول دی .

امام محمد رحمة الله عليه په خپل کتاب مؤطا کي د تحری د افاديت په اړه ويلو سره چي د تحری په اړه ډير آثار وارد دي يوه ډيره ښه خبره يې دا کړې ده چي که داسي ونه سي يعني که تحری قابل قبول ونه گرځول سي نو شک او شبهي څخه د خلاصون تر لاسه کولو لپاره به ډير مشکل وي او د هر شک او شبهې په صورت کي اعاده د لوی مصيبت او پريشانۍ سبب جوړيږي .

شيخ عبدالحق دهلوي رحمة الله عليه دلته د پورتنۍ مسئلې په تجزيه کولو سره ويلي دي

چي په داسي صورت کي د کلام حاصل دادی چي ددې مسئلې په اړه درې حديثونه منقول دي د لومړني حديث مطلب دادی چي په لمانځه کي کله هم يو چا ته شک واقع سي نو هغه دي لمونځ د سره وکړي ، د دوهم حديث مطلب دادی چي هر کله يو چا ته په لمانځه کي شک واقع سي نو هغه ته پکار ده چي هغه د صحيح خبر په تر لاسه کولو کي تحری (فکر) وکړي او پر غالب ګمان باندي عمل وکړي، د دريم حديث مفهوم دادی چي هر کله په لمانځه کي شک واقع سي نو پر يقين باندي عمل کول پکار دي، يعني کومي خوا ته چي يقين وي پر هغه دي عمل وکړي .

امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه دا درې سره حديثونه په خپل مذهب کي يو ځای کړي دي داسي چي هغوی د لومړني حديث په لومړی ځل د شک واقع کېدو پر صورت باندي محمول کړی دی ، دوهم حديث پر يوې خوا باندي د غالب ګمان کېدو پر صورت باندي محمول کړی دی او دريم حديث يوې خوا ته پر غالب ګمان نه کېدو باندي محمول کړی دی .

شيخ عبدالحق دهلوي رحمة الله عليه فرمايي: د امام اعظم رحمة الله عليه د مذهب کمال جامعيت او د ډېر محقق کېدو دليل دی .

﴿۹۵۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ لمونځ وکړی

الظُّهْرَ خَمْسًا فَقِيْلَ لَهُ اَزِيْدَ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ وَمَا ذَاكَ قَالُوا صَلَّيْتَ خَمْسًا

يو ماپښين پنځه رکعته ، د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول ايا په لمانځه کي زياتوب سوی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : څنګه؟ صحابه کرامو وويل: تاسو پنځه رکعته کړي دي ،

فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ إِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ اَنْسَى كَمَا

رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو څخه وروسته دوې سجدې وکړې، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو د اعتراض په اوريدو سره وفرمايل : زه هم ستاسو په ډول يو انسان يم څنګه چي ستاسو څخه هيره کيږي

تَنْسَوْنَ فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي وَإِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ

همداسي زما څخه هم هيره کيږي هر کله چي زما څخه هير سي نو تاسو يې را يادوی او په تاسو کي چي چا ته په لمانځه کي شک پيدا سي نو هغه دي د يوې صحيح رايې قائمولو قصد وکړي

فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ ثُمَّ لِيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ . متفق عليه

او درايي پر بنا دي لمونځ پوره کړي بيا دي سلام وګرځوي دوې سجدې دي وکړي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۵۰۳- ۵۰۴، رقم: ۴۰۱، ومسلم ۱\ ۴۰۰، رقم: ۸۹- ۵۷۲.

**تشريح**: په دې حديث کي پر کم باندي د عمل کولو نه دي ويل سوي که څه هم مراد دادی که چيري تحری ګټه ور نه کړي يعني د يو شمير په اړه غالب ګمان ونسي نو د کم شمير په اختيارولو سره لمونځ دي پوره کړي ، شافعيان د تحری قائل نه دي ځکه هغوی هم د دې حديث الفاظ (فليتحر الصواب) څخه مراد د کم شمير اختيارول اخلي .

د حنفيه په نزد د پنځو رکعتو اداء کولو په صورت کي د مسئلې تفصيل دی د هغوی مذهب دادی که يو سړی په اخري قعده کي په هيره سره د پنځم رکعت لپاره ودريږي د پنځم رکعت د سجدې کولو مخکي هغه ته ياد سي نو هغه ته پکار ده چي سمدستي کښيني او په التحيات ويلو سره سجده سهو وکړي که د پنځم رکعت سجده يې کړې وي نو بيا نسي کښينستلای او د هغه دا لمونځ که د فرض په نيت سره يې کوی فرض نه ادا کيږي بلکه نفل به سي او هغه ته به اختيار وي چي دی په يوه رکعت سره دوهم رکعت بل يو ځای کړي ځکه چي د مازديګر او د سهار د لمانځه وروسته نفل مکروه دي او دا رکعتونه فرض پاته نسي بلکه نفل سي داسي دی لکه چي د فرض څخه مخکي نفل سوي دي او په دې کي څه مکروه والی نسته د ماښام په فرض کي دا رکعت کافي دی دوهم رکعت ورسره نسي يو ځاي کولای کنه پنځه رکعته به سي او په نفل کي طاق رکعتونه منقول نه دي او په دې صورت کي د سجده سهو ضرورت نسته .

دا صورت خو په اخري قعده کي د ناستي پرته د پنځم رکعت لپاره د ولاړي وو که يو سړی په اخري قعده کي د التحيات ويلو په اندازه په ناستي سره د سلام ګرځولو مخکي د پنځم رکعت لپاره ودريږي که هغه په پنځم رکعت کي سجده نه وکړي نو سمدستي دي کښيني او د سلام په ادا کولو کي چي واجب وو زنډ وسو ځکه نو سجده سهو دي وکړي او که د پنځم رکعت سجدې کولو وروسته ورته ياد سو نو هغه ته پکار ده چي هغه اوس نه کښيني بلکه يو رکعت دي ورسره بل يو ځاي کړي چي دا پنځم رکعت ضائع نسي او که يو رکعت ورسره يو ځاي نه کړي بلکه د پنځو رکعتو وروسته سلام وګرځوي بيا هم جائز دی خو يو ځای کول غوره دي په دې صورت کي د هغه رکعتونه که د فرض په نيت يې کړي يي نو فرض به ادا نه سي نفل به وي د مازديګر او سهار په فرض کي هم دوهم رکعت يو ځای کولای سي ځکه چي د مازديګر او سهار د فرض

وروسته په قصده نفل کول مکروه دي او که په هیره یې وکړي نو څه پرواه نه لري په دې صورت کي د فرض وروسته چي کوم رکعتونه یې کړي دي دا د هغه مؤکده سنتو قائم مقام نسي کیداي کوم چي د فرض وروسته د ماپښین، ماښام او ماخستن وخت مسنون دی ځکه چي ددې سنتو تحریمه نه ادا کول د رسول الله ﷺ څخه منقول دي، دا حدیث پر دې خبره محمول دی چي رسول الله ﷺ د څلورو رکعتونو وروسته په آخري قعده کي د ناستي سره بیا وروسته د رکعت لپاره ولاړ سوی وو ددې حدیث څخه په ښکاره دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ په پنځم رکعت سره شپږم رکعت نه وو یو ځای کړی او یوازي پر سجده سهو باندي یې اکتفاء وکړل څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دی ځکه دا به وویل سي چي دلته دا احتمال دی چي رسول الله ﷺ به د بیان جواز له کبله داسي کړي وي .

﴿۹۵۱﴾: وَعَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت ابن سیرین[1] د ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ موږ ته لمونځ راکړی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِحْدَى صَلاَتَيِ الْعَشِيِّ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ قد سَمَّاهَا أَبُو هُرَيْرَةَ

د ماپښین یا مازدیګر په لمونځونو کي یو لمونځ چي د هغه نوم ابوهریرة رضي الله عنه ښودلی وو

وَلٰكِنْ نَسِيْتُ أَنَا قَالَ فَصَلّٰى بِنَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ إِلٰى خَشَبَةٍ مَعْرُوْضَةٍ

او زما څخه هیر دی او د دوو رکعتو وروسته رسول الله ﷺ سلام وګرځوی او د هغه لرګي په مرسته ودریدی چي په مسجد کي لګېدلی وو ،

فِي الْمَسْجِدِ فَاتَّكَأَ عَلَيْهَا كَأَنَّهُ غَضْبَانُ وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى وَشَبَّكَ

د رسول الله ﷺ د حالت څخه څرګنده وه چي غضب ناک دی ، رسول الله ﷺ خپل راسته لاس په چپه لاس کي ورکړ او په ګوتو کي یې ګوتي واچولې

---

[1] – د نوموړي نوم محمد او کنیت یې ابوبکر دی ، د انس بن مالک رضي الله عنه آزاد سوی غلام دی ، دیرش اولاده یې وه چي د هغه په ژوند کي وفات سول یوازي یو زوی عبدالله بن محمد سیرین ژوندی وو ، د (۷۷) کالو په عمر په کال (۱۱۰ھ) کي وفات سوی دی .

بَيْنَ أَصَابِعِهِ وَوَضَعَ خَدَّهُ الْأَيْمَنَ عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرٰى وَخَرَجَتْ سَرْعَانُ

او د چپه لاس پر شا يې خپل راسته باړخو کنښېنودی او تلواري خلک چې د لمانځه څخه سمدستي تلل په ولاړېدو سره

الْقَوْمِ مِنْ أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ فَقَالُوْا قُصِرَتِ الصَّلَاةُ وَفِي الْقَوْمِ أَبُوْ بَكْرٍ وَعُمَرُ

د مسجد د دروازې څخه د باندي ووتل، صحابه کرامو په خپلو کي وويل ايا په لمانځه کي کمي راغلې؟ په مسجد کي چي کوم خلک وه په هغو کي ابوبکر رضی اللہ عنہ او عمر رضی اللہ عنہ هم وه

فَهَابَاهُ أَنْ يُكَلِّمَاهُ وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ فِيْ يَدَيْهِ طُوْلٌ يُقَالُ لَهُ ذُو الْيَدَيْنِ قَالَ يَا

هغوی دواړو ته د رسول الله ﷺ څخه په پوښتنه کولو کي بيره څرګنده سوه، په خلکو کي يو سړی وو چي د هغه لاسونه اوږده وه او هغه ته به يې ذوالیدين وايه، هغه وويل: اې

رَسُوْلَ اللهِ أَنَسِيْتَ أَمْ قُصِرَتِ الصَّلَاةُ قَالَ لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ فَقَالَ أَكَمَا

دالله رسوله! ايا په لمانځه کي کمي سوې ده يا ستاسو څخه هيره سوې ده، رسول الله ﷺ وفرمايل: نه زما څخه هيره سوې ده او نه په لمانځه کي کمي سوې ده، د دې وروسته رسول الله ﷺ صحابه مخاطب کړل او وه يې فرمايل:

يَقُوْلُ ذُو الْيَدَيْنِ؟ فَقَالُوْا نَعَمْ. فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى مَا تَرَكَ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ

ايا ذوالیدين رښتيا وايي؟ او ستاسو هم دا خيال دی صحابه کرامو عرض وکړ، هو، اې دالله رسوله! ذوالیدين سم وايي، رسول الله ﷺ مصلا ته ورغلی او پاته لمونځ يې ورکړ بيا يې سلام وګرځوی بيا يې الله اکبر ووايه

وَسَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثْلَ

او د لمانځه د سجدې په ډول بلکه د هغې څخه لږ اوږده سجده يې وکړل بيا يې سر پورته کړ او الله اکبر يې ووايه، بيا يې الله اکبر ووايه او سجده يې وکړه په مثل

سُجُوْدِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ فَرُبَّمَا سَأَلُوْهُ ثُمَّ سَلَّمَ فَيَقُوْلُ نُبِّئْتُ أَنَّ

د لمانځه د سجدې او بلكي تر هغې هم اوږده، بيا يې سر را پورته كړ او الله اكبر يې ووايه، د راوي ابن سيرين څخه خلكو پوښتنه وكړه ايا تر دې وروسته رسول الله ﷺ سلام وګرځوى؟ ابن سيرين به هر ځل په جواب كي دا ويل ما ته دا خبر را رسيدلى دى چي

عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ ثُمَّ سَلَّمَ. متفق عليه، ولفظه للبخاري وفي أخرى لهما فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم بدل لم أنس ولم تقصر كل ذلك لم يكن فقال قد كان بعض ذلك يا رسول الله.

عمران بن حصين دا وويل چي بيا رسول الله ﷺ سلام وګرزوي. بخاري او مسلم، دا الفاظ د بخاري دي د بخاري او مسلم په يو بل روايت كي دا دي چي رسول الله ﷺ د (ولم انس ولم تقصر) پر ځاى دا الفاظ وفرمايل: په دې كي هيڅ نه وو، ذواليدين وويل اې د الله رسوله! څه خوبه وي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۶۸، رقم: ۶۰۵۱ و مسلم ۱\۴۰۳، رقم: ۹۷- ۵۷۳.

**تشريح**: په فتح الباري كي ددې حديث ډيره اوږده تشريح سوې ده نو خبره به هم ډيره اوږده سي البته دومره ښودل ضروري دي چي ددې حديث په باره كي دوه اشكاله پيدا كيږي اول دادى چي د علماؤ په نزد دا خبره منل سوې ده چي په خبره كي خو رسول الله ﷺ څخه سهو كيدل نا ممكن دي او په افعالو كي هم اختلاف دى مګر رسول الله ﷺ دلته د ذواليدين په جواب كي هم دا وفرمايل چي نه زما څخه هيره سوې ده او نه په لمانځه كي كمي سوې ده ايا دا خلاف واقعه نه ده ددې څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ څخه په خبر كي هم سوه كيداى سوه.

ددې جواب په لنډه توګه دادى چي د رسول الله ﷺ څخه سهو كيدل په هغه خبرو كي نا ممكن دي كوم چي تبليغ شرائع په ديني احكامو او وحي الهي سره متعلق دي نه چي د ټولو خبرو، دوهم اشكال دا وارد كيږي چي د دوو ركعتونو وروسته رسول الله ﷺ څخه افعال هم ښكاره سوه او رسول ﷺ خبري هم وكړې خو ددې باوجود رسول ﷺ د سره لمونځ نه وكړ بلكه كوم ركعتونه چي پاته وه هغه يې پوره كړه ددې څه وجه ده؟

ددې جواب علماؤ دا وركوي چي لمونځ ماتونكي هغه كلام او افعال دي چي قصدا واقع سوي وي نه هغه كلام او افعال چي په هيره صادر سوي وي څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله

عليه مذهب دی دا جواب نه یوازي دا چي په خپل ځان کي جهول لري بلکه د حنفیه د مذهب سره سم هم نه دی ځکه چي د هغوی په نزد مطلقا خبره لمونځ فاسدوي که هغه په قصد صادر سوي وي یا په هیره سره ځکه د علماء حنفیه په نزد ددې اشکالو جواب دا ورکول کیږي چي دا واقعه د هغه وخت ده چي په لمانځه کي د کلام او افعال جواز لا منسوخ سوی نه وو .

د امام احمد رحمة الله علیه مذهب هم دادی چي په لمانځه کي کلام مطلقا مفسد صلوة دی هغه که قصدا وي که سهوا خو ددوی په نزد دومره گنجائش هم نسته چي په لمانځه کي کوم کلام د امام یا مقتدي څخه د لمانځه د یو مصلحت لپاره صادر سي نو هغه به مفسد صلوة یعني لمونځ ماتونکی وي لکه څرنګه چي په پورتني حدیث کي واقع سوی صورت دی .

د حدیث د اخري الفاظو مطلب دادی چي دا حدیث ابن سیرین رحمة الله علیه د خلکو په مخ کي بیان کړی دی نو د هغه څخه د پوښتني په توګه اکثرو خلکو پوښتنه وکړه چي ایا ابوهریره رضي الله عنه ثم بسلم هم ویل ګویا د هغه خلکو د پوښتني مطلب دا وو چي رسول الله ﷺ سجده سهو د سلام وروسته کړې وه یا مخکي یې کړې وه ؟

ددې په جواب کي ابن سیرین رحمة الله علیه وویل د ابوهریره رضي الله عنه په روایت کي خو دا الفاظ ماته یاد نه دي مګر عمران ابن حصین رضي الله عنه دا حدیث ماته روایت کړی دی د هغوی په روایت کي ثم سلم الفاظ دي ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ سجده سهو د سلام وروسته کړې وه او ما د ابوهریره رضي الله عنه څخه په روایت کي ثم سلم الفاظ چي نقل کړي دي هغه مي د عمران ابن حصین رضي الله عنه د روایت څخه نقل کړي دي .

## سجده سهوه تر سلام مخکي کیږي او که وروسته

﴿۹۵۲﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ بُجَيْنَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمِ

د حضرت عبدالله بن بجینة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته لمونځ ورکړ

الظُّهْرَ فَقَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ لَمْ يَجْلِسْ فَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ حَتّٰى اِذَا

د ماپښین لمونځ او د دوو رکعتو وروسته په ناسته کي د ناستي پر ځای ولاړ سو ، صحابه کرام هم د رسول الله ﷺ سره ودریدل تر دې چي

قَضَى صَلَاتَهُ وَانْتَظَرَ النَّاسُ تَسْلِيْمَهُ كَبَّرَ وَهُوَ جَالِسٌ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ

اَنْ يُّسَلِّمَ ثُمَّ سَلَّمَ . متفق عليه

لمونځ يې وكړ او د سلام ګرزولو وخت راغلی نو صحابه كرامو تكبير وو ايه او رسول الله ﷺ دوې سجدې د سلام ګرځولو څخه مخكې وكړې بيا يې سلام وګرزوې . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۹۲، رقم: ۱۲۲۴، ومسلم ۱\ ۳۹۹، رقمگ ۸۶- ۵۷۰.

**تشريح**: د امام شافعي رحمة الله عليه په مذهب كي د دې حديث سره سم سجده سهو د سلام ګرځولو څخه مخكې ادا كيږې مګر په نورو روايتونو كې دا هم مذكوره دي چې رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو څخه وروسته سجده سهو كړې ده او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په باره كي ثابت سوي دي چي هغوی به د سلام ګرځولو وروسته سجده سهو كول نو د حضرت عمر رضي الله عنه عمل پر دې خبره دلالت كوي چي دا حديثونه منسوخ دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### درود او دعاء د سجده سهوي وروسته ويل كيږي كه مخكې؟

﴿۹۵۳﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمْ

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ صحابه كرامو ته لمونځ وركړ

فَسَهَا فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ تَشَهَّدَ ثُمَّ سَلَّمَ . رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب .

او هيره ځيني وسول بيا يې دوې سجدې وكړې بيا يې تشهد وويل او سلام يې وګرځوی . ترمذي ويلي دي چي دغه حديث حسن غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۲\۲۴۰- ۲۴۱، رقم: ۳۹۵.

**تشريح**: د حضرت عمران رحمة الله عليه قول فسجد سجدتين مطلب دا دی چي رسول ﷺ د سلام ګرځولو سره دوې سجدې وكړې ځرنګه چي د دريم فصل د اول حديث څخه چي د هغوی روايت دی په وضاحت سره معلوميږي .

په دې حديث كي د لمانځه هغه اركان نه دي ذكر سوي چي د هغه په باره كي رسول الله ﷺ ته سهوه وسوه او رسول الله ﷺ څخه د هغه ادا كول هير سول او په دې حديث كي سجده سهو

وروسته د تشهد ويلو ذكر سوې ده كله چي په نورو روايتونو كي د تشهد ذكر نسته .

د حضرت عمران رضي الله عنه د هغه روايت په رڼا كي چي په دريم فصل كي به راسي دا حديث د حنفيه مذهب دليل دی چي مخكي په سلام گرځولو سره سجده سهو كول پكار ده همداسي د امام احمد رحمة الله عليه مذهب دادی بلكه د شافعيانو او مالكيانو ځينو حضراتو هم دا دليل دی په دې مسئله كي د علماؤ اختلاف دی چي د درود او دعاء چي په التحيات كي ويل كيږي هغه په تشهد كي ويل پكار دي كوم چي د سجدې سهو مخكي دي يا د سجده سهو وروسته په تشهد كي ويل پكار دي امام كرخي رحمة الله عليه خو دا اختيار كړی دی چي درود او دعاء دي د سجده سهو وروسته په تشهد كي ويل پكار دي او په هدايه كي هم دې ته صحيح ويل سوي دي البته د هدايې په ځينو شرحو كي دا ويل سوي دي چي د سجده سهو مخكي په تشهد كي ويل بې پكار دي شيخ ابن همام رحمة الله عليه هم د امام طحاوي رحمة الله عليه د قول په تائيد كولو سره ويلي دي چي احتياط په دې كي دی . د حنفيه په معمول كي دا ښودل سوي دي چي د التحيات ويلو وروسته راسته خواته دي سلام وگرځول سي د هغه وروسته دي د سهوي دوې سجدې وكړي د هغه وروسته دي دوهم وار التحيات او بيا درود شريف او په دعا ويلو سره سلام وگرځول سي .

﴿۹۵۴﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت مغيرة بن شعبة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : هر كله چي

قَامَ الْإِمَامُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ فَإِنَّ ذَكَرَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَوِيَ قَائِمًا فَلْيَجْلِسْ وَإِنِ

امام دوه ركعته وكړي او ودريږي (يعني ناسته ونه كړي) او ددې څخه مخكي چي او س لا سيده دريدلی نه وي او د هغه په ياد سي نو هغه دي كښيني او كه

اسْتَوَى قَائِمًا فَلاَ يَجْلِسْ وَيَسْجُدُ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ . رواه أبو داود وابن ماجه

سيده دريدلی وي نو نه دي كښيني او دوه سجدې د سهوي دي وكړي .ابو داؤد او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۶۲۹، رقم: ۱۰۳۶ وابن ماجه: ۱\ ۳۸۱، رقم: ۱۲۰۸.

**تشريح** : ددې حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي په مذكوره صورت كي معتبر په پوره توگه سره دريدل دي يا په پوره توگه سره دريدل نه دي په دې اړه د حنفيه مذهب دادی كه داسي سړی ناستي ته ډير نژدې يي نو كښېنستل پكار دي او التحيات دي ووايي او كه دريدو ته ډير نژدې وي نو نه دي كښيني بلكه خپل پاته دوه ركعته دي پوره كړي .

د زياتي نژدې ناستي څخه مطلب دادی چي د ولاړيدو وخت د هغه لاندي بدن مثلا پښه وغيره سيده نسي او که لاندي بدن يې سيده سي نو دريدو ته به زيات نژدې وي .

شيخ ابن الهمام رحمة الله عليه ويلي دي د نژدې کيدو په اړه د امام ابويوسف رحمة الله عليه هم يو روايت دی چي د بخاري مشائخ اختيار کړی دی خو څرنګه چي پورته وښودل سوه صحيح مذهب دادی چي تر څو پوري ونه دريږي نو کښېنستلای سي د پوره دريدو په صورت کي کښېنستل نه دي پکار، دا قول صحيح دی او ددې تائيد دا حديث هم کوي که يو سړی د دريدو څخه مخکي د قعدې لپاره ودريږي نو د هغه لپاره د سجده سهو ضرورت نسته هو که سړی پوره ودريږي او اوله قعده پاته سي نو هغه به سجده سهو کوي په دې اړه په دې خبره باندي نور پوه سه چي کله يو سړی په اوله قعده کي د ناستي پرته د دريم رکعت لپاره ودريږي نو اوس هغه ته کښېنستل نه دي پکار ځکه که هغه کښيني نو د هغه لمونځ به مات سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۹۵۵﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ لمونځ ورکړ

الْعَصْرَ فَسَلَّمَ فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ ثُمَّ دَخَلَ مَنْزِلَهُ فَقَامَ إِلَيْهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ

د مازديګر او پر درېيم رکعته يې سلام وګرځوی او خپل کور ته ولاړی يو سړی چي د هغه نوم

الْخِرْبَاقُ وَكَانَ فِي يَدَيْهِ طُولٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَذَكَرَ لَهُ صَنِيعَهُ وَخَرَجَ

خرباق وو او د هغه لاسونه اوږده وه هغه ودريدی او وه يې ويل اې دالله رسوله ! د دې په ويلو سره هغه ښېښه بيان کړه ، رسول الله ﷺ دباندي راووتی .

غَضْبَانَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَى النَّاسِ فَقَالَ أَصَدَقَ هٰذَا قَالُوا نَعَمْ

په غضبناک حالت کي چي څادر يې په ځان پسي راکشوی ، صحابه کرامو ته راغلی او پوښتنه يې وکړه ايا دی رښتيا وايي ؟ صحابه کرامو وويل :هو ،

فَصَلَّى رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ . رواه مسلم

نو رسول الله ﷺ یو رکعت ورکړ بیا یې سلام وګرځوی او دوې سجدې یې وکړې بیا یې سلام وګرځوی . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۱/۴۰۴- ۴۰۵، رقم: ۱۰۱- ۵۷۴.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د درو رکعتو وروسته د سلام ګرځولو سره کورته تشریف یووړ او د هغه ځای څخه یې تشریف راوړ په دې دوران کې د قبلې خواته هم مخ مبارک وګرځوی خبرې یې هم وکړې او زیات تلل هم وسول مګر ددې سربیره رسول الله ﷺ د سره لمونځ نه وکړ بلکه یوازې یو رکعت چې پاته سو هغه یې وکړ نو دا کارونه د سهوا کیدو باوجود هم د حنفیه په مذهب کې لمونځ ماتونکې دې ځکه د حنفیه د خوا ددې حدیث توجیه داسې کیږي چې په لمانځه کې د خبرو په ډول دا هم منسوخ دی یعني دا افعال او کلام دې د دمخکې څخه په لمانځه کې جائز وه بیا وروسته منسوخ سوه او دا واقعه د جواز منسوخ کیدو مخکې ده .

خرباق د هغه ذوالیدین نوم دی چې د هغه حدیث د دې څخه مخکې په څلورم نمبر حدیث کې تیر سو په ښکاره دا معلومیږي چې دا واقعه کوم چې په دې حدیث کې ذکر سوه او هغه واقعه چې په جدیث نمبر څلورم کې ذکر سوه دواړې یو دي لیکن په دې حدیث او هغه حدیث کې په ځینو خبرو کې اختلاف دی ځکه علماء لیکي چې دا دواړې یوه واقعه نه ده بلکه جلا جلا واقعې دي او په دواړو واقعو کې رسول الله ﷺ سره خبرې کونکی ذوالیدین خرباق وو .

ددې حدیث د اخري جملې څخه دا خبره په وضاحت سره معلومه سوه چې رسول الله ﷺ مخکې سلام وګرځوی بیا یې سجده سهو وکړه د هغه وروسته د سلام ګرځولو سره یې لمونځ پوره کړ، علامه طیبي رحمة الله علیه ویلي دي دا مذهب د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه دی د هغوی په نزد د سلام وروسته د سهوې دوې سجدې زیاتي او د تاوان له کبله کیږي د هغه وروسته تشهد ویل کیږي او بیا سلام ګرځول کیږي .

## په لمانځه کې د شک واقع کېدو په صورت کې څه کول پکار دي؟

﴿۹۵۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الرحمن[1] بن عوف رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي

[1] - د نوموړي نوم عبد الرحمن او کنیت یې ابو محمد دی، د قریش د یو ښاخ بنو زهره کې پیدا سوی دی ، کومو لسو صحابه کرامو ته چې رسول الله ﷺ د جنت زیری ورکړی وو په هغوی کې عبد الرحمن هم دی، د تبوک په غزا کې رسول الله ﷺ لمونځ هم ورپسې کړی دی ، د (۷۲) کالو په عمر په (۳۲هـ) کال کې وفات سوی دی .

وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ صَلّٰى صَلاَةً يَشُكُّ فِي النُّقْصَانِ فَلْيُصَلِّ حَتّٰى يَشُكَّ فِي الزِّيَادَةِ. رواه أحمد.

چي فرمايل يې: چا چي لمونځ وكړ او هغه ته شك پيدا سو چي لمونځ يې كم كړى دى نو هغه دې نور وكړي تر دې چي د زياتوب شك يې پيدا سي. احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ١\١٩٥.

**تشريح**: مطلب دا دى چي د شك راتلو په صورت كي يوې خوا ته غالب گمان نه وي او شك هم په كمي كي واقع وي مثلا په څلور ركعته والا لمانځه كي شك سي چي معلومه نه ده درې ركعاته يې كړي دي كه څلور نو داسي سړي ته پكاره ده چي هغه په زياتوب كي شك وكړي يعني كم عدد اختيار كړي څرنگه چي په پورتني صورت كي په درو ركعتونو اختيارولو سره يو ركعت نور وكړي چي اوس د كمي د شك پر ځاي د زياتوب شك سي چي نه ده معلومه څلور ركعته يې كړي دي كه پنځه.

## د رسول الله ﷺ څخه په لمانځه كي څو ځايه سهوه سوې وه؟

په لمانځه كي د رسول الله ﷺ څخه څو ځايه سهوه سوې وه اول په اوله قعده كي سهوه ځيني سوې وه څنگه چي د عبدالله ابن بحينه رضي الله عنه په روايت نمبر پنځم كي ذكر سوه، دوهمه سهوه په اخري دوو ركعتونو كي سوې وه لكه څرنگه چي د ذواليدين په واقعه څلورم حديث كي ذكر سول، دريمه سهوه په اخري ركعت كي سوې وه لكه څرنگه چي د خرباق والا په حديث نمبر اتم كي تيره سوه، څلورمه سهوه رسول الله ﷺ ته د پنځم ركعت په زياتوب كي وسوه لكه څنگه چي د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه په حديث نمبر دريم كي تيره سوه نو علماء مجتهدين د رسول الله ﷺ پر عمل د قياس كولو سره دا كليه جوړه كړه كه په لمانځه كي د يو سړي څخه د لمانځه په واجباتو كي سهو وسي نو پر هغه سجده سهو واجب كيږي.

په دې لړ كي چي څومره حديثونه تير سوه د هغه څخه هم دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د سهو كيدو په صورت كي پر ځينو وخونو باندي خو سجده سهو د سلام څخه مخكي وكړه او پر ځينو وختونو باندي د سلام گرځولو وروسته يې وكړه نو د رسول الله ﷺ عمل دواړه ډوله وو ځكه داسي چي وويل سي چي دواړي طريقې جائز دي ليكن امامان په دې اړه د خپل خپل اجتهاد مطابق جلا جلا صورت مقرر كړى دى.

# د سجده سهو د وخت په باره کي د امامانو مذهب

څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي پر هر وخت باندي سجده سهو د سلام کولو څخه مخکي کول پکار ده همداسي هغه حديثونه چي د هغه څخه د سلام ګرځولو څخه مخکي سجده سهو کول ثابتيږي پر هغو حديثو باندي چي د هغه څخه د سلام کولو وروسته سجده سهو کول ثابتيږي ترجيح ورکوي.

د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي پر ټولو ځايو باندي د سلام ګرځولو سره سجده سهو کول پکار ده ځکه چي دده ثبوت کي ډير زيات حديثونه وارد دي او دا چي ابوداود ابن ماجه احمد او عبدالرازق رحمة الله عليه د ثوبان ﷺ دا روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل د هري سهوي لپاره د سلام ګرځولو وروسته دوې سجدې دي نو کله چي رسول الله ﷺ عمل متضاد روايت دی چي کله د رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو څخه مخکي سجده کړې ده او کله د سلام ګرځولو وروسته نو په داسي صورت کي امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه د رسول الله ﷺ قول د دليل په توګه اختيار کړ ځکه چي د هغوی په نزد د قول د فعل څخه قوي دی څرنګه چي په اصول فقه کي ذکر دی.

د امام احمد رحمة الله عليه مذهب دادی چي پر کوم وخت باندي رسول الله ﷺ څخه مخکي سجده کړې ده پر هغه وخت باندي د سلام کولو څخه مخکي سجده کول پکار ده او پر کوم وخت باندي چي د سلام ګرځولو وروسته دي سجده وکړي علماء ليکي چي د امام احمد رحمة الله عليه د قول تر ټولو زيات قوي او غوره دی،. په دې خبره باندي نور پوه سی چي د سجده سهو په باره کي د ټولو اختلافاتو چي سجده سهوه د سلام څخه وروسته کول پکار ده يا مخکي، صرف د فضيلت متعلق دي يعني د ځينو امامانو په نزد د سلام څخه وروسته سجده کول زيات غوره ده او د ځينو په نزد د سلام څخه مخکي غوره ده، او کوم چي ددې جواز تعلق دی لکه څرنګه چي د څلورو امامانو د کتابو څخه معلوميږي ټول پر دې خبره متفق دي چي جائز دواړه ډوله دي ، په هدايه کي ليکلي دي چي زيات صحيح قول دادی چي دواړو خواوو ته په سلام ګرځولو سره سجده سهوه کول پکار ده.

========

# بَابُ سُجُوْدِ الْقُرْاٰنِ

## په قرآن کریم کي د سجده تلاوت بیان

د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله د مذهب سره سم په قرآن کریم کي څورلس آیاتونه داسي دي چي د هغه په ویلو او اورېدلو سره که څه هم اورېدل په قصد سره نه وي یوه سجده واجبېږي، د دې آیاتونو تفصیل به انشاء الله مخته راسي.

د نورو امامانو په نزد سجده تلاوت واجب نه بلکه سنت ده ، سجده تلاوت یوازي یو وارد دوو تکبیرو په مینځ کي (یعني یو تکبیر سجدې ته د تلو په وخت کي او یو تکبیر د سجدې څخه د راپورته کېدو په وخت کي) کول کیږي ، د دې سجدې لپاره د لاسو پورته کول، تشهد او د سلام ضرورت نسته.

د سجده تلاوت د صحیح کېدو هغه ټول شرطونه دي کوم چي د لمانځه د صحیح کېدو دي یعني پاکي، د ستر پټول، نیت او قبلې ته مخامخ کېدل ، لیکن تکبیر تحریمه په دې کي شرط نه دی، د دې په نیت کي د آیت تعین شرط نه دی چي دا سجده د فلاني آیت لپاره ده ، که چیري په لمانځه کي د سجدې آیت وویل سي او سمدستي سجده وکړل سي نو نیت هم شرط نه دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سورة النجم سجده

﴿۹۵۷﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّجْمِ وَسَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُوْنَ وَالْمُشْرِكُوْنَ وَالْجِنِّ وَالْإِنْسِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د سورة والنجم سجده وکړه او د رسول الله ﷺ سره مسلمانانو، مشرکانو، پیریانانو او انسانانو هم سجده وکړه. بخاري

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۵۵۳، رقم: ۱۰۷۱.

**تشریح:** رسول الله ﷺ د سورة نجم په تلاوت کولو سره د سجدې آیت:

فَاسْجُدُوا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوا ۶۲. سورة النجم

ژباړه : نو سجده وكړئ الله تعالى ته او د هغه عبادت وكړئ .
ته چي كله ورسيدى نو رسول الله ﷺ د الله تعالى ددغه حكم د فرمانبردارى په وجه سجده وكړه، رسول الله ﷺ چي كله سجده وكړه نو ټولو مسلمانانو هم د رسول الله ﷺ په پيروي كي سجده وكړه، همداسي مشركينو هم د خپلو بتانو يعني لات، منات او عزم نوم واوريدى نو هغو هم سجده وكړه ، يا د مشركينو د سجدې سبب دا وو چي رسول الله ﷺ په مكه كي په مسجد الحرام كي دننه كله چي د سورة نجم دغه آياتونه :

أَفَرَأَيْتُمُ اللاَّتَ وَالْعُزَّى ١٩ وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ الأُخْرَى ٢٠ أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الأُنثَى ٢١

ژباړه : ايا تاسو خلكو لات او عزى وليدى او دريم منات ايا ستاسو لپاره زامن دي او د خداى لپاره لوڼي دي .
كله چي رسول الله ﷺ دغه آيت ووايه نو شيطان ملعون خپل آواز د رسول الله ﷺ د آواز سره مشابه جوړولو سره وويل :

تلك الغرانيق العلى وان شفاعتهن لترجى

ژباړه : دا بتان لوړي مرغابي دي او بيشكه د دوى شفاعت اميدوار دى .
مشركينو دا وګڼل چي (نعوذبالله) رسول الله ﷺ زموږ د بتانو تعريف وكړ په دې سره هغوى ډير زيات خوشحال سول كله چي رسول الله ﷺ سجده وكړه نو هغوى هم سجده وكړه .
ځينو مفسرينو ددې دا تفسير كړى دى چي دا الفاظ شيطان نه وه ادا كړي بلكه نعوذبالله د رسول الله ﷺ د ژبي مباركي څخه سهوا ويل سوي وه ، دا قول بالكل غلط او ذهني اختراع ده ، حقيقت دادى چي شيطان ملعون خپل آواز د رسول الله ﷺ د آواز سره مشابه جوړولو سره دا الفاظ ادا كړل چي په هغه سره مشركينو دا وګڼل چي خپله محمد ﷺ دا الفاظ ادا كوي .
په حديث كي د مسلمانانو، مشركانو، جناتو او ټولو انسانانو څخه مراد هغه دي چي رسول الله ﷺ سره هغه وخت موجود وه ، لفظ د انس تعميم بعد تخصيص دى .

## د سورة انشقاق او سورة علق سجدې

﴿۹۵۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَجَدْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ وَاقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ . رواه مسلم

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ د نبي كريم ﷺ سره په (اذا السماء انشقت او

اقراء باسم ربک) کي سجده کړې ده. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۴۰۶، رقم: ۱۰۸- ۵۷۸.

**تشریح**: په دې حدیث سره د امام مالک رحمة الله علیه د هغه قول رد کیږي چي په مفصل کي سجده نسته.

## سجده تلاوت واجب ده

﴿۹۵۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به تلاوت کاوه

( اَلسُّجْدَةَ ) وَنَحْنُ عِنْدَهُ فَيَسْجُدُ وَنَسْجُدُ مَعَهُ فَنَزْدَحِمُ حَتّٰى مَا يَجِدُ

د سجدې آیت او موږ به ورسره موجود وو ، رسول الله ﷺ به هم سجده کول او موږ به هم سجده کوله او دومره ګڼه ګوڼه به سول چي په موږ کي به ځینو ته د سجدې کولو ځای نه پیدا کېدی

أَحَدُنَا لِجَبْهَتِهِ مَوْضِعًا يَسْجُدُ عَلَيْهِ. متفق علیه

چي خپل تندی پر کښېږدو .بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۵۷، رقم: ۱۰۷۶، ومسلم ۱\۴۰۵، رقم: ۱۰۴- ۵۷۵.

**تشریح**: مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ د سجدې یو ایت تلاوت کوی نو پر وخت به د رسول الله ﷺ د سجدې کولو لپاره دومره زیات خلک وه چي د ځاي تنګي په وجه به ځینو خلکو ته رسول الله ﷺ سره سجده کول هم نه نصیب کیدل او هغو خلکو به بیا وروسته سجده کول.

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي سجده تلاوت واجب ده که د تلاوت سجده واجب نه وي نو د خلکو به دومره زیات ګڼه ګوڼه ولي وای . پر داسي وخت باندي کله چي تلاوت کونکي سره خلک ناست وي او د هغه تلاوت اوري نو د سجدې یو ایت ویلو وروسته د سجدې کولو په اړه سنت دادی چي تلاوت کونکی سړی دي مخکي سي تلاوت اوریدونکی دي په هغه پسي صف وتړي همداسي ټول خلک دي سجده وکي د اقتداء صورة د حقیقة اقتداء نه ده.

## په سورة النجم کي سجده نه کول

﴿۹۶۰﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ قَرَأْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

(وَالنَّجْمِ )فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا. متفق عليه .

د حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ په مخکي سورة والنجم
ووایه، رسول الله ﷺ سجده ونه کړل. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۵۴، رقم: ۱۰۷۲ ومسلم: ۱\۴۰۶، رقم: ۱۰۶- ۵۷۷.

**تشریح**: د امام شافعي رحمه الله له خوا ویل سوي دي چي رسول الله ﷺ په دې موقع سره په نجم کي سجده د بیان جواز لپاره ونه کړه امام مالک رحمه الله فرمایي مفصل کي سجده نسته ځکه چي رسول الله ﷺ سجده ونه کړه او د امام اعظم رحمة الله علیه لخوا ددې حدیث توجیه داسي بیانیږي یا خو رسول الله ﷺ پر داسي وخت باندي سجده ځکه نه وکړه چي هغه وخت رسول الله ﷺ په اوداسه کي نه وو یا دا چي دغه وخت د کراهت وو یا نبي کریم ﷺ ددې وجهي سجده پریښودل چي خلکو ته معلومه سي چي سجده سهو فرض نه ده ددې شیانو پرته داهم ویل کیداي سي چي سجده سهو في الفور یعني سمدستي واجب نه ده ځکه کیداي سي چي رسول الله ﷺ هغه وخت خو سجده نه وه کړې البته وروسته بې ثه وخت کړې وه نو ددې څخه دي ثوک دا نه ګڼي چي د سورة نجم سجده واجب نه ده ځکه چي ددې څخه مخکي په یوه حدیث کي په وضاحت سره تیر سوی دی چي خپله رسول الله ﷺ او نورو خلکو هم په سورة نجم سجده کړی ده.

## د سورة ص سجده

﴿۹۶۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سَجْدَةُ (ص) لَيْسَ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُوْدِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د سورة (ص) سجده د تاکیدي سجدو څخه نه ده

وَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِيهَا، وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ مُجَاهِدٌ

او ما رسول الله ﷺ د دې سورت په سجده کولو لیدلی او په یوه روایت کي راځي چي مجاهد بیان وکړ

قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ أَأَسْجُدُ فِيْ (ص) فَقَرَأَ (وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ) حَتّٰى أَتٰى

ما د ابن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي آیا زه په سورة ص کي سجده وکړم؟ ابن عباس رضي الله عنه دا
آیت تلاوت وکړ (ومن ذریته.....)

(فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ) فَقَالَ نَبِيُّكُمْ ﷺ مِمَّنْ أُمِرَ أَنْ يَّقْتَدِيَ بِهِمْ . رواه البخاري

بيا يې وويل ستاسو نبي كريم ﷺ د دې خلكو څخه دى چي هغوى ته حكم وركړل سوى دى چي هغوى د انبياؤو پيروي وكړي .بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۵۶\۱۶، رقم: ۳۴۲۱.

**تشريح**: ليس من عزائم السجود : يعني د ډير تاكيدي سجدو څخه نه ده ددې مطلب د فقه حنفيه له مخي دادى چي دا سجده د فرائضو څخه نه بلكه د واجباتو تلاوت نه ده .

علماء ليكي چي په سورة ص كي د رسول الله ﷺ سجده كول د حضرت داود عليه السلام موافقت او د هغوى د توبې قبوليت د شكر په توگه وو .

ابن عباس ﷺ د مجاهد ﷫ د سوال په جواب كي مخكي ايت وو ايه د هغه څخه ددې خبري دليل وركول مقصود وه چي رسول الله ﷺ د هغو خلكو څخه دى چي هغوى ته د سابقه انبياء د پيروي حكم وركړل سوى دى د ابن عباس ﷺ د جواب مطلب دادى چي څرنگه رسول الله ﷺ ته د هغوى د پيروي حكم وركړل سوى دى نو بطريق اولى د هغوى پيروي كول پكار ده چي كوم وخت حضرت داود عليه السلام سجده وكړه او رسول الله ﷺ هم د هغوى په پيروي كي سجده وكړه نو مونږ ته پكار ده چي مونږ هم سجده وكړو .

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### په قرآن كريم كي ټولي سجدې څو دي ؟

﴿۹۶۲﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ أَقْرَأَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ هغه ته په قرآن كريم كي و ښودلې

خَمْسَ عَشْرَةَ سُجْدَةً فِي الْقُرْآنِ مِنْهَا ثَلَاثٌ فِي الْمُفَصَّلِ وَفِيْ سُوْرَةِ الْحَجِّ سَجْدَتَيْنِ . رواه أبو داود وابن ماجه .

پنځلس سجدې چي په هغو كي درې په مفصل (سورتو) كي دي او په سورة حج كي دوې سجدې دي . ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱۲۰\۱۲، رقم: ۱۴۰۱، وابن ماجه ۳۳۵\۱، رقم: ۱۰۵۷.

**تشريح**: د مشكوة شريف په ځينو نسخو كي د لفظ اقراة پر ځاى لفظ اقرءاني دى يعني رسول

الله ﷺ ماته حکم وکړ چي زه د هغوی سجدې ووایم ددې حدیث سره سم د قرآن کریم پنځلس ایاتونه داسي دي چي د هغه ویلو او اوریدلو سره یوه سجده واجب کیږي ددې ایاتونو تفصیل دادی.

۱. د سورة اعراف په آخر کي دا آیت:

إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لاَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ ۲۰۶. [۱]

ژباړه: کوم کسان چي (یعني ملائکي) چي ستا د رب سره دي هغوی د هغه د عبادت څخه غرور او انکار نه کوي او د هغه سجده کوي.

۲. د سورة رعد په دوهمه رکوع کي دا آیت:

وَلِلّهِ يَسْجُدُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَظِلالُهُم بِالْغُدُوِّ وَالآصَالِ ۱۵. [۲]

ژباړه: هغه ټول شیان چي په آسمانو او ځمکه کي دي الله تعالی ته سجده کوي که په خوښي وي یا په ناخوښي او د هغوی سایه سهار او ماښام.

۳. د سورة نحل د پنځمي رکوع د آخر دا آیت:

وَلِلّهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مِن دَآبَّةٍ وَالْمَلآئِكَةُ وَهُمْ لاَ يَسْتَكْبِرُونَ ۴۹ يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۵۰ . [۳]

ژباړه: او ټول ساه لرونکي چي په آسمانو کي دي او په ځمکه کي دي ټول د الله تعالی په وړاندي سجده کوي او ملائکي هم او هغوی د ذرې غرور هم نه کوي او د خپل پروردګار څخه چي د هغوی سربیره دی بیریږي او هغوی ته چي کوم حکم ورکول کیږي هغوی عمل په کوي.

۴. د سورة بني اسرائیل په دوولسمه رکوع کي دا آیت:

وَيَخِرُّونَ لِلأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ۱۰۹ . [۴]

ژباړه: او هغوی پرمخي غورځي او ژاړي او ددې څخه د هغوی نوره زیاته عاجزي پیدا کیږي (دا د هغه خلکو یادونه ده چي د رسول الله ﷺ څخه مخکي ایمان والا وه).

---

۱- په دې آیت کي پر (له یسجدون) باندي سجده ده.
۲- په دې آیت کي پر (بالغدو والاصال) باندي سجده ده.
۳ په دې آیت کي پر (و یفعلون ما یؤمرون) باندي سجده ده
۴ په دې آیت کي پر (و یزیدهم خشوعا) باندي سجده ده.

۵. د سورة مريم په څلورمه ركوع كي دا آيت :

إِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا ۵۸ .[۱]

ژباړه : هر كله چي پر هغوى د رحمان آياتونه ويل كيږي نو په ژړا سره پر سجده پريوځي (دا د انبياؤ او د هغوى د اصحابو حال بيان سوى دى) .

۶. د سورة حج په دوهمه ركوع كي دا آيت :

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَسْجُدُ لَهُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُومُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ وَكَثِيرٌ مِّنَ النَّاسِ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ وَمَن يُهِنِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِن مُّكْرِمٍ إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ .[۲]

ژباړه : ايا ته ونه ليدل چي كوم مخلوق په آسمانو او ځمكه كي دى او لمر او سپوږمۍ او غرونه او درختي او حيوانان او ډير انسانان الله تعالى ته سجده كوي او ډير كسان داسي دي چي پر هغوى عذاب ثابت سوى دى او الله تعالى چي كوم څوك ذليل كړي هغه ته هيڅوک عزت نسي وركولاى بيشكه چي الله تعالى څه غواړي هغه كوي .

۷. د سورة حج د آخري ركوع دا آيت :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۷۷ .[۳]

ژباړه : اې مؤمنانو ! خپل پروردګار ته ركوع او سجده كوئ او د خپل پروردګار عبادت كوئ او د خير كارونه كوئ چي خلاصون تر لاسه كړئ .

۸. د سورة فرقان د پنځمي ركوع دا آيت :

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا ۶۰ .[۴]

ژباړه : او كله چي دغه (د عربو كافرانو) ته وويل سي چي رحمان ته سجده وكړئ نو وايي چي رحمان څه شي دى ايا موږ هغه چا ته سجده وكړو چا ته چي تاسو واياست او زموږ نفرت زياتيږي .

۹. د سورة نمل په دوهمه ركوع كي دا آيت :

---

[۱] په دې آيت كي پر (سجدا و بكيا) باندي سجده ده .

[۲] په دې آيت كي پر (يسجد له) باندي سجده ده ، مګر د پوره آيت ويلو وروسته سجده ده .

[۳] په دې آيت كي پر (لعلكم تفلحون) باندي سجده ده .

[۴] په دې آيت كي پر (و زادهم نفورا) باندي سجده ده .

أَلاَّ يَسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ٢٥ اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ٢٦ .[1]

ژباړه : (او نه پوهيږي) چي الله تعالى ته چي په آسمانو او مځکي کي پټ شيان راوباسي او ستاسو پټ او ظاهر اعمال پيژني ولي سجده ونه کړي ، د الله تعالى څخه بل څوک د عبادت وړ نسته هغه د لوى عرش څښتن دى .

۱۰. د سورة الم تنزيل السجده په دويمي رکوع کي دا آيت :

إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لاَ يَسْتَكْبِرُونَ ١٥ .[2]

ژباړه : زموږ پر آياتونو باندي هغه خلک ايمان راوړي کله چي هغوى ته هغه آياتونه ياد سي نو پر سجده پريوځي او د الله تعالى حمد او ثناء بيانوي او دا خلک غرور نه کوي .

۱۱. د سورة ص په دوهمه رکوع کي دا آيت :

وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ٢٤ فَغَفَرْنَا لَهُ ذَلِكَ وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَى وَحُسْنَ مَآبٍ ٢٥ .[3]

ژباړه : او (داؤد عليه السلام) پر سجده پريوتى او توبه يې وکښل نو موږ هغه و بخښى او بيشکه زموږ سره د هغه تقرب او ښه مقام دى .

۱۲. د سورة حم السجده په پنځمه رکوع کي دا آيت :

فَإِنِ اسْتَكْبَرُوا فَالَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لاَ يَسْأَمُونَ ٣٨ .[4]

ژباړه : که دا خلک سرکښي وکړي نو (د الله تعالى هيڅ پرواه نسته) کومي ملائکي چي ستا د پروردګار سره دي هغوى شپه او ورځ د هغه تسبيح کوي او هيڅکله نه ستړي کيږي .

۱۳. د سورة نجم په آخر کي دا آيت :

فَاسْجُدُوا لِلَّهِ وَاعْبُدُوا ٦٢ .[5]

ژباړه : سجده کوئ او د الله تعالى عبادت کوئ .

---

[1] په دې آيت کي د حضرت سليمان عليه السلام واقعه بيان سوې ده او دلته پر (رب العرش العظيم) او د ځينو په نزد پر (لعلکم تغلبون) باندي سجده ده .
[2] - په دغه آيت کي پر (لا يستکبرون) باندي سجده ده .
[3] په دې آيت کي پر (وحسن ماب) باندي سجده ده .
[4] په دې آيت کي پر (لا يسئمون) باندي سجده ده ، يا پر (تعبدون) باندي سجده ده .
[5] په دې آيت کي پر (واعبدوا) باندي سجده ده

۱۴. په سورة انشقت كي دا آيت :

فَمَا لَهُمْ لاَ يُؤْمِنُونَ ٢٠ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لاَ يَسْجُدُونَ ٢١ .[1]

ژباړه : نو دغه خلكو ته څه سوي دي چي ايمان نه راوړي او كله چي د دوی په وړاندي قرآن كريم وويل سي نو سجده نه كوي .

۱۵. په سورة اقرا كي دا آيت :

وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ ١٩ .[2]

ژباړه : (اې محمد ﷺ!) سجده وكړه او الله تعالى ته نژدې سه .

## د امامانو په نزد د سجدو شمېر

د امامانو په نزد دلته په دې خبري كي اختلاف دی چي په قرآن كريم كي څومره اياتونه داسي دي چي د هغو په ويلو او اوريدلو سره سجده تلاوت واجب كيږي، امام احمد رحمة الله عليه ددې حديث سره سم ويلي دي چي داسي اياتونه پنځلس دي چي د هغه تفصيل پورته ذكر سوی دی نو هغوی ددې حديث په ښكاره عمل كړی دی .

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد دلته د ايت سجده شمير څوارلس دی، همداسي په سورة حج كي دوې سجدې دي او په سورة ص كي هيڅ سجده نسته د امام مالک رحمة الله عليه په نزد د آيت د سجدو شمير يوولس دي هغه وايي چي سورة ص، سورة نجم ،سورة انشقت او په سور اقرا كي سجده نسته، د امام شافعي رحمة الله عليه قديم قول هم دا دی .

امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمايي چي د ټولو سجدو شمير څوارلس دی داسي چي په سورة حج كي دوې سجدې نه دي بلكه يوه سجده ده چي په دويمي ركوع كي ده .

علماء ليكي چي د عمرو ابن العاص ؓ دا حديث چي د هغه څخه د سجدو شمير ثابتيږي ضعيف دی او دا دليل جوړول صحيح نه دی ځكه چي ددې ځيني راويان مجهول دي .

د علماؤ پر دې خبره باندي اختلاف دی چي په فرض لمانځه او نفل لمانځه كي كه د سجدې يو ايت ووېل كړل سي نو په لمانځه كي دې سجده وكړل سي يعني كومه سجده تلاوت چي په لمانځه كي واجب سي هغه دي د لمانځه څخه دباندي نه ادا كوي ، د سجدې ايت كه په

---

[1] په دې آيت كي پر (لا يسجدون) باندي سجده ده .

[2] په دې آيت كي پر (واقترب) باندي سجده ده .

فرض لمانځه کي وويل سي نو د هغه په سجده کي د لمانځه په ډول سبحان ربي الاعلی ويل بهتر دي او که په نفل لمانځه کي وي يا د لمانځه څخه دباندي وويل سي نو د هغه په سجده کي اختيار دی چي سبحان ربي الاعلی وويل سي يا نور تسبيحات کوم چي په احاديثو کي وارد دي وويل سي مثلا دا تسبيح : سجد وجهي للذي خلقه و صوره و شق سمعه و بصره و بحوله وقوته فتبارک الله احسن الخالقين

زما مخ هغه ذات ته سجده وکړه چي هغه پيدا کړی دی چا چي هغه جوړ کړی دی او په هغه کي يې غوږ او سترګي په خپل قوت سره پيدا کړي دي نو الله ﷻ بزرګ او ښه پيدا کوونکی دی .

## په لمانځه کي په آخري سورت کي د سجدې د آيت راتلو مسئله

د ځينو علماؤ دا اختلاف دی چي په لمانځه کي د سجدې کوم ايت په اخر سورت کي راسي نو رکوع کول د سجدې لپاره کافي کيږي دا قول د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دی او دا مذهب د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه هم دی .

د فقهي په کتابونو کي پر دې مسئلې تفصيل هم داسي مذکور دی که د سجدې آيت په لمانځه کي وويل سي او سمدستي رکوع وکړل سي يا د سجدې د ايات وروسته درې اياتونو په ويلو سره رکوع وکړل سي او په هغه رکوع کي د کښنته کيدو په وخت کي د سجده تلاوت نيت هم وکړل سي نو سجده ادا کيږي که همداسي د ايت سجده ويلو وروسته د لمانځه سجده وکړل سي بيا هم سجده ادا کيږي او په دې کي د نيت هم ضروت نسته نو شرط دا دی چي په هرو دواړو صورتو کي د سجدې د ايت وروسته درې اياتونه زيات نه وي ويل سوي ځکه چي د درو اياتونو په ويلو کي خو اختلاف هم دی خو مسئله متفق عليه ده چي د درو څخه زيات اياتو د ويلو په صورت کي د لمانځه رکوع يا په سجدو کي سجده تلاوت نه ادا کيږي بلکه جلا د تلاوت سجده کول ضروري ده

## د دوو سجدو په وجه د سورة حج فضيلت

﴿۹۶۳﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ فُضِّلَتْ سُوْرَةُ الْحَجِّ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ: اې د الله رسوله ! سورة حج ته فضيلت ورکړل سوی دی

بِأَنَّ فِيْهَا سَجْدَتَيْنِ ؟ قَالَ نَعَمْ وَمَنْ لَّمْ يَسْجُدْهُمَا فَلاَ يَقْرَأْهُمَا . رواه أبو

داود والترمذي وقال هذا حديث ليس إسناده بالقوي . وفي المصابيح فلا يقرأها كما في شرح السنة .

له دې كبله چي په دې كي دوې سجدې دي،؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هو، او څوک چي دا دواړي سجدې نه کوي هغه دي دا دواړه آياتونه نه وايي . ابودؤد او ترمذي .

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۲\ ۱۲۱، رقم: ۱۴۰۲ والترمذي ۲\ ۴۷۰، ۴۷۱، رقم: ۵۷۸، البغوي في شرح السنة ۳\ ۳۰۴، رقم: ۷۶۵.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادی چي کوم سړی د سجدې دا دواړه اياتونه نه ووايي نو هغه ته دا اياتونه ويل نه دي پکار چي د ترک واجب گنهار نسي يعني د قرآن کريم د ويلو په حق كي د سجدې دآيت د تلاوت په وجه يوه سجده مشروع سوې ده او سجده تلاوت کول د تلاوت د حقوق نه دی که يو سړی سجده تلاوت د پرېښولو پسې وي نو د هغه لپاره دا مناسب دی چي هغه اياتونه ووايي چي د هغه په وجه سجده واجب کيږي ځکه چي واجب ده او ددې پرېښونکی گنهگار دی د ترک سجدې څخه ترک تلاوت اولي دی .

د مشکوة په يو دوهمه نسخه کي پر ځاي د فلا يقراهما د فلم يقراهما الفاظ دي داسي د رسول الله ﷺ د ارشاد معني به وي چي چا چي دواړي سجدې نه وکي گويا هغه داسي نه دي ويلي يعني هر کله چي هغه ددې ايت پر تقاضا عمل نه وکي نو د هغه ويل او نه ويل دواړه سره برابر دي .

څنگه چي مخکي ښودل سوي دي چي د سورة حج دوهمه سجده دامام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په مذهب واجب نه ده هغوی فرمايي چي هغه سجده د لمانځه ده ځکه چي هلته لفظ ارکعوا مذکور دليل دی خبر قرينه ده .

امام ترمذي رحمة الله عليه په اخر کي هذا حديث ليس اسناده بالقوي په ويلو سره دې ته اشاره کړې ده چي دا حديث ضعيف دی .

## د سورة الم تنزيل السجده سجده

﴿۹۶۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ فِي صَلاَةِ الظُّهْرِ ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ فَرَأَوْا أَنَّهُ قَرَأَ تَنْزِيلَ السُّجْدَةِ . رواه أبو داود .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د ماپښین په لمانځه کي سجده وکړه بیا ودریدی بیا یې رکوع وکړه صحابه کرامو دا خیال سو چي رسول الله ﷺ په لمانځه کي (سورة) الم تنزل السجدة ویلی دی، ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\۵۰۷، رقم: ۸۰۷.

**تشریح**: صحابه کرامو محضې د سجدې څخه معلومه کړې نه وه چي رسول الله ﷺ آلم تنزیل السجده ویلي دي بلکه د سورت یو ایت به یې د رسول الله ﷺ څخه اوریدلی وي د هغه څخه به هغوی ته معلومه سوې یې چي رسول الله ﷺ دا سورت وایي، په حدیثو کي وراد دي چي رسول الله ﷺ به په کرار اواز سره ویونکي لمونځونو کي کله کله یو ایت په لوړ اواز سره هم وایه چي خلکو ته معلومه سي چي د فلاني سورت قرائت کیږي یا دا چي انتهایي شوق او حضور قلب په وجه به بې اختیاره د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه یو ایت به په لوړ اواز سره جاري کېدی.

په ښکاره خو د حدیث څخه دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ د سجدې ایت ویلو سره سجده وکړه او د سجدې څخه چي را پورته کیدی نو پاته سورت به یې نه کړی پوره بلکه رکوع ته ولاړی نو دا جائز دی که څه هم افضل دادی چي د سجدې څخه د راپورته کیدو سره پاته سورت پوره کي د هغه وروسته دي رکوع وکړل سي نو دا کیداي سي چي رسول الله ﷺ دا سي بیان د جواز له خاطره کړی وی سره ددې چي د نص څخه په صراحت سره خو دا ثابتیږي چي رسول الله ﷺ پاته سورت نه کړو پوره او رکوع ته ولاړی خو په ښکاره سره دا معلومیږي.

رسول الله ﷺ یو ازي پر رکوع باندي اکتفاء و نه کړل بلکه مستقلا سجده یې وکړل څرنګه چي د حنفیه په نزد په داسي صورت کي په رکوع کي سجده ادا کیږي ددې وجه داده چي افضل او اولی سجده کول دي او رسول الله ﷺ افضله طریقه اختیار کړه.

## سجده تلاوت پر ویونکي او اوریدونکي دواړو واجب ده

﴿۹۶۵﴾: وَعَنْه أَنَّهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ فَإِذَا مَرَّ بِالسُّجْدَةِ كَبَّرَ وَسَجَدَ وَسَجَدْنَا مَعَهُ. رواه أبو داود

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به زموږ په وړاندي قرآن وایه او کله چي به د سجدې آیت راغلی نو رسول الله ﷺ به الله اکبر وایه سجده به یې کول او موږ به هم ورسره سجده کول. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۱۲۵–۱۲۶، رقم: ۱۴۱۳.

**تشریح**: ددې حدیث څخه دا خبره په وضاحت سره معلومیږي چي سجده تلاوت پر قاري یعني د قرآن کریم پر ویونکي او سامع یعني اوریدونکي دواړو باندي واجب ده.

## یوازي د سجدې پر وخت تکبیر ویل کیږي

دا حدیث په دې خبره هم دلالت کوي چي د سجده تلاوت لپاره تکبیر صرف سجدې ته د تلو په وخت کي ویل پکار دی د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په دې عمل دي.

البته د امام شافعي رحمة الله علیه په مذهب دا مسئله ده چي هر کله چي یو سړی سجده تلاوت وکړي نو مخکي هغه ته په لاس پورته کولو سره تکبیر تحریمه ویل پکار دي د هغه وروسته دي د سجدې لپاره دوهم تکبیر وکړي د بي بي عائشې رضي الله عنها د یو روایت په رڼا کي دا ثابته ده چي د سجده تلاوت د وخت څخه مخکي او ریدل او د هغه وروسته سجدې ته تلل مستحب دي.

﴿۹۶۶﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ عَامَ الْفَتْحِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د مکې د فتح په کال د سجدې یو آیت تلاوت کړ

سَجْدَةً فَسَجَدَ النَّاسُ كُلُّهُمْ مِنْهُمُ الرَّاكِبُ وَالسَّاجِدُ عَلَى الْأَرْضِ حَتَّى إِنَّ الرَّاكِبَ لَيَسْجُدُ عَلَى يَدِهِ. رواه أبو داود.

د رسول الله ﷺ سره ټولو سجده وکړه په هغوی کي ځیني سپاره وه او ځیني پر مځکه سجده وکړه تر دې چي سپرو خلکو پر خپلو لاسو سجده وکړه. ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد: ۲\۱۲۵، رقم: ۱۴۱۱.

**تشریح**: رسول الله ﷺ به یا خو د سجده تلاوت کولو سره نور ایاتونه په یو ځای کولو سره ویل یا یوازي ایت سجده به یې د بیان جواز لپاره ویلي وي ځکه چي د حنفیه د مذهب سره سم یوازي د آیت سجده تلاوت کوي د استحباب خلاف دی.

سپرو کسانو به پر خپلو لاسونو سجده کول دې مطلب دادی چي کوم خلک چي پر خپلو آسونو وغیره باندي ناست وه هغوی خپل لاسونه پر زین وغیره د ایښودو سره په هغه به یې سجده کوله همداسي د سجدې په حالت کي به د مځکي په رقم سختي حاصلیده.

ابن مالک رحمۃ اللہ علیہ فرمایي چي ددې ځخه دا خبره ثابتيږي چي که يو سړی ځټ کښته کي او پر خپلو لاسونو سجده وکي نو د هغه سجده جائز کيږي او دا قول د امام اعظم ابو حنيفه رحمۃ اللہ علیہ دی د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ دا قول نه دی . ابن مالک رحمۃ اللہ علیہ چي د امام اعظم ابو حنيفه رحمۃ اللہ علیہ دا قول ذکر کړی دی دا هغوی مذهب کي غير مشهور دی په شرح منيه کي ليکلي دي که يو سړی د رش په وجه پر خپل ورون باندي سجده وکړي نو جائز ده همداسي د ورون ځخه پرته بل ځه اندام باندي هم سجده کول جائز ده هر کله چي هغه ته ځه داسي عذر وربيدا سي چي د سجدې کولو ځخه يې منعه کوي بغيره عذر داسي کول نه دي جائز او که يو سړی خپل لاس پر مځکه د ايښودو سره پر هغه سجده وکي که ځه هم هغه ته ځه عذر نه وي نو جائز دی مګر مکروه دی .

ابن همام رحمۃ اللہ علیہ ليکلي دي چي که يو ناجوړه سړی د سجدې ايت وواييي او پر سجدې کولو باندي قادره نه وي نو هغه ته د سجدې اشاره کول کافي کيږي .

## د رسول الله ﷺ په مفصل سورتونو کي سجده نه کول

﴿۹۶۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسْجُدْ فِيْ شَيْءٍ مِّنَ الْمُفَصَّلِ مُنْذُ تَحَوَّلَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ . رواه أبو داود .

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہما ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ مدينې ته د تشريف راوړلو وروسته د مفصل سورتو ځخه په يوه سورت کي هم سجده ونه کړل . ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد : ۲\ ۱۲۱، رقم: ۱۴۰۳.

**تشريح** : د ابن عباس رضی اللہ عنہما د ارشاد مطلب دادی چي رسول الله ﷺ مدينې منورې ته د راتلو مخکي په مکه کي مفصل سورتونو کي سجده تلاوت کول او نورو خلکو به هم ورسره کوله خو کله چي مدينې منورې ته يې تشريف وېوړلو نو دلته يې په مفصل سورتونو کي سجده تلاوت نه وکړله .

## د ابو هريره رضی اللہ عنہ د حديث سره تعارض

په دې حديث کي خو په صراحت سره دا خبره معلومه سوه چي رسول الله ﷺ په مدينه کي مفصل سورتونو کي سجده تلاوت نه ده کړې حال دا چي ددې ځخه مخکي د ابو هريره رض په اول روايت کي تير سو په هغه کي ابو هريره رض فرمايي ما د رسول الله ﷺ (اذا السماء انشقت او اقراء باسم ربک الذي ) کي سجده کړې ده اوس چي په دې دواړو حديثو کي ټکر پيدا سو نو

په دې كي به يو راجح كرځول وي او راجح به د ابوهريره حديث وي ځكه چي ابوهريره رض په اووه هجري كي اسلام راوړی دی او ښكاره ده چي هغوی ددې روايت تعلق د مدينې سره دی او په فني توګه باندي هم د ابوهريره رض روايت زيات صحيح دی بيا دا چي د دوی څخه پرته د ډيرو زياتو صحابه روايت دی چي په مفصل سورتونو كي سجده ده او اصول دادی چي مثبت اړخ پر منفي اړخ فوقيت لري د ابن عباس رضي الله عنه د روايت څخه منفي اړخ ثابتيږي هر كله چي د ابوهريره رضي الله عنه روايت مثبت اړخ ښكاره كوي نو حاصل داسو چي په مفصل سورتونو كي د رسول الله ص سجده كول ثابت ده ځكه چي په دې سورتونو كي د سجدې چي كم اياتونه دي د هغه تلاوت يا پر اوريدو باندي سجده كول پكار ده، مفصل كوچنيو سورتو ته وايي چي هغه د سورة حجرات تر آخره پوري دي.

## د سجده تلاوت تسبيح

﴿۹۶۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به ويل

سُجُوْدِ الْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِيْ خَلَقَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

د قرآن كريم د تلاوت په سجدو كي د شپې (زما مخ هغه ذات ته سجده وكړه چي په خپل قدرت سره يې پيدا كړ غوږونه يې ورته جوړ كړل او ستركي يې وركړې) ابوداؤد، ترمذي، نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۱۲٦– ۱۲۷، رقم: ۱۴۱۴، والترمذي ۲\ ۴۷۴، رقم: ۵۸۰، والنسائي: ۲\ ۲۲۲، رقم: ۱۱۲۸.

**تشريح**: د شپې قيد اتفاقي دی، بي بي عائشې رضي الله عنها به دا تسبيح د شپې اوريدلي وي نو هغه هې بيان كړل كنې د شپې او ورځي قيد څخه پرته پر مطلقا دا ثابته سوې ده چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به دا تسبيح په سجده تلاوت كي ويل او په ځيني روايتونو كي دا تسبيح هم منقول ده:

ربي اني ظلمت نفسي فاغفرلي : اې زما پروردګاره ما پر خپل نفس ظلم وكی نو ما وبخښې.
د حنفيه صحيح مذهب دادی چي په سجده تلاوت كي سبحان ربي الاعلي ويل كافي دی

څرنګه چي د لمانځه په سجدو کي وواېي ليکن په دې کي شبه نسته چي په سجده تلاوت کي کوم تسبيحات ثابت سوي دي د هغه ويل اولى دي.

﴿۹۶۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ رَأَيْتُنِي اللَّيْلَةَ وَأَنَا نَائِمٌ كَأَنِّي كُنْتُ أُصَلِّي خَلْفَ شَجَرَةٍ

او عرض يې وکړ اې د الله رسوله! د شپې ما خوب وليدی چي په يوې درختي پسي لمونځ کوم

فَسَجَدْتُ فَسَجَدَتِ الشَّجَرَةُ لِسُجُودِي وَسَمِعْتُهَا وَهِيَ تَقُولُ اللَّهُمَّ اكْتُبْ

ما د قرآن کريم د تلاوت سجده وکړه او درختي هم زما سره سجده وکړه بيا ما د هغې درختي څخه واوريدل چي ويل يې: (اې الله! وليکې

لِي بِهَا عِنْدَكَ أَجْرًا وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْرًا وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ ذُخْرًا وَتَقَبَّلْهَا

د دې سجدې په سبب زما لپاره ثواب او د ګناه بار راڅخه ليري کړې او د ځان سره زما زخيره و تاکې او زما سجده قبوله کړې

مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

څنګه چي تا د خپل بنده داؤد سجده قبوله کړه) ابن عباس رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ تلاوت کړ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجْدَةً ثُمَّ سَجَدَ فَسَمِعْتُهُ وَهُوَ يَقُولُ مِثْلَ مَا أَخْبَرَهُ الرَّجُلُ

د سجدې يو آيت او سجده يې وکړه او ما واوريدل چي رسول الله ﷺ همداسي ويل څنګه چي هغه سړي ېښنه بيان کړې وه

عَنْ قَوْلِ الشَّجَرَةِ. رواه الترمذي وابن ماجه الا انه لم يذكر و تقبلها مني كما تقبلتها من عبدك داؤد. وقال الترمذي هذا حديث غريب.

د درختي يعني رسول الله ﷺ هم دا دعاء وکړل. ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۴۷۲، ۴۷۳، رقم: ۵۷۹، وابن ماجه ۱\ ۳۳۴، رقم: ۱۰۵۳.

**د لغاتو حل:** (جاء رجل): في هامش المخطوطة: هو ابو سعيد الخدري.

**تشريح** : په ښکاره دا معلوميږي چي هغه سړی به د سورة ص سجدې ايت ويلي وي او د رسول الله ﷺ په باره کي احتمال دی چي رسول الله ﷺ به هم د سورة ص د سجدې ايت ويلي وي يا سورة سجده به يې هم تلاوت کړې وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د سورة والنجم سجده

﴿۹۷۰﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ ( وَالنَّجْمِ )

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ سورة نجم تلاوت کړ

فَسَجَدَ فِيْهَا وَسَجَدَ مَنْ كَانَ مَعَهُ غَيْرَ أَنَّ شَيْخًا مِّنْ قُرَيْشٍ أَخَذَ كَفًّا مِنْ

او په هغه کي يې سجده وکړل او کوم خلک چي د رسول الله ﷺ سره موجود وه هغوی هم سجده وکړه مګر د قريشو يو سپين ږيری سړي

حَصًى أَوْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ إِلَى جَبْهَتِهِ وَقَالَ يَكْفِيْنِيْ هٰذَا قَالَ عَبْدُ اللهِ فَلَقَدْ

د شګو يا خاورو څخه لاس ډک کړ او هغه يې پر تندي و موښل او ويل يې زما لپاره دا بس ده، ابن مسعود رضي الله عنه وايي

رَأَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا. وزاد البخاري في رواية وهو أمية بن خلف.

د دې پېښې وروسته ما وليدل چي هغه سپين ږيری سړی د کفر په حالت کي مړ سو. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۶۴۳، رقم: ۱۰۷۰. ومسلم: ۱\۴۰۵، رقم: ۱۰۵-۵۷۶.

**تشريح** : دا واقعه د مکې د فتحي څخه مخکي ده، اميه بن خلف د قريشو سردار او اثر درلودونکی کس وو اسلام او د رسول الله ﷺ خلاف په ټولو فلانو او دسيسو کي د هغه کردار ډير اهم وو هغه ته پر خپله لويي هم ناز وو هغه وخت چي کله د رسول الله ﷺ په مجلس کي ټولو خلکو که مسلمانان وه که کافران د رسول الله ﷺ سره يې سجده وکړل مګر دغه سړي د غرور او تکبر په وجه سجده و نه کړل بلکه دا حرکت يې وکړ چي د ډبرو يا خاورو يو موټ اخيستو سره هغه يې پر خپل تندي و موښل.

## د سورة ص سجده

﴿۹۷۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ فِيْ (ص) وَقَالَ سَجَدَهَا دَاوُدُ تَوْبَةً وَّنَسْجُدُهَا شُكْرًا . رواه النسائي .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په سورة ص کي سجده وکړه او وه يې فرمايل: داؤد عليه السلام دا سجده د توبې په ډول کړې وه او موږ يې د شکر په ډول کوو. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي: ۱۲\۱۵۹، رقم: ۹۵۶.

# بَابُ اَوْقَاتِ النَّهْيِ

## د ممنوعه وختونو بيان

په دې باب کي هغه حديثونه نقل کيږي کوم چي د نهي وختونه ښکاره کوي يعني په کومو وختونوکي چي لمونځ کول ممنوع دی په دې باب کي هغه درې وختونه شامل دي چي په هغو کي لمونځ کول حرام دی: اول د لمر ختلو وخت، دوهم د لمر کښېنته کيدو وخت او دريم د استواء وخت يعني د غرمې وخت، او په دغه وختونو کي نفل لمونځ کول مکروه دی لکه د سهار او مازديګر د لمانځه وروسته، د طلوع صبح صادق څخه تر لمر ختلو پوري د سهار په وخت کي د سهار د دوو سنتونو څخه پرته نور نوافل مکروه دي البته د فرض او واجب قضاء د مازديګر د فرض وروسته هم کيدای سي.

د حنفيه مذهب داسي نه دی فرضو او نفل دواړه پکښې شامل دی ځکه چي په اول د دغو وختونو يعني لمر ختلو وخت د لمر کښېنته کيدلو وخت او د غرمې وخت په دې کي لمونځ کول نه دی جائز که ادا لمونځ وي يا قضاء لمونځ البته د همدغي ورځي د مازديګر لمونځ جائز دی او همدارنګه د جنازې لمونځ جائز دی او د تلاوت سجده کول هم جائز نه ده هو د هغه جنازې لمونځ جائز دی چي په دغه وختونو کي يې راوړې وي همداسي د تلاوت سجده هم جائز ده کوم چي په هغه وخت کي يو چا هغه ايت ويلي وي په کوم کي چي سجده وي د داغه وخت څخه مراد موخر کول اولی دی.

د جنازې لمونځ، سجده تلاوت او قضايي لمونځ د سهار په پوره وخت کي او د مازديګر د

لمانځه وروسته هم جائز دی نفل لمونځ په دغه وخت کي مکروه دی که چيري يو سړی په دغه وخت کي نفل لمونځ پيل کړي نو پر هغه لازمه ده چي خپل لمونځ مات کړي او کله چي مکروه وخت تير سي نو د هغه وروسته خپل قضايي لمونځ وکړي او که چيري يو سړی لمونځ نه ماتوي او په هغه وخت کي يې پوره کړي نو دی د دغو وختونو وعده خلافي کوي مګر په دغه وختونو کي لمونځ راګرځول غوره خبره ده.

د امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په نزد په دغه وختونو کي قضاء لمونځ کول او د هغه جنازې لمونځ چي په دې وخت کي راوړل سوې وي جائز دی، د تحية المسجد لمونځ کول هم جائز دی که په اتفاق سره په مسجد کي داخل سي او که يو سړی په قصده د تحية المسجد لمونځ کولو په خاطره په دغه وختونو کي يې وکړي نو په دې صورت کي هم نه دی جائز ځکه چي په دې وختونو کي قصدا دا لمونځونه کول د حديث په موجب ممنوع دی همداسي د هغوی په مذهب په دې وختونو کي د لمر تندر نيولو لمونځ د اوداسه وروسته دوه رکعته لمونځ او د احرام او د طواف دوه رکعته لمونځ او سجده تلاوت چي د هغه ايت په دغه وختونو کي وويل سي جائز دی.

په دې وختونو کي د لمانځه کولو کراهت د حنفيه په نزد په هره زمانه او هر ځای کي دی مګر د امام شافعي رحمة الله عليه او د هغه د علماؤ په نزد چي امام شافعي رحمة الله عليه سره دی د جمعې په ورځ استواء يعني نصف النهار په وخت کي لمونځ جائز دی او په دې وختونو کي په مکه معظمه کي هم لمونځ جائز دی. په دې خبره باندي نور هم پوه سئ چي د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب په دې اړه پر احتياط باندي مبني دی ځکه چي د يوه شي په باره کي مباح او حرام دواړه دلائل متعارض دي نو د حرمت اړخ ته ترجيح ورکول سوې ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د لمر ختلو او لوېدلو په وخت کي لمونځ کول

﴿۹۷۲﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَايَتَحَرّٰى

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اراده دي نه کوي

اَحَدُكُمْ فَيُصَلِّيْ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَلَا عِنْدَ غُرُوْبِهَا وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ اِذَا

په تاسو كي هيڅوك د لمر ختلو او لمر لوېدو په وخت كي د لمانځه ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي و يې فرمايل: هر كله چي د لمر غاړه څرګنده سي نو لمونځ پرېږدئ تر څو پوري چي هغه ښه څرګند نه سي هر كله چي

طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلٰوةَ حَتّٰى تَبْرُزَ وَإِذَا غَابَ حَاجِبُ الشَّمْسِ

د لمر غاړه راوخيژي نو لمونځ پرېږدئ تر څو پوري چي هغه بيخي ښكاره نه سي او كله چي د لمر غاړه ډوبه سي

فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتّٰى تَغِيبَ وَلَا تَحَيَّنُوا بِصَلٰوتِكُمْ طُلُوعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوبَهَا

نو لمونځ كول پرېږدئ تر څو چي ولوېږي . او د لمر د ختلو ، او لوېدلو په وخت كي د لمانځه اراده مه كوئ

فَإِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ . متفق عليه

ځكه چي لمر د شيطان د دوو ښكرو په منځ كي راخيژي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۸، رقم: ۵۸۳، ومسلم ۱\۶۸، رقم: ۲۹۱– ۸۲۹.

**د لغاتو حل**: (ولاتحينوا): اى لاتجعلوا ذلک الوقت للصلاة.

**تشريح**: د حديث الفاظ قصد دي نه كوي، څخه امام شافعي رحمة الله عليه دا نتيجه اخيستې ده كه يو سړی په دغه وختونو كي په قصد سره تحية المسجد او قضاء لمونځ كوي نو ددې حديث خلاف به كوي هو كه يو سړی دا اتفاقا وكړي نو جائز دی ليكن حنفيه وايي چي په حديث كي مطلقا په دغه وختونو كي د لمانځه كولو څخه منعه كړل سوې ده په دې كي قصدا يا اتفاقا قيد لګول د حديث د منشاء خلاف دی .

## د شيطان د دواړو ښكرونو تر منځ د لمر راختلو مطلب

د شيطان د دواړو ښكرونو په مينځ كي د لمر راختلو مطلب د هغه د سر د دواړو خواوو په مينځ كي د لمر راختل دي يعني شيطان د لمر ختلو په وخت كي د لمر مخكي دريږي چي لمر د هغه سر دواړو خواوو په مينځ كي راووځي او ددې حركت څخه د هغه مقصد دا وي چي كوم خلک د لمر عبادت كوي شيطان د هغوی قبله جوړوي نو رسول الله ﷺ دا وخت د لمانځه كولو څخه منعه فرمايلې ده چي د الله تعالى د سركښانو سره مشابهت نسي .

## درې منعه وختونه

﴿۹۷۳﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ ابْنِ عَامِرٍ قَالَ ثَلَاثُ سَاعَاتٍ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عقبة بن عامر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به مونږ په درو وختو كي د لمونځ كولو څخه منعه كولو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَانَا أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِنَّ أَوْ أَنْ نَقْبُرَ فِيهِنَّ مَوْتَانَا حِينَ تَطْلُعُ

او په دې درو وختو كي به يې د مړو د ښخولو (يعني د جنازې دلمانځه) څخه منعه كولو ۱: دلمر ختلو په وخت كي

الشَّمْسُ بَازِغَةً حَتَّى تَرْتَفِعَ وَحِينَ يَقُومُ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ حَتَّى تَمِيلَ الشَّمْسُ

تر هغو چي ښه را وخيژي ۲: هغه وخت چي د غرمې سايه قائمه سي تر هغو چي د لمر سايه وګرځي .

وَحِينَ تَضَيَّفُ الشَّمْسُ لِلْغُرُوبِ حَتَّى تَغْرُبَ . رواه مسلم .

۳: او هغه وخت چي لمر په لوېدو وي تر څو چي ډوب سي .مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۵۶۸-۵۶۹، رقم: ۲۹۳-۸۳۱.

**تشريح** : د مړي ښخولو دا مطلب نه دی چي په دغه وختونو كي دي مړی نه ښخول كيږي بلكه ددې مطلب د جنازې د لمانځه كولو څخه منعه فرمايل ده ځكه چي مړی هر وخت ښخول كيدای سي.

**د سهار او ماز ديګر وروسته بايد هيڅ لمونځ ونه كړل سي**

﴿۹۷۴﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد الخدري ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لاَ صَلاَةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ وَلاَ صَلاَةَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغِيبَ الشَّمْسُ . متفق عليه

: د سهار دلمانځه وروسته تر څو پوري چي لمر را ونه خيژي هيڅ لمونځ نسته او د مازديګر د لمانځه وروسته تر څو پوري چي لمر ډوب نه سي هيڅ لمونځ نسته ، مسلم او بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۶۱، رقم: ۵۸۶، ومسلم ۱\۵۶۷، رقم: ۲۸۸- ۸۲۷.

**تشريح**: دلته د نفي څخه مراد د لمانځه د كمال نفي ده ځكه چي په دې دواړو وختونو كي لمونځ كول حرام نه بلكه مكروه دى .

**د لمانځه وختونه**

﴿۹۷۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ

د حضرت عمرو بن عبسة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ مديني منورې ته راغلى

فَقَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ أَخْبِرْنِي عَنِ الصَّلَاةِ فَقَالَ صَلِّ

او زه هم مديني ته راغلم او د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم ما عرض وكړ چي ما د لمانځه د وختو څخه خبردار كړئ ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : لمونځ كوه

صَلَاةَ الصُّبْحِ ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ حِيْنَ تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَتَّى تَرْتَفِعَ فَإِنَّهَا

د سهار لمونځ بيا د لمانځه څخه منعه سه تر څو پوري چي لمر پورته راونه خيژي ځكه چي لمر

تَطْلُعُ حِينَ تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ وَحِيْنَئِذٍ يَسْجُدُ لَهَا الْكُفَّارُ ثُمَّ صَلِّ فَإِنَّ

د شيطان د دوو ښكرو په منځ كي راخيژي او دغه وخت كافر لمر ته سجده كوي بيا د (اشراق) لمونځ وكړه ځكه چي

الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَحْضُورَةٌ حَتَّى يَسْتَقِلَّ الظِّلُّ بِالرُّمْحِ ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ

ددې وخت لمونځ مشهود دى يعني په دې وخت كي ملائكي حاضريږي او د لمونځ كونكي د لمانځه شهادت كوي بيا د لمانځه څخه منعه سه تر دې چي سايه د نيزې برابر سي او پر مځكه د هغه سايه ونه غوړيږي بيا د لمانځه څخه منعه سه

فَإِنَّ حِيْنَئِذٍ تُسْجَرُ جَهَنَّمُ فَإِذَا أَقْبَلَ الْفَيْءُ فَصَلِّ فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ

ځكه چي په دې وخت كي دوږخ ګرميږي بيا چي سايه كښته سي نو د (ماپښين) لمونځ وكړه ځكه چي دا وخت د ملائكو د حاضرۍ دى

مَحْضُورَةٌ حَتَّى تُصَلِّيَ الْعَصْرَ ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ

تر دې چي ته د مازديګر لمونځ وکړې بيا دلمانځه څخه د لمر تر لوېدو پوري منعه سه

فَإِنَّهَا تَغْرُبُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ وَحِينَئِذٍ يَسْجُدُ لَهَا الْكُفَّارُ قَالَ فَقُلْتُ يَا

ځکه چي هغه د شيطان د دوو ښکرو په منځ کي ډوبيږي او په دې وخت کي کفار سجده ورته کوي، د راوي بيان دي چي تر دې وروسته ما وويل اې

نَبِيَّ اللهِ فَالْوُضُوءَ حَدِّثْنِي عَنْهُ قَالَ مَا مِنْكُمْ رَجُلٌ يُقَرِّبُ وَضُوءَهُ فَيَتَمَضْمَضُ

د الله رسوله! د اوداسه په اړه مي خبر کړه، رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي څوک د لاس پريوللو څخه وروسته د اوداسه اوبه را واخلي خوله پريولي

وَيَسْتَنْشِقُ فَيَنْتَثِرُ إِلاَّ خَرَّتْ خَطَايَا وَجْهِهِ وَفِيهِ وَخَيَاشِيمِهِ ثُمَّ إِذَا

بيا په پزه کي اوبه واچوي هغه سوڼ کړي نو د هغه د مخ او خولې او پزي ګناهونه پريولل سي بيا

غَسَلَ وَجْهَهُ كَمَا أَمَرَهُ اللهُ إِلاَّ خَرَّتْ خَطَايَا وَجْهِهِ مِنْ أَطْرَافِ لِحْيَتِهِ مَعَ

ک له چي هغه مخ پريولي لکه چي امر کړی دی ده ته الله تعالی ﷻ نو د هغو برخو ګناه پريولل سي چي د دواړو طرفو په جانب کي دی (يعني د ږيري د برخو ګناه) له

الْمَاءِ ثُمَّ يَغْسِلُ يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ إِلاَّ خَرَّتْ خَطَايَا يَدَيْهِ مِنْ أَنَامِلِهِ مَعَ

اوبو سره، بيا چي هغه دواړه لاسونه تر څنګلو پوري پريولي نو د هغه د لاسو ګناه تر ګوتو پوري پريولل سي له

الْمَاءِ ثُمَّ يَمْسَحُ رَأْسَهُ إِلاَّ خَرَّتْ خَطَايَا رَأْسِهِ مِنْ أَطْرَافِ شَعْرِهِ مَعَ الْمَاءِ ثُمَّ

اوبو سره، بيا چي هغه د سر مسح کوي نو په اوبو سر د سر ګناه پريولل سي بيا چي هغه

يَغْسِلُ قَدَمَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ إِلاَّ خَرَّتْ خَطَايَا رِجْلَيْهِ مِنْ أَنَامِلِهِ مَعَ الْمَاءِ

پښي تر بجلکو پوري پريولي نو د پښو ګناه ترګوتو پوري پريولل سي له اوبو سره

فَإِنْ هُوَ قَامَ فَصَلَّى فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ وَمَجَّدَهُ بِالَّذِي هُوَ لَهُ أَهْلٌ وَفَرَّغَ

بيا چي هغه ودريږي او لمونځ وکړي او د الله تعالی تعريف او صفت بيان کړي او د هغه د برزګي اظهار وکړي چي يې اهل دی او متوجه وي

قَلْبَهُ لِلَّهِ إِلاَّ انْصَرَفَ مِنْ خَطِيئَتِهِ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ . رواه مسلم

د هغه زړه الله ﷻ ته نو هغه د ګناهو څخه داسي پاک سي لکه نن چي د مور څخه زيږيدلی دي. مسلم شريف

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۵۶۹– ۵۷۱، رقم: ۲۹۴– ۸۳۲.

**تشريح**: د حديث الفاظ کله چي سايه نيزې ته ورسيږي او پر مځکه نه پريوځي د دې تعلق د مکې او مدينې منورې او د هغه شاوخوا سره دی ځکه چي په دغه ځايو کي په لويو ورځو کي د غرمې په وخت کي سايه بالکل پر مځکه نه پريوځي.

د حديث اخري الفاظ څخه دا مفهوم کيږي چي صغيره او کبيره ګناه دا ټوله بخښنل کيدای سي نو په دې اړه د تحقيق خبره داده چي صغيره ګناه خو ضرور بخښنل کيدای سي البته د کبيره ګناهونو د بخښني انحصار د حق تعالی پر مشيت او د هغه پر خوښې دی که غواړي نو په خپل فضل او کرم سره د هغه کبيره ګناوي هم بخښي.

## د رسول الله ﷺ د ماز ديګر وروسته دوه رکعته لمونځ کول

﴿۹۷۶﴾: وَعَنْ كُرَيْبٍ اَنَّ بْنَ عَبَّاسَ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَعَبْدَ الرَّحْمنِ بْنَ

د حضرت کريب څخه روايت دی چي زه ابن عباس مسور، بن مخرمه او حضرت عبد الرحمن بن

أَزْهَرَ أَرْسَلُوهُ إِلَى عَائِشَةَ فَقَالُوا اقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلاَمَ وَسَلْهَا عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ

ازهر زه بي بي عائشې ؓ ته ولېږم چي سلام يې ور ورسوم او پوښتنه وکړم د دوو رکعتونو

بَعْدَ الْعَصْرِ قَالَ فَدَخَلْتُ عَلَيْهَا وَبَلَّغْتُهَا مَا أَرْسَلُونِي فَقَالَتْ سَلْ أُمَّ سَلَمَةَ

د ماز ديګر وروسته، نو زه (کريب) د هغې په خدمت کي حاضر سوم د درو سره صحابه کرامو سلام مي ورته ووايه، او پوښتنه مي ورته وړاندي کړل، بي بي عائشې وفرمايل د بي بي ام سلمه څخه پوښتنه وکړه

فَخَرَجْتُ إِلَيْهِمْ فَرَدُّونِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ

زه بیرته ولاړم داسي مي ورته وویل بیا یې زه بي بي ام سلمه ته ولیږلم هغې وفرمایل ما د نبي کریم ﷺ څخه اوریدلي دي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْهُمَا ثُمَّ رَأَيْتُهُ يُصَلِّيهِمَا ثُمَّ دَخَلَ فَأَرْسَلْتُ

چي ددې دوو رکعتو څخه منعه فرمایل بیا ما ولیدل چي رسول الله ﷺ دا (دوه) رکعتونه کول کله چي رسول الله ﷺ دا دوه رکعته وکړ' کورته راغلی نو ما ولیږل

إِلَيْهِ الْجَارِيَةَ فَقُلْتُ قُولِي لَهُ تَقُولُ أُمُّ سَلَمَةَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أَسْمَعُكَ تَنْهَى

د رسول الله ﷺ په خدمت کي مینځه چي ورته ووایه: ام سلمه وایي چي ما ستاسو څخه ددې رکعتو په اړه منعه اوریدلې ده

عَنْ هَاتَيْنِ الرَّكْعَتَيْنِ وَأَرَاكَ تُصَلِّيهِمَا قَالَ يَا بِنْتَ أَبِي أُمَيَّةَ سَأَلْتِ عَنْ

او اوس ما ولیدل چي تاسو دا دوه رکعته کوئ، رسول الله ﷺ وفرمایل : اې د امیه لوري! تا پوښتنه کړې وه

الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِنَّهُ أَتَانِي نَاسٌ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ فَشَغَلُونِي عَنْ

د مازدیگر وروسته د دوو رکعتو په اړه نو پښه داده چي قبیله عبد القیس ځیني خلک ما ته راغلی وه د هغوی سره په خبرو کي د ماپښین څخه وروسته دوه رکعته زما څخه پاته سول

الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ فَهُمَا هَاتَانِ . متفق عليه

نو دا ما د مازدیگر وروسته وکړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰۵\۳، رقم: ۱۲۳۳، ومسلم ۵۷۱\۱، ۵۷۲، رقم: ۲۹۷ - ۸۳۴.

**تشريح** : د پوښتنه کونکو مطلب دا وو چي کله رسول الله ﷺ د مازدیگر د لمانځه وروسته نفل وغیره کولو څخه منعه فرمایلې ده نو د مازدیگر د لمانځه وروسته دوه رکعته یې ولي وکړل؟ هغه کریب ﷜ د بي بي عائشې ﵂ په خدمت کي واستوی چي بي بي عائشې ﵂ کریب ﷜ ام سلمه ﵂ ته حواله کړ چي د هغې څخه په دې باره کي معلومات تر لاسه کړي ځکه چي ام سلمه رضي الله عنها په دې اړه پوره واقفیت لري او هغې د رسول الله ﷺ څخه ددې عمل په باره کي مخکي هم تحقیق کړی وو، بي بي عائشې ﵂ کریب ﷜ ته ام سلمه ﵂ ته د ورتلو لپاره وویل

نو هغه ته ام سلمه ﷞ ته ورتلل پکار وه خو هغه د آداب له مخي مخکي هغو درو صحابه کرامو ته راغلي چي د هغوی پیغام رسونکي جوړیدو سره د بي بي عائشي ﷞ په خدمت کي حاضر سول هر کله چي هغه صحابه کرام بي بي ام سلمه ﷞ ته بېرته ورواستول نو کریب ﷛ ورغلی د صحابه کرامو پیغام یې هغې ته ورسوی او حقیقت حال څخه خبردار سو .

د بي بي ام سلمه ﷞ د جواب مطلب دا وو چي رسول الله ﷺ د مازدیگر وروسته د دوو رکعتونو څخه منعه فرمایلې وه نو هغه دوو رکعتو څخه به د رسول الله ﷺ مراد مطلقا نفل لمونځ وو او په دې ضمن کي ددې دوو رکعتو نهي هم شامله وه لیکن دا احتمال دی چي رسول الله ﷺ ددې دوو رکعتونو کولو څخه منعه فرمایلې ده .

ابوامیه د بي بي ام سلمه ﷞ د پلار نوم وو رسول الله ﷺ هغه خادمي ته وفرمایل چي ام سلمه رض ته ددې سوال جواب داسي ورکړه ،یا رسول الله ﷺ په خپله ام سلمه ﷞ ته په جواب ورکولو سره د ابوامیه لور په ویلو سره مخاطب کړې وه .

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي ددین علم داحکام شریعت تبلیغ او مخلوق ته هدایت کول پر نفل لمانځه باندي مقدم دی که څه هم سنت غیر مؤکده وي رسول الله ﷺ د ماپښین د فرض لمانځه وروسته دوه رکعته سنت وځنډول او مخکي د عبدالقیس ډلي ته د دین مسائل او احکام شریعت تعلیم ورکړ .

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي که نوافل وقتیه فوت سي نو هغه بل وخت قضاء کول پکار دي څرنگه چي د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دی مگر د امام اعظم رحمة الله علیه په مذهب کي نوافل وقتیه یوازي په هغه وختو کي کول پکار دي په غیر وخت کي د هغه قضاء نسته د هغوی لخوا ددې حدیث تاویل دا کیږي چي کیدای سي رسول الله ﷺ د ماپښین د فرض لمانځه وروسته سنت دوه رکعته کول پیل کړي وه مگر وفد عبدالقیس ته د علم دین د تعلیم ورکولو د ضرورت په وجه رسول الله ﷺ لمونځ مات کړی وو په دې وجه رسول الله ﷺ د هغه دوو رکعتو قضاء د مازدیگر د لمانځه وروسته کړې وي .

دلته دا ویل کیدای سي چي د حدیث څخه خو دا خبره معلومیږي چي رسول الله ﷺ د مازدیگر وروسته کوم دوه رکعاتونه کړي وه هغه په اصل کي د ماپښین د فرض وروسته سنت وو چي وفد بدالقیس سره د تعلیم دین د مشغولیت په وجه پاته سوی وه لیکن د هغه حدیثو څه جواب دی چي د هغه څخه معلومیږي چي رسول الله ﷺ خو همیشه د مازدیگر وروسته دوه رکعته نفل کول په صحیح بخاري کي د بي بي عائشي رضي الله عنها دا روایت نقل دی هغه

وفرمایل په هغه الله دي مي قسم وي چي رسول الله ﷺ پې ددې دنیا څخه واخیستی رسول الله ﷺ د مازدیګر د لمانځه وروسته دوه رکعته کول نه پریښول تر دې چي رسول الله ﷺ د خپل پروردګار سره ملاقت وکړ دا دول نور روایتونه هم موجود دي .

د دوی جواب دادی چي د احادیث صحیحه څخه دا ثابته ده چي د مازدیګر د لمانځه وروسته بل لمونځ کول مکروه دی د جمهورو علماؤ هم دا رایه ده، د امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په باره کي هم دا ثابته ده چي هغوی به د مازدیګر د فرض لمانځه وروسته بل لمونځ کولو څخه منعه کول نه یوازي دا بلکه داسي خلک به يې وهل چي د مازدیګر وروسته به يې نفل وغیره کول .

اوس به دا وویل سي چي ددې ممانعت سربیره د رسول الله ﷺ د مازدیګر د لمانځه وروسته دوه رکعته لمونځ کول په اصل کي د رسول الله ﷺ د خصائص څخه نه وو څرنګه چي رسول الله ﷺ صوم وصال یعني پرله پسې روژې نیولې خو نور خلک به يې ددې کار څخه منعه کول .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د سهار د سنتو قضا

﴿۹۷۷﴾: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ قَيْسِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى

حضرت محمد بن ابراهیم د قیس بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ ولیدی

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلاً يُصَلِّي بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ

یو سړي د سهار د لمانځه وروسته پر دوه رکعته کولو باندي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةُ الصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ الرَّجُلُ إِنِّيْ

د سهار لمونځ دوه دوه رکعته دی ، هغه سړي وویل

لَمْ أَكُنْ صَلَّيْتُ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا فَصَلَّيْتُهُمَا الْآنَ فَسَكَتَ رَسُوْلُ

د سهار د فرض لمانځه څخه مخکي دوه رکعته سنت ما نه وه کړې هغه ما په دې وخت کي وکړل ، (د دې په اوریدو سره) رسول الله ﷺ پټه خوله سو ،

اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه أبو داود وروى الترمذي نحوه وقال إسناد هذا الحديث ليس بمتصل لأن محمد بن إبراهيم يسمع لم يسمع من قيس بن عمرو. وفي شرح السنة ونسخ المصابيح عن قيس بن قهد نحوه.

ترمذي هم دا ډول روایت کړی دی او ویلي یې دي ددې سند متصل نه دی ځکه چي محمد ابن ابراهیم د قیس بن عمر څخه نه دي اوریدلي د شرح السنة او مصابیح په نسخو کي د قیس ابن فهد څخه داسي روایت دی، د امام شافعي په نزد که د سهار سنت پاته سي نو د لمر ختلو څخه وروسته یې قضا کیږي، امام اعظم ابو حنیفة او امام یوسف وایي که سنت پاته سي نو قضاء دي یې وکړي که فرض هم پاته سي نو د زوال څخه مخکي دي فرض او سنت دواړه وکړي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۵۱، رقم: ۱۲۶۷ والترمذي ۲\ ۲۸۴- ۲۸۵، رقم: ۴۲۲، البغوي في شرح السنة ۳\ ۳۳۴، رقم: ۷۸۱، مصابيح السنة ۱\ ۳۸۷، رقم: ۷۵۰.

**تشريح**: د حديث جمله صلوة الصبح الركعتين څخه مخکي یو لفظ مقدر یعني پټ دی یعني دا عبارت په پوره توګه سره اجعلوا صلوة الصبح رکعتین، لفظ د رکعتین نفي د زيات تاکید لپاره مکرر فرمایل سوی دی مطلب یې دادی چي د سهار فرض دوه رکعته کوه د هغه وروسته څه لمونځ مه کوه رسول الله ﷺ د لمونځ کونکي د جواب په اوریدو سره پټه خوله سو د محدثین په اصطلاح کي دي په ارمتیا تقریر وویل سي چي د رسول الله ص مخکي څه عمل وسو او رسول الله ﷺ پر هغه سکوت وفرمایلو که څه هم رسول الله ﷺ په هغه عمل راضي سو نو ددې حدیث څخه دا معلومه سوه که د سهار د فرض لمانځه مخکي دوه رکعاته سنت نه وي سوي نو د فرض لمانځه وروسته د هغه قضاء کول پکار ده د امام شافعي رحمة الله علیه دا مذهب دی.

د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه او امام ابویوسف رحمة الله علیه په نزد په دې اړه مسئله داده چي د سهار د سنتونو قضاء څخه خو د لمر ختو مخکي سته او نه د لمر ختو وروسته لیکن سنت که د فرضو سره فوت سي نو هغه د فرضو سره د لمر کښنته کیدو مخکي دي قضاء وکړل سي، امام محمد رحمة الله علیه فرمایي چي صرف د سنتو هم قضاء کیداي سي خو د لمر ختو څخه د لمر تر کښنته کیدو پوري.

د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه او ابویوسف رحمة الله علیه دلیل دادی چي په سنتو کي اصل عدم قضا ده او قضا د واجب سره مخصوص ده او حدیث چي دسنتو د قضاء اثبات کي

وارد دي هغه د هغه د سنتو په باره کي دی چي د فرضو سره فوت سوی وي پاته سنت به خپل اصل عدم يعني عدم قضاء باندي وي يعني د هغه قضاء به نه سي کولاي تر څو پوري چي ددې حديث تعلق دی محمد ابن ابراهيم دا حديث ضعيف دی ځکه داده څه مذهب بنياد او دليل جوړولو لپاره صحيح نه دی ، همداسي د نورو وختونو د سنتونو مسئله هم داده چي د وخت وروسته تنهاء د هغه قضاء وکړل سي البته هغه سنت چي د فرضو سره فوت سوی وي د فرضو سره د هغه قضاء په باره کي اختلاف دی .

## د بيت الله طواف هر وخت کيدای سي

﴿۹۷۸﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا بَنِي

د حضرت جبير بن مطعم رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي اې

عَبْدِ مُنَافٍ لَا تَمْنَعُوا أَحَدًا طَافَ بِهٰذَا الْبَيْتِ وَصَلّٰى أَيَّةَ سَاعَةٍ شَاءَ مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي .

د عبدمناف اولاده هيڅوک ددې کور (خانه کعبه) د طواف څخه مه منعه کوئ او په شپه او ورځ کي کله چي څوک غواړي لمونځ دي کوي . ترمذي، ابوداؤد اونسائي

**تخريج**: سنن ابئ داؤد: ۲\ ۴۴۹، ۴۵۰، رقم: ۱۸۹۴ . والترمذي ۳\ ۲۲۰، رقم: ۸۶۸، والنسائي ۱\ ۲۸۴، رقم: ۵۸۴.

**تشريح** : د خانه کعبه خدمت عبدمناف ته په حواله وواو د هغه انتظامات او مشري د هغوی پر ذمه وه، رسول الله ﷺ هغوی ته حکم وکړ که د شپې او ورځي هره حصه کي خواه د لمر ختو وخت وي يا نصف النهار يعني غرمه د ټولو علماوو په نزد د خانه کعبه طواف کولای سي په دې کي هيڅ چاته اختلاف نسته .

## په بيت الله شريف کي هر وخت د لمونځ کولو مسئله

البته په دې باره کي د علماوو اختلاف دی چي په خانه کعبه کي د شپې او ورځي په هره برخه کي که څه هم مکروه وخت وي لمونځ کيدای سي که نه؟ د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د حديث په وجه په خانه کعبه کي هر وخت هر څوک لمونځ که هغه د طواف دوه رکعته وي يا بل لمونځ وي کيدای سي .

د امام احمد رحمه الله مذهب دادی چي په خانه کعبه کي يوازي د طواف دوه رکعته هر وخت کيدای سي د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله په نزد په خانه کعبه کي دننه په اوقات مکروهه کي هيڅ لمونځ هم نه دی جائز ځکه چي دا وختونه د حرمت او کراهت په اړه د مکي حکم هم د نورو ښارونو په ډول دی او ښکاره ده چي د اوقات د حرمت او کراهت حکم او په هغه کي د لمانځه کولو د ممانعت په اړه کي چي کم حديثونه نقل سوي دي هغه ټول عام دي په هغه کي د هيڅ ځاي او هيڅ ښار تخصيص نسته چي په فلاني ځاي کي خو په دې وختونو کي لمونځ کول جائز دی او په فلاني ځاي کي ناجائز دی تر څو پوري چي د حديث تعلق دی نو په دې اړه ويل سوي دي چي رسول الله ص ددې ارشاد مراد دادی چي په خانه کعبه کي کم وخت وغواړي لمونځ کيدای سي البته په اوقات مکروهه کي هم لمونځ نه سي کيدای په دې تاويل سره په ټولو حديثونو کي موافقت او مطابقت هم کيږي چي يو ضروري شی دی .

## د جمعې په ورځ په غرمه کي د لمونځ کولو مسئله

﴿۹۷۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الصَّلَاةِ نِصْفَ النَّهَارِ حَتّٰى تَزُوْلَ الشَّمْسُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ . رواه الشافعي .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم د غرمې په وخت کي تر څو پوري چي لمر کښته نه سي د لمونځ کولو څخه منعه فرمايلې ده پرته د جمعې د ورځي .شافعي .

**تخريج**: الامام الشافعي في مسنده ۱\۱۳۹، رقم: ۴۰۸.

**تشريح** : د امام شافعي رحمه الله خو دا مذهب دی چي د جمعې په ورځ د غرمې په وخت کي هم لمونځ کيدای سي خو د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله په مذهب په غرمه کي لمونځ کول صحيح نه دی [1] ، ددې وجهي څخه چي هغه حديثونه چي په هغه کي مطلقا نهي ثابت نه ده ددې حديث په مقابله کي زيات مشهور دی او دا حديث ضعيف دی چي د دغه حديثو مقابله نه سي کولاي يا داسي به وويل سي چي د قاعدې مطابق هر کله چي د يو شي په مقابله کي د حرام او مباح دواړو دلائل موجود وي نو د حرام دلائلو ته ترجيح ورکول کيږي .

[1] - د اما اعظم رحمة الله عليه مذهب خو دادی چي دلته نقل سو خو د ابو يوسف رحمة الله عليه قول صحيح او معتمد دی کذا في الاشباه.

﴿۹۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي الْخَلِيْلِ عَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابوالخليل د ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت كوي چي نبي كريم ﷺ

كَرِهَ الصَّلَاةَ نِصْفَ النَّهَارِ حَتّٰى تَزُوْلَ الشَّمْسُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَقَالَ إِنَّ جَهَنَّمَ

د غرمې په وخت كي تر څو پوري چي لمر كښته نه سي لمونځ كول مكروه ګڼل پرته د جمعې د ورځي څخه او وه يې فرمايل: دوږخ

تُسَجَّرُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةَ. رواه أبو داود وقال أبو الخليل لم يلق أبا قتادة.

هره ورځ تو ديږي مګر د جمعې په ورځ نه تو ديږي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۵۳، رقم: ۱۰۸۳.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### مكروه وختونه

﴿۹۸۱﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ الصَّنَابِحِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله الصنابحي رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ وَمَعَهَا قَرْنُ الشَّيْطَانِ فَإِذَا ارْتَفَعَتْ فَارَقَهَا ثُمَّ إِذَا اسْتَوَتْ

كله چي لمر راخيژي نو د هغه سره د شيطان ښكر وي بيا چي هغه پورته سي نو بيل سي بيا چي ټكنده غرمه سي

قَارَنَهَا فَإِذَا زَالَتْ فَارَقَهَا فَإِذَا دَنَتْ لِلْغُرُوْبِ قَارَنَهَا فَإِذَا غَرَبَتْ فَارَقَهَا وَنَهٰى

نو (شيطان) بيا لمر ته راسي او د زوال پر وخت ځيني ليري سي او كله چي لمر لويږي نو بيا (شيطان) ورته نژدې راسي او پر لوېدو باندي ځيني جلا سي او منعه كړې ده

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاةِ فِيْ تِلْكَ السَّاعَاتِ. رواه مالك وأحمد والنسائي.

رسول الله ﷺ په دې وختو کي د لمانځه کولو څخه منعه فرمايلې ده. مالک،احمد،نسائي.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۲۱۹، رقم: ۴۴ و احمد في مسنده ۴\۳۴۸، والنسائي: ۱\۲۷۵، رقم: ۵۵۸.

**تشريح**: رسول الله ﷺ په دغه وختونو کي د لمونځ کولو څخه منعه فرمايلې ده لمونځ که حقيقتا وي که حکما لکه د جنازې لمونځ يا سجده تلاوت او امام مالک رحمة الله عليه باوجود ددې چي دا روايت خپله نقل کړی دی خو هغه د پوره غرمې په وخت کي د لمانځه د حرام کيدو قائل نه دی بلکه هغوی دا هم فرمايلي دي چي مونږ اهل فضل ليدلي دي چي هغوی به کوښښ کوی او په غرمه کي به يې لمونځ ادا کوی.

## د ماز ديګر وروسته د لمانځه منعه

﴿۹۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوبصرة الغفاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته لمونځ راکړی

وَسَلَّمَ بِالْمُخَمَّصِ صَلاَةَ الْعَصْرَ فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ الصَّلاَةَ عُرِضَتْ عَلَى مَنْ كَانَ

د مخمص په ځای کي د ماز ديګر لمونځ او وه يې فرمايل: دا هغه لمونځ دی چي وړاندي سوی وو

قَبْلَكُمْ فَضَيَّعُوهَا فَمَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَ لَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ وَلاَ صَلاَةَ بَعْدَهَا

تر تاسو مخکي قومو ته (يعني لازم کړل سوی وو او هغوی ضائع کړ) اوس چي څوک ددې لمونځ ساتنه کوي هغه ته به دوچنده ثواب وي او د ماز ديګر وروسته هيڅ لمونځ نه سته

حَتَّى يَطْلُعَ الشَّاهِدُ وَالشَّاهِدُ النَّجْمُ. رواه مسلم

تر څو پوري شاهد طلوع نه سي (را ونه خيژي) او شاهد يو ستوری دی. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۵۶۸، رقم: ۲۹۲- ۸۳۰.

**تشريح**: د دوه برابر ثواب مطلب دا دی چي يو خو به ورته ځکه حاصليږي چي لمونځ کول نيک عمل دی او پر هر نيک عمل باندي ثواب حاصليږي او دوهم ثواب د هغه د لمانځه د حفاظت په وجه به ورته حاصليږي پرخلاف د پخوانو قومونو چي هغوی ددې محافظت نه وکړو ځکه د عذاب مستحق سوه ستوري ته شاهد ځکه وسل سوي دي چي هغه د شپې حاضروي يعني راخيژي او ددې مطلب دا دی چي تر خوپوري د لمر غروب کيدل ونسي د ماځيګر د لمانځه وروسته دې هيڅ لمونځ و نه وکړل سي.

## د ماز ديگر وروسته د دوو ركعتو منع

﴿۹۸۳﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ إِنَّكُمْ لَتُصَلُّوْنَ صَلاَةً لَقَدْ صَحِبْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت معاويةؓ څخه روايت دی چي تاسو لمونځ کوئ او موږ د رسول الله ﷺ په صحبت کي پاته سوی يو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْنَاهُ يُصَلِّيهِمَا وَلَقَدْ نَهٰى عَنْهُمَا يَعْنِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ. رواه البخاري.

مگر موږ هيڅکله رسول الله ﷺ پر دې دوو رکعتو کولو نه دی ليدلی بلکه رسول الله ﷺ د دې کولو څخه منعه فرمايلې ده يعني د مازديگر د لمانځه وروسته نفلي دوه رکعته يې منعه کړي دي..بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۶۱، رقم: ۵۸۷.

**تشريح**: په نورو اياتونو کي خو په وضاحت سره راغلي دي چي رسول الله ﷺ به د مازديگر وروسته دوه رکعته کول ليکن دلته معاويهؓ د دې څخه انکار کوي نو د دې حديث به دا تاويل کيږي چي د معاويهؓ ارشاد مراد به دا کيږي چي رسول الله ﷺ دا دوه رکعته د دباندي د خلکو مخکي نه کول البته په کور کي د عامو خلکو د نظر څخه د جلا کيدو سره به يې کول چي نور خلک په دې اړه د رسول الله ﷺ پيروي نه وکړي چي د ماځيگر وروسته دا دوه رکعاته صرف رسول الله ﷺ کول صحيح وو د نورو خلکو لپاره جائز نه وو امام طحاوي رحمة الله عليه په دې مسئله کي ايا د ماځيگر وروسته دوره رکعاته کول جائز دي که نه فرمايي چي رسول الله ﷺ څخه متواتر حديثونه ثابت دي چي د ماځيگر وروسته د بل لمونځ کولو څخه منعه فرمايلې ده او د صحابه کرامو عمل هم پر دې راغلی دی ، نو د دې وجهي دهيڅ چا لپاره مناسب نه ده چي د دې خلاف کوي يعني د مازديگر وروسته لمونځ جائز گرځوي .

﴿۹۸۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍ قَالَ وَقَدْ صَعِدَ عَلٰى دَرَجَةِ الْكَعْبَةِ مَنْ عَرَفَنِيْ فَقَدْ

د حضرت ابوذرؓ څخه روايت دی چي هغه د کعبې پر زينو وختی او وه يې ويل کوم څوک چي ما پيژني نو په تحقيق سره

عَرَفَنِيْ وَمَنْ لَّمْ يَعْرِفْنِيْ فَأَنَا جُنْدُبٌ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

پيژني به مي او چا چي زه ونه پيژندلم نو هغه ته ښيم چي زه جندب يم ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لاَ صَلاَةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلاَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى

چي فرمايل يې: د سهار په وخت كي تر څو پوري چي لمر راونه خيژي هيڅ لمونځ نسته او نه د مازديگر څخه وروسته تر څو پوري چي

تَغْرُبَ الشَّمْسُ إِلاَّ بِمَكَّةَ إِلاَّ بِمَكَّةَ إِلاَّ بِمَكَّةَ . رواه أحمد ورزين .

لمر ونه لويږي خو په مكه كي خو په مكه كي خو په مكه كي . احمد او رزين .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۶۵-۱۶۶.

**تشريح** : د بيت الله شريفي دروازه پورته ده ځكه هغه ته د ختلو لپاره زينه وه او س هم يوه زينه د ممبر په شكل كي ده چي د خانه كعبه مخكي د زمزم د څاه سره ده كله چي خانه كعبه ته دننه داخليږي نو هغه د دروازې مخ ته ايږدي نو احتمال دى چي هغه وخت هم دد ې قسم يا څه بل شان زينه به وه چي د هغه په ذريعه به خانه كعبه كي دننه داخليدى .

په هر حال حضرت ابوذر رضي الله عنه چي د هغه نوم جندب وو د كعبې پر زينې د ختلو سره دا خبره ېې وكړه چي خلك د هغه صداقت شعاري او د رښتيا په وجه حديث صحيح وگڼي همدا سي ابوذر رضي الله عنه گويا دې ته اشاره وكړه چي رسول الله ﷺ د هغه په باره كي فرمايلي وه چي ابوذر رض څخه زيات راست گو او رښتني انسان نه خو د اسمان سايې وكړو او نه د مځكي لوړ .

په مكه مكرمه كي اوقات مكروه كي د لمانځه د جائز كيدو مسئله تر دې مخكي د حديث نمبر اووم په تشريح كي ښودل سوې ده په دې وخت كي په دې خبري باندي پوه سئ چي دا حديث ضعيف دى .

========

# بَابُ الْجَمَاعَةِ وَفَضْلِهَا

## جماعت او د هغه د فضیلت بیان

د جماعت په فضیلت او تاکید کي صحیح احادیث دومره ډېر راغلي دي که ټول یوځای کړل سي نو یو کتاب ځني جوړېږي ددې باب لاندي داسي حدیثونه نقل کیږي چي د هغه څخه د جماعت فضیلت او تاکید او د هغه د احکامو او مسائلو علم حاصلیږي ددې حدیثو د لیدو وروسته په یقیني توګه سره تاسو به دا نتیجه واخلئ چي په جماعت سره د لمانځه په تکمیل کي د یو اعلي درجې شرط دی رسول اللهﷺ هیڅ کله جماعت نه دی پرې ایښی حتي د مرض په حالت کي هم خپله مسجد ته ورتلل ورته ممکن نه وه نو د دوو خلکو په مرسته سره به مسجد ته بېول کېدی او په جماعت سره به یې لمونځ ادا کوی.

په دې کي هیڅ شک نسته چي په شریعت محمدي کي د جماعت ډېر اهتمام سوی دی او کیدل هم پکار دي ځکه چي د لمانځه په ډول عظیم عبادت ددې متقاضي وو چي په کوم شي سره د دې تکمیل کیږي هغه اعلي درجې ته ورسول سي.

## جماعت فرض او واجب دی کنه؟

په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي ایا جماعت سنت دی که واجب که فرض عین یا فرض کفایه د بعضو علماوو رایه داده چي جماعت فرض عین دی مګر کله چي یو عذر وي، دا قول د امام احمد رحمة الله علیه، داؤد رحمة الله علیه، عطاء رحمة الله علیه او ابوثور رحمة الله علیه دی د بعضو علماوو قول دادی چي څوک د لمانځه لپاره اذان واوري او په مسجد کي حاضر نه سي نو د هغه لمونځ نه دی صحیح د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد جماعت فرض کفایه دی.

د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه او د هغه د متبعینو مذهب دادی چي جماعت سنت موکده واجب قریب دی لیکن د فقهي په کتابو کي دا معلومیږي چي د جماعت په باره کي د حنفي فقهاوو دوه قوله دي په بعضو کتابونو کي جماعت واجب لیکل سوی دی مشهور محقق ابن همام رحمة الله علیه لیکي چي زمونږ د اکثرو مشائخو مذهب دادی چي جماعت واجب دی لیکن دې ته سنت ځکه ویل سوی دی چي د جماعت ثبوت په سنت یعني حدیث سره دی نه دا چي خپله جماعت سنت دی څرنګه چي د اختر لمونځونه واجب دي خو هغه ته سنت ځکه ویل سوی دی چي د هغه ثبوت د حدیث څخه دي.

## د جماعت احکام او مسائل

په کتاب البدائع کي ليکلي دي چي د جماعت لپاره په مسجد کي حاضريدل پر هر عاقل ،بالغ ،غير معذور باندي واجب دی او که په يوه مسجد کي جماعت لاندي نه کي نو په نورو جوماتونو کي گرځيدل واجب نه دی البته د جماعت د سعادت حاصلولوپه خاطر که نورو مسجدونو ته ولاړ سئ نو دا ښه خبره ده قدومي ليکلي دي چي په دې صورت کي په مسجد کي جماعت لاندي نه کي نو پکار ده چي اهل وعيال را جمع کي او په کور کي په جماعت سره لمونځ وکي په دې مسئله کي د علماوو دلته اختلاف دی چي د محلې په مسجد کي جماعت افضل دی که په جامعه مسجد کي که په يوه محله کي دوه مسجدونه وي نو په هغه کي قديم جومات اختيارول پکار دي او که دواړه برابر وي نو بيا کم مسجد چي نژدې وي هغه دي اختيار کړل سي جماعت تراويح په لمانځه کي که څه هم يو قرآن کريم په جماعت سره سوی دی او نماز کسوف لپاره سنت موکده دی د رمضان د مياشتي په وتر لمانځه کي جماعت مستحب دی د روژې څخه پرته په بله زمانه کي يعني په بل وخت کي جماعت مکروه تنزيهي دی خو ددې د مکروه کيدو شرط دادی چي هميشگي وکړل سي که هميشگي نه وکړل سي بلکه کله کله دوه درې خلک په جماعت سره لمونځ وکړي نو مکروه نه دی .

د سپوږمۍ د تندري نيولو په وخت کي او په ټولو نوافلو کي جماعت مکروه تحريمي دی په شرط ددی چي نوافل په هغه اهتمام سره اداء کړل سي په کم اهتمام سره چي د فرائض جماعت کيږي يعني اذان او په اقامت سره يا په څه بلي طريقې سره خلک په را جمع کولو سره هو که بې اذان او بغير را بلني دوه يا درې خلک راټول سي او نفل په جماعت سره وکړي نو هيڅ پرواه نسته .

## د جماعت حکمتونه او گټې

د جماعت حکمتونه څه دي او ددې څه فائدې مرتب کيږي په دې موضوع علماوو ډير څه ليکلي دي ليکن په دې سلسله کي امام الکبير شاه ولي الله محدث دهلوي رحمة الله عليه چي کمه لطيفه او جامع خبره کړې ده هغه بل ځای په نظر نه راځي نو پر داسي وخت باندي د هغوی تقرير نقل کولای سو هغوی فرمايي چي :

۱. اول هيڅ شی تر دې زيات گټور نه دی چي يو عبادت داسي په رسم عام سره وکړل سي چي هغه عبادت يو ضروري عادت جوړ سي چي د هغه پريښول د يو عادت پريښولو په رقم نا ممکن سي او په ټولو عبادتونو کي تر لمانځه زيات عظيم او شاندار بل عبادت نسته چي د هغه سره دا خاص اهتمام وکړل سي .

۲. په مذهب کي هر ډول خلک وي جاهل هم عالم هم نو دا ډيره د مصلحت خبره ده چي ټول خلک په راجمع کيدو سره د يوبل مخکي هغه عبادت ادا کړي او که د چا څخه داسي غلطي سوې وي نو دوهم ېې ورته وښويي ګويا د الله تعالی عبادت يو زيور سو ټول حاجت کونکي ورته ګوري کمه خرابي چي په هغه کي وي نو ورته وه يې ښيي نو هغه ډيره بده ورته معلوميږي او کمه خوبي چي پکښې وي نو په هغه فخر کوي نو د لمانځه د تکميل به دا يوه ذريعه وي.

۳. کوم خلک چي بې لمانځه وي د هغوی به هم ددې سره حال پيداسي او د هغوی د وعظ ونصيحت موقع به ورته حاصله سي.

۴. د يو ځو مسلمانانو په يو ځاي کيدو سره د الله پاک عبادت کول او د هغه څخه دعا غوښتل د حق تعالی د رحمت د نزول او د قبوليت لپاره يو عجيبه خاصيت لري.

۵. ددې امت په ذريعه د الله تعالی دا مقصود وي چي د هغه د نامه کلمه ډيره لوړه سي او د کفر کلمه کښته سي او د مځکي پر مخ هيڅ ځوک پر مذهب اسلام باندي غالب نسي او دا خبره هلته کيداي سي چي دا طريقه مقرره کړل سي چي ټول مسلمانان که هغوی د هري درجې او طبقې وي عام وخاص مسافر او مقيم کوچني او لوئ ټول خپل څه لويي او مشهور عبادت لپاره را جمع سي او د اسلام شان او شوکت او د هغه عظمت د خپل اجتماعيت څخه په ځرګنده ددې ټولو مصلحتونو پيش نظر د شريعت پوره توجه د جماعت خواته مصروفه سوه او ددې ترغيب ورکړل سو او ددې د پريښودو ممانعت هم وکړل سو.

۶. په جماعت کي دا فائده هم ده چي ټول مسلمانان د يو بل په حال خبريږي او د يو بل په درد او مصيبت کي سره شريک کيږي چي په هغه سره د ديني ورورګلوۍ او ايماني محبت پوره اظهار او استحکام کيږي چي ددې شريعت يو لوي مقصود دی او د هغه تاکيد او فضيلت ځاي پر ځاي په قرآن کريم کي بيان سوی دی.

د اوسنۍ زمانې د نظرياتي دور مطابق که وکتل سي نو جماعت د اسلام د نظريه مساوات تر ټولو لوړ مظهر دی په ورځ کي پنځه واره د الله تعالی ټول بندګان چي په دنياوي اختيار سره د کم منصب او مرتبې چي وي خپله ټوله برتري او فوقيت او خپل دنياوي جاه وجلال بالايي په ايښودو سره د الله په حضور کي د ټولو مسلمانانو سره په يو ځاي کيدو سره په سجده کيږي او په ژبې سره ددې خبري اقرار کيږي چي:

ایک ہی صف میں کھڑے ہوگئے محمود وایاز نہ کوئی بندہ رہا اور نہ کوئی بندہ نواز

## د جماعت د پرېښودو عذر

ځرنګه چي ښودل سوي دي چي پر هر عاقل بالغ او غیر معذور باندي جماعت واجب دی لیکن که یو سړی معذور وي یعني هغه ته داسي عذر پېښ وي چي د هغه په وجه هغه مسجد ته د تلو سره په جماعت کي نسي شریک کېدلای نو د هغه لپاره جماعت نه واجب کېږي .فقهاء د جماعت پرېښولو پنځه لس عذرونه بیان کړي دي :

۱. د لمانځه د صحیح کېدو یو شرط طهارت او پاکي یا ستر وغیره نه تر لاسه کېدل

۲. سخت باران وریدل په دې اړه امام محمد رحمة الله علیه په خپل کتاب موطا کي لیکلي دي چي که څه هم د سخت باران په صورت کي مسجد ته نه تلل جائز دی لیکن بهتر داده چي ولاړ سي او په جماعت سره لمونځ وکړي .

۳. د مسجد په لار کي سختي خټي پرتې وي نو مسجد ته نه تلل جائز دي .

۴. یخ دومره زیات وي چي د کور څخه د راوتلو په وخت کي د ناروغۍ بېره وي.

۵. مسجد ته د تلو په وخت کي د مال او اسباب د غلا کېدو بیره وي .

۶. مسجد ته په تلو کي دد ښمن بیره وي .

۷. مسجد ته په تلو کي د پوروړي څخه د تکلیف رسیدو بیره وي په شرط ددې چي هغه د پور ادا کولو وړ نه وي او که وړ هم وي نو هغه ظالم ګڼل کېږي او هغه ته په مسجد کي د داخلیدو اجازت نسته .

۸. د شپې دومره سخته تیاره وي چي لار نه سي لیدل کیداي په داسي حالت کي دا ضروري نه ده چي سراغ وغیره په اخستو سره ولاړ سي.

۹. د شپې وخت چي هوا او سیلۍ ډیره سخته چلیږي .

۱۰. د یو مریض خدمت کول وي چي د هغه مسجد ته د تلو سره د هغه مریض د تکلیف یا بل څه بیره وي .

۱۱. بولي یا غټي بولي معلومیږي (زور وکړي) .

۱۲. د سفر اراده لري او بیره لري چي په جماعت سره په لمانځه به ځنډ وسي او سواري به ولاړ سي لکه بس کاړی ریل ګاډی طیاره وغیره

۱۳. د فقهي وغیره په ویلو یا ښودلو کي داسي مصروفه وي چي بالکل فرصت نه سي تر لاسه کولاي .

۱۴. یو داسي ناجوړي مثلا فالج وغیره یا دومره ضعیف وي چي پر تلو باندي نه وي قادره یا ړوند وي که څه هم مسجد ته د رسولو لپاره ورته څوک حاصل سي یا شل و ګډ وي یا لاسونه او پښې یې پرې وي .

۱۵. ډوډۍ تیاره وي یا تیارولو ته نژدې وي او دومره سخت وږی وي چي په لمانځه کي د زړه نه لګېدو بیره وي نو په دغه حالاتو کي جماعت پرېښودلای سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ　　(لومړی فصل)

### د جماعت د لمانځه ثواب

﴿۹۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلاَةُ الْجَمَاعَةِ أَفْضَلُ مِنْ صَلاَةِ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ دَرَجَةً . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په ثواب کي د جماعت لمونځ تر یوازي لمانځه اوه ویشت درجې زیات دی . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۲\۱۳۱، رقم: ۶۴۵ ومسلم ۱\۴۵۰، رقم: ۲۴۹- ۶۵۰.

**تشريح** : د ابن عمر رحمة الله عليه د دې روایت څخه خو د جماعت د لمانځه د ثواب د زیادتي اوویشت درجې معلومېږي خو په نورو روایتونو کي پنځوویشت درجې زیاتي مذکوري دي علماء محدثین لیکي چي په اکثرو روایتونو کي دا ثابته ده چي د جماعت د لمانځه د ثواب د ځان ته د لمانځه د ثواب څخه پنځه ویشت درجې زیات ثواب لري د حضرت عمر رضي الله عنه یو داسي روایت دی چي په هغه کي د اووه ویشتو درجو ذکر سوی دی نو په دې حدیث کي او په نورو حدیثونو کي دا تطبیق پیدا کیږي چي مخکي به د وحي په ذریعه د پنځویشتو درجو د زیاد ثواب حاصلیدو په باره کي معلومه سوه بیا وروسته به حق تعالی خپله په خپل فضل او کرم سره د اووه ویشتو درجو د زیاتي اعلان کړی وي .

د تطبیق یو صورت دا هم دی چي دا وویل سي چي د درجو اختلاف د لمونځ ګزار د احوالو د فرق په وجه دی یعني د یو لمونځ کوونکي د جماعت د لمانځه ثواب د هغه د خپل احوال په وجه اووه ویشت چنده ثواب حاصلیږي او د یوه لمونځ کوونکي د جماعت د لمانځه ثواب د هغه خپل د احوالو په وجه پنځه ویشت چنده حاصیږي .

په دې باره کي اختلاف دی چي د ثواب د زیادتي د افضلیت د هغه جماعت په لمانځه سره مختص دی چي په مسجد کي اداء کړل سي بلکه په کور وغیره کي اداء کړل سي د یو څو علماوو رایي خو داده چي دا فضیلت د مسجد په جماعت سره خاص دی نو د نورو بعضو علماوو قول دی چي دا فضیلت په عمومي توګه سره د هر جماعت د لمانځه لپاره دی که په مسجد کي اداکونکی جماعت وي یاد مسجد څخه پرته په بل ځاي کي وي.

## د جماعت پر پرېښودو عذاب

﴿۹۸۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قسم په هغه ذات

نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ بِحَطَبٍ فَيُحْطَبَ ثُمَّ آمُرَ بِالصَّلَاةِ فَيُؤَذَّنَ

چي د هغه په واک کي زما روح دی! ما اراده وکړل چي زه د اور لګولو حکم وکړم او بیا د لمانځه حکم وکړم بیا د لمانځه آذان وسي

لَهَا ثُمَّ آمُرَ رَجُلاً فَيَؤُمَّ النَّاسَ ثُمَّ أُخَالِفُ إِلَى رِجَالٍ. وَفِي رِوَايَةٍ لَا يَشْهَدُونَ

بیا یو امام وټاکم چي خلکو ته لمونځ ورکړي بیا زه هغه خلکو ته ورسم، په یوه روایت کي دي چي لمانځه (جماعت) ته نه حاضرېږي

الصَّلَاةَ فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ يَعْلَمُ أَحَدُهُمْ أَنَّهُ

او د هغوی کورونه وسوځم، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما روح ده که په تاسو کي چا ته دا څرګنده سي

يَجِدُ عَرْقًا سَمِينًا أَوْ مِرْمَاتَيْنِ حَسَنَتَيْنِ لَشَهِدَ الْعِشَاءَ. رواه البخاري ولمسلم نحوه.

چي په جماعت کي غوړ او سور هډوکي یا د پسه یا غوا دوه نوکي تر لاسه کړي نو هغوی به د ماخستن تر لمانځه پوري حاضر وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۲۵، رقم: ۶۴۴، ومسلم ۱\۴۵۱، رقم: ۲۵۱-۶۵۱.

**د لغاتو حل:** (عَرقا): العرق هو العظم الذي عليه لحم: (هغه هډوکی چي غوښه ولري).
(مرمَاتين): تثنية مِرمَاة وهي ظلف الشاة.

**تشريح** : ددې حديث څخه د جماعت د اهميت اندازه لګول کيږي چي کوم خلک د جماعت لپاره مسجدو ته نه راځي نو هغه خلکو ته په عذاب خداوندي کي د نيولو سزا په څومره مبالغه سره بيانيږي چي رسول الله ﷺ بذات خود دا اراده وکړل چي هغو خلکو ته چي په مسجد کي نه حاضريږي سزا ورکړي د حديث شريف په اخر کي د داسي خلکو ذهني افتاب او د طبعي کمزوري خواته اشاره ده که هغوی ته دا معلومه سي چي په مسجد کي د دنيا څه حقير شئ هم حاصليږي نو هغوی په لمانځه کي د شريکيدو لپاره به په زغاسته راځي خو د اخرت سعادت او د حق تعالى جل شانه د قرب په رقم عظيم او غير قانوني د حول خواته د هغوی ميلان نه وي دا حديث په دې خبره دلالت کوي چي د امام لپاره دا جائز ده چي هغه د څه عذر په وجه څوک خپل قائم مقام جوړ کړي او خپله د يو خاص ضرورت په وجه ولاړ سي .

## ړوند به هم جماعت ته ځي

﴿۹۸۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ أَعْمَى فَقَالَ يَا

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو ړوند سړی (عبدالله بن ام مکتوم) د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ چي:

رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهُ لَيْسَ لِي قَائِدٌ يَقُودُنِي إِلَى الْمَسْجِدِ فَسَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

اې دالله رسوله ! جماعت ته د راوستلو زما څوک نسته بيا هغه د رسول الله ﷺ څخه يو ښتنه وکړه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُرَخِّصَ لَهُ فَيُصَلِّيَ فِي بَيْتِهِ فَرَخَّصَ لَهُ فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ فَقَالَ

چي هغه ته په کور کي د لمانځه کولو اجازت ورکړي، رسول الله ﷺ اجازت ورکړ کله چي هغه روان سو نو رسول الله ﷺ بيا راوغوښتی او ورته وه يې فرمايل :

هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأَجِبْ . رواه مسلم .

ايا ته د آذان آواز اورې ؟ هغه عرض وکړ :هو، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ستا لپاره جماعت ته راتلل ضروري دي . مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\ ۴۵۲، رقم: ۲۵۵- ۶۵۳.

**تشريح** : د صحيحين په حديث کي نقل دي چي کم وخت چي عتبان ابن مالک رحمة الله عليه د خپل رونډوالي شکايت وکړ چي ددې په وجي زه د مسجد د حاضري څخه معذوره يم نو رسول الله ﷺ هغه ته ددې خبري اجازت ورکړ چي په خپل کور کي لمونځ وکي ددې څخه دا معلومه سوه چي نا بينا سړي ته د جماعت پريښولو اجازت دی خو څنګه چي ددې حديث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ عبدالله ابن مکتوم رضي الله عنه ته د جماعت د پريښولو اجازت نه ورکړل د هغه وجه دا وه چي هغه د افضلو مهاجرينو څخه وو د هغه د شان سره دا لائقه خبره وه چي هغه پر اولي باندي عمل وکړي يعني په جماعت کي حاضر سي رسول الله ﷺ خو هغه ته مخکي اجازت ورکړه خو بيا وحي راتلو يا د اجتهاد بدليدو په وجه رسول الله ﷺ اجازت واپس واختسله په دې حديث کي د اذان د اوريدو وروسته په مسجد کي د حاضري ضرورت او د اهميت کمال مبالغې سره بيان سوی دی.

## په سخت يخ او باران کي جماعت

﴿۹۸۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ أَذَّنَ بِالصَّلَاةِ فِيْ لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَّرِيْحٍ ثُمَّ قَالَ أَلَا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه يوه يخه شپه چي هوا چليدل د لمانځه آذان وکړې بيا د آذان وروسته يې وويل: خبردار!

صَلُّوْا فِي الرِّحَالِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ

په خپلو خپلو کورو کي لمونځ وکړئ، ددې وروسته يې وويل رسول الله ﷺ به په داسي وخت کي چي سخت يخ او باران به وو، حکم به يې کوی

الْمُؤَذِّنَ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ ذَاتُ بَرْدٍ وَمَطَرٍ يَقُوْلُ أَلَا صَلُّوْا فِي الرِّحَالِ. متفق عليه

مؤذن ته دا حکم ورکوی چي هغه په آذان کي دا هم ووايي چي آګاه سئ په خپلو خپلو کورو کي لمونځ وکړئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۱۲، رقم: ۶۳۲ ومسلم ۱\۴۸۴، رقم: ۲۲-۶۹۷.

**تشريح** : ددې حديث څخه معلومه سوه چي په سخت يخ او باران کي هم جماعت پريښودل عذر دی په داسي وختونو کي د جماعت په پريښودو سره په خپل کور کي لمونځ کيداي سي.

ابن همام رحمة الله عليه د امام ابويوسف رحمة الله عليه دا قول نقل کوي چي ما د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه څخه پوښتنه وکړل چي د ختو وغيره په حالت کي د جماعت لپاره ستاسو څه حکم دی؟ نو

هغوی وفرمایل چي جماعت پریښودل زما خوښ نه دی .

## د لمانځه مخکي ډوډۍ خوړل

﴿۹۸۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي تاسو ته د شپې ډوډۍ کښېښودل سي

أَحَدِكُمْ وَأُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَابْدَؤُوا بِالْعَشَاءِ وَلاَ يَعْجَلْ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ وَكَانَ

او د لمانځه اقامت وسي نو اول ډوډۍ وخورئ او د ډوډۍ په خوړلو کي تلوار مه کوئ او په اطمینان سره د ډوډۍ څخه فارغ سئ ،

ابْنُ عُمَرَ يُوضَعُ لَهُ الطَّعَامُ وَتُقَامُ الصَّلاَةُ فَلاَ يَأْتِيهَا حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قِرَاءَةَ الْإِمَامِ . متفق عليه

د ابن عمر رضی الله عنه مخته به د شپې ډوډۍ کښېښودل سول او لمونځ به پیل سو نو تر څو چي ډوډۍ به یې نه وه خوړلې لمانځه ته به نه تلی حال دا چي د امام قرائت به یې اوریدی . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ١٥٩\٢، رقم: ٦٧٣ ومسلم ٣٩٢\١، رقم: ٦٦ – ٥٥٩.

**تشريح** : څرګند ده چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي لمونځ کونکی وږی وي او پوهیږي که د لوږي په حالت کي لمونځ وکړم نو خیال به مي د ډوډۍ خوا ته وي او لمونځ به په اطمینان او سکون سره ادا نه کړای سم نو د هغه لپاره دا غوره ده چي مخکي ډوډۍ وخوري او د هغه وروسته لمونځ وکړي په دې شرط چي په وخت کي پراخي هم وي یعني دومره وخت وي چي هغه د ډوډۍ د فارغه کېدو وروسته په اطمینان سره لمونځ کولای سي .

## د تشو او ډکو بولو د حاجت پر وخت لمونځ

﴿۹۹۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لاَ صَلاَةَ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلاَ هُوَ يُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ . رواه مسلم

د حضرت عائشي رضی الله عنها څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي د ډوډۍ د حاضرېدو پر وخت پوره لمونځ نه کیږي او نه هغه وخت چي دوه نجاسته زور وکړي (یعني تشي

او ډكې بولي راسي).مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۳۹۳، رقم: ۶۷ – ۵۶۰.

**تشريح**: مطلب دادى كه د يو سړي مخ ته ډوډى راسي يا هغه ته د تشو يا ډكو بولو ضرورت وي نو هغه ته په دغه وخت كي لمونځ كول نه دى پكار ،ددې شيانو وروسته دي خپل لمونځ وكړي.

علامه نووي رحمة الله عليه فرمايي : كله چي د چا مخ ته ډوډى راسي او ډوډى ته د هغه خواهش هم وي يا د تشو او ډكو بولو تقاضا وي نو په داسي صورت كي هغه ته لمونځ كول مكروه دى او باد او قى هم په دې حكم كي شامل دى يعني په دغه وخت كي دي لمونځ نه كوي ځكه چي د هغه په وجه په لمانځه كي د قلب حضوري او خشوع او خضوع نه پاته كيږي چي د هغه په وجه لمونځ په كامله توګه سره نه ادا كيږي خو په دې ټولو صورتو كي د وخت د وسعت شرط دى كه وخت تنګ وي نو په هر صورت كي لمونځ كول پكار دى .

## د اقامت وروسته يوازي فرض لمونځ كول پكار دى

﴿۹۹۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُقِيمَتُ الصَّلاَةُ فَلاَ صَلاَةَ إِلاَّ الْمَكْتُوبَةُ . رواه مسلم

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي اقامت وسي نو د فرض لمانځه پرته بل لمونځ نه دى پكار . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۴۹۳، رقم: ۶۳ – ۷۱۰.

**تشريح**: ددې حديث څخه دا معلومه سول چي د مؤذن د اقامت ويلو وروسته د سهار سنت هم نه دي كول پكار بلكه د امام سره په فرض لمانځه كي ګډيدل پكار دي د امام شافعي رحمة الله عليه دا مذهب دى خو امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمايي كه د سهار د سنت كولو وروسته د فرضو د يوه ركعت تېرېدو يقين هم وي نو سنت دي وكړي د هغه وروسته دي په جماعت كي حاضر سي چي د سنتو ثواب هم دلاسه ولاړ نه سي او د جماعت ثواب هم حاصل كړي ليكن په دې وخت كي سنت د صف څخه جلا كول پكار دي هو كه په سنت كولو كي د فرض د لمانځه د دواړو ركعتو د تيريدو بيره وي نو په دې صورت كي دي سنت پريږدي .

ابن مالك رحمة الله عليه فرمايي په دې حديث كي چي كوم حكم ذكر سوئ دى د سهار سنت د هغه

ځکه مستثني دی ځکه چي د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک دی *صلوها طردتکم الخیل) د سهار سنت خامخا کوئ که څه هم لبنکر مو شړي ددې څخه دا معلومه سوه چي د سهار د سنتو لويي تاکيد دی هغه پرېښودل نه دي پکار . علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمايي د سهار سنت په ټولو سنتو کي زيات اهم او قوي دې چي د حسن رحمة الله عليه د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه څخه دا روايت دی چي د سهار سنت بلا عذره په ناستي سره کول جائز نه دي .

## ښځو ته د جماعت تللو اجازه

﴿۹۹۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ أَحَدِكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يَمْنَعَنَّهَا . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي په تاسو کي د يو چا ښځه جماعت ته د تلو اجازه وغواړي نو تاسو يې مه منعه کوئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۳۷/۹، رقم: ۵۲۳۸، ومسلم: ۳۲٦/۱، رقم: ۱۳۴ - ۴۴۲.

**تشريح** : امام نووي رحمة الله عليه فرمايلي دي چي دا نهي پر کراهيت تنزيهي باندي محمول ده او حضرت مظهر رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د ښځو دپاره مسجد ته تلل جائز دي ليکن په موجوده زمانه کي د فتنې د بيري د ښځو مسجد ته تلل مکروه دي ددې موئيد د بخاري او مسلم روايت دی چي بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي که رسول الله ﷺ دا شی وويني کوم چي ښځو پيدا کړی دی نو بيشکه رسول الله ﷺ دا ښځي مسجد ته د تلو څخه منعه کوي څنګه چي د بني اسرائيلو ښځي منعه کړل سوي دي او د ابن مسعود رضي الله عنه په باره کي نقل سوي دي چي هغوی ښځي مسجد ته د تللو څخه منعه کړې خو سپين سرو ښځو ته يې اجازت ورکړل هغه هم په زړو کالو کي .

ددې خلاصه داده که سپين سري ښځي ښېله ځان جوړولو او خوشبويي لګولو مسجد ته تلل غواړي نو د هغوی لپاره تر يو حده پوري اجازه ده خو ځوانو ښځوته مسجد ته د تللو قطعا اجازت نسته يا دا چي په هغه زمانه کي به ښځي مسجد ته په دې وجه تللې چي ديني احکام او مسائل زده کړي ليکن اوس خو ددې هم حاجت نسته ځکه چي ديني مسائل او احکام دومره مشهور او واضح سوي دي چي په کور کي ناستي ښځي يې هم په آساني سره زده کولای سي.

## ښځي دي په خوشبويي لګولو سره مسجد ته نه ځي

﴿۹۹۳﴾: وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَاَةِ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَتْ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا شَهِدَتْ إِحْدَاكُنَّ الْمَسْجِدَ فَلَا تَمَسَّ طِيبًا . رواه مسلم

د حضرت زينب ﷺ څخه روايت دی چي موږ ته رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي څوک جماعت ته ځي نو خوشبويي دي نه لګوي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۲۸، رقم: ۱۴۲- ۴۴۳.

﴿۹۹۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَصَابَتْ بَخُوْرًا فَلَا تَشْهَدْ مَعَنَا الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ . رواه مسلم

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کومه ښځه چي بخور (خوشبويي) ولګوي نو هغه دي زموږ سره د ماخستن په لمانځه کي ګډون نه کوي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۲۸، رقم: ۱۴۳- ۴۴۴.

**تشريح**: د خوشبودار شي بوی اخيستو ته بخور وايي که بل څه، په دې حديث کي په خاصه توګه د ماخستن د وخت ذکر ځکه سوی دی چي دا د تياري وخت دی په دې کي د فتنې او شر پيدا کيدو زياته بيره وي همداسي خو په پورته حديث کي تير سوي دي چي رسول الله ﷺ مطلقا په خوشبويي لګولو سره ښځي د مسجد څخه منعه کولې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ښځو لپاره کورونه غوره دی

﴿۹۹۵﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَمْنَعُوْا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوْتُهُنَّ خَيْرٌ لَّهُنَّ . رواه أبو داود .

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو خپلي ښځي جماعت

ته د تلو څخه مه منعه کوئ مگر بیا هم د هغوی لپاره د هغوی کورونه غوره دی . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۸۲، رقم: ۵۶۷.

## د ښځي لمونځ چیري غوره دی ؟

﴿۹۹۶﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلاَةُ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

الْمَرْأَةِ فِيْ بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلاَتِهَا فِيْ حُجْرَتِهَا وَصَلاَتُهَا فِيْ مِخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلاَتِهَا فِيْ بَيْتِهَا . رواه أبو داود

د ښځي په کور کي دننه لمونځ د غولي د لمانځه څخه غوره دی او د ښځي په خونه کي لمونځ د سرای څخه غوره دی . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۸۳، رقم: ۵۷۰.

**تشريح**: ددې حدیث مطلب دادی چي ښځه څومره پټه او په پرده کي وي د هغې لپاره هغومره افضل دي ځکه چي د هغې ټول دار ومدار پر پرده دی همدا وجه ده چي د ښځو په باره کي ویل سوي دي چي نعم الصهر القبر یعني ښه خسرګنی قبر دی، په هر حال ددې څخه دا معلومه سوه چي د ښځو لپاره په لمانځه کولو کي چي پرده څومره زیاته وي هغومره بهتره ده .

﴿۹۹۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ إِنِّيْ سَمِعْتُ حِبِّيْ أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د ابوالقاسم ﷺ څخه اوریدلي دي

يَقُوْلُ لاَ تُقْبَلُ صَلاَةُ اِمْرَأَةٍ تَطَيَّبَتْ لِلْمَسْجِدِ حَتّٰى تَغْتَسِلَ غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ . رواه أبو داود وروى أحمد والنسائي نحوه .

چي فرمایل يې: کومه ښځه چي مسجد ته ولاړه سي او خوشبويي ولګوي نو د هغې لمونځ نه قبلیږي تر دې چي د خوشبويي لګولو څخه وروسته هغه په ښه ډول غسل وکړي داسي غسل لکه څرنګه چي د ناپاکي لپاره کیږي . ابوداؤد ،احمد او نسائي

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۴\۴۰۱، رقم: ۴۱۷۴، والامام احمد في مسنده ۲\۲۴۶، ۲۹۷، ۳۶۵، ۴۴۴، ۴۶۱، والنسائي: ۸\۱۵۳، ۱۵۴، رقم: ۵۱۴۲.

**تشريح** : په دې حديث کي نور هم په سختئ سره منعه سوې ده چي هيڅ ښځه دي په خوشبويې لګولو سره مسجد ته د تلو قصد نه کوي تر دې که چا خوشبويې لګولې وي نو هغې ته پکار ده چي مسجد ته د تللو په وخت کي غسل وکړي يعني که هغې پر پوره بدن خوشبويې لګولې وي نو ټول بدن دي په اوبو سره پريولي چي د بدن څخه يې خوشبو ولاړه سي او که د بدن پر يوه خاصه برخه يې خوشبويې لګولې وي نو يوازي هغه برخه دي پريولي نو په دې صورت کي هغه جامې دي بدلي کړي.

خوشبويې لګول د بدن پريول او د جامو بدلول دا په هغه صورت کي دی کله چي مسجد ته د راتللو اراده وکړي او که مسجد ته د تللو اراده نه وي بلکه په کور کي لمونځ کوي نو بيا په دغه حکم عمل کول ضرري نه دی .ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي دا حکم په خوشبويې لګولو سره مسجد ته د راتلونکو ښځو د زجر د مبالغې په توګه دی ځکه چي په دې صورت کي فتنه او شر زيات پيدا کيږي او د معطرو ښځو خوا ته د خلکو عبور ډير زيات وي.

## د ښځي خوشبويي لګول

﴿۹۹۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ عَيْنٍ

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هره سترګه

زَانِيَةٌ وَإِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ فَهِيَ كَذَا وَكَذَا . يَعْنِيْ زَانِيَةٌ . رواه الترمذي ولأبي داود والنسائي نحوه .

زنا کونکې ده هر کله چي هغه پردۍ ښځي ته د شهوت په نظر وګوري او کومه ښځه چي خوشبويي ولګوي او د نارينوو پر مجلس تيره سي هغه داسي او داسي ده يعني زنا کاره ده. ترمذي، ابوداؤد او نسائي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۴\ ۴۰۰، رقم: ۴۱۷۳، والترمذي ۵\ ۹۸، رقم: ۲۷۸۶، والنسائي: ۸\ ۱۵۳، رقم: ۵۱۴۱.

**تشريح** : کومي ښځي چي په خوشبويې لګولو سره د خلکو په مجلس کي ځان جوړ کړي نو هغه زناکاره ده ځکه چي هغې په خوشبويې وهلو سره پرديو خلکو ته د دې خبري ترغيب ورکوي چي

هغوی دې ته وګوري نو هغوی د سترګو په زنا کي اخته سوه او دا ښځه د هغه فتني خپله باعث جوړه سوه ځکه نو لکه دې چي زنا وکړل.

## د سهار او ماخستن د لمونځو فضيلت

﴿۹۹۹﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا

د حضرت أبی بن کعب ﷜ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ موږ ته د سهار لمونځ راکړ

الصُّبْحِ فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ أَشَاهِدٌ فُلَانٌ ؟ قَالُوا لَا قَالَ أَشَاهِدٌ فُلَانٌ ؟ قَالُوا لَا

کله چي يې سلام وګرځوی نو پوښتنه يې وکړه ايا فلانی سړی حاضر دی ، اصحابو وويل:نه، وه يې فرمايل : ايا فلان سړی حاضر دی؟ اصحابو وويل نه،

قَالَ إِنَّ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ أَثْقَلُ الصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ وَلَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا

رسول الله ﷺ وفرمايل : دا دوه لمنځونه يعني د ماخستن او سهار لمنځونه پر منافقانو تر ټولو لمونځو بوج وي که تاسو ته د دې دواړو لمنځو ثواب معلوم سي

فِيْهِمَا لَأَتَيْتُمُوْهَا وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الرُّكَبِ وَإِنَّ الصَّفَّ الْأَوَّلَ عَلٰى مِثْلِ صَفِّ

نو تاسو به په منډه بلکه پر ګونډو راځئ ، د لمانځه لومړی صف د ملائکو د صف په ډول دی

الْمَلَائِكَةِ وَلَوْ عَلِمْتُمْ مَا فَضِيْلَتُهُ لَابْتَدَرْتُمُوْهُ وَإِنَّ صَلَاةَ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ

که تاسو ته د لومړي صف فضيلت څرګند سي نو تاسو به ورته ژر د رارسيدو هڅه کوئ ، د سړي لمونځ د سړي سره

أَزْكٰى مِنْ صَلَاتِهِ وَحْدَهُ وَصَلَاتُهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكٰى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ وَمَا

تر يوازي لمانځه غوره دی او د دوو خلکو لمونځ تر يوه غوره دی او څومره چي

كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللهِ . رواه أبو داود والنسائي .

خلک زيات وي د الله تعالی خوښ وي .ابوداؤد ،نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ١\٣٧٥ - ٣٧٦، رقم: ٥٥٤ والنسائي ٢\١٠٤ - ١٠٥، رقم: ٨٤٣.

**تشریح** : د منافق هر کار پر ریا باندي مبني وي او د هغه هر عبادت د ځان ښوونې لپاره وي د سهار او ماخستن څخه پرته د نورو لمونځونو څخه خو پر منافقانو باندي مشکل نه وي ځکه چي په دې لمونځونو کي نه یوازي دا چي زیاته سستي هم نه وي بلکه ریا او ځان ښوونه هم ښه کیږي په خلاف ددې چي د سهار او ماخستن لمونځ ځرنګه چي زیات تکلیفي وي او سستي هم وي او بیا چي د ریاء او ځان ښوونې موقع هم زیاته نه وي ځکه چي دا دواړه لمونځونه پر منافقانو ډیر سخت وي، دې خواته په حدیث کي اشاره سوې ده او ددې وروسته ددې دواړو لمونځونو فضلیت ښکاره سوی دی چي مخلص او صادق مسلمانان ددغه لمونځونو د سعادت څخه په هیڅ وجه محروم نه سي .

## په جماعت سره لمونځ کولو باندي شیطان نه غالب کیږي

﴿۱۰۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

ثَلَاثَةٍ فِي قَرْيَةٍ وَلَا بَدْوٍ لَا تُقَامُ فِيهِمُ الصَّلَاةُ إِلَّا قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ

په کوم کلي یا ځنګل کي چي درې خلک وي او هغوی په جماعت سره لمونځ نه کوي نو شیطان پر هغوی غالب کیږي

فَعَلَيْكَ بِالْجَمَاعَةِ فَإِنَّمَا يَأْكُلُ الذِّئْبُ الْقَاصِيَةَ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي

نو تاسو جماعت ضرور وکړئ ځکه چي یوازي میږه د شرمښ خوراک سي . احمد .

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۱۹۶۱۵، وابوداؤد ۱\۳۷۱، رقم: ۵۴۷ والنسائي ۲\۱۰۶، رقم: ۸۴۶.

**تشریح** : په اجتماعیت کي فلاح او کامیابي ده او په انفرادیت کي تاوان او ناکامي، اسلام خپل تابع خلکو ته د اجتماعیت تعلیم په ډیر اهمیت سره ورکوي او ددې خبري تاکید کوي که خپل قومي او ملي شان او شوکت برقرار وساتل سي او خپل امتیازي حیثیت په پوره طاقت سره په دنیا باندي منلی وي نو د اجتماعیت د لاري څخه هیڅکله مه اوړئ همدا وجه ده چي د اسلام اکثره عبادتونه د اجتماعیت د شان حامل دی .

دا خو د دنیا لیدل سوې خبره ده چي کوم سړی یوائي وي نه خو د هغه څه حیثیت او وقعت وي او نه د هغه په څه خبره کي طاقت وي هر کله چي څوک غواړي نو په ډیره اساني سره پر هغه

واک تر لاسه کولای سي مګر کوم خلک چي په اجتماعیت سره اوسي نه دا چي د هغوی په هره خبره کي وزن وي بلکه د هغوی د قوت څخه ټول خلک مرغوب وي دا حالت د شیطان وي چي پر یوازي مسلمان باندي د هغه ډیر ژر اثر کیږي خو ددې پر خلاف د مسلمانانو پر هیڅ جماعت باندي د هغه د مکر او فریب جادو نه چلیږي.

په دې حدیث کي دا ښودل سوي دي چي که په یوې ابادي یا په یو ځنګل کي درې خلک هم اوسي او هغوی د لمانځه لپاره جماعت نه ودروي یعني داسي به که خپل انفرادیت ته د اجتماعیت رنګ ورنه کي نو شیطان پر هغوی غالب کیږي او ددې مثال ورکړل سوی دی چي څنګه یو شرموښ د بزو پر یوې رمې باندي حمله وکړي خو هر کله چي بزه د رمې څخه د جلا کیدو په وخت یوازي پاته سي نو شرموښ پر هغه حمله وکړي او هغه خپل خورک جوړ کړي.

## بېله عذره د جماعت پرېښودونکي لمونځ نه صحیح کیږي

﴿۱۰۰۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم څوک چي

سَمِعَ الْمُنَادِيَ فَلَمْ يَمْنَعْهُ مِنِ اتِّبَاعِهِ عُذْرٌ قَالُوا وَمَا الْعُذْرُ ؟ قَالَ خَوْفٌ أَوْ

د مؤذن آذان واوري نو هغه دي د مؤذن د پیروي څخه پرته دیو عذر څخه نه منعه کیږي ، صحابه کرامو پوښتنه وکړه چي عذر څه شي دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : بیره او

مَرَضٌ لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلَاةُ الَّتِيْ صَلّٰى . رواه أبو داود والدار قطني .

ناروغي، بېله جماعته لمونځ نه قبلیږي . ابوداؤد او دار قطني.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۳۷۳ - ۳۷۴، رقم: ۵۵۱، والدار قطني ۱\ ۴۲۰ - ۴۲۱، رقم: ٦.

**تشریح**: ابن عباس رضی الله عنهما دا حدیث بیانوی چي خلکو په خپل منځ کي پوښتنه وکړه چي هغه څه عذر دی چي سړی د جماعت د پرېښودو څخه منعه کوي؟ ابن عباس رضی الله عنهما ورته وویل چي بیره که د دښمن څخه د سر بیره وي یا د مال او یا د عزت، ابن مالک رحمة الله علیه د بیري په وضاحت کولو سره وفرمایل چي بیره که د چا د ظلم ښکا کولو یا پوروړی وي او دی د هغه پور ادا کولو قادر نه وي ددې عذرونو څخه پرته ددې مخکي پاته عذر درک سوی دی مثلا سخت یخ او باران وي یا ډوډۍ مخ ته راسي یا د استنجاء حاجت او ضرورت وي دا ټول شیان د جماعت د پرېښولو په حق

کي معقول عذرونه دي همداسي ناجوړي هم عذر دی خو داسي ناجوړي چي د هغه په وجه مسجد ته رسیدل ممکن نه وي په هر حال ددې حدیث حاصل دادی چي کم سړی د موذن اذان واوري او بیا د موذن تابعداري ونه کړي یعني په جماعت کي بلا عذره شریک نه سي نو د هغه لمونځ نه قبلیږي هو که یو سړی د څه عذر په وجه په جماعت کي ګډونه ونه کړای سي نو د هغه لمونځ قبلیږي خو په دومره خبره باندي پوه سئ چي دلته د قبلیدو مطلب دا نه دی چي د هغه لمونځ به د سره نه سي ادا بلکه ددې څخه مراد دی چي د هغه د ذمې څخه د لمانځه فرضیت خو به ساقط کیږي خو هغه ته د لمانځه ثواب نه حاصلیږي یا همداسي که یو سړی پر حرام مال باندي حج وکړي نو د هغه د ذمې څخه فرض استه کیږي هو هغه ته ثواب نه حاصلیږي د علماء په دې خبره اتفاق دی چي دې حدیث او ددې څخه مخکي حدیث پیش نظر هیڅ سړي ته قصدا د جماعت پریښولو مطلقا اجازت نسته.

## د قضاء حاجت وروسته لمونځ

﴿۱۰۰۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن ارقم رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل

وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِذَا أُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ وَوَجَدَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ.

رواه الترمذي وروی مالك وأبو داود والنسائي نحوه.

چي فرمایل یې: : که اقامت وویل سي د لمانځه لپاره او په تاسو کي یو چا ته د تشو یا ډکو بولو حاجت سي نو اول دي بولي وکړي. ترمذي، مالک، ابوداؤد او نسائي.

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱۵۹، رقم: ۴۹. وابوداؤد: ۱\۶۸، رقم: ۸۸. والترمذي ۱\۲۶۲، رقم: ۱۴۲ والنسائي: ۲\۱۱۰-۱۱۱، رقم: ۸۵۱.

## درې منعه شیان

﴿۱۰۰۳﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ

د حضرت ثوبان رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : درې شیان دي چي

لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَّفْعَلَهُنَّ لَا يَؤُمَّنَّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ

د هغو کول هیڅ‌ چا ته جائز نه دي ۱: دا چي یو څوک د مسجد امام وي او په دعاء کي هغه خپل ځان خاص کړي

دُونَهُمْ فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ . وَلاَ يَنْظُرْ فِيْ قَعْرِ بَيْتٍ قَبْلَ أَنْ

او جماعت پرېږدي که هغه داسي وکړل نو د جماعت خیانت یې وکړ ۲: دا چي د چا کورته وګوري مخکي تر دې چي

يَّسْتَأْذِنَ فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ وَلاَ يُصَلِّ وَهُوَ حَقِنٌ حَتّٰى يَتَخَفَّفَ .

رواه أبو داود وللترمذي نحوه .

اجازه وغواړي، که هغه داسي وکړل نو خیانت یې وکړ ۳: دا چي په داسي حالت کي دي لمونځ نه کوي چي تشي یا ډکي بولي یې بندي کړي وي تر دې چي د هغه څخه فارغ نه سي او سپک سي . ابوداؤد، ترمذي.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۹–۷۰، رقم: ۹۰، والترمذي ۲\۱۸۹، رقم: ۳۵۷.

## د خوراک په وجه په لمانځه کي د زنډ څخه منعه

﴿۱۰۰۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تُؤَخِّرُوْا الصَّلاَةَ لِطَعَامٍ وَّلاَ لِغَيْرِهِ . رواه في شرح السنة .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د خوراک یا بل څه کار له کبله په لمانځه کي زنډ مه کوئ . (دا حکم د تنګ وخت لپاره دی) . شرح السنة

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۳\۳۵۷، رقم: ۸۰۰.

**تشریح**: د دې څخه مخکي په شپږم حدیث کي تیر سوي دي د هغه څخه دا معلومه سوه چي هر کله چي ډوډۍ راسي نو مخکي ډوډۍ خوړل پکار دي او د هغه وروسته دي لمونځ وکړل سي او دا فرمایل سوي دي چي د ډوډۍ وغیره په خاطر لمونځ مه ځنډوئ په دې دواړو حدیثونو کي اختلاف راځي ځکه پوه سئ چي حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د ډوډۍ خوړلو په صورت کي د لمانځه د وخت د ختمیدو بیره وي نو بیا حکم دی چي لمونځ دي نه ځنډوي .

او په حدیث نمبر شپږم کي تعلق په دې صورت سره دی هر کله چي په وخت کي پراخي وي

او ډوډۍ مخ ته راسي او د هغه د خوړلو خواهش هم وي نو په داسي صورت كي به دا حكم وي چي مخكي دي ډوډۍ وخوري د هغه وروسته دي لمونځ وكي په دې شرح سره په دواړو حديثونو كي هيڅ اختلاف پاته نه سو .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د جماعت ټينګار

﴿۱۰۰۵﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنِ الصَّلَاةِ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ ليدلي دي چي د لمانځه څخه به نه وروسته كېدى

إِلاَّ مُنَافِقٌ قَدْ عُلِمَ نِفَاقُهُ أَوْ مَرِيضٌ إِنْ كَانَ الْمَرِيضُ لَيَمْشِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ

مګر منافق چي د هغه نفاق به ښكاره وو يا ناروغ او هغه ناروغ به هم جماعت ته راتلى چي د دوو خلكو په تكيه به تلى ،

حَتَّى يَأْتِيَ الصَّلَاةَ وَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَنَا سُنَنَ الْهُدَى

ابن مسعود وايي رسول الله ﷺ موږ ته د هدايت لاري وښودلې

وَإِنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدَى الصَّلَاةَ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِي يُؤَذَّنُ فِيهِ وفي رواية قال

او په هغو طريقو كي يوه طريقه لمونځ دى چي هغه په جماعت سره وكړل سي په كوم كي چي آذان كيږي ، په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي ابن مسعود رضي الله عنه وويل :

من سره ان يلقى الله غدا مسلما فليحافظ على هذه الصلوات الخمس

د كوم چا چي دا خبره خوښه وي چي هغه دي د يو پوره مسلمان په حيث سبا د الله جل جلاله سره ملاقات وكړي نو هغه ته پكار دي چي ددې پنځو لمنځو پابندي وكړي

حيث ينادي بهن فَإِنَّ اللهَ شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ ﷺ سُنَنَ الْهُدَى وَإِنَّهُنَّ مِنْ

او هلته يې په جماعت سره ادا كړي په كوم ځاى كي چي آذان كيږي او دا چي الله تعالى ستاسو د

نبي ﷺ لپاره د هدايت لاري ښاكلي دي او دا المنځونه

سُنَنِ الْهُدَى وَلَوْ أَنَّكُمْ صَلَّيْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ كَمَا يُصَلِّي هَذَا الْمُتَخَلِّفُ فِي بَيْتِهِ

د هغه هدايت د طريقو څخه دي او كه تاسو د وروسته پاته كيدونكو په ډول په كورو كي لمونځ كوئ

لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ وَلَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ لَضَلَلْتُمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ

نو تاسو به د خپل نبي ﷺ د سنت څخه بېګانه او ګمراه سئ او كوم څوك چي په تاسو كي

يَتَطَهَّرُ فَيُحْسِنُ الطُّهُورَ ثُمَّ يَعْمِدُ إِلَى مَسْجِدٍ مِنْ هَذِهِ الْمَسَاجِدِ إِلاَّ كَتَبَ

پاكي ترلاسه كړي يعني په ښه ډول اودس وكړي بيا دي په مسجدونو كي يوه مسجد ته د تلو اراده وكړي چي په هغه كي په جماعت سره لمونځ كيږي نو د هغه لپاره به ليكلي

اللَّهُ لَهُ بِكُلِّ خَطْوَةٍ يَخْطُوهَا حَسَنَةً وَيَرْفَعُهُ بِهَا دَرَجَةً وَيَحُطُّ عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً

الله جل جلاله د هر قدم په بدله كي يوه نيكي او يوه درجه به لوړيږي او يوه بدي به ليري كيږي

وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلاَّ مُنَافِقٌ مَعْلُومُ النِّفَاقِ وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ

او موږ ليدلي دي چي په جماعت سره د لمانځه څخه يوازي هغه سړي وروسته كيږي چي منافق وي او د هغه نفاق ښولو ته څرګند وي او په هغه زمانه كي داسي سړی هم وو

يُؤْتَى بِهِ يُهَادَى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتَّى يُقَامَ فِي الصَّفِّ. رواه مسلم

چي دوو خلكو به نيولی جماعت ته راوستی او هغه به په صف كي ودرول سو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۴۵۳، رقم: ۲۵۶- ۶۵۴.

**تشريح**: سنن الهدى (د هدايت طريقې) هغه طريقو او لارو ته ويل سوي دي چي پر هغه عمل كول د هدايت موجب او د حق تعالى او د هغه د رضا باعث وي.

## د رسول الله ﷺ د كارونو ډولونه

د رسول الله ﷺ د كارو دوه ډوله وه يو ډول افعال خو هغه وه چي رسول الله ﷺ د عبادت په طريقه كول او دوهم قسم افعال هغه وه چي رسول الله ﷺ به د عادت په طريقه كول كم افعال چي به ېې د عادت په توګه كول هغه ته سنن زائد ويل كيداي سي او كم كارونه چي به ېې د عبادت په

توگه کول هغه ته د سنن هداي په نامه ویل کیږي .بیا د سنن هداي دوه قسمونه دي اول سنن موکده دوهم سنن غیر موکده، سنن موکده د رسول الله ﷺ هغه کارونه دي چي رسول الله ﷺ همیشه کړي دي او خلکو ته یې د هغه کارو تاکید فرمایلی دی .

سنن غیر موکده هغه کارونه دي چي نه خو رسول الله ﷺ همیشه کړي دي او نه یې په هغه د عمل کولو لپاره نورو خلکو ته ویلي دي .

په دې حدیث کي چي د کومو سنتو یعني سنن هداي ذکر سوی دی د هغه څخه مراد سنن موکده دي، کوم حضرات چي جماعت واجب ګرځوي دا تعریف د هغوی نقطه نظر هم خلاف نه دی ځکه چي واجب هم د سننو هداي په تعریف کي داخل دی .

احمد رحمة الله عليه او طبراني رحمة الله عليه د رسول الله ﷺ دا روایت نقل کړی دی رسول الله ﷺ وفرمایل ظلم پوره ظلم د کفر او انفاق حامل هغه سړی دی چي د الله جل جلاله خواته د بلونکي بلنه اوري چي د مسجد خواته د لمانځه لپاره شریکیږي خو هغه سړي جواب نه ورکړ یعني مسجد ته په رسیدو سره یې جماعت نه وکړ ددې روایت په رڼا کي معلومه سوه چي ددې خلکو په باره کي د رسول الله ﷺ دا سخت ترین وعید دی .(كما يصلي هذا المختلف في بيته ) څنګه چي دا وروسته پاته کیدونکی سړی په خپل کور کي لمونځ کوي په څرګنده معلومیږي چي دا ځوک خاص سړی وو چي په جماعت کي نه شریکیدلو ابن مسعود رضي الله عنه هغه خواته په اشاره کولو سره وفرمایل چي څنګه دا سړي د جماعت د سعادت څخه ځان محروم کړي همداسي که تاسو خلک هم په کور کي لمونځ کول شروع کړی نو پوه سئ چي د هغه سړي په ډول ستاسو دا فعل به د رسول الله ﷺ د سنتو د پریښودو برابر وي او څرګنده ده چي پریښودونکی سړی د ضلالت او ګمراهي په کنده کي لویږي .

## د جماعت پرېښودل سخته ګناه ده

﴿۱۰۰۶﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْلاَ مَا فِي الْبُيُوتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّةِ أَقَمْتُ صَلاَةَ الْعِشَاءِ وَأَمَرْتُ فِتْيَانِيْ يُحَرِّقُوْنَ مَا فِي الْبُيُوتِ بِالنَّارِ . رواه أحمد .

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل : که په کورونو کي ښځي او ماشومان نه وای نو ما به د ماخستن لمونځ قائموی او خپلو زلمو ته به مي حکم ورکړی وای چي

د هغوی کورونو ته اور ولګوي. احمد.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۳۶۷،

**تشریح**: ددې ارشاد مطلب دادی چې د ښځو او کوچنیانو لپاره په جماعت سره لمونځ کول نه دی واجب ځکه چې د هغوی د ساتلو خیال ضروري دی چې دا بې پامه د نورو په سزا کې تکلیف نه سي او که ښځې او کوچنیان په کورونو کې نه وي نو د ماختن د لمانځه په قائمولو به مې حکم ورکړی وای، او صحابه ته به مو ویلي وای چې کوم خلک په مسجد کې نه دي حاضر سوي هغوی او د هغوی د کور اسباب په اور کې وسوځئ چې هغوی ته دا احساس وسي چې د جماعت پرېښودلو څه سزا ده.

ددې څخه معلومه سوه چې جماعت پرېښودو والا سخت ګناه ګار کیږي چې رسول الله ﷺ د هغه د سوځولو قصد وفرمایه.

## د اذان وروسته تر لمانځه مخکې د مسجد څخه وتل

﴿۱۰۰۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كُنْتُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَنُوْدِيَ بِالصَّلَاةِ فَلَا يَخْرُجْ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يُصَلِّيَ. رواه أحمد.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ موږ ته حکم راکړی دی چې هر کله تاسو په مسجد کې یاست او د لمانځه لپاره آذان وسي نو تاسو تر هغه وخته د مسجد څخه مه وځې تر څو پورې چې لمونځ ونه کړئ. احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده: ۲\۵۳۷.

**تشریح**: د حنفیه علماؤ په نزد د اذان وروسته د نه وتلو دا حکم د هغه سړي لپاره دی چې د بل جماعت منتظم وي یعني که یو سړی د بل مسجد امام وي نو د اذان وروسته د مسجد څخه وتلای سي او که یو سړی د مسجد امام نه وي یا په وتلو سره بې دوهم وار د راتلو اراده نه وي نو هغه ته په اذان اوریدو سره د مسجد څخه وتل نه دي جائز هو که یو سړي لمونځ کړی وي نو د هغه لپاره د مسجد څخه وتل مکروه نه دی لیکن د ماپښین او ماختن په لمانځه کې که موذن اقامت ویل شروع کړي نو هغه ته هم د لمانځه کولو باوجود په جماعت کې شریکېدل پکار دي چې د جماعت د پرېښودلو الزام نه راسي، د نورو آئمه په نزد په داسې صورت کې په هر لمانځه کې ګډون کول پکار دي د دوی په نزد د ماپښین او ماختن تخصص نسته.

﴿۱۰۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ قَالَ خَرَجَ رَجُلٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ مَا أُذِّنَ فِيهِ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ أَمَّا هٰذَا فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ ﷺ. رواه مسلم

د حضرت ابو الشعثاء څخه روايت دی چي يو سړی د آذان وروسته د مسجد څخه ووتی نو ابو هريرة رضي الله عنه وويل: دې سړي د ابو القاسم ﷺ نافرماني وکړه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۴۵۳- ۴۵۴، رقم: ۲۵۸- ۶۵۵.

﴿۱۰۰۹﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ أَدْرَكَهُ الْأَذَانُ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ خَرَجَ لَمْ يَخْرُجْ لِحَاجَةٍ وَّهُوَ لاَ يُرِيْدُ الرَّجْعَةَ فَهُوَ مُنَافِقٌ. رواه ابن ماجه.

څوک چي د آذان په وخت کي په مسجد کي وي او بيا د يو ضرورت پرته د مسجد څخه ووزي او د بيا راتلو اراده هم نه لري نو هغه منافق دي. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه: ۱\ ۲۴۲، رقم: ۷۳۴.

**تشريح**: که يو سړی په مسجد کي موجود وي او اذان وسي بيا هغه د جماعت د سعادت څخه په مخ اړولو سره د مسجد څخه ولاړ سي نو دا ډيره د بد بختي خبره ده نو فرمايل کيداي سي چي داسي سړي ته د جماعت پريښودلو د ګناه ګاريدو په وجه د منافق په رقم سو.

## د اذان جواب په زړه او عمل سره ورکول

﴿۱۰۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْهُ فَلاَ صَلاَةَ لَهُ إِلاَّ مِنْ عُذْرٍ. رواه الدار قطني.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي آذان واوريدی او د هغه جواب يې ورنه کړ (يعني په جماعت کي حاضر نه سو) نو د هغه لمونځ نسته. (يعني لمونځ يې پوره نه دی) او که د يو عذر له کبله يې داسي وکړل نو بيا پروا نسته. دار قطني.

**تخريج**: سنن الدار قطني ۱\۴۲۰، رقم: ۴.

**تشريح**: د اذان جواب ورکول يو خو په ژبي سره وي څنګه چي موذن د اذان کلمات وايي هغه کلمات اوريدونکی هم ووايي او يو جواب په کار سره وي يعني کم سړی چي د هغوی د اذان اوريدو سره په مسجد کي په جماعت سره د لمانځه لپاره راځي هغه په خپل عمل سره د موذن د اذان جواب ورکوي .ددې حديث څخه معلومه سوه چي د ژبي او عمل دواړو په پر جواب باندي د لمانځه د قبوليت او د لمانځه د تکميل موقيف دی يعني کم سړی چي د اذان په اوريدو سره نه خو په ژبي سره جواب ورکي نو مسجد ته ولاړ سي نو د هغه لمونځ پاته تکميل او باب قبوليت ته نه رسيږي په دومره خبره باندي پوه سئ چي اصل جواب يعني عمل جومات ته تلل راتلل دي او ددې زيات تاکيد دی .

## ړانده ته هم جماعت پر ېښودل نه دي پکار

﴿۱۰۱۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ الْمَدِيْنَةَ كَثِيْرَةُ

د حضرت عبد الله بن ام مکتوم رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې د الله رسوله ! په مدينه کي ډير ضررناک حيوانان

الْهَوَامِ وَالسِّبَاعِ وَأَنَا ضَرِيْرُ الْبَصَرِ فَهَلْ تَجِدُ لِيْ مِنْ رُخْصَةٍ ؟ قَالَ هَلْ تَسْمَعُ

او درندګان دي او زه ړوند يم ايا تاسو به ما لره د معذور ګڼلو له کبله په کور کي د لمانځه اجازت راکوئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايا ته اورې

حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ ؟ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَحَيَّ هَلاً وَلَمْ يُرَخِّصْ .

رواه أبو داود والنسائي .

د حي علی الصلوة او حي علي الفلاح آواز ؟ هغه وويل هو، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل نو ته حاضرېږه او اجازه يې ورنه کړل . ابو دؤد، نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\۳۷۵، رقم: ۵۵۳، والنسائي: ۲\۱۱۰، رقم: ۸۵۰.

**تشريح**: رسول الله ﷺ په خاصه توګه سره د (حي علي الصلو ة او حي علي الفلاح ) ذکر وکړ ځکه چي په دې الفاظو کي د لمانځه طرف ته بلنه او ترغيب ورکړل سوی دی .

﴿۱۰۱۲﴾: وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ أَبُو الدَّرْدَاءِ وَهُوَ مُغْضَبٌ فَقُلْتُ

د حضرت ام درداء رضي الله عنها څخه روايت دی چي ابو درداء رضي الله عنه په غضب ناک حالت کي راغلی نو ما ورته وويل:

مَا أَغْضَبَكَ ؟ قَالَ وَاللهِ مَا أَعْرِفُ مِنْ أَمْرِ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دا غضب د څه دی ؟ هغه وويل: قسم په خدای! زه د امت محمديه په هيڅ نظام باندي نه پوهيږم

شَيْئًا إِلاَّ أَنَّهُمْ يُصَلُّونَ جَمِيْعًا . رواه البخاري .

خو يوازي په دې پوهيږم چي هغوی په جماعت سره لمونځ کوي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲/۱۳۷، رقم: ٦٥٠.

## د سهار د جماعت فضيلت

﴿۱۰۱۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِيْ حَثْمَةَ فِيْ صَلوٰةِ الصُّبْحِ وَإِنَّ عُمَرَ

د حضرت ابوبکر بن سليمان څخه روايت دی چي عمر بن خطاب رضي الله عنه د سهار په لمانځه کي

غَدَا إِلَى السُّوْقِ وَمَسْكَنُ سُلَيْمَانَ بَيْنَ الْمَسْجِدِ وَالسُّوْقِ فَمَرَّ عَلَى الشِّفَاءِ أُمِّ

سليمان بن ابي حثمه ونه ليدی او د سليمان کور د مسجد او بازار په منځ کي وو، حضرت عمر رضي الله عنه د سليمان د مور بي بي شفاء په طرف تير سو

سُلَيْمَانَ فَقَالَ لَهَا لَمْ أَرَ سُلَيْمَانَ فِي الصُّبْحِ فَقَالَتْ إِنَّهُ بَاتَ يُصَلِّيْ فَغَلَبَتْهُ

او هغې ته يې وويل د سهار په لمانځه کي ما سليمان ونه ليدی هغې وويل : سليمان ټوله شپه په لمانځه کي مشغول وو د هغه سترګي د خوب څخه ډکي سوې او بيده سو ،

عَيْنَاهُ فَقَالَ عُمَرُ لِأَنْ أَشْهَدَ صَلاَةَ الصُّبْحِ فِي الْجَمَاعَةِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَقُوْمَ لَيْلَةً . رواه مالك .

عمر رضي الله عنه ورته وويل ما ته د سهار په جماعت کي حاضريدل تر ټوله شپه عبادت غوره دی . مالک .

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱۳۱، رقم: ۷.

**تشریح**: ددې حدیث څخه د سهار د لمانځه په جماعت سره د کولو اهمیت او فضیلت اندازه لګول کیږي چي سلیمان ټوله شپه په عبادت خداوندي کي مصروفه وو او لمونځ يې کولو خو په سهار کي يې سترګي پټي سوې وې د سهار په جماعت کي نه سو شریک نو حضرت عمر رضي الله عنه د هغه مورته وفرمایل زما په نزد دا غوره نه ده چي ټوله شپه دې عبادت وکړاي سي لیکن د سهار جماعت دي پرېښول سي که یو سړی ټوله شپه عبادت وکي او د سهار په جماعت کي نه سي داخل چي څرګنده ده چي ددې څخه افضله هیڅ خبره نه سي کیداي چي ټوله شپه په عبادت کي مصروفه سي بیا وروسته د بشریت په غوښتنه د بیده کیدو په وجه د سهار جماعت پرېښول سي نو زه دا ښه نه ګڼم بهتره داده چي ټوله شپه ارام وکړي او د سهار په جماعت کي په پابندي سره شرکت وکي .ددې حدیث څخه معلومه سوه چي د شپې عبادت کول او د تهجد د مونځ کولو سره په سهار کي شریکیدل د زیات فضیلت خبره ده .

## جماعت د دوو او زیاتو کسانو دی

﴿۱۰۱۴﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اثْنَانِ فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ . رواه ابن ماجه .

د حضرت ابو موسی الاشعري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دوه او د دوو څخه زیات کسان جماعت دی . ابن ماجه

**تخریج**: سنن ابن ماجه: ۱\۳۱۲، رقم: ۹۷۲.

**تشریح**: مطلب دادی چي د جماعت لپاره دا ضروري نه ده چي په لویي تعداد کي خلک وي یا کم تر کمه درې خلک کیدل ضروري دي بلکه که یوازي دوه خلک وي او په هغوی کي یو امام جوړ سي او دوهم مقتدي، همداسي د دواړو په یو ځاي کیدو سره دي لمونځ وکړي نو جماعت کیږي او دواړو ته د جماعت ثواب حاصلیږي .

## د ښځو مسجد ته تلل

﴿۱۰۱۵﴾: وَعَنْ بِلَالِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

حضرت بلال بن عبدالله بن عمر د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تَمْنَعُوا النِّسَاءَ حُظُوظَهُنَّ مِنَ الْمَسَاجِدِ إِذَا اسْتَأْذَنَكُمْ

هر کله چي ښځي ستاسو څخه اجازه و غواړي نو هغوی د مسجد څخه مه منعه کوئ چي هغوی هم د جماعت څخه خپله برخه تر لاسه کړي ،

فَقَالَ بِلاَلٌ وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ أَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

بلال وويل قسم په الله موږ به يې ضرور منعه کړو ، د دې په جواب کي عبد الله وويل زه تا ته وايم چي رسول الله ﷺ د دې اجازه ورکړې ده

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَقُوْلُ أَنْتَ لَنَمْنَعُهُنَّ . وَفِيْ رِوَايَةِ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ فَأَقْبَلَ

او ته وايي چي موږ به هغوی ته د تلو څخه منعه کړو ، او د سالم په روايت کي دا الفاظ دي چي عبد الله د بلال په لور متوجه سو

عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ فَسَبَّهُ سَبًّا مَا سَمِعْتُهُ سَبَّهُ مِثْلَهُ قَطُّ وَقَالَ أُخْبِرُكَ عَنْ رَّسُوْلِ

دومره بد اورد يې ورته وويل څومره چي يې هيڅکله ورته نه وه ويلي ، بيا يې ورته وويل زه تا د رسول الله ﷺ د حکم څخه اګاه کوم

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَقُوْلُ وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ . رواه مسلم .

او ته وايې چي موږ به دوی منعه کړو . مسلم .

**تخريج :** صحيح مسلم ۱\ ۳۲۸، رقم: ۱۴۰- ۴۴۲.

**تشريح :** حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه د بلال رضي الله عنه څخه ځکه ناراضه سو او دومره بد يې ورته وويل چي هغه په ښکاره په داسي الفاظو سره جواب ورکړ چي د هغه څخه په خپلي رايي د حديث مقابله کيدل معلوميدل، که بلال رضي الله عنه د وخت د نزاکت احساس کولو سره ويلي وای چي په دې زمانه کي د ښځو مسجد ته تلل مناسب نه دي نو حضرت عبد الله رضي الله عنه به نه خوابدی کيدی، دا وجه ده چي علماء د ماحول د نزاکت پيش نظر ښځي مسجد ته د تلو څخه منعه کړي دي په هدايه کي ليکلي دي چي زمونږ په زمانه کي دي امام د ښځو نيت نه کوي .په دې اړه مخکي هم ښودل سوي دي چي په اوسنۍ زمانه کي د ټولو علماؤ متفقه فيصله ده چي په دغه زمانه کي کله چي د فتنې او شر دور دی نو د ښځو لپاره مسجد ته تلل مکروه دي .

﴿۱۰۱۶﴾: وَعَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت مجاهد د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ

قَالَ لَا يَمْنَعَنَّ رَجُلٌ أَهْلَهُ أَنْ يَّأْتُوا الْمَسَاجِدَ. فَقَالَ ابْنٌ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ

وفرمایل: هیڅوک دي خپله کورنۍ مسجد ته د تلو څخه نه منعه کوي ، د عبدالله بن عمر یو زوی بلال وویل:

فَإِنَّا نَمْنَعُهُنَّ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

موږ خو به یې منعه کوو ، عبدالله بن عمر ورته وویل زه ستا په وړاندي د رسول الله ﷺ حدیث بیانوم

وَتَقُوْلُ هٰذَا؟ قَالَ فَمَا كَلَّمَهُ عَبْدُ اللّٰهِ حَتّٰى مَاتَ. رواه أحمد.

او ته دا وایي ، د مجاهد راوي بیان دی چي عبدالله بن عمر په دې خبره د خپل زوی بلال سره تر آخره عمره پوري خبري ونه کړې تر څو چي هغه وفات سو . احمد .

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۳٦.

**تشریح**: ددې حدیث وضاحت هغه دی کم چي مخکي تیر سوی دی چي د خپل زوئ څخه د حضرت عبدالله رضي الله عنه دومره ناراضګي وه چي تر اخر عمر پوري یې د هغه سره خبري نه وکړې یوازي ددې په وجه چي د هغوی زوئ خپل مافي الضمیر په دې اندازه سره ښکاره کړ چي د حدیث نبوي مقابل معلومیدل ، په هر حال ددې حدیث څخه دومره خبره معلومه سوه که د یو سړي اولاد سنت پریږدي یا د سنت خلاف خپله رایه په غلط انداز کي پیشه کي نو د هغه سره خبري پریښول کیدا ای سي .

ددې باب دا اخري حدیث دی ځکه مناسب معلومیږي چي د جماعت د حاصلولو لپاره بعضي طریقې او مسئلې چي د هغو پیژندل ضروري دي نقل کړل سي .

## د جماعت یو څو مسائل

که یو سړی خپلي سیمي یا کور ته نژدې مسجد ته په داسي وخت کي ورسیږي چي هلته جماعت سوی وي نو هغه ته مستحب ده چي په بل مسجد کي جماعت وکړي او ده ته دا هم اختیار دی چي خپل کور ته راسي او کور والا ټول رایوځاي کړي او په جماعت سره لمونځ ادا

كي .كه يو سړى نفل لمونځ شروع كي او فرض جماعت شروع سي نو هغه ته پكار ده چي د دوه ركعاته په كولو سره سلام وګرځوي كه څه هم د څلورو ركعتو نو د نفلو نيت يې كړى وي دا حكم د ماپښين او د جمعې د سنت موكده هم دى او كه سنت يې شروع كړى وي او فرض شروع سي نو د دوه ركعته په كولو سره دي سلام وګرځوي بيا دا سنت دي د فرضونو وروسته ادا كړي د ماپښين سنت دي د هغو سنتونو وروسته وكړل سي چي د فرضو وروسته كيږي .كه فرض لمونځ كېدونكى وي نو بيا سنت وغيره دي نه شروع كوي په شرط د دې چي د يوه ركعت د تلو بيره وي هو كه يقين يا غالب ګمان وي چي هيڅ ركعت به نه ځني ځي نو ودي يې كړي مثلا د ماپښين په وخت كي چي فرض شروع سي او كه بيره وي چي په سنت كولو سره يو ركعت به ځني ولاړ سي نو بيا سنت موكده چي د فرضو مخكي كيږي هغه دي پريږدي او د فرضو وروسته او دوه ركعاته سنت موكده كولو سره دا سنت دي وكړي خو د سهار سنت زياد موكده دي د هغه لپاره دا حكم دى چي كه فرض شروع سوي وي نو بيا دي يې هم ادا كړي په شرط ددې چي د اخري قعدې نيولو اميد وي او كه د آخري قعدې د نيول كېدو بيره وي نو بيا دي يې نه كوي كه دا بيره وي چي د سهار سنت كه د لمانځه د سنتو او مستحباتو وغيره په پابندي سره ادا كړل سي نو جماعت نه لاندي كيږي نو په داسي حالت كي پكار دي چي يوازي پر فرائضو او واجباتو باندي اختصار وكړي او سنتونه وغيره پريږدي د فرضو د شروع كيدو په صورت كي چي كم سنت كولاي سي كه هغه د سهار وي يا څه د بل وخت نو هغه دي پر داسي ځاي وكړل سي چي د مسجد څخه جلا وي ځكه چي چيري فرض لمونځ كيږي نو بيا هلته به لمونځ مكروه تحريمي او كه بيا داسي ځاي ترلاسه نه كي نو د صف څخه جلا د مسجد په يو ګټ كي دي يې وكي او كه داسي هم نه وي نو نه دي يې كوي كه د جماعت قعده لاندي كړي او ركعتو نه لاندي نه كړي بيا هم د جماعت ثواب حاصليږي كه څه هم د فقهاء په اصطلاح كي دې ته د جماعت لمونځ نه سي ويل كيداي په جماعت سره ادا كيدل به هلته ورته وويل سي چي ټول ركعتو نه يا اكثر ركعتو نه لاندي كي مثلا څلور ركعاته والا لمونځ درې ركعاته يا په درو ركعتو والا كي دوه ركعاته لاندي كي اګر كه د بعضو فقهاوو په نزد تر څو پوري ټول ركعتو نه لاندي نه كي په جماعت كي نه سي حسابيدلاي .د كم ركعت چي امام سره لاندي كي نو ګڼل كيږي به چي هغه ركعت يې لاندي كړ هو كه ركوع لاندي نه كي نو بيا د هغه ركعت شمير به په لاندي كيدو كي نه وي .

# بَابُ تَسْوِيَةِ الصَّفِّ

## د صفونو برابرولو بيان

د صفونو د برابرولو مطلب دادی چي کله خلک د لمانځه لپاره په جماعت کي ودريږي نو پر صف باندي داسي په يوځاي کيدو سره ودريږي چي د يو بل په مابينځ کي خالي ځاي پاته نه سي او مخکي وروسته کيدو سره ونه دريږي بلکه برابر ودريږي که څو صفونه وي نو هغه دې داسي قائم کي چي د يوبل د صف په مابينځ کي د شروع څخه تر اخره پوري يو رقم فرق وي داسي نه وي چي په يو ځاي کي خو دوه صفونه په درميانه فاصله کي کمه او چيري زياته وي ددې باب لاندي چي کم حديثونه نقل سوي دي د هغه څخه د صفونو د برابرولو اهميت او تاکيد معلوميږي او د صف بندي چي کم احکام او مسائل دي هغه ښکاره کيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د صفو برابرولو حکم

﴿۱۰۱۷﴾: عَنِ النُّعْمَانَ ابْنِ بَشِيْرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

يُسَوِّي صُفُوفَنَا حَتَّى كَأَنَّمَا يُسَوِّي بِهَا الْقِدَاحَ حَتَّى رَأَى أَنَّا قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ

زموږ صفونه برابرول تر دې چي لکه رسول الله ﷺ چي به هغه د غشو سره برابرول تر داسي اندازې چي وه به يې ليدل چي موږ پوه سو د ده په مطلب،

ثُمَّ خَرَجَ يَوْمًا فَقَامَ حَتَّى كَادَ يُكَبِّرُ فَرَأَى رَجُلًا بَادِيًا صَدْرُهُ مِنَ الصَّفِّ فَقَالَ

يوه ورځ رسول الله ﷺ تشريف راوړ او لمونځ درېدو ته نژدې وو چي تکبير وسي چي رسول الله ﷺ يو سړی وليدی چي د هغه سينه د صف څخه د باندي راوتلې وه رسول الله ﷺ وفرمايل:

عِبَادَ اللّٰهِ لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللّٰهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ. رواه مسلم

د الله بندګانو خپل صفونه برابر کړئ که نه الله به ستاسو په منځ کي اختلاف واچوي.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\ ۳۲۴، رقم: ۱۲۸- ۴۳۶.

**د لغاتو حل**: (القِداح): السهام (غشي).

**تشریح**: په عربو کي د غشي برابري او سېده والی دومره مشهور وو چي د نورو شیانو د هواری او سېده والي تشبیه یې هم په غشي سره ورکول، نو دلته یې هم په غشي سره د صفونو د برابر والي مثال ورکړ، دا جمله د یو شي د هواري او سیده والي دپاره د مثال په توګه استعمالولای سو ځکه د غشو په ذریعه نور شیان سیده او برابر کیږي او دلته دا دمبالغې په طور استعمال سوې ده چي صفونه به دومره سېده او یو شان وه چي غشی به هم د هغې په ذریعه سیده کیدای سي، ځیني علماء وایي چي دا عبارت پر خپل عکس باندي محمول دی نو ددې وجهي ددې مطلب دغه دی چي صفونه د غشو په ذریعه برابرولای سو، د حدیث د آخري جملې مطلب مولانا مظهر دا بیان کړی دی چي ظاهري ادب او فرمانبرداري ونه کړي، ستا دا ظاهري نافرماني به ستا باطن (یعني د زړونو اختلاف) ته ورسیږي او که دغه نافرماني زیاته سي نو په خپلو کي د بغض، عناد او دښمني سبب به جوړ سي او بیا به د زړونو دغه اختلاف او باطني بدخویونه ستاسو په ښکاره ژوند کي هم ننوزي چي ستاسو په مابین کي به بغض او عناد پیداسي نو تاسو به هر یو پر بل باندي اعتراض کوئ او د چا په زړه کي به د بل هیڅا دپاره د همدردۍ جذبه پاته نه سي.

په هر حال د حدیث حاصل دادی چي د صفونو د سیده کولو او هوارولو ډېر لوی اهمیت دی چي کله جماعت ودریږي نو د هر سړي دپاره په کار ده چي خپل ځان دصف سره برابر کړي او د صف څخه مخکي یا شا ته نسي که د صف د برابرولو د دغه حکم تابعداري ونسي نو پوه سئ چي الله تعالی به ددې سزا تاسو ته دا درکړي چي ستاسو په منځ کي به بغض او نفرت پیدا سي چي په هغه سره به ستاسو اجتماعي او ګډ ژوند وپاشل سي.

## تر څو چي یو صف پوره نسي دوهم صف مه جوړوئ

﴿۱۰۱۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي د لمانځه اقامت وسو نو رسول الله ﷺ زموږ په لور مخ کړ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَجْهِهِ فَقَالَ أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ وَتَرَاصُّوا فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَّرَاءِ ظَهْرِيْ. رواه البخاري. وفي المتفق عليه قال أتموا الصفوف فإني أراكم من وراء ظهري

او وه يې فرمايل: صفونه برابر کړئ او برابر ودرېږئ زه تاسو د شا څخه هم وينم، بخاري، او دبخاري او مسلم په روايتونو کي دا الفاظ هم دي چي زه تاسو د شا څخه هم وينم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۰۸، رقم: ۷۱۹، ولم نجد الرواية المتفق عليها.

**تشريح**: د دوهم روايت الفاظ (صفونه پوره کړئ) مطلب دادی چي تر څوپوري يو صف پوره نه سي دوهم صف مه جوړوئ داسي نه دي پکار چي په اول صف کي ځاي خالي وي او په هغه کي د زياتو لمونځ ګزارو د دريدو ګنجائش وي ليکن ددې باوجود دوهم صف جوړ کړل سي داسي کول غلط دي.

## صف برابرول د لمانځه د تکميل څخه دی

﴿۱۰۱۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوُّوا صُفُوْفَكُمْ فَإِنَّ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: خپل صفونه سيده کړئ ځکه

تَسْوِيَةَ الصُّفُوْفِ مِنْ إِقَامَةِ الصَّلَاةِ. إِلاَّ أَنَّ عِنْدَ مُسْلِمٍ مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ.

متفق عليه

صفونه برابرول د لمانځه قائمولو جز دی، په مسلم کي دا الفاظ دي چي د صفونو برابرول د لمانځه پوره والی دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۰۹، رقم: ۷۲۳ ومسلم ۱\ ۳۲۴، رقم: ۱۲۴- ۴۳۳.

**تشريح**: په قران مجيد کي فرمايلي دي (اقيموا الصلواة) يعني لمونځ تعديل ارکان د سنتو او ادابو سره رعايت کئ دلته په حديث کي الفاظ اقيموا الصلواة څخه دې حديث ته اشاره کيږي چي صفونه برابول هم په اقيموا الصلواة کي داخل دئ.

## د صف په نه برابرولو سره په زړونو کي اختلاف پيدا کيږي

﴿۱۰۲۰﴾: وَعَنْ أَبِي مَسْعُوْدِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابومسعود انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

وَسَلَّمَ يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا فِي الصَّلَاةِ وَيَقُوْلُ اسْتَوُوا وَلَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ

په لمانځه کي زموږ پر اوږو لاس کښېښودی او فرمايل يې سيده درېږئ او اختلاف مه کوئ په

اختلاف سره به مختلف سي

قُلُوبُكُمْ لِيَلِنِي مِنْكُمْ أُولُو الأَحْلاَمِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ

ستاسو زړونه هم او په تاسو کي چي ځوک بالغ وي ما ته دي نژدې وي او بيا هغه خلک چي هغوی ته نژدې وي او بيا هغه چي

يَلُونَهُمْ قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ أَشَدُّ اخْتِلاَفًا. رواه مسلم

هغوی ته نژدې وي، ابو مسعود وايي نن سبا تاسو د رسول الله ﷺ د دې حکم خلاف ورزي کوئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۲۳، رقم: ۱۲۳- ۴۳۲.

**تشريح**: (مختلف کيږئ مه) د دې مطلب دا دی چي هر کله په صف بندي کولو سره د لمانځه لپاره ودريږئ نو د دې خبري په خاص توګه سره خيال ساتئ چي د ټولو بدنونه برابر وي د يو بل څخه مخکي وروسته مه دريږئ او د خپل بدن هيڅ اندام د صف څخه دباندي مه کاږئ که تاسو خلک په صف کي د خپل بدن ښکاره اعضاء غير برابر او ناهموار ساتئ نو د هغه اثر به په باطني توګه سره داوي چي ستاسو په زړونو کي به اختلاف راسي ځکه چي د بدن د ښکاره اندامو او د زړه په منځ کي ډير لطيف تعلق دی او د يو بل تاثير ډير عجيبه دي دا د مثال په توګه داسي دی چي ځرنګه د ځرګندو اعضاوو پټ والي باطني اعضاوو باندي اثر کوي او د باطني اعضاء پټ والی پر ښکاره اعضاء باندي اثر کوي همداسي په صف کي ښکاره بدن غير برابر ساتل پر زړونو باندي اثر کوي چي د هغه خاصه دا ده چي په زړونو کي اختلاف پيدا کيږي.

## د صفونو ترتيب

د حديث په دوهم جزء کي د صف ترتيب دا ښودل سوی دی چي زما نژدې دي هغه خلک ودريږي چي صاحب عقل او فهم او بالغه وي يعني په اول صف کي کي دي هغه خلک ودريږي چي بالغ عاقل او د فهم مالکان وي چي هغوی ته د لمانځه کيفيت او احکام وګوري او ياد يې کړي بيا د امت نورو خلکو ته د هغه تعليم ورکي بيا په دوهم صف کي دي هغه خلک ودريږي چي هغوی ته چي بالغ کيدو ته نژدې وي او هلکان بيا په دريم صف کي دي هغه ځوک ودريږي چي د ښځو او سړو د دواړو علامت پکښي وي بيا تر دې وروسته په آخر کي دي ښځي ودريږي دلته په حديث کي د ښځو د صف په باره کي ذکر نه دی سوئ ځکه چي دا متعين دي په آخر کي د

ښځو صف دي . په آخر کي د ابو مسعود رضي الله عنه د ارشاد مطلب دادی چي نن په تاسو کي د افتراق یعني بې اتفاقی چي کم کیفیت پیدا سوی دی او په خپلو کي تاسو خلک دومره اختلاف کوئ او فتنې خپرېږي ددې ټولو وجه داده چي تاسو خلک صفونه نه برابروئ که تاسو ددې فتنو او اختلاف څخه بچ کیدل غواړی نو مخکي خپل ځرګند اختلافات ختم کړئ یعني صفونه برابر کړئ بیا به الله تعالی ستاسو باطني اختلافات هم ختم کړي .

## په مسجد کي شور کول منعه دی

﴿۱۰۲۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

وَسَلَّمَ لِيَلِنِي مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثَلٰثًا وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْأَسْوَاقِ . رواه مسلم

ما ته نږدې دي هغه څوک وي چي بالغ او عقلمند وي بیا په عقل او بلوغ کي هغوی ته نږدې او بیا هغوی ته نږدې او بیا هغوی ته نږدې درې واره یې دغه وفرمایل، او تاسو خپل ځان په مسجد کي د داسي شور څخه ساتئ لکه څرنګه چي په بازار کي کوئ . مسلم .

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۳۲۳، رقم: ۱۲۳- ۴۳۲.

**د لغاتو حل**: هَیشات: هي الاختلاط والمعنی لاتختلطوا اختلاط اهل الاسواق.

**تشریح** : په مخکي حدیث کي د ښځو د صف ذکر کول مقصد نه وو ځکه چي هلته (ثم الذین یلونهم) الفاظ دوه واره ذکر کړل سوه او دلته د ښځو د صف ذکر هم پیش نظر وو ځکه دا الفاظ درې واره فرمایل سوي دي همداسي د صف څلور درجې سوې یعني په اول صف کي بالغ او صاحب عقل او د فهم خلک دې و دریږي د هغه وروسته په صفونو کي دې مراهق او هلکان ودریږي د هغه وروسته دي مخنث (نر ښځیان) ودریږي بیا دي د ښځو صف ودرول سي .

﴿۱۰۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ رَأَى فِي أَصْحَابِهِ تَأَخُّرًا

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ خپل اصحاب ولیدل چي وروسته په لمانځه کي دریږي او لومړیو صفو ته نه راځي،

فَقَالَ لَهُمْ تَقَدَّمُوا فَأْتَمُّوا بِي وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ لاَ يَزَالُ قَوْمٌ

رسول الله ﷺ ورته فرمایل: رامخکي سئ او زما اقتداء کوئ او ستاسو اقتداء دي هغه څوک کوي چي ستاسو څخه وروسته راسي يوه ډله به تل

يَتَأَخَّرُونَ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللَّهُ. رواه مسلم

د وروسته کیدو هڅه کوي تر دې چي الله ﷻ به هغوی وروسته و غورزوي. مسلم.

**تخریج:** صحیح مسلم: ۱۱ / ۳۲۵، رقم: ۱۳۰- ۴۳۸.

**تشریح**: رسول الله ﷺ چي صحابه کرام ولیدل چي هغوی په اول صف کي د دریدو کوشش نه کوي نو هغوی ته یې وفرمایل چي رامخکي سئ او په اول صف کي په دریدو سره زما اقتداء وکړئ یعني په ما پسي ودریږئ همداسي کوم خلک چي ستاسو څخه وروسته ولاړ وي هغوی به ستاسو متابعت کوي ځکه چي د وروستني صف خلک دي د مخکني صف د خلکو متابعت داسي کوي چي په لمانځه کي کوم کارونه اول صف والا کوي هغه دي وروستني صف والا هم کوي نو دا متابعت او اقتداء د ظاهر په اعتبار ده کنه نو په حقیقت کي ټول لمونځ کوونکي د امام تابع وي.

## صفونه پوره او برابر جوړول

﴿۱۰۲۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ ابْنِ سَمُرَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت جابر بن سمرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زموږ په لور تشریف راوړ

وَسَلَّمَ فَرَآنَا حَلَقًا فَقَالَ مَالِي أَرَاكُمْ عِزِينَ قَالَ ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ أَلاَ

او موږ یې په حلقو کي ناست ولیدو او وه یې فرمایل په تاسو څه وسول چي زه تاسو په بیلو بیلو ډلو کي وینم، د دې پیښي وروسته رسول الله ﷺ یو ځل بیا تشریف راوړ او وه یې فرمایل:

تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلاَئِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَيْفَ تَصُفُّ

تاسو په لمانځه کي داسي صفونه ولي نه جوړوئ لکه څرنګه چي ملائکي د خپل پروردګار په حضور کي جوړوي موږ عرض وکړ اې د الله رسوله! ملائکي د خپل رب په حضور کي څنګه صفونه جوړوي؟

الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا قَالَ يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْأُوَلَ وَيَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ. رواه مسلم

رسول الله ﷺ وفرمايل : هغوى لومړي صفونه پوره كوي او په صفو كي جُخت (نژدې نژدې) دريږي . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\ ۳۲۲، رقم: ۱۱۹– ۴۳۰.

**د لغاتو حل:** (عزين): اي جماعات متفرقين (بېلي بېلي ډلي)

## غوره صف كوم دى ؟

﴿۱۰۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا وَشَرُّهَا آخِرُهَا وَخَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا وَشَرُّهَا أَوَّلُهَا. رواه مسلم

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د نارينوو په صف كي تر ټولو غوره صف لومړى صف دى او تر ټولو خراب د پاى صف دى او په ښځينوو كي تر ټولو غوره د پاى صف دى او بدترين لومړى صف دى .مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\ ۳۲۶، رقم: ۱۳۲– ۴۴۰.

**تشريح** : د غوره څخه مراد د ثواب زياتوب دى يعني د اول صف والا د دوهم صف په مقابله كي د ډير زيات ثواب حقدار وي د خلكو لپاره بهترين صف اول صف ځكه ګرځول سوئ دى چي په دې صورت كي هغوى د امام سره نژدې وي او د ښځو څخه ليري او وروستني صف بدترين ځكه وي چي په دې شكل كي دوى د امام څخه ليري وي او ښځو ته نژدې والئ وي همداسي د ښځو لپاره اول صف ځكه بدترين دى چي هغوى په اول صف كي د دريدو سره خلكو ته نژدې كيږي وروسته صف د دې وجه بهترين دى چي په دې صورت كي هغوى د خلكو څخه ليري وي په هر حال د حديث حاصل دادى چي خلكو ته په اول صف كي د دريدو كوښښ كول پكار دى او ښځو ته په آخري صف كي د دريدو هڅه كول پكار ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په صفو کې خالي ځای

﴿۱۰۲۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُصُّوا صُفُوفَكُمْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: صفونه جخت (پیوست) ساتئ

وَقَارِبُوا بَيْنَهَا وَحَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي لَأَرَى الشَّيْطَانَ

او نژدې نژدې دربېږئ او غاړې برابرې کړئ، قسم دی مې په هغه ذات وې چې د هغه په واک کې زما روح دی زه د صفو په چاکو (درزونو) کې شیطان وینم

يَدْخُلُ مِنْ خَلَلِ الصَّفِّ كَأَنَّهَا الْحَذَفُ. رواه أبو داود.

ننوتونکی لکه هغه (شیطان) چې د توري بزې زوی دی. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۴۳۴، رقم: ٦٦٧.

### صفونه پوره کوئ

﴿۱۰۲٦﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتِمُّوا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ

ثُمَّ الَّذِي يَلِيهِ فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ. رواه أبو داود.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: لومړی اول صف پوره کړئ بیا د هغه پسې او که یو صف کمیږي نو اخیري صف دې کم سي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۴۳۵، رقم: ٦٧١.

### د لومړنیو صفونو فضیلت

﴿۱۰۲٧﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به فرمایل:

يَقُولُ إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الَّذِينَ يَلُونَ الصُّفُوفَ الْأُولَى وَمَا مِنْ

الله ﷻ او د هغه ملائكي پر هغه خلكو رحمتونه نازلوي كوم چي لومړي صف ته نږدې وي او

خُطْوَةٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ خُطْوَةٍ يَمْشِيهَا يَصِلُ بِهَا صَفًّا . رواه أبو داود .

هيڅ قدم د الله ﷻ په نزد دومره غوره نه دى مگر كوم چي د صف پوره كولو يا د كولو لپاره پورته سي .ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۷۰، رقم: ۵۴۳.

**تشريح**: دوهم صف ته پر هغو صفونو چي د هغه وروسته وي فضيلت حاصل دى ځكه رسول الله ﷺ د اول صف ډير زيات فضيلت بيان فرمايلئ دى نو په اولو صفونو او پر دوهم صف فضيلت دې خوا ته ېې هم اشاره وفرمايله .

## په صف كي راسته خواته دريدل غوره دي

﴿۱۰۲۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى مَيَامِنِ الصُّفُوفِ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله ﷻ او د هغه ملائكي د صفو پر راسته لور خلكو باندي رحمت نازلوي .ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۴۳۷، رقم: ۶۷۶.

**تشريح**: علماء ليكي چي په صف كي د امام راسته خواته دريدل كه څه هم د امام څخه ليري وي تر چپه خوا دريدو كه څه هم امام ته نږدې وي افضل دى، هو كه په صف كي چپه خوا ته ځاي خالي وي نو بيا به د صف دواړو خواوو ته د برابرولو لپاره چپه خواته دريدل افضل وي.

## رسول الله ﷺ به د صفو برابرولو وروسته لمونځ پيل كوى

﴿۱۰۲۹﴾: وَعَنِ النُّعْمَانَ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا إِذَا قُمْنَا إِلَى الصَّلَاةِ فَإِذَا اسْتَوَيْنَا كَبَّرَ . رواه أبو داود .

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به زموږ صفونه برابرول كله چي به صفونه سيده سول نو رسول الله ﷺ به تكبير تحريمه وايه . ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۴۳۲، رقم: ۶۶۵.

﴿۱۰۲۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَنْ يَّمِيْنِهِ اِعْتَدِلُوْا سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ وَعَنْ يَّسَارِهِ اِعْتَدِلُوْا سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ. رواه أبو داود

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د خپل راسته لور خلکو ته فرمايل سيده ودريږئ او صفونه برابر کړئ او د چپه لور خلکو ته به يې فرمايل: سيده ودريږئ او صفونه برابر کړئ. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱۱/۴۳۵، رقم: ٦٧٠.

## تر ټولو غوره خلک

﴿۱۰۲۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِيَارُكُمْ أَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ فِي الصَّلَاةِ. رواه أبو داود.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي تر ټولو غوره خلک هغه دي چي د هغوی اوږې په لمانځه کي نرمې وي. ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱۱/۴۳۵، رقم: ٦٧٢.

**تشريح**: په لمانځه کي د نرمي اوږي وضاحت په تشريح کي علماوو ډير څه ليکلي دي او ددې پېڅو معناګاني بيان کړي دي ددې يوه معني خو داده که يو سړی په جماعت کي داسي ولاړ وي چي صف نه وي برابر نو وروسته راتلو سره يو سړی د هغه اوږه ونيسي هغه ته د سيده کيدو لپاره ووايي نو هغه دي ضد او تکبر نه کوي بلکه د هغه سړي خبره دي ومني او صف دي برابر کي دوهمه معني داده چي که يو سړی په صف کي د راتلو سره دريدل غواړي هر کله چي په صف کي ځاي وي نو هغه دي نه منعه کوي بلکه په صف کي دي د دريدو سره دي پې پريږيدي ددې دريمه معني داده چي اوږې نرمي ساتل په لمانځه کي خشوع او خضوع او سکون او وقار لپاره کنايه ده يعني په لمانځه کي تر ټولو بهتر هغه سړی دی چي ډيره خاطر جمعي د قلب حضوري او اطمينان او وقار سره لمونځ کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۱۰۳۲﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اسْتَوُوْا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به لمانځه ته ودريدی نو فرمايل يې برابر کړئ

اسْتَوُوْا اسْتَوُوْا فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ إِنِّيْ لَأَرَاكُمْ مِنْ خَلْفِيْ كَمَا أَرَاكُمْ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ. رواه أبو داود.

برابر کړئ، برابر کړئ برابر کړئ (يعني صفونه)، زما دې په هغه ذات قسم وي چي د هغه په لاس کي زما روح دی زه تاسو د خپل شا څخه هم وينم لکه څرنګه چي مو وړاندي وينم. ابوداؤد.

**تخريج**: لم نجده عند ابي داؤد بل هو عند النسائي ۲\۹۲، رقم: ۸۰۴.

### د لومړي صف په مقابله کي د دوهم صف فضيلت کم دی

﴿۱۰۳۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ

د حضرت ابوامامه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالی

وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللهِ وَعَلَى الثَّانِيْ قَالَ إِنَّ

او د هغه ملائکي پر لومړي صف باندي رحمت نازلوي، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! پر دوهم صف؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللهِ وَعَلَى الثَّانِيْ قَالَ

الله جل جلاله او د هغه ملائکي پر لومړي صف رحمت نازلوي، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! او پر دوهم صف؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللهِ وَعَلَى الثَّانِيْ

الله جل جلاله او د هغه ملائکي پر لومړي صف رحمت نازلوي، صحابه کرامو عرض اې د الله رسوله او پر دوهم صف؟

قَالَ وَعَلَي الثَّانِيْ وَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوُّوا صُفُوفَكُمْ

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل او پر دوهم صف هم، د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل: خپل صفونه برابر کړئ

وَحَاذُوْا بَيْنَ مَنَاكِبِكُمْ وَلِيْنُوْا فِيْ أَيْدِيْ إِخْوَانِكُمْ وَسُدُّوا الْخَلَلَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ

او اوږې نږدې ساتئ او د خپلو ورونړو په منځ کي نرم اوسئ او خالي ځایونه ډک کړئ ځکه شیطان

يَدْخُلُ فِيْمَا بَيْنَكُمْ بِمَنْزِلَةِ الْحَذْفِ يَعْنِيْ أَوْلَادَ الضَّأْنِ الصِّغَارِ . رواه أحمد .

د توري بزې د بچي په ډول ستاسو په منځ کي داخلیږي . احمد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵ \ ۲٦۲.

**تشريح**: د صحابه په قول (علي الثاني) کي چي عطف دی دې تـــه عطف تلقين وايي يعني دصحابه کرامو مطلب دا وو چي په اول صف کي فضيلت خو تاسو بيان کړ د دوهم صف فضيلت هم بيان کړئ چي په دوهم صف کي هم الله تعالی او د هغه ملائکي رحمت پر استوي رسول الله ﷺ په دريم وار د دوهم صف هم د اول صف په صفت مذکوره کي شامل کړی د دې څخه معلومه سوه چي د فضيلت د اعتبار څخه د دوهم صف درجه د اول صف څخه کمه ده .

﴿۱۰۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقِيْمُوا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : صفونه برابر کړئ

الصُّفُوْفَ وَحَاذُوْا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ وَسُدُّوا الْخَلَلَ وَلِيْنُوْا بِأَيْدِيْ إِخْوَانِكُمْ

اوږې يو ځای کړئ او خالي ځايونه ډک کړئ د خپلو ورونړو په لاسونو کي نرم اوسئ

وَلَا تَذَرُوْا فُرُجَاتِ الشَّيْطَانِ وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ وَمَنْ قَطَعَهُ قَطَعَهُ

اللهُ . رواه أبو داود والنسائي منه قوله ومن وصل صفا . إلى أخره .

شيطان لپاره په خپلو صفونو کي درزونه مه پرېږدئ او کوم چا چي صف سم کړی الله به هغه په خپل رحمت او فضل سره يو ځای کړي او چا چي صف مات کړ الله به هغه د خپل رحمت څخه ليري کړي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ١\٤٣٣، رقم: ٦٦٦، والنسائي ٢\٩٣، رقم: ٨١٨.

## امام دي په منځ کي دريږي

﴿۱۰۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَسَّطُوا الْإِمَامَ وَسُدُّوا الْخَلَلَ. رواه أبو داود.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: امام په منځ کي لرئ او درزونه (خالي ځايونه) ډک کړئ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ١\٤٣٩، رقم: ٦٨١.

## د صف څخه پاته کېدل

﴿۱۰۳۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُونَ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللهُ فِي النَّارِ. رواه أبو داود.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: تل به يو قوم د لومړي صف څخه وروسته پاته کيږي تر دې چي الله به هغوی په دوزخ کي وغورزوي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ١\٤٣٩، رقم: ٦٧٩.

**تشريح**: (حتي يوخرهم الله في النار) ددې دوې معناوي دي يوه خو دا چي کوم خلک په اول صف کي د ګډيدو کوښښ نه کوي او برابر په وروستنو صفونو کي ګډيږي نو الله تعالی به هغوی آخر الامر دوزخ کي داخل کړي يا دوهمه معني يې داده چي الله تعالی به هغوی په دوزخ کي وروسته په پاته کيدو سره پاته کي په هر حال د حديث حاصل دادی چي داسي خلکو ته پکار خو دا وه چي په اول صف کي د ګډون کوښښ وکړي خو هغوی د خپلي سستۍ په وجه هميشه په وروستنيو صفونو کي په دريدو سره خپل ځان ددې ثواب څخه محرومه کړي ځکه ددې په بدله کي به هغوی دا سزا ترلاسه کوي.

## د صف شاته د يوازي دريدونکي حکم

﴿۱۰۳۷﴾: عَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ قَالَ رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت وابصة بن معبد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وليدی

رَجُلاً يُّصَلِّيْ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ فَأَمَرَهُ أَنْ يُّعِيْدَ الصَّلاَةَ . رواه أحمد والترمذي وأبو داود وقال الترمذي هذا حديث حسن .

یو سړی ولیدی چي په یوازي ځف کي یې شاته لمونځ کوی ، رسول الله ﷺ هغه ته د لمانځه بیا کولو حکم ورکړ . احمد ،ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۲۸، وابوداؤد: ۱\۴۳۹،رقم: ۶۸۲ . والترمذي ۱\۴۴۵، رقم: ۲۳۰

**تشريح** : په اول صف کي ځاي خالي وو ددې سربېره هغه سړی د صف وروسته یوازي ولاړ وو، رسول الله ﷺ هغه ته د استحباب په توګه دوهم وار د لمونځ کولو حکم ورکړ یعني په وروستني صف کي د هغه پرته بل لمونځ کونکی نه وي نو د امام احمد رحمة الله علیه د مذهب مطابق د هغه لمونځ نه کیږي خو د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه، امام شافعي رحمة الله علیه او امام مالک رحمة الله علیه ددې درو سره امامانو مذهب دادی چي د هغه لمونځ کیږي خو ددې حضراتو قول دا هم دی چي د صف وروسته ځان ته لمونځ کول نه دي پکار ځکه چي دا مکروه دی.

==========

# بَابُ الْمَوْقِفِ

## د امام او مقتدي د درېدو د ځای بیان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۱۰۳۸﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ فِيْ بَيْتِ خَالَتِي مَيْمُوْنَةَ فَقَامَ

د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي یوه شپه زه د خپلي خاله میموني سره پاته وم

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فَقُمْتُ عَنْ يَّسَارِهِ فَأَخَذَ بِيَدِي مِنْ وَرَاءِ

رسول الله ﷺ د شپې راپورته سو او لمونځ یې کوی زه هم چپه طرف ته ودریدم رسول الله ﷺ د شا د خوا څخه په خپل لاس سره زما لاس ونیوی

ظَهْرِهِ فَعَدَلَنِيْ كَذٰلِكَ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ إِلَى الشِّقِّ الأَيْمَنِ. متفق علیه

او زه يې خپل راسته طرف ته راکش کړم. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۹۲، رقم: ۶۹۹ و مسلم: ۱\۵۲۵، رقم: ۱۸۱- ۷۶۳.

**تشریح**: په شرح السنة کي ليکلي دي چي ددې حديث څخه د څو مسائلو استنباط کيږي اول نفل لمونځ په جماعت سره کول جائز دی دوهم که جماعت د دوو خلکو وي يعني يو امام وي او يو مقتدي نو مقتدي ته د امام راسته خواته دريدل پکار دي .دريم په لمانځه کي لږ شان عمل جائز دی څلورم مقتدي ته جائز نه دي چي هغه د امام څخه مخکي سي ځکه چي رسول الله ﷺ ابن عباس رضي الله عنه د مخ د خوا څخه د ګرځولو پر ځاي خپل وروسته په ګرځولو سره رسته خواته پې ودرولو پنځم په داسي سړي پسي اقتداء جائز نه ده چي د هغه د شروع څخه د امامت نيت نه وکړي، په هدايه کي ليکلي دي چي په صورت مذکوره کي يو ائحي مقتدي د امام شا خواته يا چپه خواته ته دي لمونځ وکړي نو جائز دی ليکن مناسب نه ده .

### د درو کسانو جماعت

﴿۱۰۳۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دلمانځه لپاره ولاړ سو

فَجِئْتُ حَتّٰى قُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَ بِيَدِيْ فَأَدَارَنِيْ حَتّٰى أَقَامَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهِ

چپه طرف ته يې زه ودريدم، رسول الله ﷺ زما لاس ونيوی او زه يې راسته طرف ته راوستم

ثُمَّ جَاءَ جَبَّارُ بْنُ صَخْرٍ فَقَامَ عَنْ يَسَارِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بيا جبار بن صخر راغلی او هغه د رسول الله ﷺ چپه طرف ته ودريدی

فَأَخَذَ بِيَدَيْنَا جَمِيْعًا فَدَفَعَنَا حَتّٰى أَقَامَنَا خَلْفَهُ. رواه مسلم

رسول الله ﷺ زموږ د دواړو لاسونه ونيول او شا ته يې کړو تر دې چي رسول الله ﷺ موږ په ځان پسي شا ته ودرولو . مسلم.

**تخریج**: صحيح مسلم: ۴\۲۳۰۶، رقم: ۳۰۱۰.

**تشريح** : ددې حديث څخه معلومه سوه چي مقتدي يو وي نو هغه دي د امام راسته خواته ودريږي او كه تر يوه زيات وي نو بيا ټول دي د امام وروسته ودريږي قاضي رحمة الله عليه ويلي دي ددې حديث څخه دا هم معلومه سول چي لاسونه پريول بغير د وقفې دوه واره په حركت كي په راوستو سره لمونځ نه باطل كيږي .

**ښځي دي شاته دريږي**

﴿۱۰۴۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ صَلَّيْتُ أَنَا وَيَتِيمٌ فِيْ بَيْتِنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمُّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا . رواه مسلم .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما او يتيم (د انس ورور) په خپل كور كي په رسول الله ﷺ پسي لمونځ وكړ او بي بي ام سليم رضي الله عنها په موږ پسي شاته ولاړه وه. مسلم

**تخريج** : لم نجده عند مسلم بل هو عند البخاري (فتح الباري): ۲\۲۱۲، رقم: ۷۲۷.

**تشريح** : ام سليم رضي الله عنها د حضرت انس رضي الله عنه د مور نوم وو او يتيم د هغه د وروو نوم وو د بعضو حضراتو رايه ده چي يتيم د هغه نوم وو ليكن ځينو حضراتو ويلي دي چي د هغه نوم ضمير وو ددې حديث څخه دا خبره ثابته سوه كه د امام وروسته سړى او ښځه دواړه د مقتدي په حيثيت سره په لمانځه كي ګډ سي نو خلكو ته د خپل صف مخكي قائمول پكار دي او د ښځو صف تر شا درول پكار دي.

﴿۱۰۴۱﴾: وَعَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِهِ وَبِأُمِّهِ أَوْ خَالَتِهِ قَالَ فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ وَأَقَامَ الْمَرْأَةَ خَلْفَنَا. رواه مسلم

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د انس او د هغه د مور بي بي ام سليم يا خاله سره لمونځ وكړ، انس وايي رسول الله ﷺ زه خپل راسته خوا ته كړم او ښځه يې زموږ وروسته كړه. مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱\۴۵۸، رقم: ۲۶۹- ۶۶۰.

﴿۱۰۴۲﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ رَاكِعٌ

د حضرت ابوبكرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه نبي كريم ﷺ ته د ركوع په حالت كي ورسېدم

فَرَكَعَ قَبْلَ أَنْ يَّصِلَ إِلَى الصَّفِّ ثُمَّ مَشٰى إِلَى الصَّفِّ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى

او مخکي ددې څخه چي هغه صف ته ورسي رکوع يې وکړل بيا صف ته ورغلی ، وروسته يې ددې يادونه رسول الله ﷺ ته وکړل ،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ زَادَكَ اللّٰهُ حِرْصًا وَلَا تَعُدْ . رواه البخاري .

رسول الله ﷺ وفرمايل : الله ﷻ دي ستا حرص زيات کړي مګر بيا داسي مه کوه . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۶۷،رقم: ۷۸۳.

**تشريح**: کله چي ابوبکر ؓ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو جماعت ولاړ وو او رسول الله ﷺ رکوع ته تللی وو ، هغه پر ځاي ددې چي په صف کي په شامليدو سره نيت او د تکبير تحريمه وروسته رکوع ته تللي واي په صف کي د شامليدو مخکي نيت او تکبير تحريمه وروسته رکوع ته ولاړی بيا هلته د دوو قدمونو برابر يا دوو قدمونو څخه زيات غير متواله (يعني بې درپې) د اينبودو سره بلکه په کرار قدم اينبودو سره ولاړی او په صف کي شامل سو ، ددې وجهي څخه چي دوه يا يو قدم تګ سره لمونځ نه فاسديږي، ليکن اولي دادی چي ددې څخه هم پرهيز وکړل سي د حديث د اخري لفظ لاتعد په څو رقمه منقول دی يو خو داسي څنګه چي دلته په حديث کي نقل سوي دي يعني د ت زور او د ع پيښ سره چي عودنا موخوذ کيږي ددې معني ده د مخکي لپاره داسي مه کوه دوهم د ع سکون او د دال په پيښ سره يعني لا تعدُ عدد څخه اخستل سوئ دی داسي ددې لفظ مطلب به دا وي چي آئنده د لمانځه لپاره په تلو کي داسي چابکي مه کوه بلکه په صبر سکون اطمينان او وقار سره ځه تر دې چي په صف کي شامل سي بيا ددې وروسته لمونځ شروع که دريم د ت پيش او د عين زور سره يعني لاتعد چي اعادة څخه ماخوذ دی په دی شکل کي د حديث معني به دا وي کم لمونځ تا کړی دی هغه دوهم وار مه کوه په هر حال په دې ټولو کي اول قول يعني لاتعد آئنده مه کوه د عقل او نقل په رڼا کي تر ټولو زيات صحيح او اولی دی دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د صف په پای کي په يوازي دريدلو سره لمونځ نه باطل کيږي ځکه چي رسول الله ﷺ ابوبکر ؓ ته د لمانځه د دوهم وار کولو لپاره ونه فرمايل مګر کراهت بلا شبه سته.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### كه درې كسان وي نو جماعت دې كوي

﴿۱۰۴۳﴾: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كُنَّا ثَلَاثَةً أَنْ يَتَقَدَّمَنَا أَحَدُنَا. رواه الترمذي.

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته حکم راکړ چي کله موږ درې کسه يو نو په موږ کي دې يو امام سي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي: ۱/۴۵۲، رقم: ۲۳۳.

**تشريح**: ددې حديث څخه خود درو خلکو د جماعت په باره کي معلومه سوه چي په هغوی کي يو سړی چي د امامت مستحق وي مخته سي او د امامت فريضه پوره کړي دا حکم د دوو خلکو د جماعت هم دی چي يو سړی دې امام جوړ سي او دوهم مقتدي، خو د دوو خلکو د جماعت په صورت کي به امام نه مخته کيږي بلکه دواړه به برابر برابر دريږي يعني امام دې چپه خواته او مقتدي دې رسته خواته وي.

### امام ته لوړ دريدل نه دي پکار

﴿۱۰۴۴﴾: وَعَنْ عَمَّارٍ أَنَّه أَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ وَقَامَ عَلٰى دُكَّانٍ يُصَلِّيْ وَالنَّاسُ

د حضرت عمار رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما په مدائن کي خلکو ته امامت ورکړ زه پر يو دوکانچه (لوړ ځای) ودريدم او خلک

أَسْفَلُ مِنْهُ فَتَقَدَّمَ حُذَيْفَةُ فَأَخَذَ عَلٰى يَدَيْهِ فَاتَّبَعَهُ عَمَّارٌ حَتّٰى أَنْزَلَهُ حُذَيْفَةُ

کښته تر هغه، حضرت حذيفة رضي الله عنه را مخته سو زما (عمار) لاس يې ونيوی او ورسره را روان سوم تر څو چي لاندي يې را کښته کړم،

فَلَمَّا فَرَغَ عَمَّارٌ مِنْ صَلَاتِهِ قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ أَلَمْ تَسْمَعْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ

بيا چي د لمانځه څخه فارغ سو نو حذيفة عمار ته وويل ايا تا د رسول الله ﷺ څخه نه دي اوريدلي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِذَا أَمَّ الرَّجُلُ الْقَوْمَ فَلَا يَقُمْ فِيْ مَقَامٍ أَرْفَعَ مِنْ مَقَامِهِمْ

چي فرمايل يې: هر کله يو سړی د مسجد امامت کوي نو تر مقتديانو دي پر لوړ ځای نه دريږي

أَوْ نَحْوَ ذٰلِكَ؟ فَقَالَ عَمَّارٌ لِذٰلِكَ اتَّبَعْتُكَ حِيْنَ أَخَذْتَ عَلٰى يَدَيَّ. رواه أبو داود

يا داسي نور الفاظ يې وفرمايل، عمار وويل کله چي تا زما لاس ونيوی او راکښته دي کړم نو له دې کبله ما ستا پيروي وکړه او را کښته سوم. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱/ ۳۹۹، ۴۰۰، رقم: ۵۹۸.

**تشريح**: په پورتني صورت کي مسئله داده چي امام يوازي پر لوړ ځای داسي ولاړ وي چي څه مقتديان خو ورسره پر لوړ ځاي وي او څه لاندي وي نو دا خو مکروه نه دي البته که امام ځان ته پر لوړ ځاي ولاړ وي او مقتديان ټوله لاندي وي نو دا به مکروه وي څرنګه چي حضرت عمار رضي الله عنه يې داسي ولېدی چي هغه يوازي پر لوړ ځاي وو او د مقتديانو سره نه وو نو ددې وجهي حضرت حذيفه رضي الله عنه لاندي راکښته کړ او وه يې دروی.

## که امام لاندي او مقتديان پر لوړ ځاي وي نو څه حکم دی؟

صورت خو دادی چي امام پر لوړ ځاي وي او مقتديان لاندي وي، که معامله ددې برعکس وي يعني امام لاندي ولاړ وي او مقتديان لوړ وي، نو په مسئله کي د مشائخو اختلاف دی، امام طحاوي رحمة الله عليه فرمايي چي دا مکروه نه دي ځکه چي همداسي اهل الکتاب يعني غير مسلمانانو سره مشابهت نه کيږي ځکه چي د هغوی په مذهب کي امام په خاص توګه پر لوړ ځاي باندي ودرول سي نو امام ته يوازي پر لوړ ځاي باندي دريدل خو د هغوی د مشابهت په وجه مکروه کيداي سي ليکن د امام لاندي او د مقتديانو پر لوړ ځاي باندي دريدل مکروه کيداي نه سي ليکن تر څو پوري چي د ښکاره رواياتو او عقلي تقاضا تعلق وي نو دا هم مکروه دي ځکه چي داسي د امام سپکوالی لازميږي او د هغه په عظمت کي فرق راځي، اوس سوال دا پيدا کيږي چي پر څومره لوړ ځای باندي امام ته يوازي دريدل مکروه دي د هغه حد څه دی؟ يعني هغه ځاي چي څومره لوړ وي چي پر هغه دي امام يوازي نه دريږي، په دې اړه د ځينو حضراتو رايه داده چي د انسان د قد په اندازه لوړ والي باندي امام لپاره يوازي دريدل مکروه دي ليکن د نورو حضراتو وينا ده چي د لوړوالي حد يو لاس وي يعني که پر يو لاس لوړ ځاي باندي امام ولاړ وي نو دا به مکروه وي او په دې قول فتوی ده، دا خو د مسئلې وضاحت وو،

اوس د حديث خواته راسئ د حديث الفاظ (وقام على دكان يصلي) څخه په ښکاره توګه

دا هیڅ نه معلومیږي چي کله حذیفه رضي الله عنه ،عمار رضي الله عنه ووهی او هغه یې کښېنته راوغورځوی نو هغه وخت عمار رضي الله عنه حقیقتا لمانځه کولو ته دریدلی وو یا یوازي د لمانځه اراده یې کړې وه او دریدلی وو او نیت تړونکی وو چي دا واقعه پیښه سوه اونحو ذالک حذیفه رضي الله عنه چي د رسول الله ﷺ حدیث بیان کړ نو په اخر کي یې دا الفاظ وفرمایل ځکه چي هغه ته د حدیث الفاظ بعینه یاد نه وه نو هغه وفرمایل چي رسول الله ﷺ یا خو بعینه دا الفاظ فرمایلي وه یا داسي نور الفاظ یې ارشاد وفرمایل.

د حدیث د اخري الفاظو څخه معلومیږي چي عمار رضي الله عنه ته دا مسئله معلومه وه او هغه د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي وه چي امام ته یوازي پر لوړ ځاي باندي دریدل نه دي پکار نو دلته دا اشکال پیدا کیږي چي کله عمار رضي الله عنه په ارشاد نبوي خبر وو او هغه ته دا مسئله معلومه وه نو هغه ددې خلاف ولي وکړل ؟ ددې مختصر جواب دادی چي عمار رضي الله عنه ته مسئله معلومه وه او هغه د رسول الله ﷺ څخه ددې ممانعت اوریدلی هم وو او هغه ته دا حدیث نه وو په یاد او نه ورته دا مسئله یاد وه، هو حذیفه رضي الله عنه چي تعارض وکړ او دی یې راکښېنته کړ نو دغه مسئله یاد سوه نو د صادق او ریښتوني فرمان بردار په حیثیت یې سمدستي په هغه عمل وکړ.

## د تعلیم په وجه امام لوړ دریدای سي

﴿۱۰۴۵﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ أَنَّهُ سُئِلَ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ الْمِنْبَرَ ؟

د حضرت سهل بن سعد الساعدي رضي الله عنه څخه روایت دی چي د هغه څخه پوښتنه وسول چي د رسول الله ﷺ منبر د څه شي څخه جوړ وو؟

فَقَالَ هُوَ مِنْ أَثْلِ الْغَابَةِ عَمِلَهُ فُلَانٌ مَوْلٰى فُلَانَةَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

هغه وویل چي د جهاؤ (د غره یو درخته) څخه فلاني سړي چي د فلانۍ ښځي آزاد کړی غلام وو د رسول الله ﷺ لپاره جوړ کړی وو

وَسَلَّمَ وَقَامَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ عُمِلَ وَوُضِعَ

رسول الله ﷺ هغه ودروی کله چي هغه تیار سو او په مسجد کي کښېښودل سو

فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَكَبَّرَ وَقَامَ النَّاسُ خَلْفَهُ فَقَرَأَ وَرَكَعَ وَرَكَعَ النَّاسُ خَلْفَهُ

او د قبلي په لوري ودروی ، رسول الله ﷺ تکبیر ووایه او خلک په هغه پسي ودریدل ، رسول الله ﷺ

قرآن کريم وو ايه او رکوع يې وکړل ، د رسول الله ﷺ شا ته خلکو هم رکوع وکړل

ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰي فَسَجَدَ عَلَى الْأَرْضِ ثُمَّ عَادَ إِلَى الْمِنْبَرِ ثُمَّ

بيا يې سر پورته کړ بيا رسول الله ﷺ مخکي ته را کښته سو او پر مځکه يې سجده وکړه بيا يې منبر ته تشريف يووړ

قَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰي حَتَّى سَجَدَ بِالْأَرْضِ . هٰذَا

او قرائت يې وو ايه بيا يې رکوع وکړه بيا يې د رکوع څخه سر راپورته کړ بيا مخکي ته راکښته سو او سجده يې وکړه . دغه

لفظ البخاري وفي المتفق عليه نحوه وقال في آخره فلما فرغ أقبل على الناس فقال أيها الناس إنما صنعت هذا لتأتموا بي ولتعلموا صلاتي .

الفاظ د بخاري دي) بخاري او مسلم په دې ډول يو بل حديث هم بيان کړی دی او په پای کي يې ويلي دي چي کله رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو خلکو ته متوجه سو او وه يې فرمايل : خلکو ! دا ما ددې لپاره وکړل چي تاسو زما پيروي وکړئ او زما لمونځ زده کړئ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۹۷، رقم: ۹۱۷.

**د لغاتو حل**: (اثل): هو شجر شبيه بالطرفاء (وهو نوع من الشجر).

**تشريح** : د مدينې منورې څخه د نهه کوسه پر دا فاصله باندي يو ځنګل دی هلته درختي ډيري دي د هغه د لرګيو څخه د رسول الله ﷺ لپاره منبر جوړ سوی وو .

د فلاني سړي څخه مراد قوم رومي وو او د فلانی ښځي څخه د عائشه انصاريه ذات مراد دی، مولانا مظهر رحمة الله عليه ليکلي دي چي په دې منبر د کښته کېدو او پورته کېدو دپاره درې زينې وې چي ډيري نژدې جوړې سوې وې، د هغه په ذريعه پر منبر باندي يو يا دوه قدمه ختل ډير اسان وه په دې وجه فعل کثير لازم نه سو چي د رسول الله ﷺ لمونځ باطل سوی وای، ددې حديث څخه معلومه سوه که امام ددې خبري اراده وکړي چي د هغه د لمانځه حرکات او سکنات او د هغه کيفيات د ليري څخه نژدې ولاړ تول لمونځ کونکي ووينې او د هغه په ذريعه د لمانځه احکام او مسائل زده کړي نو د هغه لپاره پر لوړ ځاي باندي يو ازي دريدل جائز دي، هذا لفظ البخاري دا لفظ د بخاري دی او ددې وروسته په عبارت نقل کولو سره د مشکوة مصنف

دې خبرې ته اشاره کړه ده چې دا حديث بخاري او مسلم دواړو نقل کړې دی ځکه چې ددې په اول فصل کې ذکر کول پکار وو ليکن دا حديث په دې فصل کې ځکه نقل سوی دی چې صاحب مصابيح دا حديث د بخاري او مسلم څخه پرته د نورو امامانو نقل کړی وو ځکه د مصابيح په اتباع کې هم په دې فصل کې نقل کول مناسب وګڼي.

**په اعتکاف کې د رسول الله ﷺ امامت**

﴿۱۰۴۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حُجْرَتِهِ وَالنَّاسُ يَأْتَمُّوْنَ بِهِ مِنْ وَرَاءِ الْحُجْرَةِ. رواه أبو داود.

د حضرت عائشې ﵂ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ په خپلې حجرې (خونه) کې لمونځ وکړ او خلکو د حجرې څخه دباندې د رسول الله ﷺ اقتداء کول. ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۱۱ ۶۷۱، رقم: ۱۱۲۶.

**تشريح** : ددې حديث تعلق د روژې سره دی رسول الله ﷺ د مسجد په يوه برخه کې د اعتکاف لپاره د ټاټ يوه کوټه جوړه کړې وه رسول الله ﷺ په دې حجره کې تر څو شپو پورې تراويح او لمونځ کوی، صحابه کرام په دې موقع د حجرې څخه د باندې ولاړ د رسول الله ﷺ اقتداء کول.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

**د صفو جوړولو طريقه**

﴿۱۰۴۷﴾: عَنْ أَبِيْ مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى

د حضرت ابو مالک اشعري ﵁ څخه روايت دی چې هغه خلکو ته وويل ايا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ د لمانځه کيفت بيان نکړم؟

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ أَقَامَ الصَّلَاةَ وَصَفَّ الرِّجَالَ وَصَفَّ خَلْفَهُمُ الْغِلْمَانَ

رسول الله ﷺ لمانځه ته ودريدی او د خلکو صفونه يې جوړ کړل بيا په هغه صف پسې وروسته يې هلکان ودرول

ثُمَّ صَلَّى بِهِمْ فَذَكَرَ صَلَاتَهُ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا صَلَاةُ قَالَ عَبْدُ الْأَعْلَى لَا أَحْسِبُهُ

إِلاَّ قَالَ أُمَّتِيْ . رواه أبو داود .

او د هغه وروسته يې لمونځ ورکړ همداسي هغه د رسول الله ﷺ د لمانځه يادونه وکړه او وه يې ويل دا وو د رسول الله ﷺ لمونځ، عبد الاعلى وويل زما خيال دی ابو مالک وويل چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت لمونځ داسي دی . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد : ۱\ ۴۳۷، رقم: ٦٧٧.

**تشريح** : د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي زما د امت خلکو ته پکار ده چي د لمانځه کوم کيفيت زما څخه نقل سوئ وي همداسي لمونځ کوي او ددې څخه دا تنبيه هم مقصده ده چي کوم خلک په دې طريقې سره يعني د سنت نبوي مطابق لمونځ نه کوي نو هغوی په خپل دغه عمل سره دا ښکاره کوي چي هغوی د رسول الله ﷺ د تابعدار امت څخه نه دی .

﴿۱۰۴۸﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عَبَّادٍ قَالَ بَيْنَا أَنَا فِي الْمَسْجِدِ فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ

د حضرت قيس بن عباد رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله زه په مسجد کي د ننه په لومړي صف کي وم

فَجَبَذَنِيْ رَجُلٌ مِنْ خَلْفِيْ جَبْذَةً فَنَحَّانِيْ وَقَامَ مَقَامِيْ فَوَاللهِ مَا عَقَلْتُ صَلاَتِيْ

نو يو سړي د شا د خوا څخه کشولم زه يې يوې خوا ته کړم او زما پر ځای ودريدی ، په الله دي مي قسم وي د غصې له کبله زه په لمانځه پوه نه سوم

فَلَمَّا انْصَرَفَ إِذَا هُوَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ فَقَالَ يَا فَتَى لاَ يَسُوْءُكَ اللهُ إِنَّ هٰذَا عَهْدٌ

بيا چي هغه سړی د لمانځه څخه فارغ سو نو وينم چي هغه سړی ابی بن کعب وو هغه ما ته وويل اې زلميه ! الله تعالى دي تا زما ددې کار له کبله غمجن نه کړي دا

مِّنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْنَا أَنْ نَّلِيَهُ ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَقَالَ هَلَكَ

د نبي کريم ﷺ موږ ته وصيت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره نژدې ودريږو ، د دې وروسته هغه مخ پر قبله سو او و يې وويل : هلاک سول

أَهْلُ الْعَقْدِ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ ثَلاَثًا ثُمَّ قَالَ وَاللهِ مَا عَلَيْهِمْ آسَى وَلٰكِنْ آسَى عَلَى

سرداران د کعبې په رب دي مي قسم وي ، درې ځله يې وويل، د دې وروسته يې وويل : قسم په

الله زما سره د سردارانو یا امامانو غم نسته مگر زه په هغه خلکو خفه یم

مَنْ أَضَلُّوا قُلْتُ يَا أَبَا يَعْقُوبَ مَا تَعْنِيْ بِأَهْلِ الْعَقْدِ؟ قَالَ الْأُمَرَاءُ . رواه النسائي

څوک چي دوی گمراه کوي ، د راوي بیان دي چي ما د ابی بن کعب څخه پوښتنه وکړه چي د اهل عقد څخه ستا سو څوک مراد دی؟ هغه وویل د قوم امیران . نسائي .

**تخريج:** سنن النسائي: ۲\۸۸، رقم: ۸۰۷.

**تشريح** : د حضرت أبی ابن کعب ﷺ الفاظ (ان هذا عهد من النبي .........الخ) څخه د رسول اللهﷺ ارشاد ته اشاره ده چي رسول اللهﷺ فرمایلي وه (ليلني منكم اولو الاحلام والنهي) : په لمانځه کي په تاسو کي دي صاحب عقل او بالغ ماته نژدې دریږي.

ددې ارشاد حاصل داوو چي کوم خلک صاحب عقل او فهم او بالغ وي هغوی دي امام ته نژدې دریږي او قیس ابن عباد په هغه ډله کي نه راتلی ځکه حضرت ابی ابن کعبﷺ د هغه ځای څخه لیري کړ او خپله هلته ودریدی .

(هلک اهل العقد ) اهل یعني سرداران او حاکمان مړه سول، ددې مطلب دادی چي د رعایاا عمال او کردار او د هغوی دیني او دنیاوي احکام او افعال تر دې چي د صف جوړولو رعایت او حفاظت د حکامو او سردارانو پر ذمه دی مگر هغه حکام او سرداران چي د رعیت په دیني او دنیوي کارونو د مشرتابه په حیثیت سره د خلکو پر افعالو او کردار نظر ن درلودی او د هغوی پر سنت نبوي تلل ختم سوه ځکه نتیجه دا سوه چي د خلکو په دیني کارونو کي سستي پیدا سول او د عمل او فکر غلط انداز پیدا سوی دی په ښکاره دا معلومیږي چي ددې الفاظو په ذریعه حضرت کعب ﷺ د خپلي زمانې پر حاکمانو انتقاد کړی دی ځکه دا به وویل سي چي ددې الفاظو محمل خپله د خلیفه ذات نه دی بلکه د حضرت کعبﷺ مقصد به د حضرت عثمان ﷺ ځیني حاکمان وه چي خپل فرائض بې په پوره توگه سر ته نه رسول .

==========

## بَابُ الْإِمَامَةِ (د امامت بیان)

په شریعت کي د لمانځه امامت ډیر اهم او عظیم کار دی، د ټولو مقتدیانو د لمانځه د ذمه دار کېدو په وجه د امام د ټاکلو په اړه شریعت یو څو شرطونه او قواعد ټاکلي دي او دا یې ښودلي دي چي ددې اهم او عظیم منصب حامل کوم څوک کیدای سي ، په دې باب کي دا ډول

حدیثونه نقل کیږي چي د هغو څخه معلوميږي چي د امام د ټاکلو په وخت کي د کومو خبرو لحاظ ساتل پکار دي، او دا چي د امامت وړتیا کومو خلکو ته حاصله ده .

په دې اړه صحیح طریقه داده چي مقتدیانو ته پکار ده چي په حاضر مقتدیانو کي په کوم سړي کي چي د امامت وړ زیات صفتونه وي هغه دي امام جوړ کړي که یو سړی داسي وي چي په هغوی کي د امامت وړ وي نو پر کثرت د رایي دي عمل وکړل سي یعني د کوم سړي لپاره چي د زیاتو خلکو رایه وي هغه دي امام جوړ کړل سي که د یو داسي سړي په شتون کي چي د امامت وړ وي یو بل داسي سړی امام جوړ کړل سي چي هغه وړ نه وي نو ټول لمونځ کونکي به د سنت پرېښودو په فتنه کي اخته سي ، د امامت لپاره یو څو خاص صفات دادي :

۱. د امامت تر ټولو زیات حق د هغه سړي دی چي د لمانځه مسائل ښه پیژني په شرط د دې چي په ظاهري توګه سره په هغه کي یو فسق وغیره نه وي او کم تر کمه په اندازه د مسنون قرائت د هغه قرآن کریم یاد وي .
۲. بیا هغه سړی چي قرآن کریم په ښه آواز سره د قرائت د قاعدې سره سم وايي .
۳. بیا هغه سړی چي په ټولو کي زیات ښکلی وي .
۴. بیا هغه سړی چي په ټولو کي یې عمر زیات وي .
۵. بیا هغه سړی چي په ټولو کي زیات اخلاقي وي.
٦. بیا هغه سړی چي په ټولو کي زیات پرهیزګار وي .
۷. بیا هغه سړی چي په ټولو کي ښه جامه اغوندي .
۸. بیا هغه سړی چي د هغه سر تر ټولو زیات غټ وي .
۹. بیا هغه سړی چي مقیم وي په نسبت د مسافرو .
۱۰. بیا هغه سړی چي اصلي آزاد وي .
۱۱. بیا هغه سړی چي د حدث اصغر څخه تیمم کړی وي په نسبت د هغه سړي چي هغه د حدث اکبر څخه تیمم کړی وي ،

په کوم چا کي چي دوه صفتونه تر لاسه سي نو هغه د امامت زیات وړ دی په نسبت د هغه چا چي په هغه کي یو صفت وي ، د مثال په توګه هغه سړی چي د لمانځه مسائل هم ښه پیژني او قرآن کریم هم په ښه ډول ویلای سي د امامت زیات مستحق اهل دی په نسبت د هغه چا چي یوازي د لمانځه مسائل پیژني او قرآن کریم په ښه توګه نسي ویلای .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د امامت ور څوک دی؟

﴿۱۰۴۹﴾: عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابومسعود انصاري رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللّٰهِ فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ

امامت دې هغه څوک کوي چې قرآن کريم په ټولو کې ښه وايي بيا که ټول يې ښه وايي نو د دين په احکامو ښه پوهيدونکی دې امامت کوي

فَإِنْ كَانُوا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً فَإِنْ كَانُوا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ

بيا که ټول داسې وي نو کوم يو چې مخکې هجرت کړی وي هغه ته امامت کول پکار دي بيا که په هجرت کې ټول يو ډول وه

سِلْمًا وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهِ وَلَا يَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ عَلَى تَكْرِمَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ. رواه مسلم و في رواية له ولايؤمن الرجل الرجل في اهله.

نو د زيات عمر خاوند دې امامت وکړي هيڅوک دې د چا د واک پر ځای امامت نه کوي او نه دې څوک د چا په کور کې د هغه پر مسند کښيني البته هلته که چيرې اجازه ورته وکړل سي. مسلم، او د مسلم په يوه روايت کې دا الفاظ هيڅوک دې د چا په کور کې امامت نه کوي.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱/ ۴۶۵، رقم: ۲۹۰- ۶۷۳. ولم نجد الرواية الثاني في صحيح مسلم.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چې د حديث په الفاظو (فاعلمهم بالسنة) کې د سنت څخه مراد د رسول الله ﷺ حديثونه دي، د صحابه کرامو په زمانه کې چې کوم سړی به په حديثو زيات پوهيدی هغه به لوی فقيه منل کيدی، د امام احمد او ابوسف رحمة الله عليهما عمل پر دې حديث دی، يعني ددې حضراتو په نزد د امامت په اړه قاري پر عالم مقدم دی، د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه، امام محمد رحمة الله عليه، امام مالک رحمة الله عليه او امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چې زيات عالم او فقيه د امامت په اړه پر لوی قاري

مقدم دی، ځکه چې د علم قرائت ضرورت خو د لمانځه یوازې یو رکن کې وي پر خلاف ددې د علم ضرورت د لمانځه په ټولو ارکانو کې وي، د کومو حدیثو څخه چې دا ثابتیږي چې پر عالم باندې ښه قرآن کریم ویونکی مقدم دی ددې جواب د هغه حضراتو د لورې دا ورکول کیږي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې چې کوم خلک قاریان وه هغوی به تر ټولو زیات علم والا هم وه ځکه چې هغه خلکو به قرآن کریم مع احکام زده کوی، په دې وجه په حدیثو کې قارې پر عالم مقدم کړل سوی دی، او اوس زموږ په زمانه کې داسې نه ده بلکه اکثر قاریان د مسائلو څخه ناخبر وي، ځکه موږ عالم پر قارې مقدم کوو، ددې څخه پرته ددې حضراتو تر ټولو لوی دلیل دادی چې د رسول الله ﷺ د مرګ په ناروغۍ کې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلکو ته لمونځ ورکوی ددې سربیره چې هغه قارې نه وو بلکه تر ټولو زیات عالم وو حال دا چې هغه وخت تر هغه زیات لوی لوی قاریان موجود وه.

د (فاقدمهم هجرة) په باره کې ابن مالک رحمة الله علیه فرمایې چې نن سبا هجرت متروک دی ځکه اوس دلته د حقیقي هجرت پر ځای معنوي هجرت (یعني د ګناهو او خرابیو د پرېښودو) اعتبار به وي دا وجه ده چې فقهاء په علم او قرائت کې د برابرۍ څخه وروسته پرهیزګار مقدم کوي یعني که دوه کسان داسې وي چې عالم هم وي او قارې هم وي نو په هغه دواړو کې به د امامت مستحق هغه څوک وي چې د دوهم په نسبت زیات پرهیزګار وي، په دې حدیث کې د امامت یوازې دومره مراتب ذکر کړل سوي دي مګر علماؤ یو څو نور مراتب هم ذکر کړي دي که په عمر کې ټول برابر وي نو هغه سړی دې امامت وکړي چې تر ټولو زیات ښه اخلاق والا وي، که په اخلاقو کې هم ټول برابر وي نو هغه سړی دې امامت وکړي چې ښکلی مخ والا یعني ښائسته وي، او که په ښکلا کې هم ټول برابر وي نو هغه سړی دې امامت وکړي چې تر ټولو ښه جامه یې اغوستې وي یا تر ټولو زیات شریف النسب وي، که په ټولو صفتونو کې ټول برابر وي نو په دې صورت کې غوره خبره داده چې قرعه (پچه) واچول سي د چا د نامه چې پچه راووځي هغه دې امامت وکړي یا قوم چې څوک غواړې خپل امام دې و ټاکې او په هغه پسې دې لمونځ وکړي.

د حدیث د آخرې الفاظو مطلب دادی چې هیڅ سړی دې د دوهم سړې په پاچاهۍ او سیمه کې امامت نه کوي، همدارنګه په داسې ځای کې دې امامت نه کوي چې د هغه مالک یو بل څوک وي څرنګه چې د دوهم روایت د الفاظو (اهله) څخه ثابته سوه، ددې څخه معلومه سوه که پر یو ځای باندې د وخت حاکم امامت کوي یا د حاکم د لورې ټاکل سوی د هغه نائب چې د امیر

او خليفه په حكم كي داخل دى د امامت فريضه سرته رسوي نو يو بل دوهم سړي لپاره دا مناسب نه ده چي هغه په وړاندي كېدو سره امامت وكړي په خاصه توګه د اخترو او جمعې په لمانځه كي خو دا بالكل مناسب نه ده، همدارنګه په كوم مسجد كي چي امام ټاكل سوى وي يا په يو كور كي د صاحب كور په شتون كي ټاكلى امام او صاحب كور د اجازې څخه پرته امامت ته وړاندي كېدل د بل چا حق نه دى، ځكه چي دا سي كارونه په سلطنت كي انحطاط، په خپلو كي بغض او عناد، بې احترامي، اختلاف او د فتنې او فساد دروازه خلاصيږي، هر كله چي د جماعت مشروعيت ددغه غير اخلاقي شيانو د بنديز لپاره دى، په دې اړه د ابن عمر رضي الله عنه دا رويه د پيروى وړ ده چي د خپل فضل، شرف، علم او تقواى سربېره د حجاج بن يوسف په ډول ظالم او فاسق پسي يې لمونځ كوى.

﴿۱۰۵۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا كَانُوا ثَلَاثَةً فَلْيَؤُمَّهُمْ أَحَدُهُمْ وَأَحَقُّهُمْ بِالْإِمَامَةِ أَقْرَؤُهُمْ. رواه مسلم وفي ذكر حديث مالك ابن الحويرث في باب بعد باب فضل الاذان.

هر كله چي تاسو درې ياست نو يو امام جوړ كړئ او په دوى كي د امامت زيات وړ هغه څوك دى چي زيات عالم وي، مسلم، د مالک بن حويرث حديث د آذان د غوره والى د احكامو څخه وروسته بيان سوى دى.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۴۶۴، رقم: ۲۸۹- ۶۷۲.

**تشريح**: د درو كسانو قيد اتفاقي دى، د درو څخه كم يا زيات كېدو په صورت كي هم دا حكم دى چي په هغوى كي دي يو امام جوړ سي او پاته مقتديان، علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي د رسول الله ﷺ د اكثرو صحابه كرامو د عمر يوه لويه برخه تيره سوې وه چي هغوى د اسلام په سعادت سره مشرف سول په دې وجه هغه خلكو به د قرآن كريم ويلو څخه مخكي علم دين زده كوى مګر وروسته دا صورت پاته نه سو بلكه اوس خو خلک د عمر لومړنۍ برخه د علم دين تر لاسه كولو څخه مخكي قرآن كريم ويل زده كوي، په هر حال د امامت په اړه پر ښه قاري باندي هغه فقيه او عالم ته به غوره والى حاصل وي كوم چي د لمانځه احكام او مسائل پېژني، د معاملاتو زيات علم لرونكى پر قاري مقدم كيداى نسي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۰۵۱﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُؤَذِّنَ لَكُمْ خِيَارُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ قُرَّاؤُكُمْ . رواه أبو داود .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم څوک چي په تاسو ټولو كي غوره وي نو هغه دي آذان وكړي او څوک چي تر ټولو ښه قرآن كريم وايي نو هغه دي امامت وكړي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد : ۱\۳۹۶، رقم: ۵۹۰.

**تشريح**: د لمانځه او روژې د وختونو ذمه داري پر مؤذنانو وي، كله چي مؤذن پر لوړ ځاى باندي درېږي سره آذان كوي نو ډېر واره د هغه نظر د خلكو پر كورونو لوېږي ، مؤذن كه چيري صاحب ديانت، ديندار او متقي وي نو هغه د لمانځه او روژې د وختونو رعايت هم كوي او خپل نظر هم پر نامحرم باندي د لوېدو څخه ساتي .

﴿۱۰۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي عَطِيَّةَ الْعُقَيْلِي قَالَ كَانَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ يَأْتِينَا إِلَى

د حضرت ابو عطية العقيلي څخه روايت دى چي حضرت مالک بن حويرث راتلى

مُصَلاَّنَا يَتَحَدَّثُ فَحَضَرَتِ الصَّلاَةُ يَوْمًا قَالَ أَبُو عَطِيَّةَ فَقُلْنَا لَهُ تَقَدَّمْ فَصَلِّهْ

زموږ مسجد ته او زموږ په وړاندي به يې د رسول الله ﷺ حديثونه بيانول ، يوه ورځ په دې خبرو كي د لمانځه وخت راغلى ابوعطيه وايي موږ د حضرت مالک څخه غوښتنه وكړه چي مخته سه او موږ ته لمونځ راكړه

قَالَ لَنَا قَدِّمُوا رَجُلاً مِّنْكُمْ يُصَلِّي بِكُمْ وَسَأُحَدِّثُكُمْ لِمَ لَا أُصَلِّي بِكُمْ

هغه وويل تاسو په خپلو خلكو كي يو څوک امام كړئ چي لمونځ دركړي او زه تاسو ته ښيم چي ولي لمونځ نه دركوم ددې كبله چي

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلاَ يَؤُمَّهُمْ

ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي کوم څوک چي يو قوم ته ورسي نو د هغوی امامت نه کوي

وَلْيَؤُمَّهُمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي الا انه اقتصر على لفظ النبي صلى الله عليه وسلم.

بلکه د هغوی امامت دې د هغوی څخه يو سړی وکړي. ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\۳۹۹، رقم: ۵۹۶، والترمذي ۲\۱۸۷، رقم: ۳۵۶ والنسائي ۲\۸۰، رقمک ۷۸۶

**تشريح:** حضرت مالک رحمة الله عليه د خپل فضيلت او لويي او د هغه خلکو د اجازې سربيره د امامت فريضه ادا نه کړل ځکه چي د هغه مخته د رسول الله ﷺ دا ارشاد وو او هغه په ظاهري حديث عمل کول په خپل حق کي غوره ګڼل.

## ړوند امام جوړيداى سي

﴿۱۰۵۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ اسْتَخْلَفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنَ أُمِّ مَكْتُومٍ يَؤُمُّ النَّاسَ وَهُوَ أَعْمٰى. رواه أبو داود

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ابن مکتوم چي يو ړوند سړی وو د خلکو امام وټاکی. ابوداؤد

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\۳۹۸، رقم: ۵۹۵.

**تشريح:** د دې حديث څخه دا خبره ثابتيږي چي د ړانده امامت پرته د کراهيت څخه جائز دی، په دې اړه په حنفي مذهب کي دا فقهي روايتونه هم راغلي دي که ړوند د قوم مشر وي نو د هغه امامت جائز دی بلکه ځيني حضرات وايي که ړوند د ډير زيات علم خاوند وي نو د امامت په اړه هغه اولی دی. (شرح کنز، اشباه النظائر).

## د ناخوښه امام لمونځ نه قبليږي

﴿۱۰۵۴﴾: وَعَنْ اَبِي اُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَا تُجَاوِزُ

د حضرت ابوامامه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دري کسان دي چي

صَلَاتُهُمْ آذَانَهُمْ اَلْعَبْدُ الْآبِقُ حَتّٰى يَرْجِعَ وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا

د هغوی لمونځ د هغوی د غوږونو څخه زيات نه پورته کيږي (يعني نه قبليږي) يو هغه غلام چي د خاوند څخه تبنتېدلی وي تر څو پوري چي بيرته رانه سي ، دوهم د هغه ښځي لمونځ چي هغه شپه په داسي حالت کي تيره کړي چي د هغې خاوند د هغې څخه

سَاخِطٌ وَإِمَامُ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

ناراضه وي، دريم هغه امام چي د هغه څخه خلک نفرت کوي. .ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي۲\ ۱۹۳، رقم: ۳۶۰.

**تشريح:** د غلام په حکم کي مينځه هم داخل ده، يعني که چيري مينځه هم د خپل بادار څخه وتښتي نو د هغې حال به دا وي چي تر څو پوري هغه خپل بادار ته رانسي نو د هغې لمونځ نه قبليږي ، د ښځي په اړه چي فرمايل سوي دي نو دا په هغه صورت کي دي کله چي ښځه بداخلاقه وي او د هغې خاوند د هغې د بداخلاقۍ، نافرمانۍ او بې ادبۍ په وجه د هغې څخه ناراض وي ، او که خاوند بداخلاقه وي او پر ناحقه د خپل ښځي څخه ناراضه او خفه وي نو ښځه به ګناه کاره نه وي بلکه سړی به ګناه کار وي .

د امام په اړه ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي پر امام به دا ګناه هغه وخت وي هر کله چي د هغه د بدعت او د هغه د فسق يا د هغه د جهل په وجه د هغه مقتديان د هغه څخه ناراضه وي او که مقتديان د يو دنيوي غرض په وجه د هغه سره کراهيت او عداوت لري نو امام به مطلقا ګناه کار نه وي او نه د داسي امام په حق کي د حديث پورتنی حکم دی بلکه مقتديان به ګناه کار وي ،

په دې خبره پوه سئ چي په پورتني حديث کي د امام څخه مراد د لمانځه امام هم دی او حاکم او خليفه هم، يعني که چيري د يو حاکم او خليفه څخه د هغه رعيت د هغه د بدو اعمالو او غلطو کارو په وجه ناراضه وي نو هغه به هم داسي ګناه کار وي .

## د درو کسانو لمونځ نه قبليږي

﴿۱۰۵۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَا تُقْبَلُ مِنْهُمْ صَلَاتُهُمْ مَنْ تَقَدَّمَ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ وَرَجُلٌ أَتَى الصَّلَاةَ

درې کسان دي چي د هغوی لمونځ نه قبليږي يو هغه څوک چي د يو قوم امامت کوي او قوم

ځيني خوشحاله نه وي، دوهم هغه څوک چي لمونځ وكړي

دِبَارًا وَالدِّبَارُ أَنْ يَّأْتِيَهَا بَعْدَ أَنْ تَفُوْتَهُ وَرَجُلٌ اعْتَبَدَ مُحَرَّرَةً.

رواه أبو داود وابن ماجه.

د وخت څخه وروسته(قضاء) او دريم هغه څوک چي آزاد سړي غلام كړي. ابو داؤد، ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داؤد ١١\ ٣٩٧ - ٣٩٨، رقم: ٥٩٣، وابن ماجه: ١\ ٣١١، رقم: ٩٧٠.

**د لغاتو حل**: (اعتَبَدَ): اى اتخذ نفسا معتقة عبدا او جارية. (يعني يو آزاد سړى مريى يا ازاده ښځه مينزه كړي).

**تشريح**: (اعتبد محررة) يعني د آزاد غلام ګڼلو مطلب دادى چي غلام آزاد كړي او بيا وروسته په زور سره د هغه څخه خدمت اخلي، يا غلام يې آزاد كړ مګر د هغه آزادي د هغه غلام څخه پټوي، يا د يو آزاد سړي په اړه دعوا وكړي چي دا زما غلام دى او د هغه سره د غلامانو په ډول چلن كوي، يا غلام او مينځه په بيع اخيستو سره پر هغه مالكانه تصرف وكړي مګر په حقيقت كي د هغه رانيول په شرعي توګه باندي نه وي سوي څرنګه چي خلک په غير شرعي توګه باندي غلام او مينځي په بيع اخلي، د شرعي غلام او مينځي تفصيل فقهاء داسي ليكي كه د مسلمانانو ډله د دارالاسلام څخه دارالحرب ته په تلو سره غلبه حاصله كړي او په زور سره حربي كفار كه خلک وي يا ښځي لويان وي يا كوچنيان، د غلام او مينځو جوړلو سره دارالاسلام ته راولي، يا همداسي د يو هيواد حربي كفار د بل هيواد حربي كفارو باندي په غلبه ترلاسه كولو سره هغوى په زور راولي نو په دغه دواړو صورتو كي غلام او مينځي جوړونكي كه هغه مسلمان وي يا كفار، د هغه غلامانو او مينځو مالک دى، د هغه غلامانو او مينځو پلورل او رانيول، د هغوى تحفه كول د مينځو سره پرته د نكاح څخه كوروالي كول او همداسي پر هغوى ټول مالكانه تصرف كول جائز دي، او په دې صورت كي د مينځي اولاد هم د هغوى حكم لري، په شرط ددې چي هغه مالک يا د ذي رحم مالک څخه پيدا نه وي كه اولاد په هغوى كي د يو چا څخه پيدا وي نو هغه به آزاد وي، په هر حال فقهاء د غلام او مينځي دا دواړه ډولونه ليكلو سره نور ډولونه هم ليكلي دي او په هغوى كي د ځينو په اړه ويل سوي دي چي په دغه صورتو كي شرعي بردي نه وي او د ځينو په باره كي اختلاف دى، مګر صحيح دادى چي د پورتنيو دواړو ډولونو څخه پرته په بل هيڅ صورت كي شرعي بردي نه وي او نه د هغوى پلورل

او رانيول په شرعي توګه جائز کيږي،

نو مسلمانانو ته پکار ده چي هغوی د غلام او مينځي په اړه د احتياط څخه کار واخلي، که شرعي مينځه وي نو هغه دي په خدمت کي راولي کنه داسي دي نه کوي چي پر يو چا د مينځي کېدو داغ ولګيدی که څه هم هغه شرعي مينځه نه وي د حيوانانو په ډول د هغې سره کوروالي کوي چي په حقيقت کي داسي کول حرام او په زنا کي اخته کېدل دي همداسي د هغې سره نور مالکانه تصرفات دي هم نسي کولای.

## د امامت څخه عامه تېښته د قيامت نښه ده

﴿۱۰۵۶﴾: وَعَنْ سَلَامَةَ بِنْتِ الْحُرِّ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سلامة بنت الحر (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَّتَدَافَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ لَا يَجِدُوْنَ إِمَامًا يُصَلِّيْ بِهِمْ. رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه.

د قيامت د نښو څخه يوه نښه داده چي خلک به د امامت څخه تېښتي او هغوی ته به هيڅوک لمونځ ورکونکی نه پيدا کيږي. احمد

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ٦\٣٨١ وابوداؤد ١\٣٩٠، رقم: ٥٨١ وابن ماجه: ٦\٣١٤، رقم: ٩٨٢.

**تشريح:** دا په اصل کي د آخري زمانې د عام جهل او فسق څخه کنايه ده چي قيامت ته نژدې جهل او فسق به په عامه توګه سره دومره خپور سي او خلک به دومره جاهل او نااهل پيداسي چي هيڅ سړی به دامامت اهل نه وي، ټول خلک به د خپل نا اهلۍ او جهالت سره سم د امامت څخه تېښته کوي، او په خپلو کي به يو بل ته د لمانځه ورکولو لپاره وايي، مګر هر سړی به د امام جوړېدو څخه انکار کوي، هو که چيري يو سړی يو بل ځوک د ځان څخه په افضل ګڼلو سره خپله د امامت څخه تېښته کوي او هغه ته د لمانځه ورکولو لپاره وايي نو د هغه تعلق به ددې حديث سره نه وي ځکه چي د دوهم کس په افضل ګڼلو سره خپله د امامت څخه تېښته کول او هغه افضل ته د امامت لپاره په ويلو کي څه پرواه نسته.

## د فاسق امامت جائز دی

﴿۱۰۵۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجِهَادُ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر تاسو جهاد

وَاجِبٌ عَلَيْكُمْ مَعَ كُلِّ أَمِيْرٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ . وَالصَّلاَةُ

واجب دی سره د هر امير که هغه نيک وي يا بد که څه هم هغه لويه ګناه کوي او پر تاسو لمونځ

وَاجِبَةٌ عَلَيْكُمْ خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ .

واجب دی په هر مسلمان پسي که هغه نيک وي يا بد وي که څه هم هغه لويه ګناه کوي

وَالصَّلاَةُ وَاجِبَةٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ . رواه أبو داود

او جنازه کول واجب دی پر هر مسلمان که نيک وي يا بد که څه هم هغه لويه ګناه کوي . ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱۳/۴۰۱۳، رقم: ۲۵۳۳.

**تشريح**: جهاد واجب دی، د دې مطلب دادی چي په ځينو صورتو کي خو جهاد فرض عين دی او په ځينو صورتو کي فرض کفايه، د دې حديث څخه دا معلومه سوه چي په هر مسلمان پسي لمونځ کيدای سي که څه هم هغه فاسق وي، په شرط د دې چي د هغه فسق د کفر حد ته نه وي رسيدلی ، په فاسق پسي لمونځ ادا کيږي مګر په هغه پسي لمونځ کول په هر حال مکروه دي ، علماء ليکي چي د نيک سړي په موجودوالي کي فاسق ته د امامت کول نه دي پکار ، د جنازې د لمانځه د واجب کېدو مطلب دادی چي پر هر مسلمان د جنازې لمونځ کول فرض کفايه دی .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### د نابالغ د امامت مسئله

﴿۱۰۵۸﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلِمَةَ قَالَ كُنَّا بِمَاءٍ مَمَرِ النَّاسِ يَمُرُّ بِنَا الرُّكْبَانُ

د عمرو بن سلمه ﷺ څخه روايت دی چي موږ د اوبو پر يو غاړه اوسيدو چي د خلکو د تيريدو ځای وو او پر هغه ځای به قافلې تيريدې

نَسْأَلُهُمْ مَا لِلنَّاسِ مَا لِلنَّاسِ ؟ مَا هٰذَا الرَّجُلُ فَيَقُوْلُوْنَ يَزْعُمُ أَنَّ اللهَ

موږ به د مسافرو څخه پوښتنه کول چي د هغه سړي (يعني محمد ﷺ) په اړه د خلکو څه خيال

دی ؟ خلکو به موږ ته دا بیان کوی هغه سړی دا خیال لري چي الله ﷻ

أَرْسَلَهُ أَوْحَى إِلَيْهِ كَذَا . فَكُنْتُ أَحْفَظُ ذٰلِكَ الْكَلَامَ فَكَأَنَّمَا يُغْرٰى فِيْ صَدْرِيْ

هغه رسول جوړ کړی دی او پر هغه وحي راځي چي دا ډول وحي وي (او هغوی ته به یې قرآن او روئ) ما به هغه وحي یادولې او کومي خبري چي به هغوی د رسول الله ﷺ په اړه کولې هغه به زما په سینه کي ساتل کیدې ،

وَكَانَتِ الْعَرَبُ تَلَوَّمُ بِإِسْلَامِهِمُ الْفَتْحَ فَيَقُوْلُوْنَ اتْرُكُوْهُ وَقَوْمَهُ فَإِنَّهُ إِنْ ظَهَرَ

د عربو خلکو په هغه زمانه کي د مکې د فتح انتظار کوی چي مکه فتح سي نو هغوی به اسلام قبول کړي هر کله چي به هغه د خلکو څخه دا خبري اوریدلې نو ورته ویل به یې هغه او د هغه قوم په خپل منځ کي فیصلې ته پریږدئ که هغه غالب سي

عَلَيْهِمْ فَهُوَ نَبِيٌّ صَادِقٌ فَلَمَّا كَانَتْ وَقْعَةُ الْفَتْحِ بَادَرَ كُلُّ قَوْمٍ بِإِسْلَامِهِمْ

پر خپل قوم نو ریښتونی نبي دی ، بیا چي مکه فتحه سوه نو هر یو قوم په اسلام قبلولو کي تلوار وکړی

وَبَدَرَ أَبِيْ قَوْمِيْ بِإِسْلَامِهِمْ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ جِئْتُكُمْ وَاللّٰهِ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ حَقًّا

او زما پلار د اسلام په راوړلو کي د خپل قوم څخه وړاندي سو هغه چي د سفر څخه راستون سو نو بیان یې وکړ چي په الله دي مي قسم وي زه تاسو ته د نبي بر حق څخه راغلی یم ،

فَقَالَ صَلُّوْا صَلَاةَ كَذَا فِيْ حِيْنَ كَذَا وَصَلُّوْا كَذَا فِيْ حِيْنَ كَذَا فَإِذَا حَضَرَتِ

رسول الله ﷺ موږ ته حکم راکړی دی چي په فلاني وخت دو مره او داسي لمونځ کوئ او په فلاني وخت داسي ... او هر کله چي د لمانځه وخت سي

الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ أَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْثَرُكُمْ قُرْآنًا فَنَظَرُوْا فَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ

نو په موږ کي دي یو سړی آذان وکړي او کوم څوک چي په تاسو کي په قرآن کریم زیات پوهیږي هغه دي ستاسو امامت وکړي خلکو د امام په اړه فکر وکړ مګر زما څخه زیات

أَكْثَرَ قُرْآنًا مِنِّيْ لَمَّا كُنْتُ أَتَلَقّٰى مِنَ الرُّكْبَانِ فَقَدَّمُوْنِيْ بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ وَأَنَا ابْنُ

په قرآن کریم پوهیدونکی ځوک نه وو ځکه چي ما به د قافلې د خلکو څخه په پوښتنه کولو کولو سره قرآن کريم يادوی نو هغوی زه خپل امام و ټاکلم هغه وخت زما عمر

سِتٍّ أَوْ سَبْعِ سِنِيْنَ وَكَانَتْ عَلَيَّ بُرْدَةٌ كُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ تَقَلَّصَتْ عَنِّيْ فَقَالَتِ

شپږ یا اووه کاله وو زما سره یوازي یو څادر وو کله چي به ما سجده کول نو هغه څادر به راشوه سو او زما کوناټي به څرګند سول نو وویل :

امْرَأَةٌ مِنَ الْحَيِّ أَلاَ تُغْطُّوْنَ عَنَّا اسْتَ قَارِئِكُمْ فَاشْتَرَوْا فَقَطَّعُوْا لِيْ قَمِيْصًا

د قوم یوې ښځي تاسو د خپل امام شرمګاه ولي نه پټوئ ! نو خلکو جامه رانیول او زما لپاره يې قميص جوړ کړ

فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ فَرْحِيْ بِذٰلِكَ الْقَمِيْصِ . رواه البخاري .

او زه په هغه قيمص ډير زيات خوشحاله سوم . بخاري شريف .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۸\ ۲۲– ۲۳، رقم: ۴۳۰۲.

**د لغاتو حل**: (يُغرى): اى يلصق (موښلي). (تلوم): تنتظر (انتظاريې كوى).

**تشريح**: په عامه توګه سره د مسلمه لفظ د لام په زير دی ، مګر دا عمرو چي د قوم امام جوړ سوی وو د هغه د پلار نوم مسلمه کي لام په زير سره دی ، په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چي د عمرو ابن سلمه هم د خپل پلار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي د اسلام قبلولو لپاره تللی وو يا نه، په دې وجه په دې خبره کي اختلاف دی چي ایا دی صحابي دی که یا. په ظاهره خو دا معلومیږي چي د هغه پلار یوازي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وو او دی د هغه سره نه وو تللی .

امام شافعي رحمة الله عليه د ماشوم د امامت په جواز کي ددغه حديث څخه استدلال کوي، د دې څخه معلوميږي چي د نابالغ هلک امامت جائز دی ، البته د جمعې په لمانځه کي د نابالغ هلک د امامت په اړه د امام شافعي رحمه الله دوه قوله دي ، د يوه قول څخه دا ثابتيږي چي هغه د جمعې په لمانځه کي هم د هلک د امامت د جواز قائل دی، او په دوهم قول کي د عدم جواز اثبات کيږي، امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله ، امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله وايي د نابالغ هلک امامت جائز نه دی ، البته د نفل په اړه د علماء حنفيه په نزد اختلاف دی ، د بلخ

مشائخ په نفل لمانځه کي د نابالغ هلک د امامت د جواز قائل دي او پر دې د هغوی عمل دی، او په مصر او شام کي هم پر دې عمل کيږي، د دوی څخه پرته نورو علماؤ په نفل لمانځه کي د نابالغ هلک د امامت ناجائز ګرځولی دی د ماوراء النهر پر دې عمل دی.

زيلعي رحمة الله عليه په شرح کنز کي ددې مسئلې په اړه ويلي دي چي امام شافعي رحمة الله عليه په دې مسئله چي د نابالغ هلک امامت جائز دی د عمرو ابن سلمه رضي الله عنه دا قول (فقدموني...الخ،) کي چي هغه هلک چي پر هغه حدود واجب سوي نه وي امامت دي نه کوي د نابالغ هلک امامت جائز نه دی، همداسي د ابن عباس رضي الله عنه قول هم دادی چي هلک تر څو پوري بالغ نسي امامت دي نه کوي، نو دا جائز نه ده چي فرض لمونځ کونکی د نابالغ هلک اقتداء وکړي او کوم چي د ابن عمرو ابن سلمه رضي الله عنه د امامت تعلق دی نو د هغه په اړه دا ويل کيږئ چي د هغه امامت د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ارشاد په وجه نه وو بلکه دا د هغه قوم خپل اجتهاد وو، چي عمرو د قافلې خلکو ته قرآن کريم زده کړی وو ځکه هغه يې امام جوړ کړ.

## د آزاد سوي غلام امامت

﴿۱۰۵۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُونَ الْأَوَّلُونَ الْمَدِيْنَةَ كَانَ يُؤُمُّهُمْ سَالِمٌ مَوْلَى أَبِيْ حُذَيْفَةَ وَفِيْهِمْ عُمَرُ وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الْأَسَدِ. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی هر کله چي لومړي مهاجرين مدينې ته راغلل نو د هغوی امامت د ابو حذيفه د يو آزاد سوي غلام سالم کوی حال دا چي په هغوی کي حضرت عمر رضي الله عنه او ابو سلمه بن عبد الاسد رضي الله عنه هم شتون درلود. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۸۴، رقم: ۶۹۲.

**تشريح**: حضرت سالم رضي الله عنه د حضرت حذيفه رضي الله عنه آزاد سوی غلام وو او ډير ښه قاري وو، د هغه شمير په ډير بزرګو او د لوړي درجې په قاريانو کي کيدی، رسول الله صلى الله عليه وسلم مسلمانانو ته حکم ورکړی وو چي قرآن کريم د څلورو کسانو څخه تر لاسه کوئ او په هغه څلورو کسانو کي د حضرت سالم رضي الله عنه نوم هم وو، د حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت ابو سلمه رضي الله عنه، ابن عبد الاسد رضي الله عنه او د دوی په ډول نور جليل القدر او باعظمت او فضيلت صحابه کرامو په شتون کي د حضرت سالم رضي الله عنه د امام ټاکل کېدو وجه يا خو دا وه چي هغه ډير ښه قاري وو يا په دې کي يو بل حکمت وو.

**هغه خلک چې د هغو لمونځ نه قبليږي**

﴿۱۰۶۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلاَثَةٌ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل : دري کسان دي چې

لاَ تَرْفَعُ لَهُمْ صَلاَتُهُمْ فَوْقَ رُؤُوْسِهِمْ شِبْرًا رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُوْنَ

د هغوى لمونځ د هغوى د سرو څخه يوه لويشت هم نه پورته کيږي (يعني نه قبليږي) يو خو هغه امام چې د هغه څخه خلک ناخوښه وي

وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ وَأَخَوَانِ مُتَصَارِمَانِ. رواه ابن ماجه.

دوهم هغه ښځه چې هغه په داسي حال کي شپه تيره کړي چې خپل خاوند ځيني ناراضه وي او دريم هغه دوه ورونه چې په خپل منځ کي يې ناخوښي وي. ابن ماجه.

**تخريج:** سنن ابن ماجه ۱\ ۳۱۱، رقم: ۹۷۱.

**تشريح:** د حديث د آخري الفاظو مطلب دادى چې د داسي دوو وړونو لمونځ هم نه قبليږي چې هغوى په خپل مينځ کي ناراضه وي او تر درو ورځو زيات سلام وغيره يې پرې ايښي وي.

=============

# بَابُ مَا عَلَى الْاِمَامِ

## پر امام باندي د لازمو شيانو بيان

په دې باب کي هغه حديثونه نقل کيږي چې د هغو څخه معلوميږي چې د مقتديانو د رعايت په اړه د امام لپاره کوم شيان ضروري دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

**لمونځ اوږدول نه دي پکار**

﴿۱۰۶۱﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ إِمَامٍ قَطُّ أَخَفَّ صَلاَةً وَّلاَ أَتَمَّ صَلاَةً

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چې ما هيڅکله په يو داسي امام پسي لمونځ نه دى کړى چې

مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ أَنْ تُفْتَنَ أُمُّهُ . متفق عليه

د رسول الله ﷺ د لمانځه په ډول لنډ او پوره وي، (د رسول الله ﷺ دا عادت وو) چي کله به هغوی په لمانځه کي د کوچنی د ژړا آواز واوریدی نو له دې کبله چي د هغه مور پرېشانه نه سي لمونځ لنډ کوی .بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۰۱، رقم: ۷۰۸، ومسلم ۱\۳۴۲، رقم: ۱۹۰– ۴۶۹.

**تشریح** : د حدیث د اول جز مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ لمونځ سره د کمال او اتمام به ډېر لنډ وو، او د لنډوالي مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به قرائت او تسبیحات تر حد زیات نه ویل ، او په قرائت کي به یې هم بې ځایه مد او شد نه کول بلکه د رسول الله ﷺ قرائت به بې تکلفه او په ترتیل سره وو، او دا خو د رسول اللهﷺ د قرائت ځانګړتیا وه که څه هم هغه به اوږد وو مګر خلکو ته به مختصر معلومیدی، حاصل دا چي د رسول الله ﷺ قرائت به مختصر وو او په رکوع، سجده، تعدیل ارکان وغیره کي به یې هیڅ کمي نه کېدل، په حنفي مذهب کي دا مسئله ده چي د امام لپاره دا مناسب نه ده چي تسبیحات وغیره دومره اوږده کړي چي پر خلکو باندي بوج سي ځکه چي لمونځ زیات اوږدول د لمانځه د لوري د خلکو بې توجه کول دي او دا مکروه دی ، هو که چیري د مقتدیانو خواهش وي چي قرائت، تسبیحات وغیره اوږده وي نو بیا په هغه کي امام زیاتوب کولای سي په دې کي څه پرواه نسته، همدارنګه امام ته دا هم نه ده پکار چي د مقتدیانو د خوشحاله کولو لپاره په قرائت او تسبیحاتو کي د هغه درجې څخه هم کمي وکړي کوم چي تر ټولو کمه مسنون درجه ده .

د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي د یو ماشوم د ژړا آواز واوریدی نو لمونځ به یې مختصر کوی چي د ماشوم مور چي په جماعت کي وي خپل ماشوم ته یې فکر ولاړ نسي او د هغه په وجه د هغې د لمانځه حضور، خشوع او خضوع ختم سي ، خطابي رحمة الله علیه د دې جملې په تشریح کي ویلي دي چي په دې کي د دې خبري دلیل دی که امام په رکوع کي د یو چا د قدمونو آواز واوري چي یو څوک په لمانځه کي د ګډون کولو اراده لري نو هغه ته جائز ده چي هغه په رکوع کي د هغه سړي انتظار وکړي چي هغه سړی هم رکعت ونیسي مګر ځینو حضراتو دا مکروه ګرځولی دی بلکه ددې حضراتو وینا ده چي د

داسي كولو په اړه دا بيره ده چي هغه د شرک حد ته ونه رسيږي ، دا مذهب د امام مالک رحمة الله عليه هم دی ، حنفي مذهب دادی که امام رکوع د تقرب الی الله په نيت نه بلکه په دغه مقصد سره يې اوږده کړي چي يو راتلونکی سړی په رکوع کي ګډون کولو سره رکعت ونيسي نو دا مکروه تحريمي دی بلکه تر دې هم د لوی ګناه د مرتکب کېدو احتمال کيدای سي مګر د کفر او شرک حد ته نه رسيږي ، ځکه د دې شخه د هغه نيت د غير الله د عبادت نه وي ، ځيني علماؤ ليکلي دي که امام راتلونکی کس نه پيژني نو په دې صورت کي په رکوع اوږدولو کي څه پرواه نسته مګر صحيح دادی چي د دې پرهېښودل غوره دي ، هو که يو امام د تقرب الی الله په نيت رکوع اوږده کړي او د دغه پاکي جذبې شخه پرته بل مقصد يې نه وي نو بيا پرواه نسته ، مګر په دې کي شک نسته چي داسي حالت کېدل نادر دي او بيا دا چي د دې مسئلې نوم (مسئلة الريا) ده ځکه په دې اړه پوره احتياط غوره دی .

﴿۱۰۶۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّيْ

د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه شخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ببله شکه زه

لَأَدْخُلُ فِي الصَّلَاةِ وَأَنَا أُرِيْدُ إِطَالَتَهَا فَأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَأَتَجَوَّزُ فِيْ صَلَاتِيْ مِمَّا أَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وَجْدِ أُمِّهِ مِنْ بُكَائِهِ . رواه البخاري .

لمونځ پيل کړم نو اراده وکړم چي اوږد لمونځ وکړم مګر کله چي زه د يو کوچنی د ژړا آواز واورم نو په دې خيال چي د هغه مور د هغه د ژړا له کبله په فکر کي نه سي خپل لمونځ مختصر کړم .بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۰۲، رقم: ۷۰۷.

﴿۱۰۶۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه شخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي لمونځ ورکوي

أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيْهِمُ السَّقِيْمَ وَالضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ .

په تاسو کي يو شوک خلکو ته نو هغه ته پکار دي چي لمونځ مختصر وکړي ځکه چي په دوی

کي ناروغان هم وي کمزوري هم وي سپين ږيري هم وي

وَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ. متفق عليه

خو کله چي څوک د ځان سره لمونځ کوي نو څومره چي وغواړي اوږد لمونځ کولای سي.
بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۹۹، رقم: ۷۰۳، و مسلم ۱\۳۴۱، رقم: ۱۸۳- ۴۶۷،

**تشريح**: په دې حديث کي امام ته دا لارښونه سوې ده چي هغه د لمونځ ورکولو په وخت کي د مقتديانو رعايت خامخا کوي ددې خبري لحاظ دي ساتي چي په مقتديانو کي ناروغ، سپين ږيری او کمزوري خلک هم وي چي د لمانځه په اوږدوالي سره په تکليف او پريشاني کي اخته کيږي دا هم کيدای سي چي هغه د پريشاني او تکليف څخه د ساتني په وجه جماعت پرېږدي ځکه د هغوی د رعايت په خاطر لمونځ مختصر ورکول پکار دي، هو که يو سړی يوازي لمونځ کوي نو هغه ته اختيار دی چي څومره غواړي لمونځ دي اوږد کړي همدارنګه که ټول مقتديان د حضور قلب حاصل وي او د لمانځه د اوږدوالي څخه نه بيريږي او په پورتنيو خلکو کي ناروغ او کمزوری نه وي نو په دې صورت کي امام چي څومره غواړي اوږد لمونځ ورکولای سي.

﴿۱۰۶۴﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِيْ حَازِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَجُلاً قَالَ

د حضرت قيس بن ابو حازم رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابو مسعود زه ددې پيښي څخه خبر کړم چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ:

وَاللهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّيْ لَأَتَأَخَّرُ عَنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَا

اې د الله رسوله! د فلاني سړي له کبله چي اوږد لمونځ کوي زما د سهار په لمانځه کي ځنډ کيږي

فَمَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَوْعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ يَوْمَئِذٍ

د دې پيښي وروسته ما رسول الله ﷺ په هيڅ يو نصيحت کي دومره غضبناک نه وو ليدلی څومره چي په دغه ورځ وو په کومه ورځ چي ما دا پيښه ورته عرض کړه،

ثُمَّ قَالَ إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ فَإِنَّ فِيْهِمُ

بيا رسول الله ﷺ خلک مخاطب کړل او ورته وه يې فرمايل: په تاسو کي ځيني خلک د اوږده

لمانځه کولو له کبله متنفر کيږي په تاسو کي چي څوک خلکو ته لمونځ ورکوي نو هغه دي تخفيف کوي (يعني لنډ لمونځ دي ورکوي) ځکه چي په لمانځه کي

الضَّعِيفَ وَالْكَبِيرَ وَذَا الْحَاجَةِ. متفق عليه

کمزوري، سپين ږيري او حاجتمند هم وي. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۹۷، رقم: ۷۰۲، ومسلم ۱\۳۴۰، رقم: ۱۸۲-۴۶۶.

## غلط لمونځ ورکونکی امام به د خپل غلطي سزا خپله ويني

﴿۱۰۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلُّونَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: امام به لمونځ درکوي

لَكُمْ فَإِنْ أَصَابُوا فَلَكُمْ وَإِنْ أَخْطَئُوا فَلَكُمْ وَعَلَيْهِمْ. رواه البخاري.

تاسو ته که هغه سم لمونځ درکوي نو د هغه ګټه ستاسو لپاره ده او که هغوی غلطي وکړي نو هم ستاسو لپاره ثواب دی او پر هغوی د هغه ذمه واري ده. بخاري،.

وهذا الباب خال عن الفصل الثاني.

په دې باب کي دوهم فصل نسته.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۸۷، رقم: ۶۹۴.

**تشريح:** که امام په ښه ډول او شرعي طريقه سره لمونځ ورکړي نو څرګنده ده چي د هغه ثواب امام او مقتديانو دواړو ته تر لاسه کيږي او که امام لمونځ بې قاعدې او غير شرعي او غير مسنون طريقې سره ورکړي نو د هغه ذمه داري به پر مقتديانو نه وي مقتديان خو به په هغه صورت کي هم ثواب تر لاسه کوي ځکه چي هغوی خو لمونځ په ښه ډول ادا کړ او په جماعت کي د ګډون کولو نيت يې وکړ البته امام د خپل غلطۍ او خطا سزا به خپله تر لاسه کوي ځکه چي هغه په لمونځ ورکولو کي کوتاهي کړې ده، ددې حديث په ذريعه د رسول الله ﷺ مسلمانانو ته وصيت فرمايلی دی چي وروسته کله غلط او خراب حاکمان او اميران پيداسي او امامت کوي نو هغوی به د امامت په ادا کولو کي د احکامو او آدابو رعايت نه کوي نو هغه وخت ټولو مسلمانانو ته پکار ده چي هغوی خپل لمونځ په صحيح طريقه سره ادا کړي که امام په ښه ډول

لمونځ وركړي نو د هغه ګټه به امام او مقتدي دواړو ته وي كنه د غلط لمونځ وركولو په صورت كي به پر مقتديانو باندي څه نه وي د غلط لمونځ وركولو ذمه داري به يوازي پر امام وي او تاوان به د هغه وي.

په دې باب كي دوهم فصل نسته.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### د سپين ږيري او ناروغ رعايت پر امام ضروري دی

﴿۱۰٦٦﴾: عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ آخِرُ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

د عثمان بن ابو العاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ما ته آخري وصيت دا كړی وو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَمْتَ قَوْمًا فَأَخِفَّ بِهِمُ الصَّلَاةَ. رواه مسلم. وَفِيْ رِوَايَةٍ

چي هر كله ته د يو قوم امامت كوې نو لنډ لمونځ وركوه، مسلم، او د مسلم په يوه روايت كي دي

لَهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ أُمَّ قَوْمَكَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

چي رسول الله ﷺ عثمان بن ابو العاص رضي الله عنه ته وفرمايل: ته د خپل قوم امامت كوه، ما عرض وكړ: اې د الله رسوله!

إِنِّيْ أَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ شَيْئًا قَالَ اُدْنُهْ فَأَجْلَسَنِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ ثُمَّ وَضَعَ كَفَّهُ فِيْ صَدْرِيْ

زما په زړه كي بيا يوه خبره پيدا كيږي (يعني عاجزي او د امامت د حقوقو بيره) رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته رانژدې سه، زه يې د ځان سره نژدې كښينولم بيا يې خپل لاس

بَيْنَ ثَدْيَيَّ ثُمَّ قَالَ تَحَوَّلْ فَوَضَعَهَا فِيْ ظَهْرِيْ بَيْنَ كَتِفَيَّ ثُمَّ قَالَ أُمَّ قَوْمَكَ

زما پر سينه كښېښووی او وه يې فرمايل: شا راوګرځوه بيا يې زما پر شا لاس مبارک را تير كړ او د هغه وروسته يې وفرمايل: ته د خپل قوم امامت كوه

فَمَنْ أَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيْهِمُ الْكَبِيْرَ وَإِنَّ فِيْهِمُ الْمَرِيْضَ وَإِنَّ فِيْهِمُ

او كوم څوک چي د يو قوم امامت كوي نو هغه ته پكار ده چي لنډ لمونځ كوي ځكه چي په

لمانځه کي سپين ږيري هم وي ناروغان هم وي کمزوري هم وي

اَلضَّعِيفَ وَإِنَّ فِيهِمْ ذَاالْحَاجَةِ فَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ وَحْدَهُ فَلْيُصَلِّ كَيْفَ شَاءَ.

او حاجتمند هم وي او څوک چي يوازي لمونځ کوي نو د هغه چي څنګه خوښه وي (يعني که اوږد لمونځ کوي که لنډ).

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۳۴۲، رقم: ۱۸۷- ۴۶۸.

**تشريح:** د حضرت عثمان رضي الله عنه ارشاد : (اني اجد في نفسي شيئا) يعني ما ته په خپل زړه کي يو انديښنه محسوس کيږي، ددې مطلب دا وو چي زه د امامت د حقوقو د ادا کولو څخه خپل ځان عاجز وينم، يا وسوسې او شبهات دي چي په زړه کي مي راځي ، يا دا چي د امامت په وخت کي زما په زړه کي يو ډول لوړوالی او د غرور کيفيت محسوس کيږي ، نو رسول الله ﷺ د هغه کيفياتو ددفع لپاره د هغه پر سينه او ملا خپل لاس مبارک راتير کړ چي د هغه په برکت سره د هغه د زړه څخه انديښنه ولاړل چي د هغه په شتون کي هغه امامت ته نه اماده کيدی .

فاذا صلى احدكم ... الخ ، ددې څخه معلوميږي چي يوازي لمونځ کونکی د خپل لمونځ په اړه مختار دی چي اوږد لمونځ کوي يا مختصر، مګر علماء ليکي چي د يوازي لمونځ کونکي لپاره غوره داده چي هغه اوږد لمونځ وکړي ، ددې زمانې د امامانو معامله ډيره عجيبه ده کله چي هغوی خلکو ته لمونځ ورکوي نو د ډير اوږدوالي څخه کار اخلي او کله چي يوازي لمونځ کوي نو يوازي پر دومره لنډوالي باندي اکتفاء کوي چي په هغه سره لمونځ ادا سي ، د امامانو دې خوا ته متوجه کول پکار دي .

﴿۱۰۶۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا بِالتَّخْفِيفِ وَيَؤُمُّنَا بِ (الصَّافَاتِ). رواه النسائي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به مونږ ته په لمانځه کي د تخفيف حکم راکوی او کله چي به رسول الله ﷺ امامت کوي نو سورة صافات به يې وايه . نسائي .

**تخريج:** سنن النسائي: ۲\۹۵، رقم: ۸۲۵.

**تشريح:** د حديث په دارو برخو کي په څرګنده ټکر معلوميږي چي يوې خوا ته خو رسول الله ﷺ د مختصر لمونځ ورکولو حکم کوي او بلي خوا ته کله چي به يې خپله امامت کوی نو سورة

صافات به يې وايه چي يو اوږد سورت دی ، ددغه ټکر ددفع کولو لپاره د علماؤ جواب دادی چي د رسول الله ﷺ دا ځانګړتيا وه چي اوږده اوږده سورتونه او ډير زيات آياتونه به يې په ډير لږ وخت کي ويل چي په هغه سره به خلکو ته څه بوج يا ستوماني نه محسوس کېدل او دا ځانګړتيا نورو ته تر لاسه کيدای نسي ، په دې ډول په دواړو برخو کي تعارض پاته نه سو .

===========

# بَابُ مَا عَلَى الْمَأْمُوْمِ مِنَ الْمُتَابَعَةِ وَحُكْمِ الْمَسْبُوْقِ

## د مقتدي دپاره د امام د تابعدارۍ لزوم او د مسبوق بيان

په دې باب کي هغه حديثونه ذکر کيږي چي د هغو څخه دا څرګنديږي چي د مقتديانو لپاره د امام تابعداري څومره ضروري او لازم ده او دا چي مقتديانو ته د امامت متابعت په کومو شيانو کي کول پکار دی ، او په دې باب کي هغه حديثونه هم بيانيږي چي د هغو څخه د مسبوق حکم معلوميږي چي هغه دي خپل لمونځ څرنګه پوره کړي او هغه ته څه طريقه اختيارول پکار ده ، په تيرو مخونو کي په يو ځای کي د مسبوق تعريف سوی دی يعني مسبوق هغه لمونځ کونکي ته وايي چي د پيل څخه په جماعت کي ګډون نه لري بلکه د يوه رکعت يا تر دې زيات کېدو څخه وروسته په جماعت کي ګډون کړی وي ، د امام د متابعت په اړه د راتلونکو حديثونو په ضمن کي حسب موقع د مسائلو وضاحت به کيږي ،

بيا هم په اجمالي توګه سره په دې خبره پوه سئ چي د لمانځه په هغه ارکانو کي چي فرض يا واجب دي ټولو مقتديانو ته د امام متابعت او موافقت کول واجب دي ، هو که چيري په هغه ارکانو کي سنت وغيره وي نو د مقتديانو لپاره د امام متابعت ضروري نه دی که د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب وي او رکوع ته د تلو په وخت او د رکوع څخه د پورته کېدو په وخت کي رفع يدين کوي يعني دواړه لاسونه پورته کوي نو حنفي مقتدي ته لاسونه پورته کول ضروري نه دي ځکه چي په دغه دواړو ځايو کي رفع يدين د دوی په نزد هم سنت دی ، همداسي د سهار په لمانځه کي شافعي مذهب امام قنوت وايي نو د حنفي مقتديانو لپاره قنوت ويل واجب نه دي ، مګر په وترو کي قنوت ويل واجب دی، شافعي مذهب امام که د خپل مذهب سره سم قنوت د رکوع څخه وروسته وايي نو حنفي مقتديانو ته هم د امامت د متابعت او موافقت سره سم د رکوع څخه وروسته قنوت ويل پکار دي . علم الفقه .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د امام متابعت

﴿۱۰۶۸﴾: عَنِ الْبَرَاءِ ابْنِ عَازِبٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت براء بن عازب رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي موږ به په رسول الله ﷺ پسي لمونځ کوی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ لَمْ يَحْنُ اَحَدٌ مِّنَّا ظَهْرَهُ حَتّٰى

کله چي به هغه مبارک سمع الله لمن حمده وويل نو موږ به تر هغو ملا نه کښته کول ترڅو به

يَضَعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَبْهَتَهُ عَلَى الْأَرْضِ. متفق عليه

رسول الله ﷺ تندی پر مځکه نه وو ايښی. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۹۵- ۲۹۶، رقم: ۸۱۱ ومسلم: ۱۱\۳۴۵، رقم: ۱۹۷- ۴۷۴.

**تشريح:** د حضرت براء رضی اللہ عنہ د ارشاد مطلب دادی چي موږ به د رکوع څخه په ولاړېدو سره د رسول الله ﷺ سره سجدې ته نه تلو بلکه ولاړ به وو او کله چي به رسول الله ﷺ خپل تندی مبارک پر مځکه کښېښودی نو موږ به سجدې ته تلو، مولانا مظهر رحمة الله عليه فرمايي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د مقتدي لپاره دا سنت ده چي هغه د خپل لمانځه ارکان د امام د لمانځه د ارکانو څخه ډومره وروسته ادا کوي، که د امام د افعالو او صلوة او د مقتدي د افعالو او صلوة په مېنځ کي د ادا کولو ډومره وقفه نه وي نو هم جائز دی مګر د تکبير تحريمه په وخت کي مقتدي لپاره ډومره توقف کول ضروري دی چي امام د تکبير تحريمه ويلو څخه فارغ سي نو مقتدی دي تکبير تحريمه ووايي، مګر د حنفي فقهي مسئله داده چي د مقتدي لپاره د امام متابعت په طريقه مواصلت واجب دی يعني مقتديانو ته هر رکن د امام سره بېله ځنډه ادا کول پکار دي تحريمه دي هم د امام سره وکړي رکوع هم د امام د رکوع سره، قومه هم د امام د قومې سره، سجده هم د امام د سجدې سره مقصد دا چي هر کار دي د امام د کار سره کوي، هو که چيري په قعده اولی کي امام تر دې مخکي ودرېږي چي مقتدي التحيات پوره کړي نو مقتديانو ته پکار ده چي د التحيات په پوره کولو سره سلام و ګرځوي مګر د رکوع و سجدې په حالت کي که مقتديانو تسبيح درې واره هم نه وي ويلې او امام سر پورته کړي نو صحيح مسئله

داده چي مقتديانو ته پکار ده چي هغوی د تسبيح ويلو څخه پرته د امام سره ودريږي ، که مقتدي په رکوع يا سجده کي خپل سر د امام د سر پورته کولو څخه مخکي پورته کړي نو هغوی ته پکار ده چي هغوی دوهم وار رکوع يا سجدې ته ولاړ سي او بيا د امام سره خپل سر پورته کړي همداسي دا رکوع يا سجده به دوې نه وي بلکه يوه به شميرل کيږي .

## مقتدي دي د امام څخه مخکي هيڅ يو رکن نه ادا کوي

﴿۱۰۶۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ موږ ته لمونځ راکړی

فَلَمَّا قَضَى الصَّلاَةَ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي إِمَامُكُمْ

کله چي د لمانځه څخه فارغ سو نو موږ ته يې مخ کړ او وه يې فرمايل : خلکو زه ستاسو امام يم

فَلاَ تَسْبِقُونِي بِالرُّكُوعِ وَلاَ بِالسُّجُودِ وَلاَ بِالْقِيَامِ وَلاَ بِالاِنْصِرَافِ فَإِنِّي أَرَاكُمْ أَمَامِي وَمِنْ خَلْفِي . رواه مسلم

تاسو په رکوع کي په سجده کي په دريدو کي او ګرځېدو کي زما څخه مه وړاندي کيږئ ځکه چي زه مو مخته وينم همداسي د شا څخه هم وينم . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۳۲۰، رقم: ۱۱۲– ۴۲۶.

﴿۱۰۷۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لاَ تُبَادِرُوا الإِمَامَ إِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَإِذَا قَالَ وَلاَ الضَّالِّينَ فَقُولُوا آمِينَ وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ.

د امام څخه وړاندي هيڅ کار مه کوئ کله چي امام تکبير ووايي نو تاسو هم تکبير وايياست او کله چي امام ولا الضالين ووايي نو تاسو آمين وايياست او کله چي

متفق عليه الا ان البخاري لم يذكر و اذا قال ولا الضالين

امام رکوع وکړي نو تاسو هم رکوع وکړئ او کله چي امام سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسو اللهم ربنا لک الحمد وایاست. بخاري او مسلم. مگر امام بخاري صاحب د (و اذا قال ولا الضالين) یادونه نه ده کړې.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۸۳، رقم: ۷۶۹، ومسلم ۱\۳۱۰، رقم: ۸۷- ۴۱۵.

**تشريح**: (فقولوا آمين) ويلو سره دې خوا ته اشاره سوې ده چي کله امام سورة فاتحه وايي نو مقتدی دي په پټه خوله دریږو سره هغه اوري او د سورة فاتحې قرائت دي نه کوي د حديث د آخري برخي څخه دا معلومه سوه چي امام د رکوع څخه د پورته کېدو په وخت کي سمع الله لمن حمده ووايي نو مقتدیان دي ربنالک الحمد ووايي څرنګه چي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه مسئله ده.

### که امام په ناسته لمونځ ورکوي نو مقتدیان به څه کوي؟

﴿۱۰۷۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ فَرَسًا فَصُرِعَ

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ پر آس سپور رسو او آس را وغورزوی

عَنْهُ فَجُحِشَ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ فَصَلَّى صَلَاةً مِّنَ الصَّلَوَاتِ وَهُوَ قَاعِدٌ فَصَلَّيْنَا

چي د هغه له کبله د رسول الله ﷺ راسته بغل ژوبل سو او رسول الله ﷺ نه سو دریدلای له دې کبله د يوه وخت لمونځ يې په ناسته راکړ او موږ هم لمونځ وکړ

وَرَاءَهُ قُعُوْدًا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَإِذَا صَلَّى قَائِمًا

په رسول الله ﷺ پسي په ناسته ، کله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو وه يې فرمايل: امام د دې لپاره تاکل سوی دی چي د هغه اقتداء وکړل سي له دې کبله کله چي امام په ولاړه لمونځ کوي

فَصَلُّوْا قِيَامًا فَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ

نو تاسو هم په ولاړه لمونځ کوئ او کله چي رکوع کوي نو تاسو هم رکوع کوئ او کله چي د رکوع څخه پورته کیږي نو تاسو هم پورته کیږئ او کله چي سمع الله لمن

حَمِدَهُ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وَإِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا أَجْمَعُوْنَ. قَالَ

حمده ووايي نو تاسو ربنا لک الحمد وایاست او کله چي امام په ناسته لمونځ کوي نو تاسو هم په ناسته لمونځ ورسره کوئ ټول ، ويلي دي

الْحُمَيْدِيُّ قَوْلُهُ إِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا هُوَ فِيْ مَرَضِهِ الْقَدِيْمِ ثُمَّ صَلَّى

حميد چي د رسول الله ﷺ دا قول چي تاسو هم په ناسته لمونځ کوئ دا د رسول الله ﷺ د لومړۍ ناروغۍ پېښه ده بيا لمونځ وکړ

بَعْدَ ذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا وَالنَّاسُ خَلْفَهُ قِيَامٌ لَمْ يَأْمُرْهُمْ

د دې وروسته په مرض الموت کي رسول الله ﷺ په ناسته او خلکو په ولاړه لمونځ پسي وکړاو هغوی ته يې حکم ونه کړ

بِالْقُعُوْدِ وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

هذا لفظ البخاري . واتفق مسلم إلى أجمعون . وزاد في رواية فلا تختلفوا عليه وإذا سجد فاسجدوا .

په ناسته د لمانځه کولو حکم نو د نبي کريم ﷺ آخري فعل د لومړني فعل منسوخ کوونکی دی . بخاري، د دې تائيد امام مسلم هم کړی دی او يوازي تر (ټول کښينئ او لمونځ وکړئ) پوري يې حديث بيان کړی دی او امام مسلم په يوه روايت کي داسي نقل کړی دی چي د امام سره اختلاف مه کوئ کله چي هغه سجده وکړي نو تاسو هم سجده وکړئ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۱۷۳، رقم: ۶۸۹ ومسلم ۱\ ۳۰۸، رقم: ۷۷ – ۴۱۱.

**د لغاتو حل**: (جُحِش): انخدش (وتوږل سو) (صُرِع): سقط (ولوېدی).

**تشريح**: د دې روايت په پای کي د کوم حميدي قول نقل کړل سوی دی ، دا هغه حميدي نه دی چي د جمع بن الصحيحن مؤلف دی بلکه دا د بخاري استاد حميدی دی ، په هر حال د اکثرو امامانو مذهب د حميدي د قول سره سم دی، که امام د يو عذر په وجه په ناسته لمونځ ورکوي نو مقتديان دي په ولاړه لمونځ کوي هغوی ته په ناسته لمونځ کول صحيح نه دي .

## د رسول الله ﷺ ناروغي او د ابوبکر رضی الله عنه د امامت واقعه

﴿۱۰۷۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ

د عائشي (رض) څخه روايت دی کله چي د رسول الله ﷺ ناروغي سخته سول نو راغلی

بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ فَقَالَ مُرُوا أَبَا بَكْرٍ أَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَصَلَّى أَبُوبَكْرٍ

حضرت بلال د لمانځه خبرولو لپاره ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ته وو وايه چي خلکو ته لمونځ ورکړي نو حضرت ابوبکر ﷺ لمونځ ورکوی

تِلْكَ الْأَيَّامَ ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ خِفَّةً فَقَامَ

په هغو ورځو کي (او وه لس لمنځونه يې ورکړل) بيا د رسول الله ﷺ په ناروغي کي لږ کمي راغلل نو ولاړ سو

يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ وَرِجْلَاهُ تَخُطَّانِ فِي الْأَرْضِ حَتّٰى دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَلَمَّا

ددوو کسانو په تکيه سره، د کمزوری له کبله د رسول الله ﷺ قدمونه پر مځکه ښکېدل، تر دې چي مسجد ته داخل سو ، کله چي

سَمِعَ أَبُو بَكْرٍ حِسَّهُ ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

ابوبکر صديق رضی الله عنه (چي لمونځ يې ورکوی) د رسول الله ﷺ راتګ محسوس کړی او را شاته سو ، رسول الله ﷺ ابوبکر صديق ته اشاره وکړه

وَسَلَّمَ أَنْ لَّا يَتَأَخَّرُ فَجَاءَ حَتّٰى جَلَسَ عَنْ يَسَارِ أَبِي بَكْرٍ وَكَانَ أَبُوبَكْرٍ يُصَلِّي

چي پر خپل ځای اوسه او مه راشاته کېږه نو رسول الله ﷺ ور وړاندي سو او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه چپه طرف ته کښېنستی ، حضرت ابوبکر صديق ﷺ لمونځ کوی

قَائِمًا وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَاعِدًا يَقْتَدِي أَبُو بَكْرٍ

په ولاړه او رسول الله ﷺ لمونځ کوی په ناسته چي د ابوبکر رضی الله عنه اقتداء يې کول

بِصَلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَقْتَدِي النَّاسُ بِصَلَاةِ أَبِي بَكْرٍ. متفق

**عليه و في رواية لهما يسمع ابوبكر الناس التكبير .**

د لمانځه او خلکو د ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ اقتداء کول، بخاري او مسلم، د بخاري او مسلم په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ په لوړ آواز سره خلکو ته تکبير اوروئ.

**تخريج:** صحيح البخاري ۲\۱۷۲، رقم: ۶۸۷ ومسلم: ۱\۳۱۱، رقم: ۹۰- ۴۱۸.

**تشريح:** په شرح السنة کي ليکلي دي چي په دې حديث کي د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد: ابوبکر ته ووایه چي هغه خلکو ته لمونځ ورکړي، پر دې خبره دلالت کوي چي حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د خلافت تر ټولو زيات وړ او تر ټولو غوره دی ، د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د لوري د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د امامت ددې عظیم او تر ټولو اهم منصب اهل او اولی ګرځولو سره سم د ځينو جليل القدر صحابه کرامو دا ارشاد بالکل حقيقت او د رسالت منشا بالکل مطابق وو چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ زموږ ددين لپاره خوښ کړ نو ايا هغه به موږ د خپلي دنياوي رهبرۍ دپاره نه خوښوو ، يعني کله چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ په خپل ژوند کي ددين تر ټولو لوی اهم منصب امامت عنايت کولو سره دې خبري ته اشاره فرمايلې ده چي زما څخه وروسته ابوبکر رضی اللہ عنہ هغه شخصيت کيدای سي چي د مسلمانانو ددين پيشوائي او رهبري پوره کړای سي ، نو حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د دنيوي رهبرۍ او پيشوايي په درجه اولی مستحق سو، نو د خلافت په شان د عظيم الشان منصب تر ټولو زيات اهل هغه دی، د رجلين څخه مراد حضرت علي رضی اللہ عنہ او حضرت عباس رضی اللہ عنہ دي، يعني رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د خپل کمزورۍ په وجه د حجرې مبارکي څخه مسجد نبوي پوري د دوو جليل القدر صحابه کرامو د اوږو په مرسته تشريف راوړ ، د حديث الفاظ (والناس يقتدون بصلوة ابي بكر) او خلکو د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د لمانځه اقتدا کول ددې مطلب دادی .

• رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په ناسته لمونځ ورکوی او حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په څنګ مبارک کي ولاړ وو ، ځکه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم چي کوم فعل کوی حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ هم هغسي کول او کوم فعل چي ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په څنګ کي ولاړ هم هغسي کول او کوم فعل چي ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ کوی نورو مقتديانو هم هغسي کول نو دلته د اقتداء معنی دا سوه چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم خو د ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ امام وو او حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د نورو مقتديانو امام وو ځکه چي د مقتدي اقتداء کول جائز نه دي په هر حال حاصل دادی چي امام رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم وو ، حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم اقتداء کول او نورو خلکو هم د

رسول الله ﷺ په اقتداء کي لمونځ کوی.

## ایا د لمانځه په دوران کي په امامت کي بدلون جائز دی ؟

دلته يو سوال پيدا کيږي چي ايا د لمانځه په دوران کي په امامت کي بدلون جائز دی ؟ يعني لمونځ پيل سوی وي او يو امام خلکو ته لمونځ ورکوي يو بل سړی راسي او د لمونځ کونکي امام پر ځای ودريږي او امامت پيل کړي نو ايا دا جائز ده که يا؟ څرنګه چي په پورتنيی واقعه کي صورت وړاندي سو چي حضرت ابوبکر صديق ﷺ خلکو ته لمونځ پيل کړی وو چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ او د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په ځای کي يې د خلکو امامت پيل کړ نو په دې اړه علامه ابن عبدالبر رحمة الله عليه فرمايي چي د علماؤ په دې اړه اجماع ده چي پهپورتني صورت کي د رسول الله ﷺ دا فعل د رسول الله ﷺ د ځانګړتياوو څخه وو يعني د نورو لپاره دا جائز نه ده چي په امامت کي دي بدلون وکړي، مګر امام شافعي رحمة الله عليه په دې کي اختلاف کړی دی او ويلي يې دي چي د پورتني صورت په ډول امامت او قتداء جائز ده (شرح مشکوة مرقاة وګورئ).

په دې اړه ځينو حضراتو دا ويلي دي چي ددې حديث څخه دا خبره نه معلوميږي چي حضرت ابوبکر صديق ﷺ لمونځ پيل کړی وو ، حضرت ابوبکر صديق ﷺ تر دغه وخته پوري لمونځ نه وو پيل کړی چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ او امامت يې پيل کړ. والله اعلم.

د دې حديث څخه دا مسئله څرګنده سوه چي د جمعې، اخترونو او د زيات لمونځ کونکو په صورت کي په عامو لمنځو کي هم مؤذنانو ته جائز ده چي هغوی د امام سره تکبيرات په لوړ آواز سره ووايي کوم چي مقتديان د امام څخه ليري وي تر څو هغوی هم تکبيرات واوري.

## د امام څخه مخکي سر پورته کول جائز نه دي

﴿۱۰۷۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا يَخْشَى الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ قَبْلَ الْإِمَامِ أَنْ يُحَوِّلَ اللَّهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم څوک چي د امام څخه وړاندي سر پورته کوي ايا هغه ددې څخه نه بيريږي چي الله تعالی د هغه سر د خره کړي.
بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۱۸۲، ۱۸۳، رقم: ۶۹۱، ومسلم: ۱\ ۳۲۰، رقم: ۱۱۴– ۴۲۷.

**تشريح** : كوم څوک چي د لمانځه اركان د امام سره نه ادا كوي بلكه د امام څخه مخكي يې ادا كوي د مثال په توګه په ركوع او سجده كي د امام سر پورته كولو څخه مخكي خپل سر پورته كوي نو د داسي سړي په باره كي پورته ذكر سوى حديث كي سخته سزا ده كه څه هم علماء وايي چي دا حديث پر حقيقي معنى باندي محمول نه دى يعني دده مطلب دا دى چي كرم سړى داسي كوي الله تعالى به هغه د خره په ډول كم فهم او كم عقل كړي ځكه چي په ټولو حيوانانو كي خر تر ټولو زيات كم فهم دى نو دا مسخ به حقيقي نه وي بلكه مسخ معنوي به وي ، مګر علماء دا هم ليكي چي دا حديث پر خپل حقيقي معنا باندي محمول كيداى سي ځكه چي په دې امت كي هم مسخ ممكن ده څرنګه چي په باب اشراط الساعة كي مذكور دي او ددې مؤيد د يو روايت دا الفاظ دي چي : ان يحول الله صورته صورة حمار ، يعني ددې څخه نه بيريږي چي الله تعالى د هغه شكل د خره په ډول كړي ، خطابي رحمة الله عليه فرمايي په دې امت كي هم مسخ جائز ده نو دا حديث پر خپل حقيقي معنى باندي محمول كول جائز دي ، علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي دا مسخ خاص ده او د امت لپاره چي كومه مسخ منعه ده هغه عامه مسخه ده ، د صحيح حديثو څخه هم دا خبره معلوميږي .

## د مسخ يو عبرتناک مثال

د علامه ابن حجر رحمة الله عليه د پورتني قول تائيد د يوې عبرتناكي پيښي څخه هم كيږي چي د يو جليل القدر محدث څخه منقول دي چي هغه د علم طلب او حديث تر لاسه كولو لپاره ددمشق يو عالم ته ورسيدى چي د خپل علم او فضل په وجه ډير مشهور وو ، هغه د عالم څخه درس ويل پيل كړل مګر د علم تر لاسه كولو په دوران كي دا واقعه د طالب العلم لپاره ډيره حيرتناكه جوړه سوه چي استاد په ټول وخت كي مخته نه راغلى د درس په وخت كي به د استاد او شاګر په مينځ كي يوه پرده حائله وه ، د هغه دا لوى خواهش وو چي كم تر كمه يو وار خو د خپل استاد د مخ زيارت وكړي ، كله چي د هغه عالم په خدمت كي ډير وخت تير سو او هغه دا محسوسه كړه چي طالب علم د حديث تر لاسه كولو شوق او د تعلق شيخ د جذباتو پوره حامل دى نو استاد يوه ورځ پرده پورته كړه نو د هغه د حيرت او تعجب انتهاء پاته نسوه چي هغه جليل القدر عالم او د هغه استاد چي د هغه د علم او فضل شهرت هري خوا ته خپور سوى دى د انساني مخ څخه محروم دى بلكه د هغه مخ د خره په ډول دى ، استاد د شاګرد حيرت او تعجب ليدو سره چي كومه خبره وكړه هغه واورئ او د هغه څخه عبرت تر لاسه كړئ ، هغه وويل : اې زما زويه ! د

لمانځه د ارکانو په ادا کولو کي د امام څخه مخکي مه کيږه ، ما چي دا حديث واوريدی چي ايا هغه سړی چي د امام څخه مخکي سر پورته کوي ددې خبري څخه نه بيريږي چي الله تعالی د هغه سر د خره په ډول کړي نو ما ته ډير تعجب وسو او ما دا د امکان څخه ليري تصور کړه نو (دا زما بدبختي وه چي ما د تجربې په توګه) د لمانځه د ارکانو په ادا کولو کي د امام څخه مخکي سوم چي د هغه نتيجه زما زويه دا وخت ستا په مخکي ده چي زما مخ واقعي د خره د مخ په ډول سو ، په هر حال ملا علي قاري رحمة الله عليه په دې باره کي فرمايي چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد په اصل کي د سخت تهديد او زياتي زورونې په توګه دی يا دا چې داسي سړی به په برزخ يا په دوږخ کي په دغه عذاب اخته سي .

===========

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امام د موافقت حکم

﴿۱۰۷۴﴾: عَنْ عَلِيٍّ وَّ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالاَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت علي او معاذ بن جبل (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي

أَتَى أَحَدُكُمُ الصَّلاَةَ وَالإِمَامُ عَلَى حَالٍ فَلْيَصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ الإِمَامُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

په تاسو کي يو څوک لمانځه ته راسي او امام پر يو حال وي نو څه چي امام کوي هغه ته هم کول پکار دي ، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی

**تخريج** : سنن الترمذي: ۲\ ۴۸۵ - ۴۸۶، رقم: ۵۹۱،

**تشريح** : د حديث خلاصه داده چي د لمانځه په افعالو کي هغه سړي ته د امام اقتداء کول پکار دي او هغه ته د لمانځه د ارکانو د ادا کولو په اړه د امام څخه مقدم يا مؤخر کېدل نه دي پکار .

ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي ددې حديث مطلب دادی چي امام په کوم حالت کي هم وي هغه ته د هغه موافقت کول پکار دي يعني د جماعت پيل کېدو څخه وروسته که يو سړی وروسته په جماعت کي د ګډون لپاره راسي نو امام که د رکوع په حالت کي وي نو هغه ته د هغه موافقت کول پکار دي که امام د قيام په حالت کي وي نو هغه ته هم هغه حالت اختيارول پکار

دي ، که هغه په رکوع کي وي نو هغه ته هم رکوع ته تلل پکار دي او که په سجده کي وي نو هغه ته هم سجدې ته تلل پکار دي ، ليدل سوي دي چي ځيني خلک د جماعت پيل کېدو څخه وروسته همداسي ولاړ وي يا په خبرو کي بوخت وي او انتظار کوي چي امام رکوع ته ولاړ سي نو په لمانځه کي به ګډون وکړي دا عمل ډير غلط او غير شرعي دی ددې څخه پرهيز ضروري دی.

امام ترمذي رحمة الله عليه ويلي دي چي دا حديث غريب دی مګر د علماؤ پر دغه حديث عمل دی او نووي رحمة الله عليه هم ويلي دي چي د حديث اسناد ضعيف دي مګر پر کوم حديث باندي چي د علماؤ عمل کيدی هغه امام ترمذي صحيح ګرځوي او هڅه کوي چي د حديث صحت د علماؤ د عمل څخه ثابت سي څرنګه چي شيخ محي الدين ابن عربي رحمة الله عليه فرمايي چي ما ته د رسول الله ﷺ دا حديث راورسيدی چي کوم سړی لااله الاالله اويا واره ووايي نو د هغه بخښنه کيږي همداسي د کوم سړي لپاره چي ويل کيږي د هغه هم بخښنه کيږي نو ما به دا کلمات د روايت سوي حديث سره سم په خاصه توګه سره د يو چا لپاره د نيت څخه پرته ويل ، اتفاقا يوه ورځ په يو ځای کي يو بلني ته ورغلم او هلته زما يو څو ملګري هم وو په هغوی کي يو زلمی وو چي د کشف په اړه ډير مشهور وو ، د خوراک په دوران کي ناڅاپه هغه په ژړا سو ، ما په حيرانتيا کي د هغه د ژړا وجه و پوښتل نو هغه وويل چي زه (د کشف په ذريعه) وينم چي زما مور په عذاب کي اخته ده ، ددې اوريدو سره ما د پورتنی کلمې ثواب په زړه کي د هغه مور ته و بخښی او هغه اوس په خندا سو او وه يې ويل چي زه اوس خپل مور په جنت کي وينم.

ددې پېښي ذکر کولو څخه وروسته شيخ محي الدين ابن عربي رحمة الله عليه وفرمايل چي د هغه زلمي په کشف کېدو کي ما دا حديث صحيح ومنی او ددې حديث په صحيح کېدو سره د هغه زلمي کشف مي هم صحيح ومنی.

## په رکوع کي د ګډون کونکي رکعت پوره کيږي

﴿۱۰۷۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جِئْتُمْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي تاسو راسئ

إِلَى الصَّلَاةِ وَنَحْنُ سُجُوْدٌ فَاسْجُدُوْا وَلَا تَعُدُّوْهُ شَيْئًا وَمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ. رواه أبو داود.

لمانځه ته او موږ پر سجده يو نو تاسو هم سجده وکړئ او هغه سجده په حساب کي مه راولئ، چا چي د

لمانځه يو رکعت (د جماعت سره ونيوی) هغه لکه چي پوره لمونځ په جماعت سره وکړ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\۵۵۳، رقم: ۸۹۳.

**تشريح**: د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی که يو سړی جماعت ته په راتلو سره په داسي حال کي ګډون وکړي چي امام په سجده کي وي او هغه هم سجدې ته ولاړ سي نو د هغه رکعت نه پوره کيږي هو که يو سړی په داسي حال کي ګډون وکړي چي امام په رکوع کي وي او هغه رکوع لاندي کړي نو د هغه پوره رکعت ادا کيږي، ددې حديث د لومړني جز مطلب دادی که يو سړی په جماعت کي په داسي وخت کي ګډون وکړي چي امام په سجده کي وي نو هغه دې سجدې ته ولاړ سي مګر د هغه سجدې په وجه د هغه رکعت نه ادا کيږي لکه څرنګه چي په رکوع کي په ګډون کولو سره پوره رکعت حاصليږي، همداسي په سجده کي په ګډون کولو سره پوره رکعت نه ترلاسه کيږي، د دوهم جز علماؤ دوه مطلبه بيان کړي دي:

۱. په حديث کي د لفظ رکعة څخه مراد رکوع ده او د صلوة څخه مراد رکعت، يعني چا چي امام په رکوع کي لاندي کړ او هغه رکوع هم لاندي کړه نو د هغه رکعت پوره سو.
۲. رکعة او صلوة دواړه په خپل حقيقي معنی کي استعمال سوي دي، نو په دې صورت کي د حديث ددې جز مطلب به دا وي چي کوم سړی په جماعت کي يو رکعت هم ترلاسه کړي نو هغه د امام سره پوره لمونځ ترلاسه کړ او هغه ته د لمانځه يا جماعت ثواب هم پوره ترلاسه کيږي او د جماعت فضيلت به هم ورته ترلاسه کيږي.

## تر څلوېښت ورځو پوري په تکبير اولی سره د لمونځ کونکي لپاره زيری

﴿۱۰۷۶﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى لِلّٰهِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي لمونځ وکړ يوازي د الله جل جلاله لپاره

أَرْبَعِينَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى كُتِبَتْ لَهُ بَرَاءَتَانِ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ. ترمذي

څلوېښت ورځي په جماعت د تکبير سره (يعني چي تکبير اولی ورسره ونيسي) نو د هغه لپاره دوه دوله خلاصون ليکل کيږي يو د دوږخ څخه او بل د نفاق څخه خلاصون. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۲\۷، رقم: ۲۴۱.

**تشریح** : د حدیث مطلب دادی که یو سړی پرله پسې تر څلوېښتو ورځو پوري دا سعادت تر لاسه کړي چي هغه صرف د الله تعالی د خوښۍ او د هغه د رضا لپاره په جماعت سره لمونځ داسي ادا کړي چي تکبیر تحریمه هم ځیني تیره نسي یعني هغه د پیل څخه په لمانځه کي ګډون وکړي او کله چي امام تکبیر تحریمه ووایي نو هغه هم تکبیر تحریمه ووایي یا د ځینو د علماؤ د قول سره سم د امام سره د سبحانک اللهم ویلو پوري په جماعت کي ګډون وکړي نو د هغه لپاره د الله تعالی د دربار څخه د دوو شیانو د خلاصون زیري ورکول کیږئ یو خو د دوږخ څخه چي هغه به انشاء الله د دوږخ اور نهویني او دوهم د نفاق څخه خلاصون.

## د نفاق څخه د خلاصون مطلب

د نفاق څخه د خلاصون ورکولو مطلب دادی چي الله تعالی به هغه مؤمن د دې خبري څخه په خپل حفظ او امان کي وساتي چي د هغه څخه د منافقانو په ډول عمل وسي لکه په لمانځه کي سستي او ریا، درواغ ویل، وعده خلافي کول او داسي نور، او دا چي الله تعالی به هغه ته د اهل حق او اهل اخلاص په ډول د عمل کولو توفیق ورکړي او په آخرت کي به هغه د هغه عذاب څخه چي په هغه کي به منافقان اخته کیږي وساتل سي، په میدان حشر کي به د هغه په باره کي شاهدي ورکول کیږي چي دا بنده منافق نه بلکه مؤمن او صادق بنده دی او د رحم او کرم دا بارانونه به صرف په دې وجه وي چي دا سړی لمانځه ته دومره مخته راځي چي په تکبیر اولی کي ګډون کوي او د زړه په پوره اخلاص او انتهائي خشوع او خضوع سره په لمانځه کي په دربدو سره د خپل رب خوښي او رضا یې تر لاسه کړه، الله تعالی دي موږ ټولو ته دا سعادت په برخه کړي. آمین.

## د جماعت په نیت مسجد ته تلونکي ته د جماعت نه نیولو په صورت کي هم ثواب حاصلیږي

﴿۱۰۷۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي اودس وکړ

فَأَحْسَنَ وَضُوْءَهُ ثُمَّ رَاحَ فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا أَعْطَاهُ اللّٰهُ مِثْلَ أَجْرِ مَنْ

په ښه ډول اودس بیا د مسجد په لور ولاړی او خلکو لمونځ (جماعت) کړی وو نو الله تعالی به د هغه خلکو په ډول ثواب ورکړي

صَلاَّهَا وَحَضَرَهَا لاَ يَنْقُصُ ذٰلِكَ مِنْ أُجُوْرِهِمْ شَيْئًا . رواه أبو داود والنسائي

چا چي په جماعت سره لمونځ کړی وي او د هغو خلکو په ثواب کي به هيڅ کمي نه راځي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۸۱، رقم: ۵۶۴ والنسائي ۲\ ۱۱۱، رقم: ۸۵۴.

**تشريح**: مطلب دادی که يو سړی په جماعت کي د شريک کېدو په نيت سره مسجد ته راسي او په اتفاق سره هغه جماعت لاندي نه کړي نو الله تعالی په خپل فضل او کرم سره هغه ته په جماعت کي د ګډون کونکو په اندازه ثواب ورکوي مګر شرط دادی چي هغه په قصد سره ناوخته کولو سره په جماعت کي د ګډون کولو څخه پاته نسي بلکه اتفاقا يا د يو عذر په وجه د هغه څخه جماعت تير سي ، که يو سړی په قصد سره د جماعت پر وخت حاضر نه وي بلکه د جماعت کېدو وروسته راسي نو هغه ته دا ثواب نه ورکول کيږي .

د حديث د آخري جز مطلب دادی چي هغه ته دا ثواب د هغه لمونځ کونکو د ثواب څخه چي په جماعت کي حاضر وه په کمولو سره نه تر لاسه کيږي چي د هغه په وجه د هغوی په ثواب کي کمي راسي بلکه هغه لمونځ کونکو ته خو د خپل فعل يعني په جماعت کي د ګډون کولو پوره اجر تر لاسه کيږي او هغه ته به د جماعت د نيت او د جماعت تر لاسه کولو د شوق او غلبې په وجه ثواب ورکول کيږي .

## د جماعت فضيلت

﴿۱۰۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ وَقَدْ صَلّٰى رَسُولُ اللهِ صَلَّى

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی داسي وخت راغلی چي رسول الله ﷺ لمونځ کړی وو ،

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَلاَ رَجُلٌ يَتَصَدَّقَ عَلٰى هٰذَا فَيُصَلِّيَ مَعَهُ فَقَامَ رَجُلٌ فَصَلّٰى مَعَهُ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا داسي څوک سته ؟ چي دې سړي ته د الله جل جلاله لپاره صدقه ورکړي (يعني دده سره لمونځ وکړي) يو سړی ودريدی او د هغه سره يې لمونځ وکړ. ابوداؤد، ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۸۶، رقم: ۵۷۴، والترمذي ۱\ ۴۲۷ – ۴۲۸، رقم: ۲۲۰.

**تشريح**: يتصدق (د الله تعالی په لاره کي ورکړي) مطلب دا وو چي ايا يو څوک داسي سته

چي ددغه سړي سره په دې توګه احسان وکړي چي دد سره لمونځ وکړي چي ده ته د جماعت ثواب حاصل سي او همداسي به هغه سړي ګويا هغه ته صدقه ورکړي ، ددې څخه معلومه سوه که يو سړی يو چا ته نيکه لار و ښيي يا د هغه د نيکۍ لاري اختيارولو باعث جوړ سي نو هغه ته هغه اجر او ثواب ورکول کيږي کوم چي د الله تعالی په لار کي د بخښني حاصليږي .

مولانا مظهر رحمة الله عليه فرمايي چي د راتلونکي سړي سره د لمانځه کولو صدقه څکه تعبير کړل سوه چي د هغه سړي سره د لمونځ کونکي هغه ته شپږ ويشت برابر زيات ثواب صدقه کړ ، څکه که چيري د هغه سره لمونځ نه وو کړی نو د جماعت نه کېدو او د يوازي لمونځ کولو په وجه به هغه ته د يوه لمونځ ثواب حاصليدی او د هغه سړي په باعث د جماعت کولو په وجه هغه ته د اووه ويشت لمنځونو ثواب حاصل سو .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### دابوبکر صديق رضي الله عنه د امامت واقعه

﴿۱۰۷۹﴾ : عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْتُ لَهَا أَلاَ

د حضرت عبيد الله بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کي حاضر سوم او عرض مي وکړ چي :

تُحَدِّثِيني عَنْ مَرَضِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ بَلَى ثَقُلَ النَّبِيُّ

تاسو به ما ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ناروغۍ پېښنه بيان کړئ ؟ هغې وفرمايل : بيان به يې کړم ، د دې وروسته عائشې رضي الله عنها وويل کله چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ناروغي زياته سوه

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ فَقُلْنَا لاَ وَهُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ

نو پوښتنه يې وکړل چي ايا خلکو لمونځ وکړ ؟ موږ وويل : نه ، اې د الله رسوله! هغوی ستاسو انتظار کوي ،

اللهِ فَقَالَ ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ قَالَتْ فَفَعَلْنَا فَاغْتَسَلَ فَذَهَبَ لِيَنُوءَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ، ښه دی زما لپاره لوښي د اوبو څخه ډک کړئ ، عائشة رضي الله عنها فرمايي موږ لوښي د اوبو څخه ډک کړ او رسول الله صلی الله علیه وسلم غسل وکړ ، کله چي يې د درېدلو اراده وکړه

فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلْنَا لاَ وَهُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ

نو بې هوښه سو او لږ وروسته په هوښ کي راغلی نو پوښتنه یې وکړه ایا خلکو لمونځ وکړ؟
موږ ورته وویل: نه، اې د الله رسوله! هغوی ستاسو په انتظار دی،

اللهِ فَقَالَ ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ فَفَعَلْنَا فَاغْتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغْمِيَ

رسول الله ﷺ وفرمایل: په لوښي کي اوبه واچوه، بي بي عائشه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ
کښېنستی او غسل یې وکړ بیا یې د ډریدو اراده وکړل او بې هوښه سو

عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلْنَا لاَ وَهُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ

بیا په هوښ کي راغلی او پوښتنه یې وکړه ایا خلکو لمونځ کړی دی موږ عرض وکړ: نه، هغوی
ستاسو انتظار کوي، رسول الله ﷺ وفرمایل:

ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ

په لوښي کي زما لپاره اوبه واچوه، بي بي عائشه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ کښېنستی او
غسل یې وکړ بیا یې د ډریدو اراده وکړل او بې هوښه سو، بیا

أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ فَقُلْنَا لاَ وَهُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَتْ وَالنَّاسُ

په هوښ راغلی او پوښتنه یې وکړه: ایا خلکو لمونځ کړی دی؟ موږ عرض وکړ: نه، خلک
ستاسو انتظار کوي، او خلک

عُكُوفٌ فِي الْمَسْجِدِ يَنْتَظِرُونَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلاَةِ الْعِشَاءِ

تر هغه وخته په مسجد کي پاته وه او د ماخستن د لمانځه لپاره یې د رسول الله ﷺ انتظار کوی

الْآخِرَةِ فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ بِأَنْ يُصَلِّيَ

په پای کي رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق ﷛ ته پیغام ولیږی چي لمونځ ورکړي

بِالنَّاسِ فَأَتَاهُ الرَّسُولُ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُكَ أَنْ

خلکو ته، کله چي دا پیغام ابوبکر صدیق ﷛ ته ورسیدی او قاصد ورته وویل چي رسول الله

ﷺ تاسو ته حکم درکړی دی

تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ وَكَانَ رَجُلاً رَقِيقًا يَا عُمَرُ صَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَ

چي لمونځ ورکړه خلکو ته، نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه چي یو ډیر نرم زړه والا سړی وو وویل: اې عمره! ته خلکو ته لمونځ ورکړه، وویل

لَهُ عُمَرُ أَنْتَ أَحَقُّ بِذَلِكَ فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ تِلْكَ الأَيَّامَ ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى

ده ته حضرت عمر رضی الله عنه: د دې کار لپاره تاسو غوره یاست، نو په هغو ورځو کي حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه لمونځ ورکوی بیا د نبي کریم ﷺ

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ مِنْ نَفْسِهِ خِفَّةً وَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا الْعَبَّاسُ

په ناروغي کي لږ اندازه کمي راغلل او رسول الله ﷺ د دوو کسانو په تکیه د کور څخه د باندي راغلی چي په هغوی کي یو حضرت عباس رضی الله عنه وو

لِصَلَاةِ الظُّهْرِ وَأَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فَلَمَّا رَآهُ أَبُو بَكْرٍ ذَهَبَ لِيَتَأَخَّرَ فَأَوْمَأَ

او د ماپښين د لمانځه وخت وو په دغه وخت کي حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلکو ته لمونځ ورکوي، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه چي محسوسه کړه چي رسول الله ﷺ تشریف راوړی دی نو هغه اراده وکړه چي شا ته سي، نو اشاره وکړه

إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنْ لَا يَتَأَخَّرَ وَقَالَ أَجْلِسَانِي إِلَى جَنْبِهِ

ده ته نبي کریم ﷺ چي پر خپل ځای ولاړ اوسه او مه را شاته کیږه بیا یې هغو خلکو ته چي رسول الله ﷺ یې راویستلی وو حکم وکړ چي ما د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په څنګ کي کښینوئ

فَأَجْلَسَاهُ إِلَى جَنْبِ أَبِي بَكْرٍ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ، قَالَ عُبَيْدُ

نو هغوی د ابوبکر رضی الله عنه په خوا کي کښینوی او رسول الله ﷺ ناست وو، راوي عبیدالله وایي

اللَّهِ فَدَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ لَهُ أَلَا أَعْرِضُ عَلَيْكَ مَا حَدَّثَتْنِي

د بي بي عائشې رضی الله عنها د دې کیسې په اورېدو سره زه عبد الله بن عباس رضی الله عنه ته ورغلم او هغه ته مي وویل ایا زه ستا مخکي هغه حدیث بیان نه کړم کوم چي ما ته بیان کړی دی

بِهِ عَائِشَةُ عَنْ مَرَضِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَاتِ فَعَرَضْتُ

بي بي عائشې ﷺ يعني د رسول الله ﷺ د ناروغی په اړه، ابن عباس ﷺ وويل: ښه دی بيان يې کړه، نو ما ورته بيان کړ

حَدِيثَهَا عَلَيْهِ فَمَا أَنْكَرَ مِنْهُ شَيْئًا غَيْرَ أَنَّهُ قَالَ أَسَمَّتْ لَكَ الرَّجُلَ الَّذِي كَانَ

دا حديث او هغه ددې بيان د هيڅ برخي څخه انکار ونه کړ البته هغه دا وويل چي بي بي عائشې ﷺ د هغه سړي نوم څه شي اخيستی وو چي

مَعَ الْعَبَّاسِ قُلْتُ لاَ قَالَ هُوَ عَلِيٌّ. متفق عليه

د حضرت عباس ﷺ سره وو، ما ورته وويل هغې راته د هغه نوم نه وو ښودلی، ابن عباس وويل هغه حضرت علي ﷺ وو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۱۷۲- ۱۷۳، رقم: ۶۸۷ ومسلم ۱\ ۳۱۱- ۳۱۲، رقم: ۹۰- ۴۱۸

**د لغاتو حل**: (المِخضب): الاجانة، الاناء تغسل فيها الثياب (تالی). (لينوء): يَنُوء: يقوم. (ولاړيږي).

**تشريح**: بي بي عائشې رضي الله عنها د حضرت عباس ﷺ نوم واخيستی مگر د دوهم سړي نوم يې نه واخيستی چي د هغه سره رسول الله ﷺ ته په مرسته ورکولو سره مسجد ته يې بيولی وو، ددې وجه دا وه چي د رسول الله ﷺ يوې خوا ته خو حضرت عباس ﷺ په مستقله توګه رسول الله ﷺ ته مرسته ورکړې وه مګر بلي خوا ته يو سړی ټاکلی نه وو بلکه نوبت پر نوبت به بدليدل کله به حضرت علي ﷺ مرسته ورکول، کله به حضرت اسامه ﷺ يا فضل ابن عباس ﷺ، دا وجه ده چي په يو بل روايت کي د بي بي عائشې رضي الله عنها الفاظ داسي هم منقول دي چي د احتمال په توګه د ټولو نومان شامل دي هغه الفاظ دا دي چي د رسول الله ﷺ بلي خوا ته د اهل بيت څخه يو سړي مرسته ورکول.

## د سورة فاتحې په نه ويلو سره د لمانځه نيم ثواب تر لاسه کيږي

﴿۱۰۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ مَنْ أَدْرَكَ الرَّكْعَةَ فَقَدْ أَدْرَكَ السَّجْدَةَ وَمَنْ فَاتَتْهُ قِرَاءَةُ أُمِّ الْقُرْآنِ فَقَدْ فَاتَهُ خَيْرٌ كَثِيرٌ. رواه مالك.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چي کوم سړي رکوع لاندي کړه نو هغه رکعت لاندي کړی او د چا څخه چي الحمد لله تيره سوه هغه لوی ثواب د لاسه ورکړی. مالک.

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱۱۱، رقم: ۱۸.

**تشریح**: مطلب دادی چي چا په لمانځه کي سورة فاتحه ونه ویل نو هغه په دې وجه د لوی ثواب څخه محروم سو ځکه چي هغه د لمانځه ثواب ناقص دی.
د دې حدیث څخه په څرګنده دا معلومیږي چي په لمانځه کي د سورة فاتحې ویل فرض نه دي که د سورة فاتحې ویل فرض وای نو په لمانځه کي د سورة فاتحې نه ویلو په وجه به کمي او نقصان نه وای بلکه د لمانځه نه کېدو په وجه به ثواب نه تر لاسه کیدای.

## د امام څخه پر مخ کېدو باندي سزا

﴿۱۰۸۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ الَّذِيْ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَخْفِضُهُ قَبْلَ الْإِمَامِ فَإِنَّمَا نَاصِيَتُهُ بِيَدِ الشَّيْطَانِ. رواه مالك.

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی کوم څوک چي د امام څخه وړاندي سر پورته او کښته کوي نو د هغه تندی د شیطان په لاس کي دی. مالک.

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۹۲، رقم: ۵۷.

===========

# بَابُ مَنْ صَلّٰى صَلٰوةً مَرَّتَيْنِ

## د دوهم وار لمونځ کولو بیان

که یو سړی یو لمونځ دوه واره کوي که حقیقتا وي یا صورة نو په دې اړه څه حکم دی؟ ایا دواړه لمنځونه به یو ډول اداسي یا د هغه په حیثیت کي به فرق وي یعني دواړه واره به فرض لمونځ اداسي یا یو به فرض او دوهم به نفل وي، ددې خبرو ښودلو لپاره دا باب ترتیب سوی دی او ددغه مسئلو سره اړوند حدیثونه په دغه باب کي نقل کیږي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۱۰۸۲﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ كَانَ يُصَلِّي مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَأْتِيْ قَوْمَهُ فَيُصَلِّيْ بِهِمْ . متفق عليه

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چې معاذ بن جبل به د رسول الله ﷺ سره لمونځ کوی او بيا به خپل قوم ته ولاړی هغوی ته به يې لمونځ ورکوی . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۹۲، رقم: ۷۰۰، ومسلم ۱\۳۴۰، رقم: ۱۸۱– ۴۶۵.

**تشريح**: د حضرت معاذ ابن جبل رضی اللہ عنہ دا معمول وو چې د ماخستن سنت يا نفل به يې د رسول الله ﷺ سره کول تر څو د رسول الله ﷺ سره او په مسجد نبوي کې د لمانځه کولو فضيلت تر لاسه سي او د رسول الله ﷺ څخه د لمانځه طريقه هم معلومه سي او بيا به د هغه ځای څخه تلی او خپل قوم ته به يې فرض لمونځ ورکوی .

﴿۱۰۸۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چې معاذ رضی اللہ عنہ به د نبي کريم ﷺ سره د ماخستن لمونځ کوی

ثُمَّ يَرْجِعُ إِلٰى قَوْمِهٖ فَيُصَلِّيْ بِهِمُ الْعِشَاءَ وَهِيَ لَهُ نَافِلَةٌ . رواه البيهقي والبخاري

او بيا به خپل قوم ته راغلی هغوی ته به يې د ماخستن لمونځ ورکوی دو هم لمونځ به د هغه لپاره نفل وو . بيهقي او بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۲۶۶، رقم: ۷۰۱، ومسلم ۱\۳۴۰، رقم: ۱۸۰– ۴۶۵.

**تشريح**: حضرت معاذ رضی اللہ عنہ به د رسول الله ﷺ سره د ماخستن د لمانځه کولو په وخت کې د سنت نيت کوی يا د نفل لمانځه نيت به يې کوی، او بيا به خپل قوم ته په راتلو سره به يې د هغوی امامت کوی، او هغه وخت به يې فرض لمونځ کوی .

د حديث آخري الفاظ (وهي له نافلة) د مطلب پوهېدو څخه مخکې دا خبره په ذهن کې راوستل پکار ده چې دوه واره د لمانځه کولو دوه صورتونه کيدای سي : يو خو دا چې يو سړی په خپل ځای کې يوازې يا په جماعت سره لمونځ وکړ د هغه وروسته مسجد ته راغلی او وه يې ليدل چې هلته د هغه لمانځه جماعت کيږي کوم چې ده مخکې کړی دی نو هغه په مسجد کې د جماعت فضيلت تر لاسه کولو په نيت په جماعت کې په ګډون کولو سره بيا لمونځ کوي، په دې صورت کې د فرض لمانځه ادا ينه مخکې سوې ده ځکه نو د جماعت دا لمونځ به د هغه لپاره نفل سي ، دوهم صورت دا دی چې يو سړی د يو مسجد امام دی هغه په خپل مسجد کې د لمونځ

ورکولو څخه مخکي پر یو خاص موقع باندي یا د یو خاص سړي سره د لمانځه کولو فضیلت تر لاسه کولو په نیت د نفل په نیت لمونځ کوي او بیا د هغه وروسته خپل مسجد ته په راتلو سره خلکو ته لمونځ ورکوي نو په داسي صورت کي به وروسته لمونځ فرض سي او مخکي لمونځ به نفل سي.

د دې تفصیل پوهېدو څخه وروسته ددې جملې په مطلب په اسانۍ سره پوهیدل کیدای سي او هغه دا چي هغه دوهم لمونځ چي په جماعت سره فرض یا نفل ادا کیږي یا لومړی لمونځ دوه واره د لمونځ کونکي په حق کي نافله یعني د خیر او فلاح د زیاتوب او د ثواب د کثرت باعث کیږي، کومو خلکو چي ددې جملې مطلب دا بیان کړی دی چي هغه دوهم لمونځ چي معاذ رضي الله عنه د قوم سره کوی د معاذ رضي الله عنه نفل لمونځ او د هغه د قوم د ماخستن فرض لمونځ کیدی دا حقیقت نه لري ځکه چي دا خبره خو هغه وخت صحیح کیدای سي چي ددې مطلب بیانونکي حضرت معاذ رضي الله عنه یو داسي قوم ته وړاندي کړي چي په هغه کي معاذ رضي الله عنه خپله دا وښیي چي د هغه نیت دواړه واره څه وو، ځکه چي د نیت حقیقت خو تر هغه وخته پوري نه معلومیږي تر څو پوري چي نیت کونکی د خپل نیت په باره کي خپله ونه ښیي چي د هغه نیت څه دی؟ او ظاهره ده چي معاذ رضي الله عنه د لمونځ کولو په وخت کي نیت په زړه کي کړی دی په ژبه سره یې اظهار نه دی کړی څرنګه چي ابن همام رحمة الله علیه نقل کړي دي چي په ژبه سره نیت کول بدعت دی ځکه چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو په باره کي دا ثابته نه ده چي هغوی به په ژبه سره نیت کوی، بیا دا خبره دي هم په خیال کي وي چي دا جمله (وهي له نافله) د حدیث الفاظ نه دي بلکه اضافه جمله ده چي په صحیح روایتونو کي موجود نه دي، ځینو حضراتو لیکلي دي چي اما شافعي رحمة الله علیه د خپل اجتهاد او مذهب سره سم ددې جملې اضافه کړې ده بیا دا چي د مشکوة په اصل نسخه کي دا ځای خالي دی چي د هغه څخه معلومیږي چي د مشکوة مؤلف د سنن هیڅ طریقې سره هم دا جمله نه ده تر لاسه کړې.

علامه توربشتي رحمة الله علیه فرمایي چي د حدیث د علماؤ دا قول دی چي وهي نافلة د جابر رضي الله عنه په حدیث کي غیر محفوظ دی، په نفل کونکو پسي فرض لمونځ کول صحیح دي که یا، په دې مسئله کي د امامانو چي کوم اختلاف دی هغه په پوره وضاحت سره د مظاهر حق په نهم جلد کي د باب القراة في الصلوة د لسم نمبر حدیث د تشریح په څنګ کي بیان سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په جماعت سره د دوهم وار لمونځ کولو حکم

﴿۱۰۸۴﴾: عَنْ يَزِيْدَ ابْنِ الْاَسْوَدِ قَالَ شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت يزيد بن اسود رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ سره په حج کي ګډون وکړ

حَجَّتَهُ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ صَلَاةَ الصُّبْحِ فِي مَسْجِدِ الْخَيْفِ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ

ما د سهار لمونځ د رسول الله ﷺ سره په مسجد خيف کي وکړ، کله چي رسول الله ﷺ لمونځ وکړ

وَانْحَرَفَ إِذَا هُوَ بِرَجُلَيْنِ فِي أُخْرَى الْقَوْمِ لَمْ يُصَلِّيَا مَعَهُ قَالَ عَلَيَّ بِهِمَا

او راستنېدی نو دوه کسان يې وليدل چي د خلکو په پای کي ناست وه او د رسول الله ﷺ سره يې لمونځ نه وو کړی، رسول الله ﷺ وفرمايل: دا کسان را وغواړئ

فَجِيءَ بِهِمَا تُرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا فَقَالَ مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا فَقَالَا يَا

نو هغوی راوستل سول د رسول الله ﷺ د بيري څخه د هغوی وږي رېږدېدلې رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه تاسو ولې زموږ سره لمونځ ونه کړ، هغوی وويل: اې

رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا كُنَّا قَدْ صَلَّيْنَا فِي رِحَالِنَا قَالَ فَلَا تَفْعَلَا إِذَا صَلَّيْتُمَا فِي

دالله رسوله! موږ په خپل ځای کي لمونځ کړی دی، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل بيا داسي مه کوئ هر کله چي تاسو په

رِحَالِكُمَا ثُمَّ أَتَيْتُمَا مَسْجِدَ جَمَاعَةٍ فَصَلِّيَا مَعَهُمْ فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي.

خپل کور کي لمونځ وکړئ او هغه مسجد ته راسئ چي په هغه کي جماعت کيږي نو د هغه خلکو سره هم لمونځ وکړئ دا لمونځ به ستاسو لپاره نفل وي، ترمذي، ابوداؤد، نسائي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱\۳۸۶، ۳۸۷، رقم: ۵۷۵، والنسائي: ۲\۱۱۲–۱۱۳، رقم: ۸۵۷.

**تشریح** : د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چې په آخر کي کیدونکی لمونځ به نفل سي که څه هم لومړی لمونځ يې په جماعت سره کړی وي یا یوازي يې کړی وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

﴿۱۰۸۵﴾: عَنْ بُسْرِ بْنِ مِحْجَنٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ

بسر بن محجن د خپل پلار څخه روایت کوي چې هغه په یو مجلس کي د رسول الله ﷺ سره وو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُذِّنَ بِالصَّلَاةِ فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کله چې د لمانځه لپاره آذان وسو ، رسول الله ﷺ ودریدی

فَصَلَّى وَرَجَعَ وَمِحْجَنٌ فِي مَجْلِسِهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

لمونځ يې ادا کړ او بیرته راتلی چې محجن يې هلته پر ځای ناست ولیدی ، رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه

مَا مَنَعَكَ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ النَّاسِ أَلَسْتَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ فَقَالَ بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ

تا د خلکو سره ولي لمونځ ونه کړ ، ایا ته مسلمان نه يې ؟ هغه عرض وکړ : اې د الله رسوله ! زه مسلمان یم

وَلٰكِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي أَهْلِي فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

مګر ما د خپلي کورنۍ سره لمونځ کړی وو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هر کله چې

جِئْتَ الْمَسْجِدَ وَكُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ وَإِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ . رواه مالك والنسائي .

ته مسجد ته راسې او لمونځ دي کړی وي او په مسجد کي لمونځ تیار وي نو د خلکو سره هم لمونځ وکړه که څه هم تا لمونځ کړی وي . مالک او نسائي .

**تخریج** : الامام مالک في الموطا ۱\۱۳۲، رقم: ۸. والنسائي: ۲\۱۱۲، رقم: ۸۵٦.

## دوهم وار لمونځ کول د ثواب باعث دی

﴿۱۰۸۶﴾: وَعَنْ رَجُلٍ مِّنْ أَسَدِ بْنِ خُزَيْمَةَ أَنَّهُ سَأَلَ أَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ قَالَ

د اسد بن خزیمه د قبیلې د یو سړي څخه روایت دی چي هغه د ابو ایوب انصاري رضی اللہ عنہ څخه پوښتنه وکړه چي

يُصَلِّي أَحَدُنَا فِي مَنْزِلِهِ الصَّلَاةَ ثُمَّ يَأْتِي الْمَسْجِدَ وَتُقَامُ الصَّلَاةُ فَأُصَلِّي

په موږ کي یو سړی په کور کي لمونځ وکړي بیا هغه مسجد ته راسي او هلته لمونځ کیدونکی وي ایا په داسي حالت کي زه هم لمونځ وکړم

مَعَهُمْ فَأَجِدُ فِي نَفْسِي شَيْئًا مِّنْ ذٰلِكَ فَقَالَ أَبُو أَيُّوبَ سَأَلْنَا عَنْ ذٰلِكَ النَّبِيَّ

د هغوی سره ، په دې اړه زما په زړه کي شک او شبه ده ، ابو ایوب انصاري رضی اللہ عنہ ورته وفرمایل : په دې اړه موږ د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړې ده ،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَذٰلِكَ لَهُ سَهْمُ جَمْعٍ . رواه مالك وأبو داود .

رسول الله ﷺ وفرمایل : چي دا (دوهم جماعت کول) دده قسمت دی چي د جماعت ثواب یې هم تر لاسه کړ . مالک او ابوداؤد .

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۳۳، رقم: ۱۱. وابوداؤد: ۱\ ۳۸۸، ۳۸۹، رقم: ۵۷۷.

**تشریح**: (فذالک له سهم جمع) مطلب دادی که یو سړی یو وار په کور کي د فرض لمونځ کولو څخه وروسته بیا دوهم وار په مسجد کي په جماعت سره هغه لمونځ کوي نو د هغه په حق کي بالکل د سعادت خبره ده ځکه چي په دې سره هغه ته د جماعت فضیلت او د هغه ثواب تر لاسه کیږي نو په دې اړه په زړه کي د ننه وسوسه او شبه پیدا کول نه دي پکار .

## د دوهم وار لمونځ کولو حکم

﴿۱۰۸۷﴾: وَعَنْ يَزِيْدَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ جِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت یزید بن عامر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ،

وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ فَجَلَسْتُ وَلَمْ أَدْخُلْ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ

او رسول الله ﷺ دا وخت لمونځ کوی، زه کښېښنستم او د رسول الله ﷺ سره په لمانځه کي شریک نه سوم، کله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآنِيْ جَالِسًا فَقَالَ أَلَمْ تُسْلِمْ يَا يَزِيْدُ قُلْتُ بَلٰى

او زه يې ناست وليدم نو وه يې فرمايل: اې يزيده ! ايا ته مسلمان نه يې؟ ما عرض وکړ: هو.

يَارَسُوْلَ اللهِ قَدْ أَسْلَمْتُ قَالَ وَمَامَنَعَكَ أَنْ تَدْخُلَ مَعَ النَّاسِ فِيْ صَلاَتِهِمْ ؟

اې د الله رسوله ! زه مسلمان يم، رسول الله ﷺ وفرمايل: نو تا د جماعت لمونځ ولي ونه کړ؟

قَالَ إِنِّيْ كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِيْ مَنْزِلِيْ أَحْسِبُ أَنْ قَدْ صَلَّيْتُمْ فَقَالَ إِذَا جِئْتَ

ما وويل ما په خپل کور کي لمونځ کړی وو او زما خيال وو چي تاسو به هم د لمانځه څخه فارغ سوی یاست، رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله ته راسې

الصَّلاَةَ فَوَجَدْتَّ النَّاسَ فَصَلِّ مَعَهُمْ وَإِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ تَكُنْ لَكَ نَافِلَةً وَهٰذِهِ مَكْتُوْبَةً . رواه أبو داود .

لمانځه ته او خلک پر لمونځ کولو ووينې نو ته هم د هغوی سره په لمانځه کي ګډون کوه او کوم لمونځ چي تا کړی وي هغه به ستا لپاره نفل سي او دا به په فرض کي وشميرل سي . ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۱\ ۳۸۸، رقم: ۵۷۷.

---

﴿۱۰۸۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَهُ فَقَالَ إِنِّيْ أُصَلِّيْ فِيْ بَيْتِيْ ثُمَّ أُدْرِكُ

د حضرت ابن عمر ؓ څخه روايت دی چي د هغه څخه يو سړي پوښتنه وکړه چي زه په خپل کور کي لمونځ کوم بيا

الصَّلاَةَ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ الإِمَامِ أَفَأُصَلِّيْ مَعَهُ قَالَ لَهُ نَعَمْ قَالَ الرَّجُلُ أَيَّتُهُمَا

په مسجد کي لمونځ (جماعت) ولاړ وي نو ايا زه د دې خلکو سره لمونځ وکړم؟ هغه ورته وويل: هو، هغه سړي پوښتنه وکړه په داسي حالت کي به په دې دواړو لمنځو کي کوم يو لمونځ

أَجْعَلُ صَلاَتِيْ ؟ قَالَ عُمَرَ وَذٰلِكَ إِلَيْكَ إِنَّمَا ذٰلِكَ إِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ يَجْعَلُ أَيَّتُهُمَا شَاءَ . رواه مالك .

فرض وګڼم؟ ابن عمر رضی الله عنه ورته وویل دا ستا کار نه دی دا الله جل جلاله ته حواله دی چې هغه کوم یو غواړي فرض یې ګرځوي . مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا: ۱\۱۳۳، رقم: ۹ .

**تشريح**: دا حديث د ځينو شوافع او غزالي رحمة الله عليه ددې قول تائيد کوي چې په دغه دواړو لمنځونو کې یو لمونځ بلاتعين فرض ادا کيږي که څه هم لومړی لمونځ وي یا دويم، مګر د اکثرو حديثو څخه دا خبره په وضاحت سره معلوميږي چې په دواړو کې لومړی لمونځ فرض ادا کيږي او دوهم نفل کيږي ، او دا خبره د قياس څخه هم معلوميږي ځکه چې يو سړی داسي کار چې د هغه لپاره په يو وخت کې يوازي يو وار کول ضروري وي که دوه واره يې وکړي نو ځرګنده ده چې د هغه د ذمې څخه په اول وار ليري کيږي نه په دوهم وار، همداسي د فرض لمانځه ادا کول په اول وار کيږي او د دوهم وار لمونځ د هغه لپاره د نفل په صورت کې د فضيلت او سعادت سرمايه جوړيږي .

## يو لمونځ دوه واره نه کول

﴿۱۰۸۹﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ مَوْلٰى مَيْمُوْنَةَ قَالَ أَتَيْنَا ابْنَ عُمَرَ عَلَى الْبِلاَطِ وَهُمْ

د بي بي ميمونې د آزاد سوي غلام سليمان څخه روايت دی چې موږ په بلاط نامي ځای کې ابن عمر رضی الله عنه ته ورغلو او هغوی

يُصَلُّوْنَ فَقُلْتُ أَلاَ تُصَلِّيْ مَعَهُمْ فَقَالَ قَدْ صَلَّيْتُ وَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ

هغه وخت لمونځ کوی ، ما ابن عمر رضی الله عنه ته وویل: ایا تاسو ددې خلکو سره لمونځ نه کوئ؟ هغه وویل : ما لمونځ کړی دی او ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوريدلي دي

يَقُوْلُ لاَتُصَلُّوْا صَلاَةً فِيْ يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي .

چې فرمايل يې: يو لمونځ په يوه ورځ کې دوه ځله مه کوئ . احمد ، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۹\۲ . وابوداؤد: ۱\۳۸۹، رقم: ۵۷۹ . والنسائي ۲\۱۱۴ . رقم: ۸۵۹ .

**د لغاتو حل:** (بِلاط): موضع معروف بالمدينة (په مدينه منوره كي يوه مشهوره سيمه).

**تشريح:** بلاط په مدينه منوره كي د يو ځاى نوم دى چي د امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د مسجد څخه د باندي ددې لپاره جوړ كړى وو كه چيري خلك خبري وغيره كوي نو د مسجد څخه د باندي په هغه ځاى كي دي يې كوي او په مسجد كي دي دنياوي كارونه او خبري نه كوي.

## د دوهم وار لمونځ كولو د حكم تطبيق د تيرو حديثو سره

په ښكاره خو دا حديث د تيرو حديثو سره مخالف معلوميږي كوم چي د يوه لمانځه په دوهم وار كولو باندي دلالت كوي نو ددې حديث حكم او په تيرو حديثونو كي تطبيق دادى چي په اصل كي ددې حديث د حكم تعلق د هغه سړي سره دى چي هغه په اول وار په جماعت سره لمونځ كړى وي او د تيرو حديثونو تعلق د هغه سړي سره دى چي هغه په اول وار لمونځ په جماعت سره نه بلكه يوازي كړى وي لكه څرنگه چي د حنفيه مذهب دى ، يا ددې حديث مطلب دادى چي په دوهم وار لمونځ د فرضت په توگه مه كوئ ، يعني دوهم لمونځ كه د نفل په نيت كوي نو په دې كي څه پرواه نسته، ددې وضاحت په رڼا كي د ابن عمر رضي الله عنه د الفاظو (قد صليت) كي دا تشريح وكړل سي چي ابن عمر رضي الله عنه كيداى سي په جماعت سره لمونځ كړى وي ځكه هغه دوهم وار په لمانځه كي گډون ونه كړ ، يا دا چي كوم وخت دا واقعه وه هغه د سهار يا مازديگر او يا ماښام وخت وي چي په دغه وختونو كي دوهم وار لمونځ كول نه دي پكار .

په دې خبره هم پوه سئ چي په دې اړه اكثر حديثونه عام دي يعني د هغه حديثو څخه په ظاهره دا معلوميږي چي دا حكم كه يو سړى يوازي لمونځ كولو سره مسجد ته راسي او هلته جماعت كيږي نو هغه دي په جماعت كي گډون وكړي او دوهم وار دي لمونځ وكړي دا مسئله د ټولو وختونو د لمنځو سره متعلق ده مگر مجتهدين او علماء پر هغه حديثو باندي هم نظر لري چي د هغه څخه په ځينو وختونو كي دوهم وار لمونځ كول مكروه گرځول سوي دي نو د هغه حديثونو سره سم هغوى هغه وختونه ټاكلي دي چي په هغو كي دوهم وار لمونځ كول پكار دي او هغه وختونه يې هم ټاكلي دي چي په هغو كي دوهم وار لمونځ كول نه دي پكار او په راتلونكي حديث كي دا تخصيص مذكور دى .

## هغه وختونه چي په هغو كي دوهم وار لمونځ كول ممنوع دي

﴿۱۰۹۰﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ إِنَّ عَبْدَ اللهِ بْنِ عُمَرَ كَانَ يَقُوْلُ مَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ أَوِ الصُّبْحَ ثُمَّ أَدْرَكَهُمَا مَعَ الْإِمَامِ فَلَا يَعُدْ لَهُمَا . رواه مالك .

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روايت دى چي عبد الله بن عمر رضي الله عنه به ويل : كوم څوك چي د ماښام يا

سهار لمونځ وكړي او بيا يې د امام سره تر لاسه كړي نو دوهم ځل دې يې نه كوي.

**تخريج:** الامام مالک في الموطا: ۱۱/۱۳۳، رقم: ۱۲.

**تشريح:** دا حديث د امام مالک رحمة الله عليه د مذهب تائيد كوي ځكه چې د هغه په نزد يوازې د ماښام او سهار لمنځونه دوهم وار كول ممنوع دي، مګر د حنفيه په نزد د مازديګر لمونځ هم په دې حكم كې داخل دى، د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په ټولو لمنځو كې اعاده (تكرار) كيداى سي، په دې حديث كې دې ته اشاره سوې ده چې پورتنى حكم د هغه سړي په اړه دى چې هغه په لومړي ځل په جماعت سره نه بلكه يوازې لمونځ كړى وي نو په لومړي ځل په جماعت سره د لمانځه كولو په صورت كې خو په طريقه اولى دوهم وار لمونځ كول پكار دي.

============

# بَابُ السّنَنِ وَ فَضَائِلِهَا

## سنت او د هغه د فضائلو بيان

په اسلامي شريعت كې لمونځ تر ټولو د لوړې درجې عبادت دى، د نورو عباداتو په مقابله كې د دې لوى ارزښت دى او د الله تعالى په دربار كې تر ټولو زيات محبوب دى ځكه په عبادت كې چې څومره زيات كثرت او زياتوب اختيار كړل سي هغومره نه يوازې دا چې بنده سعادت او خير بې پناه رفعتونه او عروج تر لاسه كوي بلكه هغه د خپل پوره عبوديت او د الله تعالى د حاكميت او كبريايي اظهار هم كوي، دا وجه ده چې شريعت نور عبادتونه كوم چې يوازې په فرائضو پورې محدود كړي وي هلته دا عبادت يې د فرائض او واجبات څخه پرته په سنتو سره هم نازولى دى، د هر فرض لمانځه سره يو څو سنت هم ټاكل سوي دي، نه يوازې دا چې هغه فرض په اساني سره اداسي بلكه د فرض لمانځه په ادا كولو كې چې كوم نقصان او كوتاهي واقع سوې وي هغه هم پوره سي.

سنت يعني هغه لمنځونه چې په شپه او ورځ كې د فرض لمنځو سره كول كيږي پر دوه ډوله دي:

۱. رواتب: دا هغه سنت لمنځونه دي چې پر هغه رسول الله ﷺ هميشتوب اختيار كړى دى.

۲. غير رواتب: دا هغه سنت لمنځونه دي چې پر هغه رسول الله ﷺ هميشتوب نه دى اختيار كړى لكه د مازديګر سنت.

د سنت كولو هم طريقه ده كوم چې د فرض لمانځه كولو ده، فرق يوازې دومره دى چې د

فرض لمانځه په يوازي دوو ركعتو كي د سورة فاتحې څخه وروسته يو بل سورت هم ويل كيږئ او د سنت لمانځه په ټولو ركعتو كي د سورة فاتحې وروسته بل سورت هم ويل كيږي، او د سنت لمانځه په ركعتو كي چي كوم سورتونه ويل كيږي د هغه برابر نه كېدل خلاف سنت نه دي ، او سنت لمنځونه په ورځ تر دوو ركعتو پوري او د شپې څلورو ركعتو پوري په يوه سلام سره كيږي مگر د دوو ركعتو وروسته التحيات ويل ضروري دي . علم الفقه .

په دې خبره هم پوه سئ چي سنت، نفل، تطوع، مندوب، مستحب، مرغوب فيه او حسن دا ټول الفاظ مترادف دي ، ددې ټولو معنى يوه ده يعني هغه لمونځ چي د هغه پر كولو باندي شارع پر نه كولو باندي ترجيح وركړې ده كه څه هم په دغه لمنځونو كي ځيني داسي دي چي د ځينو نورو په مقابله كي سنت مؤكده دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سنتو شمير او د هغه د كولو فضيلت

﴿۱۰۹۱﴾: عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى

د حضرت ام حبيبة رضي الله عنها څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :چا چي لمونځ وكړ

فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ

په شپه او ورځ كي دوولس ركعته نو د هغه لپاره په جنت كي كور جوړيږي يعني څلور ركعته د ماپښين څخه مخكي

وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ وَرَكْعَتَيْنِ

او دوه ركعته د ماپښين وروسته دوه ركعته د ماښام وروسته او دوه ركعته د ماخستن وروسته او دوه ركعته

قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ. رواه الترمذي و في رواية مسلم اَنَّهَا قَالَتْ سَمِعْتُ

د سهار څخه مخكي ، ترمذي، د مسلم په يوه روايت كي دي چي هغې وويل ما اورېدلي دي

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلّٰهِ كُلَّ

د رسول الله ﷺ څخه چي فرمايل يې : هيڅ يو مسلمان بنده داسي نسته چي خالص د الله ﷻ لپاره لمونځ کوي په هره

يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيضَةٍ إِلاَّ بَنَى اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ أَوْ إِلاَّ بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ.

ورځ کي دوولس رکعته نفل پرته د فرضو څخه مگر د هغه لپاره الله تعالى په جنت کي کور جوړ نه کړي ، يا دا الفاظ يې وويل چي د هغه لپاره په جنت کي يو کور جوړيږي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۲۷۴، رقم: ۴۱۵،الرواية الثانية: صحيح مسلم: ۱\ ۵۰۳، رقم: ۱۰۳- ۷۲۸.

**تشريح** : په حديث کي چي د ورځي او شپې د سنتو کوم شمير په تفصيل سره ښودل سوى دى هغه ټول سنت مؤکد دي او د سهار دواړه سنت رکعتونه تر ټولو زيات مؤکد دي حتى چي امام حسن بصري رحمة الله عليه او ځيني نور حنفيه حضرات دې ته واجب وايي ، امام حسن رحمة الله عليه خو د ماښام دوو سنتو ته هم واجب ويلي دي مگر ددې حديث سره سم د هغه د قول ترديد سوى دى چي دا واجب نه دي بلکه سنت دي .

﴿۱۰۹۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ سره لمونځ ادا کړ دوه رکعته

قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِيْ بَيْتِهِ وَرَكْعَتَيْنِ

د ماپښين مخکي او دوه رکعته د هغه وروسته او دوه رکعته د ماښام څخه وروسته د نبي کريم ﷺ په کور کي او دوه رکعته

بَعْدَ الْعِشَاءِ فِيْ بَيْتِهِ قَالَ وَحَدَّثَتْنِيْ حَفْصَةُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د ماخستن څخه وروسته د رسول الله ﷺ په کور کي وکړل ابن عمر رضي الله عنه وايي ما ته بي بي حفصې رضي الله عنها وويل چي رسول الله ﷺ به

وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ حِيْنَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ . متفق عليه

دوه مختصر رکعتونه د صبح صادق راختلو څخه مخکي کول . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۵۸، رقم: ۱۱۸۰– ۱۱۸۱، ومسلم ۱\ ۵۰۴، رقم: ۱۰۵– ۷۳۰.

**تشريح**: ابن عمر رضي الله عنه د ماپښين څخه مخکي سنتو لپاره د رکعتين لفظ فرمايلی دی چي د هغه څخه ظاهري مطلب خو دادی چي رسول الله ﷺ د ماپښين څخه مخکي دوه رکعته وکړل مګر د اهل علم قول دادی چي تثنيه د جمع خلاف نه ده مګر که دلته د رکعتين معنی د دوو رکعتو پر ځای د څلورو رکعتو واخيستل سي نو په دې کي څه پرواه نسته، ددې توجيه په ذريعه دغه حديث او په هغه حديث کي چي د هغه څخه د ماپښين د فرض لمانځه څخه مخکي څلور رکعته سنت ثابتيږي تطبيق کيږي. ملا علي قاري.

شيخ عبدالحق رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث د امام شافعي رحمة الله عليه مستدل دی ځکه چي د هغه په نزد د ماپښين د فرضو څخه مخکي دوه رکعته دي مګر د حنفيه په نزد څلور رکعته دي، د حنفيه مذهب په مستدل کي ډير حديثونه روايت دي چي د حضرت علي رضي الله عنه، بي بي عائشې او ام حبيبې رضي الله عنهم څخه نقل دي.

امام ترمذي رحمة الله عليه د حنفيه مذهب په حق کي فرمايلي دي چي پر دغه مذهب باندي د صحابه کرامو وغيره څخه د اکثر اهل علم عمل دی او دا قول د سفيان ثوري، ابن مبارک او اسحاق رحمة الله عليهم هم دی، د امام شافعي او امام احمد قول هم د څلورو رکعتو په اړه منقول دی مګر داسي چي څلور رکعته په دوو سلامو سره وکړل سي.

د ابن عمر رضي الله عنه ددې ارشاد يوه توجيه دا هم کيدای سي چي رسول الله ﷺ د ماپښين څلور رکعته سنت په کور کي کول ځکه نو بيبيانو مبارکانو د څلور رکعته په باره کي ذکر وکړ، او کله چي به رسول الله ﷺ فرض لمونځ ورکولو لپاره مسجد ته تشريف راوړ نو هلته به يې تحية المسجد دوه رکعته کول ځکه د تحية المسجد دوه رکعته ابن عمر رضي الله عنه د ماپښين سنت ګڼلو سره وفرمايل چي ما د رسول الله ﷺ سره د ماپښين د فرض لمانځه څخه مخکي دوه رکعته سنت کړي دي.

ابن عمر رضي الله عنه دلته د ماپښين، ماښام او ماخستن د سنتو يادونه کړې ده، د سهار د سنتو يادونه يې نه ده کړې ددې وجه داده چي هغه د سهار په وخت کي د رسول الله ﷺ سره لمونځ نه کوی ځکه د سهار سنت يې خپله ذکر نه کړل بلکه د بي بي حفصې رضي الله عنها په روايت کي يې نقل کړل چي ددغه لمنځو سره د سهار سنت هم معلوم سي.

### د جمعې سنت

﴿۱۰۹۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يُصَلِّيْ بَعْدَ

الْجُمُعَةِ حَتَّى يَنْصَرِفَ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ فِيْ بَيْتِهِ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د جمعې د لمانځه وروسته هيڅ لمونځ نه کوی او کورته به ولاړی بيا چي کورته به داخل سو نو دوه رکعته به يې کول. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۲۵، رقم: ۹۳۸، ومسلم ۱\۵۰۴، رقم: ۱۰۴- ۷۲۹.

**تشريح**: ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي په دغه حديث کي د رکعتونو څخه مراد د جمعې سنت دی ، د يوه قول سره سم د امام شافعي رحمة الله عليه عمل پر دغه حديث دی چي د جمعې سنت د ماپښين د سنتو په ډول يعني دوه رکعته دي ، په نورو صحيح حديثو کي منقول دي چي رسول الله ﷺ د جمعې د لمانځه څخه مخکي هم او د جمعې د لمانځه وروسته هم څلور څلور رکعته سنت کول، د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه دا مذهب دی، په يو صحيح روايت کي د رسول الله ﷺ څخه د لمانځه وروسته شپږ رکعته سنت کول هم ثابت دي ځکه امام ابويوسف رحمة الله عليه فرمايي چي د جمعې د لمانځه وروسته شپږ رکعته سنت کول پکار دي .
څرنګه چي مخکي يو ځای ښودل سوي دي چي نفل لمنځونه په کورکي کول افضل دي ځکه نو رسول الله ﷺ به د جمعې څخه وروسته سنت په کورکي کول.

**د نبي کريم ﷺ د نفلونو شمير**

﴿۱۰۹۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَقِيقٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ

د حضرت عبدالله بن شقيق رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه د رسول الله ﷺ د نفل لمنځو په اړه پوښتنه وکړل،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ تَطَوُّعِهِ فَقَالَتْ كَانَ يُصَلِّي فِي بَيْتِي قَبْلَ الظُّهْرِ

هغې وويل: رسول الله ﷺ به زما په کورکي لمونځ کوی د ماپښين څخه مخکي

أَرْبَعًا ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ يُصَلِّي

څلور بيا به مسجد ته تلی او خلکو ته به يې لمونځ ورکوی بيا به کورته راغلی او دوه رکعته به يې کول او کله چي به يې لمونځ وکړ

بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَيُصَلِّي بِالنَّاسِ الْعِشَاءَ

د خلکو سره د ماښام تو بیا به يې کور ته تشريف راوړی او دوه رکعته به يې کول بیا به يې خلکو ته د ماخستن لمونځ ورکوی

وَيَدْخُلُ بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ فِيهِنَّ

او زما کور ته به راغلی دوه رکعته به يې کول او د شپې د تهجد لمونځ به يې نهه رکعته کوی چي په هغو کي به

الْوِتْرُ وَكَانَ يُصَلِّي لَيْلاً طَوِيلاً قَائِمًا وَلَيْلاً طَوِيلاً قَاعِدًا وَكَانَ إِذَا قَرَأَ وَهُوَ

وتر هم شامل وه او د شپې به يې تر ډيره وخته پوري په ولاړه او تر ډيره وخته پوري په ناسته لمونځ کوی او

قَائِمٌ رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَائِمٌ وَكَانَ إِذَا قَرَأَ قَاعِدًا رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَاعِدٌ

په ولاړه چي به يې لمونځ کوی نو رکوع او سجده به يې کول او که په ناسته به يې کوی نو رکوع او سجده به يې کوله

وَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ. رواه مسلم و زاد ابوداؤد ثم يخرج فيصلي بالناس صلوة الفجر.

او سهار چي به ځلانده سو نو دوه رکعته به يې کول، مسلم، ابوداؤد په دې روايت کي دا الفاظ زيات ليکلي دي: د سهار دوه رکعته چي به يې وکړله نو رسول الله ﷺ به مسجد ته تشريف وړی او خلکو ته به يې د سهار لمونځ ورکوی.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۵۰۴، رقم: ۱۰۵-۷۳۰ وابوداؤد: ۲\ ۴۳، رقم: ۱۲۵۰.

**تشريح**: دا حديث د دې خبري په صريحه دليل دی چي سنت په کور کي کول غوره دي، (فيهن الوتر) مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ د تهجد لمونځ ادا کړ نو د هغه سره به يې وتر هم درې رکعته يا يو رکعت کوی.

د شپې د رسول الله ﷺ د لمانځه په اړه مختلف روايتونه منقول دي چي کله به رسول الله ﷺ شپږ رکعته کول، کله اته، کله نهه، کله لس، کله يوولس او کله به يې دیارلس رکعته کول.

(ركع و سجد وهو قائم) د دې مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ د تهجد لمونځ په ولاړه کوی

نو د قيامت د حال څخه به رکوع او سجدې ته تلې داسي به نه وه چي قرآن کريم خو به يې په ولاړه وايه او رکوع او سجده به يې په ناسته کول ، همداسي چي رسول الله ﷺ به په ناسته لمونځ کوی نو رکوع او سجده به يې هم په ناسته کول ، مګر په دې صورت کي دا هم منقول دي چي رسول الله ﷺ به رکوع او سجدې ته په ولاړه تلې يعني قرائت به يې په ناسته وايه بيا به ودرېدی او په لږ قرائت ويلو سره به بيا رکوع او سجدې ته تلې .

په هر حال د ټولو حديثو په کتلو سره دا ويل پکار دي چي رسول الله ﷺ به د تهجد لمونځ درې ډوله کوی :

۱. ټول لمونځ به يې په ولاړه کوی .
۲. ټول لمونځ به يې په ناسته کوی .
۳. قرائت به يې په ناسته وايه او بيا به ولاړېدی او رکوع او سجدې ته به تلی .

د دې دريم صورت عکس يې نه فرمايه يعني داسي لمونځ يې نه کوی چي قرائت خو به يې په ولاړه وايه او بيا په کښېنستو سره رکوع او سجدې ته به تلی لکه څرنګه چي دا حديث د دې نفي کوي .

## د سهار د سنتو تاکيد

﴿۱۰۹۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى شَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ أَشَدَّ تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ . متفق عليه

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په نفلو لمنځو کي تر ټولو زيات پاملرنه د سهار د دوو سنتو کول . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۴۵، رقم: ۱۱۶۹. ومسلم: ۱\۵۰۱، رقم: ۹۴- ۷۲۴.

**تشريح** : مطلب دادی چي د سهار سنت دومره مهم او مؤکد دي چي رسول الله ﷺ په هيڅ حال کي هم که په سفر کي به وو او که په حضر کي دغه سنت به يې نه پرېښودل ، د سهار د سنتو د ارزښت او عظمت اندازه د دې څخه لګول کېدای سي چي فقهاؤ ليکلي دي چي پرته د يو عذر څخه د سهار سنت په ناسته کول صحيح نه دي .

## د سهار د سنتو فضيلت

﴿۱۰۹۶﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَا الْفَجْرِ

خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا . رواه مسلم .

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د سهار دوه رکعته سنت تر دنيا او ددنيا تر ټولو شيانو غوره دي .مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۵۰۱، رقم: ۹۶- ۷۲۵.

**تشريح** : د سهار سنتو ته پر دنيا او د دنيا پر شيانو فضيلت په دې صورت کي ورکړل سوی دی که د نيا او ددنيا شيان د الله تعالی په لار کي خرڅ کړل سي بيا هم د سهار سنت به غوره وي ځکه چي د دنيا په شيانو کي بخل کولو او هغه د الله تعالی په لار کي نه خرڅ کولو کي ښه والی کله دی چي د سهار سنت ته يې د هغه څخه افضل ويلي دي.

علماؤ ليکلي دي چي تر ټولو زيات مؤکد سنت د سهار دی د هغه څخه وروسته د ماښام سنت او د هغه څخه وروسته د ماپښين د فرض لمانځه څخه وروسته سنت او د هغه څخه وروسته د ماخستن د فرض لمانځه څخه وروسته سنت او بيا په ټولو آخر کي د ماپښين د فرض مخکي سنت .

## د ماښام دلمانځه څخه مخکي سنت

﴿۱۰۹۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

صَلُّوْا قَبْلَ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ كَرَاهِيَةَ أَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً . متفق عليه

د ماښام د فرضو څخه مخکي دوه رکعته کوئ درې ځله يې دا وفرمايل او دريم ځل يې دا هم وفرمايل چي څوک يې غواړي وه دي يې کړي او که څوک يې نه غواړي نه دي يې کوي، دا يې ځکه وفرمايل چي خلک دا رکعتونه سنت مؤکده ونه ګرځوي .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۹، رقم: ۱۱۸۳، ومسلم ۱\ ۵۷۳، رقم: ۳۰۴- ۸۳۸.

**تشريح** : دوه واره خو رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي د ماښام د فرض لمانځه څخه مخکي دوه رکعته نفل کوئ مګر بيا په دې ګڼلو سره چي خلک به دغه دوو رکعتو ته د سنت مؤکده درجه ورکړي (لمن شاء ) ويلو سره ددې خبري خبرتيا ورکړه چي دا دوه رکعته سنت نه دي بلکه ددې

درجه تر استحباب پوري ده که يو سړی دا وکړي نو ثواب به تر لاسه کړي او کوم سړی چي يې ونه کړي نو پر هغه به څه نيوکه نه وي.

د مابنام د فرض لمانځه مخکي دوه رکعته نفل لمونځ کولو په اړه مخکي ښودل سوي دي چي اکثر فقهاء ددې د کولو څخه منعه کوي، د باب فضل الاذان د حديث نمبر نهم د تشريح په ضمن کي ددې تفصيل بيان سوی دی او ددې باب په دريم فصل کي به هم ددې څه تفصيل وکړل سي.

**د جمعې د لمانځه وروسته سنت**

﴿۱۰۹۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا. رواه مسلم. وَفِيْ أُخْرٰى لَهُ قَالَ:

په تاسو کي د جمعې د لمانځه څخه وروسته لمونځ کول غواړي نو هغه ته پکار دي چي څلور رکعته وکړي، مسلم او په دوهم روايت کي دا الفاظ دي چي و يې فرمايل:

إِذَا صَلّٰى أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيُصَلِّ بَعْدَهَا أَرْبَعًا.

کوم څوک چي په تاسو کي د جمعې لمونځ کوي نو هغه ته پکار دي چي د جمعې د لمانځه څخه وروسته څلور رکعته وکړي.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۲/ ۶۰۰، رقم: ۶۹ – ۸۸۱.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

**د ماپښين د سنتو فضيلت**

﴿۱۰۹۹﴾: عَنْ أُمِّ حَبِيْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د بي بي حبيبې رضي الله عنها څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

مَنْ حَافَظَ عَلٰى أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَأَرْبَعٍ بَعْدَهَا حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ.

رواه احمد والترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجه.

كوم څوک چي د ماپښين د لمانځه مخكي او وروسته د څلورو ركعتو پابندي وكړي الله تعالى
به پر هغه د دوږخ اور حرام كړي . احمد، ترمذي ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٣٢٦، وابوداؤد: ٢\٥٢، رقم: ١٢٦٩. والترمذي ٢\٢٩٢، رقم: ٤٢٧
والنسائي ٣\٢٦٥، رقم: ١٨١٥. وابن ماجه ١\٣٦٧، رقم: ١١٦٠.

**تشريح**: د دې روايت څخه په ښکاره خو معلوميږئ چي د ماپښين څخه وروسته څلور ركعته لمونځ په يوه سلام سره وكړل سي، او په يو بل روايت كي منقول دي چي د ماپښين څخه وروسته څلور ركعته په دوو سلامو سره ادا كړل سي، په هر حال دلته دا بحث دى چي د ماپښين څخه وروسته دا څلور ركعته چي د هغه په اړه حديث ذكر كيږي ايا د سنت دوو ركعتو څخه پرته دي يا د سنت هغه دوه ركعته هم پكښي شامل دي، نو په ښكاره توگه سره دا معلوميږي چي دا څلور ركعته د سنت د هغه دوو ركعتو څخه پرته وي كوم چي د فرضو وروسته كيږي، مگر د ملا علي قاري رحمة الله عليه د الفاظو څخه معلوميږي چي په دغه څلورو ركعتو كي هغه دوه ركعته هم شامل دي هغه فرمايي چي په دغه څلورو ركعتو كي دوه ركعته سنت مؤكده دي او دوه ركعته مستحب او غوره داده چي دا څلور ركعته په دوه سلامو سره ادا كړل سي.

## د ماپښين د څلور ركعته سنتو فضيلت

﴿۱۱۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ لَيْسَ فِيْهِنَّ تَسْلِيْمٌ تُفْتَحُ لَهُنَّ أَبْوَابُ السَّمَاءِ . رواه أبو داود وابن ماجه.

څلور ركعته د ماپښين مخكي دى د هغه په منځ كي سلام نسته كوم څوک چي دا كوي د هغه لپاره د آسمان دروازې خلاصيږي. ابوداؤد. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داؤد ٢\٥٣، رقم: ١٢٧٠، وابن ماجه ١\٣٦٥، رقم: ١١٥٧.

**تشريح**: د ماپښين څخه مخكي كيدونكو څلور ركعتو فضيلت څرګند فرمايل كيږي چي كله هغه وكړل سي نو د هغه لپاره د آسمان دروازې خلاصيږي يعني هغه د الله تعالى دربار ته په رسيدو سره د قبوليت درجه تر لاسه كوي او د هغه په سبب د الله تعالى په رحمت سره نازول

کیږي ، د دغه څلور رکعتو په اړه هم اختلاف دی چي ایا ددې څخه مراد هغه سنت دي چي د ماپښین د فرضو څخه مخکي ادا کیږي یا ددې څخه پرته نور دي چي هغه ته لمونځ في الزوال وایي، مختار قول دادی چي دا غیر رواتب یعني د ماپښین د فرضو څخه مخکي د سنت مؤکده څخه پرته د لمونځ في الزوال څلور رکعته دي .

## د زوال وروسته دلمانځه کولو فضیلت

﴿۱۱۰۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ السَّائِبِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن سائب ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به

يُصَلِّي أَرْبَعًا بَعْدَ أَنْ تَزُولَ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ وَقَالَ إِنَّهَا سَاعَةٌ تُفْتَحُ فِيهَا

د زوال څخه وروسته او د ماپښین څخه مخکي څلور رکعته کول او فرمایل یې دا هغه وخت دی چي خلاصیږي په دغه وخت کي

أَبْوَابُ السَّمَاءِ فَأُحِبُّ أَنْ يَصْعَدَ لِي فِيهَا عَمَلٌ صَالِحٌ . رواه الترمذي

د آسمان دروازې او زه غواړم چي زما صالح عمل آسمان ته ولاړسي . ترمذي

**تخریج:** سنن الترمذي ۲\۳۴۲-۳۴۳، رقم: ۴۷۸

**تشریح :** د دې حدیث څخه معلومیږي چي د لمر زوال کېدو وروسته وخت د قبولیت وي دا وخت چي کوم نیک عمل وکړل سي هغه د الله تعالی په دربار کي د قبولیت درجه تر لاسه کوي او څرګنده ده چي په ټولو اعمالو کي لمونځ تر ټولو افضل دی ځکه دا وخت به لمونځ کول افضل وي .

## د ماز دیګر سنت

﴿۱۱۰۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِمَ اللّٰهُ امْرَءًا صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا . رواه أحمد والترمذي .

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : پر هغه سړي دې الله ﷻ رحمت نازل کړي چي د ماز دیګر څخه مخکي څلور رکعته وکړي. احمد او ترمذي

**تخریج:** الامام احمد في مسنده ۲\۱۱۷، والترمذي ۲\۲۹۵، ۲۹۶، رقم: ۴۳۰.

**تشریح** : د مازدیگر سنت مؤکده نه دي په دې حدیث کي رحمٰ الله په ویلو سره دې ته اشاره فرمایل سوې ده چي د مازدیگر څخه مخکي کیدونکي څلور رکعته مستحب لمونځ دی.

**د مازدیگر سنت دوه رکعته دي که څلور ؟**

﴿۱۱۰۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ

د حضرت علي ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به لمونځ کوی د مازدیگر دلمانځه مخکي

أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُؤْمِنِينَ. رواه الترمذي

څلور رکعته لمونځ کوی چي د هغه په منځ کي به یې پر مقربو ملائکو ، مؤمنانو او مسلمانانو کوم خلک چي د رسول الله ﷺ تابع دي سلام لیږی یعني التحیات به یې ویل. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۲\ ۲۹۴، رقم: ۴۲۹.

**تشریح** : دلته د تسلیم (سلام لیږلو) څخه مراد التحیات ویل دي یعني رسول الله ﷺ به د دوو رکعتو وروسته التحیات ویل او بیا به یې د څلور رکعتو څخه وروسته سلام ګرځوی.

﴿۱۱۰۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ. رواه أبو داود.

د حضرت علي ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د مازدیگر تر لمانځه مخکي دوه رکعته کول. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۵۴، رقم: ۱۲۷۲.

**تشریح** : د مازدیگر د سنتو په اړه ډیر روایتونه منقول دي د ځینو څخه معلومیږي چي رسول الله ﷺ به د مازدیگر څخه مخکي دوه رکعته سنت کول او په ځینو روایتونو کي د څلور رکعتو ثبوت تر لاسه کیږي ، علماء لیکي چي لمونځ کونکي ته اختیار دی چي دوه رکعته کوي او که څلور رکعته مګر افضل څلور رکعته کول دي .

## د صلوة اوابين فضيلت

﴿۱۱۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ځوک چي لمونځ وکړي

بَعْدَ الْمَغْرِبِ سِتَّ رَكَعَاتٍ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيمَا بَيْنَهُنَّ بِسُوءٍ عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ

د ماښام څخه وروسته شپږ ركعته او د هغه په منځ كي يو بده خبره د ژبي څخه ونه باسي

ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب لا نعرفه الا من حديث عمر ابن ابي خثعم وسمعت محمد ابن اسماعيل يقول هو منكر الحديث و ضعفه جدا.

هغه ته د دولس كالو د عبادت ثواب وركول كيږي (ترمذي) ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى، موږ دا حديث د عمر بن ابي خثعم په سند سره پيژنو ما د محمد بن اسماعيل بخاري څخه واوريدل چي عمربن ابي خثعم منكر الحديث دى ، دې حديث ته بخاري ډير ضعيف ويلي دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۲۹۸، ۲۹۹، رقم: ۴۳۵.

**تشريح**: د ماښام د لمانځه څخه وروسته شپږ ركعته نفل لمونځ په درو سلامو سره كيږي دغه لمانځه ته صلوة اوابين وايي، دا لمونځ سنت دى او ددې لمانځه نوم د ابن عباس رضي الله عنه څخه منقول دى، ددغه لمانځه ډير زيات فضيلت دى لكه څرنګه چي ددغه حديث څخه معلوميږي، د حديث څخه په ځرګنده دا مفهوم اخيستل كيږي چي د ماښام څخه وروسته كوم دوه ركعتونه چي معمولي سنت ادا كيږي هغه هم په دغه شپږ ركعتو كي شامل دي، په راتلونكي حديث كي چي د صلوة اوابين څلير ويشت ركعته ذكر كيږي په هغه كي هم دا دواړه ركعته شامل دي.

علامه يحيى رحمة الله عليه فرمايلي دي چي مخكي دوه ركعته سنت دي بيل وكړل سي ددې وروسته اختيار دى كه څلور ركعته وكړي يا دوه ركعته وكړي، دا حديث كه څه هم امام ترمذي وغيره ضعيف ګرځولى دى مګر د اعمالو په اړه په ضعيف حديث باندي عمل كول هم جائز دي، او بيا ددې څخه پرته دا حديث ابن حزيمه رحمة الله عليه په خپل صحيح كي او ابن ماجه هم نقل كړى دى او د ميرک رحمة الله عليه قول دى چي د عمار ابن ياسر رضي الله عنه په اړه منقول دي چي هغه به د ماښام

څخه وروسته شپږ رکعته کول او هغه فرمايلي دي چي ما خپل محبوب رسول الله ﷺ ليدلی دی چي د ماښام څخه وروسته به يې شپږ رکعته کول او فرمايل به يې کوم سړی چي د ماښام څخه وروسته شپږ رکعته کوي د هغه ګناه بخښل کيږي که څه هم هغه د درياب د ځګ په اندازه وي. طبراني.

د شيخ مولانا شاه اسحاق محدث دهلوي رحمة الله عليه قول دی چي زموږ تحقيق دادی چي په دغه حديث کي چي د صلوة اوابين شپږ رکعته ذکر سوي دي يا دا ډول مخته چي په کوم حديث کي د څليرويشت رکعتو ذکر کيږي دا دواړه شمير د ماښام څخه وروسته سنت مؤکده دوو رکعتو څخه پرته دي.

## د صلوة اوابين زيات شمير شل رکعته دی

﴿۱۱۰۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ. رواه الترمذي.

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د ماښام دلمانځه وروسته شل رکعته وکړي نو د هغه لپاره الله تعالی په جنت کي کور جوړوي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۲۹۹، رقم: ۴۳۵.

**تشريح**: که څه هم محدثينو دا حديث ضعيف ګرځولی دی مګر علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي په دې باره کي يو حديث بل هم منقول دی چي نبي کريم ﷺ به دا لمونځ شل رکعته کوی او فرمايل به يې چي دا صلوة اوابين دی نو کوم سړی چي دا لمونځ وکړي نو پوه سئ چي د هغه بخښنه وسول، اکثر علماء سلف او صلحاء امت به دا لمونځ کول خپل سعادت او خوشبختي ګڼل او دا به يې کوی، د علماؤ يو ډله وايي چي د صلوة اوابين د رکعتو په شمير کي مختلف حديثونه نقل دي يو حديث خو تر دې مخکي تير سوی دی چي په هغه کي د شپږ رکعتو ذکر سوی دی، يو حديث دادی چي په دې کي د شلو رکعتو ذکر دی نو دغه ټولو حديثونو ته په کتلو سره به دا وويل سي چي صلوة اوابين کم تر کمه دوه رکعته دی او زيات يې شل رکعته، کوم سړی چي د دوو رکعتو څخه تر شلو پوري څومره زيات کوي د هغه په حق کي به هغومره غوره والی او خير وي.

## د ماخستن سنت

﴿۱۱۰۷﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ مَا صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ قَطُّ فَدَخَلَ عَلَيَّ إِلاَّ صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ أَوْ سِتَّ رَكَعَاتٍ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ماخستن د لمانځه وروسته تل ما ته راتلی او څلور يا شپږ رکعته به یې کول . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۱، رقم: ۱۳۰۳.

**تشريح** : د ماخستن څخه وروسته د سنتو په اړه چي څو مره مشهور روايتونه منقول دي په هغو كي يا خو دوه رکعته کول منقول دي او يا څلور رکعته ، یوازي یو داسي حديث دی چي په هغه كي شپږ رکعته ذکر کيږي ، په کومو حديثو کي چي څلور رکعته کول معلوميږي د هغه څخه منجمله يو حديث دا هم دی چي سعيد ابن منصور په خپل مسند کي نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم سړی چي د ماخستن څخه مخكي څلور رکعته لمونځ وکړي نو ګويا هغه په ليلة القدر کي څلور رکعته وکړل .

په هر حال ددې روايت وضاحت دادی چي رسول الله ﷺ به د ماخستن څخه وروسته کوم څلور رکعته کول نو په هغه کي به دوه رکعته سنت مؤكده وه او دوه رکعته مستحب ، البته په (او ست رکعات) کي حرف د او دوه احتماله لري يا خو دا د شك لپاره دی يا د تنويع لپاره دی .

## ادبار النجوم او ادبار السجود

﴿۱۱۰۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِدْبَارَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د ادبار

النُّجُوْمِ الرَّكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ وَإِدْبَارَ السُّجُوْدِ الرَّكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ .

رواه الترمذي .

النجوم) څخه د سهار د لمانځه مخكي دوه رکعته مراد دي او د ادبار السجود څخه د ماښام د لمانځه وروسته دوه رکعته مراد دي . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۳۶۶، رقم: ۳۲۷۵.

**تشریح** : د قرآن کریم په سورة طور کي دا آیت دی :

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ

ژباړه : هر کله چي ته پورته کیږې نو د خپل پروردګار په تعریف سره د هغه پاکي بیانوه او د شپې په ځینو وختونو کي هم او د ستورو د ډوبیدو په وخت کي هم د هغه پاکي بیانوه .

د دې آیت په اړه رسول الله ﷺ وفرمایل : ادبار النجوم یعني د ستورو د ډوبیدو وخت د پروردګار د پاکۍ بیانولو څخه د سهار سنت کول مراد دي چي هغه د ستورو د ډوبیدو په وخت یعني د صبح صادق څخه وروسته کول کیږي .

همدا رنګه د قرآن کریم په سورة ق کي دا آیت دی :

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ . وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ

ژباړه : او د لمر ختلو څخه مخکي او د لمر لوېدو څخه مخکي د خپل پروردګار په تعریف سره د هغه پاکي بیانوه او د شپې په ځینو وختونو کي هم او د د سجدې څخه وروسته هم د هغه پاکي بیانوه .

د حدیث په دوهمه برخه کي رسول الله ﷺ د دې آیت په اړه وفرمایل چي د دغه سجدې څخه مراد د ماښام درې رکعته فرض دي او ادبار السجود یعني د سجدې څخه وروسته پاکي بیانولو څخه د ماښام د فرضو څخه وروسته دوه رکعته سنت کول مراد دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ماپښین څخه مخکي د څلورو رکعتو لمونځ ثواب

﴿۱۱۰۹﴾ : عَنْ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَرْبَعٌ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې:

رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ بَعْدَ الزَّوَالِ تُحْسَبُ بِمِثْلِهِنَّ فِي صَلَاةِ السَّحَرِ وَمَا مِنْ

د ماپښین څخه مخکي او د زوال څخه وروسته څلور رکعته دي چي د تهجد په حساب کي شمیرل کیږي او هیڅ شی داسې نسته

شَيْءٍ إِلَّا وَيُسَبِّحُ اللَّهَ تِلْكَ السَّاعَةَ ثُمَّ قَرَأَ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ

چي په دې وخت کي د الله تعالی تسبیح نه کوي بیا رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ: (د هر شي سایه راسته لوري ته او چپه لوري ته

سُجَّدًا لِلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ. رواه الترمذي والبيهقي في شعب الايمان.

د الله ﷻ لپاره سجده کوونکي ګرځي او هغه ذليل وي). ترمذي او بيهقي.

**تخریج:** سنن الترمذي ۵\ ۲۷۹، رقم: ۳۱۲۸. البيهقي في شعب الايمان ۲\ ۱۲۲، رقم: ۳۰۷۲.

**تشریح:** رسول الله ﷺ د دغه وخت د لمانځه کولو د ترغيب لپاره او د خپل ارشاد د دليل په توګه دا آيت تلاوت کړ، په آيت کي د سجدې څخه مراد تابعداري ده که هغه تبعا وي يا اختيارا، او الله تعالی چي مخلوقاتو ته کوم شی د کوم مقصد لپاره پيدا کړی دی ددې مقصد تکمل په حقيقت کي د پروردګار تابعداري ده.

## د مازديګر وروسته دوه رکعته

﴿۱۱۱۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ

د حضرت عائشي ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ نه دي پرې ايښي دوه رکعته لمونځ

بَعْدَ الْعَصْرِ عِنْدِيْ قَطُّ. متفق عليه وفي رواية للبخاري قالت والذي ذهب به ما تركهما حتى لقي الله.

د مازديګر وروسته زما په کور کي. بخاري او مسلم، د بخاري په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي بي بي عائشې وويل په هغه ذات دي مي قسم وي چي د رسول الله ﷺ روح يې قبض کړه رسول الله ﷺ تر وفات پوري دا دوه رکعته نه وه پرې ايښي.

**تخریج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۶۴، رقم: ۵۹۱، ومسلم ۱\ ۵۷۲، رقم: ۲۹۹،

**تشریح:** په تيرو مخونو کي يو ځای د مازديګر د لمانځه څخه وروسته د لمانځه کولو په اړه ښودل سوي دي چي دا دوه رکعته کول د رسول الله ﷺ ځانګړتيا وه او دا يوازي د رسول الله ﷺ لپاره جائز وه نورو خلکو ته د مازديګر څخه وروسته نفل لمونځ کول جائز نه دي ځکه چي ددې په مخالفت کي ډير حديثونه منقول دي.

## د لمر لوېدو وروسته او د ماښام دلمانځه مخکې د نفل لمونځ کولو مسئله

﴿۱۱۱۱﴾: وَعَنْ مُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ التَّطَوُّعِ بَعْدَ

د حضرت مختار بن فلفل رضي الله عنه څخه روايت دی چې ما د انس بن مالک رضي الله عنه څخه د مازديګر وروسته د نفلو په اړه پوښتنه وکړه

الْعَصْرِ فَقَالَ كَانَ عُمَرُ يَضْرِبُ الْأَيْدِي عَلَى صَلَاةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ وَكُنَّا نُصَلِّي

هغه وويل، چې حضرت عمر به د هغه سړي لاسونه وهل چې د مازديګر څخه وروسته به يې لمونځ کوی (يعني منعه کول به يې) حال دا چې موږ به لمونځ کوی .

عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ قَبْلَ

د رسول الله ﷺ په زمانه کې د لمر لوېدو پر وخت د ماښام څخه مخکې دوه رکعته نفل ،

صَلَاةِ الْمَغْرِبِ فَقُلْتُ لَهُ أَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِمَا قَالَ

بيا ما د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه ايا رسول الله ﷺ به د ماز ديګر څخه وروسته دوه رکعته نفل کول هغه وويل :

كَانَ يَرَانَا نُصَلِّيهِمَا فَلَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا. رواه مسلم

موږ به رسول الله ﷺ پر دوه رکعته لمونځ کولو ليدی خو نه به رسول الله ﷺ د دې حکم ورکوی او نه به يې منعه فرمايل . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۵۷۳، رقم: ۳۰۲- ۸۳۷.

**تشريح** : د حضرت انس رضي الله عنه د قول څخه چې نه خو به يې موږ ته حکم راکوی او نه به يې منعه کول د رسول الله ﷺ تقرير ثابت کړ، يعني رسول الله ﷺ به هغه وخت لمونځ کول صحيح ګڼل که چيرې د رسول الله ﷺ په نزد هغه وخت لمونځ کول مکروه وای نو رسول الله ﷺ به د هغه څخه خامخا منعه فرمايلې وای ، مګر د خلفاء راشدينو په اړه ثابته وه چې هغو به هغه وخت لمونځ کول صحيح نه ګڼل ، نو په دې اړه د خلفاء راشدينو اقتداء کافي ده دا وجه ده چې اکثر فقهاء دا وخت لمونځ کولو څخه منعه کړې ده ځکه په دې سره د ماښام په لمانځه کې زنډ لازميږي .

﴿۱۱۱۲﴾: وَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا بِالْمَدِينَةِ فَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ لِصَلاَةِ

د حضرت انس بن مالک، ﷛ څخه روایت دی چي موږ په مدینه کي وو کله چي به مؤذن آذان کوی لپاره د لمانځه

الْمَغْرِبِ ابْتَدَرُوا السَّوَارِيَ فَيَرْكَعُونَ رَكْعَتَيْنِ حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ الْغَرِيبَ

د ماښام نو خلک به د ستنو په لور غزېدل او دوه رکعته به يې هلته کول تر دې چي يو پردی سړی به راغلی

لَيَدْخُلُ الْمَسْجِدَ فَيَحْسِبُ أَنَّ الصَّلاَةَ قَدْ صُلِّيَتْ مِنْ كَثْرَةِ مَنْ يُصَلِّيهِمَا .

رواه مسلم

نو داخيال به يې کوی چي شايد لمونځ د ماښام سوی دی ځکه چي د دې دوو رکعتو کونکي به ډير خلک وه. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۵۷۳، رقم: ۳۰۳-۸۳۷.

**تشريح**: علامه طيبي شافعي ﷫ فرمايي د لمر لوېدو څخه وروسته او د ماښام د لمانځه مخکي دوه رکعته لمونځ په اثبات کي دا حديث ظاهري دليل دی ، په دې اړه د ملاعلي قاري حنفي رحمة الله عليه د قول مفهوم دادی چي دا حديث په دې وجه د دې دوو رکعتو د اثبات دليل نسي کيدای چي د دې طريقې نادر کېدو کي هيڅ شک نسته ځکه چي رسول اللهﷺ به د ماښام د لمانځه په ادا کولو کي تلوار کوی نو کله چي د دې دوو رکعته په کولو سره نه يوازي دا چي د ماښام په ادا کولو کي زنډ لازميږي بلکه د ځينو علماؤ د قول سره سم خو د لمانځه د خپل وخت څخه خروج لازميږي ، نو د دې حديث تاويل يا خو به دا کيږي چي حضرت انس ﷛ دا د هميشه طريقه نه نقل کوي بلکه کيدای سي چي يوه ورځ ځينو خلکو دا طريقه اختيار کړې وي چي د ماښام د آذان په اورېدو سره مسجد ته راغلي وي او هلته د ماښام د لمانځه څخه مخکي دوه رکعته نفل يې کړي وي يا د دې تر ټولو غوره تاويل څرنګه چي د ځينو علماؤ خيال دادی چي مخکي به دا لمونځ کيدی مګر وروسته پرېښودل سو اوس د دې لمونځ کول مکروه دي .

﴿۱۱۱۳﴾: وَعَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ أَتَيْتُ عُقْبَةَ الْجُهَنِيّ فَقُلْتُ أَلاَ أُعَجِّبُكَ

د حضرت مرثد بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه عقبه جهني رضي الله عنه ته ورغلم او ورته وه مي ويل ايا ته په تعجب نه کوري

مِنْ أَبِي تَمِيمٍ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ فَقَالَ عُقْبَةُ إِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ

د ابوتميم دې کار ته چي هغه د ماښام څخه مخکي دوه رکعته کوي ؟ عقبه رضي الله عنه وويل: موږ به هم دا سي کول

عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ فَمَا يَمْنَعُكَ الْآنَ ؟ قَالَ الشُّغْلُ . رواه البخاري .

د رسول الله ﷺ په زمانه کي عقبه وويل بيا تاسو يې ولي نه کوئ، هغه وويل د دنيا د بوختيا له کبله . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۵۹، رقم: ۱۱۸۴.

**تشريح**: د دې حديث څخه دا خبره ثابته سوه چي دا لمونځ سنت نه دی بلکه مباح دی ، ځکه که چيري مسنون وای نو عقبه رضي الله عنه چي د صحابيت په ستره مرتبه فائز وو د دنيا بوختيا به د سنت په ادا کولو يعني د دغه لمونځ په کولو به يې منعه نه کول .

## نفل په کور کي کول

﴿۱۱۱۴﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى مَسْجِدَ

د حضرت کعب بن عجرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي (يو ځل) رسول الله ﷺ راغلی مسجد ته

بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ فَصَلَّى فِيْهِ الْمَغْرِبَ فَلَمَّا قَضَوْا صَلاَتَهُمْ رَآهُمْ يُسَبِّحُوْنَ

د بنو عبدالاشهل او هلته يې د ماښام لمونځ وکړ خلکو چي لمونځ وکړ نو رسول الله ﷺ وليدل چي هغوی نفل کوي ،

بَعْدَهَا فَقَالَ هٰذِهِ صَلاَةُ الْبُيُوْتِ . رواه أبو داود وفي رواية الترمذي والنسائي قام ناس يتنفلون فقال النبي صلى الله عليه وسلم عليكم بهذه الصلاة في البيوت .

وروسته تر لمانځه، رسول الله ﷺ وفرمايل دا لمونځ (يعني نفل) په کورو کي کوئ (ابوداؤد) د ترمذي او نسائي په يوه روايت کي دا الفاظ چي خلک ودريدل او نفل يې کول نو نبي کريم

ﷺ وفرمایل : پر تاسو لازمه ده چي دا لمونځ په کور کي وکړئ.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۶۹، رقم: ۱۳۰۰ والترمذي ۲\۵۰۰، رقم: ۶۰۴. والنسائي: ۳\۱۹۹-۲۰۰، رقم: ۱۵۹۹.

**تشریح**: د حدیث خلاصه داده چي نفل لمونځ که سنت مؤکده وي یا غیر مؤکده په کور کي کول افضل دي ځکه چي نه یوازي دا چي په کور کي نفل لمونځ کونکی د ریا او ځان ښوونې څخه لیري او اخلاص او صدق ته نژدې وي بلکه په دې سره په کورو کي د رحمت او برکت نزول کیږي.

او کوم چي د مسئلې تعلق دی نو د ټولو علماؤ په نزد په اتفاق سره په مسجد کي نفل کول مکروه نه دي په مسجد او کور کي د کولو یوازي د افضیلت او غیر افضیلت فرق دی، مګر په دې خبره پوه سئ چي په کورو کي د نفل لمونځ کولو دا حکم هغه خلکو لپاره دی چي د فرض لمونځ د ادا کولو وروسته کور ته ځي لکه په مسجد کي دننه اعتکاف کي ناست خلک نو د هغوی دي په مسجد کي نفل لمونځ هم کوي.

په هر حال د فرض لمونځ څخه پرته نفل لمونځ په کور کي افضل دي، د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي فرض لمونځ به یې په مسجد کي وکړ نو بیا به یې خپل حجرې مبارکي ته تشریف وړی او هلته به یې نفل کول، مګر د یو خاص عذر او سبب خبره خو بیله ده نو په هغه وخت کي نفل هم په مسجد کي کول بیا هم د ماښام سنت به یې په خاصه توګه سره په کور کي کول او اکثر به یې په کور کي کول دا وجه ده چي د ماښام د سنتو په باره کي ځیني علماء وایي که یو سړی د ماښام سنت لمونځ په مسجد کي وکړي نو سنت نه ادا کیږي بلکه ځیني علماء خو تر دې پوري وایي چي د ماښام سنت په مسجد کي کونکی ګناه کار کیږي مګر د جمهورو علماؤ رایه داده چي ګناه کار کیږي خو نه ځکه چي هغوی ته په کور کي د ادا کولو حکم امر وجوبي نه دی بلکه امر استحبابي دی، د هدایې په تشریح کي د جامع صغیر څخه منقول دي که یو سړی د ماښام لمونځ په مسجد کي وکړي او د هغه سره دا بیره وي چي کور ته ولاړ سم نو د یو بوختیا په وجه به سنت هلته ونه کړلای سم نو هغه ته پکار ده چي د ماښام سنت هم د مسجد په غولي کي وکړي او که کور ته په رسیدو سره په یو کار کي د بوختیا بیره نه وي نو غوره دا دی چي په کور کي سنت وکړل سي.

## د ماښام په سنتو کي اوږد قرائت

﴿۱۱۱۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطِيْلُ الْقِرَاءَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ حَتّٰى يَتَفَرَّقَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ. رواه أبو داود

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ماښام وروسته په دوو رکعتو (نفل) کي اوږد قرائت وايه تر دي چي د مسجد څخه به خلک ولاړل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۰، رقم: ۱۳۰۱.

**تشريح**: د دې حديث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د ماښام سنت په مسجد کي کول نو په دې اړه څو احتماله دي اول خو دا چي رسول الله ﷺ ته به يو داسي واقعه پېښه سوې وه چي د هغه په وجه حجرې مبارکي ته به يې تشريف نه سو وړلای ځکه نو سنت به يې په مسجد کي کړي وي.

دوهم دا چي رسول الله ﷺ به د ماښام سنت په مسجد کي د بيان جواز لپاره کړي وي چي خلکو ته معلومه سي چي په مسجد کي سنت کول هم جائز دي او دا احتمال قوي دی.

دريم دا چي رسول الله ﷺ به هغه وخت په اعتکاف کي وو ځکه د سنت کولو لپاره حجرې مبارکي ته نه ولاړی.

څلورم احتمال دا دی چي رسول الله ﷺ سنت په مسجد کي کړي نه وي بلکه په خپل حجره مبارکه کي يې کړي وي چي د مسجد سره بالکل پيوسته وه او د هغه دروازه هم مسجد ته وه، ابن عباس رضي الله عنهما به تر مخه رسول الله ﷺ په لمونځ کولو ليدلی وي او هغه به يې دلته بيان کړی وي، او کوم چي د حديث د دې جز تعلق دی نو د دې څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ د ماښام په سنتو کي اوږد قرائت وايه، نو د دې په باره کي هم ظاهري احتمال دا دی چي رسول الله ﷺ يو ورځ دومره اوږد قرائت ويلی وي کنه د ماښام په سنتو کي به رسول الله ﷺ اکثر کوچني سورتونه ويل او دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ به د ماښام په سنتو کي قل يا ايها الکافرون او قل هو الله احد ويل.

## د ماښام وروسته د نفل کولو فضيلت

﴿۱۱۱۶﴾: وَعَنْ مَكْحُولٍ يَبْلُغُ بِهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

حضرت مکحول (تابعي) دا روايت رسول الله ﷺ ته رسوي او وايي چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي څوک چي

صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ قَبْلَ أَنْ يَتَكَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ وفي رواية أَرْبَعَ رَكْعَاتٍ رُفِعَتْ صَلَاتُهُ فِيْ عِلِّيِّيْنَ. مرسلا.

د مابنام وروسته دوه رکعته وکړي، په یوه روایت کي څلور رکعته دي او د مابنام لمونځ او ددې رکعتو په منځ کي دنیاوي خبره ونه کړي نو د هغه دا لمونځ علیین ته رسیږي . رزین.

**تخریج:** رواه رزین.

**تشریح:** د دوو رکعتو څخه سنت هم مراد کیدای سي او ددې څخه پرته هم داسي څلور رکعتو کي دوه رکعته سنت او دوه رکعته د هغه څخه پرته یا څلور سره د سنت څخه پرته مراد کیدای سي.

په هر حال دا دواړه رکعته یا څلور رکعته چي د سنت څخه پرته دي صلوة اوابین ورته ویل کیږي ددې لمانځه فضیلت ددې څخه مخکي هم نقل سوی دی دلته هم د هغه فضیلت او عظمت بیانیږي چي ددې نفل لمونځ کونکي سړي دا لمونځ یا ددغه لمانځه سره د هغه فرض هم مقام علیین ته رسولای سي یعني د هغه لمنځونه د قبولیت درجې ته رسوي او هغه سړی بي پناه اجر او ثواب سره نازول کیږي .

## علیین څه شي دی ؟

په اوو آسمان کي د یو ځای نوم علیین دی هلته د مؤمنانو روحونه رسول کیږي او هلته د هغوی اعمال لیکل کیږي .

﴿۱۱۱۷﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ نَحْوَهُ وَزَادَ فَكَانَ يَقُولُ عَجِّلُوا الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فَإِنَّهُمَا تُرْفَعَانِ مَعَ الْمَكْتُوبَةِ. رَوَاهُمَا رَزِيْنٌ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ الزِّيَادَةَ عَنْهُ نَحْوَهَا فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.

حذیفه هم دا ډول روایت کوي او د هغه په روایت کي دا الفاظ زیات دي چي رسول الله ﷺ به فرمایل: د مابنام وروسته دوه رکعته ژر کوئ ځکه چي هغه د فرض لمانځه سره پورته کیږي . رزین .

**تخریج:** البیهقي في شعب الایمان ۳\۱۲۱– ۱۲۲، رقم: ۳۰۶۸.

**تشریح:** مطلب دادی چي دا دواړه رکعتونه د فرض لمانځه سره مقام علیین ته رسول کیږي ځکه دغه د فرض لمانځه څخه وروسته په زیات زنډ سره مه کوئ چي هغه ملائکي چي اعمال علیین ته رسوي په انتظار وي او ظاهره ده چي هغه اوراد او اذکار چي د فرضو څخه وروسته ژر کول ثابت دي په دغه دوو رکعتو پسي ویل یا داسي ویل پکار دي چي هغه اوراد او اذکار د دغه دوو رکعت څخه وروسته ویل بعدیت (یعني د حدیث د دغه حکم چي فرض لمونځ څخه

وروسته اوراد او اذكار ويل كيږي) منافي نه دي ، دا خبره په نور وضاحت سره دا ښودل كيږي
چي په مخكني باب كي الذكر بعد الصلوة كي هغه حديثونه تير سوي دي چي د هغو څخه
ثابتيږي چي د فرض لمانځه وروسته سمدستي وروسته اوراد او اذكار وويل سي نو اوس كه دا
اوراد او اذكار د فرض لمانځه وروسته سمدستي د ويلو پر ځاى ددې حديث د فضيلت سره سم
نظر دوه ركعته سنتو څخه وروسته وويل سي نو ددې حديثو څخه ثابت سوى تعجيل او بعديت
خلاف به نه وي مگر د دې خبري څخه پرته دلته يو بل اشكار وارد كيږي هغه دا چي دا دواړه
ركعته په كور كي د كولو فضيلت هم د حديثو څخه ثابت دى هو كه يو سړى دا دواړه ركعته په
كور كي كوي او د هغه كور هم د مسجد څخه ليري وي نو ظاهره ده چي ددې حديث سرم سم
ددې دواړو ركعتو كولو كي تلوار نسي كيداى نو په دې صورت كي څه كول پكار دي ، ايا ددې
حديثو سره سم دا دواړه ركعتونه په كور كي وكړل سي چي په كور كي د كولو فضيلت تر لاسه
سي يا ددې حديث سره سم په مسجد كي وكړل سي چي ددې د ژر كولو فضيلت تر لاسه سي، په
دې اړه علماء ليكي چي د نوافل لمونځ په كور كي د كولو فضيلت ډير زيات دى بيا دا چي ددې
تاكيد هم زيات سوى دى ځكه نو مناسب داده چي سنت په كور كي وكړل سي . والله اعلم .

## د فرض او نفل په مينځ كي فرق كول پكار دى

﴿١١١٨﴾: وَعَنْ عُمَرُ بْنُ عَطَاءٍ قَالَ أَنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرٍ أَرْسَلَهُ إِلَى السَّائِبِ

د حضرت عمرو بن عطاء څخه روايت دى چي نافع بن جبير هغه سائب رضي الله عنه ته وليږى

يَسْأَلُهُ عَنْ شَيْءٍ رَآهُ مِنْهُ مُعَاوِيَةُ فِي الصَّلاَةِ فَقَالَ نَعَمْ صَلَّيْتُ مَعَهُ الْجُمُعَةَ

چي دا ځيني معلومه كړي چي معاويه د هغه د لمانځه په اړه څه ليدلي دي؟ حضرت سائب په جواب كي وويل ما د معاويه سره د جمعې لمونځ وكړ

فِي الْمَقْصُورَةِ فَلَمَّا سَلَّمَ الإِمَامُ قُمْتُ فِي مَقَامِي فَصَلَّيْتُ فَلَمَّا دَخَلَ أَرْسَلَ

په مقصوره كي كله چي امام سلام وګرځوى نو زه پر خپل ځاى ودريدم او لمونځ مي وكړ (يعني د جمعې سنت) ددې وروسته چي معاويه كور ته ورسيدى

إِلَيَّ فَقَالَ لاَ تَعُدْ لِمَا فَعَلْتَ إِذَا صَلَّيْتَ الْجُمُعَةَ فَلاَ تَصِلْهَا بِصَلاَةٍ حَتَّى تَكَلَّمَ

نو زه يې راوغوښتلم او وه يې ويل كوم كار چي تا نن وكړ هغه بيا مه كوه (يعني د فرضو وروسته

سمد ستي سنت کول) هر کله چي ته د جمعې لمونځ وکړې نو تر هغه وخته پوري بل لمونځ مه کوه تر څو پوري چي د يوچا سره خبري ونه کړې

أَوْ تَخْرُجَ فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنَا بِذَلِكَ أَنْ لاَ تُوصَلَ

يا د هغه ځای څخه بل ځای ته ولاړ نه سې ځکه چي رسول الله ﷺ موږ ته دا حکم کړی دی چي موږ يو ځای نه کړو

صَلاَةٌ بِصَلاَةٍ حَتَّى نَتَكَلَّمَ أَوْ نَخْرُجَ . رواه مسلم

يو لمونځ د بل سره تر څو پوري چي په منځ کي خبره ونه کړو . يا د مسجد څخه ونه وزو . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۰۱، رقم: ۷۳- ۸۸۳.

**تشريح** : په تيره زمانه کي چي کله به پاچاهان او اميران د لمانځه کولو لپاره راتلل نو د هغوی د امتيازي حيثيت سره سم د هغوی لپاره به په مسجد کي دننه يو خاص ځای جوړيدی چي هغه ته به مقصوره ويل کيدل، پاچا يا خليفه به په د مسجد په هغه ځای کي لمونځ کوی.

د حديث الفاظ (اذا صليت جمعة) کي د جمعې قيد اتفاقي او د مثال په توګه دی ځه چي د جمعې څخه پرته هم د ټولو لمنځو دا حکم دی چي د فرضو سره دي نوافل لمونځ يو ځای کولو سره نه کيږي ددې تائيد د امير معاويه ؓ روايت سوی حديث هم کوي چي په هغه کي د يو خاص لمانځه په اړه نه دي فرمايل سوي بلکه د هر لمانځه په اړه دا حکم ورکړل سوی دی چي کله فرض لمونځ وکړل سي نو د نوافل کولو لپاره داسي طريقه اختيار کړل سي چي په سره د فرضو او نفلو په مينځکي بدلون پيدا سي.

د مثال په توګه په کوم ځای کي چي فرض لمونځ سوی وي هغه ځای دي نفل نه کيږي بلکه د هغه ځای څخه په ايسته کېدو سره بل ځای دي وکړل سي چي د دواړو لمنځو په مينځ کي فرق پيدا سي او د هغه سره د فرض او نفل په مينځ کي ورته والی پيدا نسي.

د حديث الفاظ (او نخرج) کي دې ته اشاره کيږي، د (او نخرج) څخه د مسجد څخه حقيقي وتل هم مراد کيدای سي يعني د فرض کولو سره به د مسجد څخه په وتلو سره کور وغيره ته ولاړو او هلته به مو نفل کول ، او حکما وتل هم مراد کيدای سي يعني کوم ځای چي فرض لمونځ کړی وي د هغه ځای څخه په آخوا کېدو سره نفل دي په دوهم ځای کي وکړل سي.

د فرض او نفل په مينځ کي د امتياز پيدا کولو لپاره يو بل صورت دی او هغه دا دی چي کله

فرض وکړل سي نو د هغه ځخه وروسته د يو چا سره خبري وکړل سي چي په هغه سره د دواړو لمنځو په مينځ کي فرق پيدا سي نو د (حتى نتكلم) د خبري ځخه دومره ياد ساتل پکار دي، دا خبره بايد په فهم کي وي چي د فرضو او نفلو په مينځ کي د کوم فرق لپاره چي ويل کيږي هغه په دنياوي خبرو کولو سره تر لاسه کيږي د الله ﷻ په ذکر وغيره سره هغه نه حاصليږي.

﴿۱۱۱۹﴾: وَعَنْ عَطَاءٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا صَلَّى الْجُمُعَةَ بِمَكَّةَ تَقَدَّمَ فَصَلَّى

د حضرت عطاء رضي الله عنه ځخه روايت دی چي کله حضرت ابن عمر رضي الله عنه په مکه کي د جمعې لمونځ ورکړنو د خپل ځای ځخه به مخکي سو او لمونځ به يې وکړ

رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ يَتَقَدَّمُ فَيُصَلِّي أَرْبَعًا وَإِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ صَلَّى الْجُمُعَةَ ثُمَّ رَجَعَ

دوه رکعته ددې وروسته به نور هم مخکي سو او ځلور رکعته لمونځ به يې وکړ او کله چي په مدينه کي وو نو د جمعې د لمانځه وروسته به کور ته تلی

إِلَى بَيْتِهِ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يُصَلِّ فِي الْمَسْجِدِ فَقِيلَ لَهُ. فَقَالَ كَانَ رَسُولُ

او په کور کي به يې دوه رکعته کول او په مسجد کي به يې نه کول د هغه ځخه ددې په اړه پوښتنه وسول نو هغه وويل چي رسول الله ﷺ به

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ. رواه أبو داود وفي رواية الترمذي قال (رأيت ابن عمر صلى بعد الجمعة ركعتين ثم صلى بعد ذلك أربعا)

داسي کول. ابوداؤد، د ترمذي په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي عطاء وويل ما ابن عمر وليدی چي د جمعې وروسته به يې دوه رکعته کول او د هغه وروسته به يې ځلور رکعته کول.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۶۷۳، رقم: ۱۱۳۰. والترمذي ۲\ ۳۹۹ و ۴۰۱، رقم: ۵۲۲.

**تشريح**: د ابن عمر رضي الله عنه د فرض کولو سره د سنت کولو لپاره مخکي کېدل په منزله د مسجد ځخه د وتلو وه ځرنګه چي د امير معاويه رضي الله عنه په ارشاد کي مذکور دي، علماؤ ليکلي دي چي د مکې او مدينې د معمول په مينځ کي فرق غالبا ځکه وو چي په مدينه کي د ابن عمر رضي الله عنه کور مسجد ته نژدې وو او په مکه کي مسافر وو او د اوسيدو ځای به د حرم ځخه ليري وو، ځکه په مدينه کي خو يې دا معمول وو چي د فرض کولو سره کور ته به يې تشريف راوړ او هلته به يې

سنت کول مګر په مکه کي د کور ليري کېدو په وجه سنت به يې هم په مسجد کي کول مګر په ځاى بدلولو سره ، د دواړو لمنځو په مينځ کي به يې فرق کوى او همداسي وړاندي کېدل يې د کور قائم مقام کړل، د مکې او مدينې د معمول په منځ کي دوهم فرق دادى چي په مکه کي خو به هغه د جمعې څخه وروسته شپږ رکعته کول او په مدينه کي به يې دوه رکعته کول نو په مکه کي ددې زياتوب وجه داوه چي په حرم کي د لمانځه کولو ثواب ډېر زيات وي ځکه نو هلته يې زيات لمونځ کوى.

د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد د جمعې څخه وروسته سنت څلور رکعته دي ځکه ملا علي قاري رحمة الله عليه د حديث الفاظ چي حضرت ابن عمر رضي الله عنه به د جمعې څخه وروسته دوه رکعته کول د هغه وروسته به مخکي کېدو سره څلور رکعته کول ، ددې مطلب يې دا ليکلى دى چي ابن عمر رضي الله عنه به اول د جمعې څخه وروسته دوه رکعته کول د هغه وروسته به يې څلور رکعته کول پيل کړل، يعني په هغه دوو رکعتو کي چي د هغوى په نزد د حديث څخه ثابت وه او هغه به يې مخکي کول د دوو رکعتو نورو اضافه يې وکړل او همداسي وروسته څلور رکعته به يې کول ، د صاحبينو يعني امام ابويوسف او امام محمد په نزد د جمعې څخه وروسته شپږ رکعته دي يعني هغوى فرمايي چي د جمعې د فرض کولو مخکي څلور رکعته سنت دي او بيا د هغه څخه وروسته دوه رکعته نور دي.

## په فقه حنفيه کي تفصيلي شمير

دا بحث پاى ته رسيږي ځکه نو مناسب ده چي دلته د ټولو سنتو لمنځو تفصيلي شمير ذکر کړل سي چي هغه په ذهن کي محفوظ سي ، د سهار په وخت کي د فرضو څخه مخکي دوه رکعته سنت مؤکده دي ددې تاکيد د ټولو مؤکده سنتو څخه زيات دى تر دې چي په ځينو روايتو کي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه څخه ددې وجوب نقل دى او ځيني علماء ليکي چي ددې په انکار سره د کفر ېيره ده .

د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد دى چي د سهار سنت دي نه پرېښودل کيږي که څه هم آسونه تاسو تر پښو لاندي کوي يعني د سر بايللو بيره وي بيا يې هم مه پرېږدئ، ددې څخه مقصد يوازي تاکيد او ترغيب دى کنه نو د سر د بيري په وخت کي خو فرض پرېښودل هم جائز دي .

د ماپښين په وخت کي د فرضو څخه مخکي څلور رکعته په يوه سلام سره او د فرضو څخه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده دي . د جمعې په وخت کي د فرضو څخه مخکي څلور رکعته

سنت دي او د فرضو وروسته په يوه سلام څلور رکعته سنت دي.

د مازديگر په وخت کي هيڅ سنت مؤکده نسته ، مگر د فرضو څخه مخکي څلور رکعته په يوه سلام سره مستحب دي. په ماښام کي د فرضو څخه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده دي.

په ماخستن کي د فرضو څخه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده دي او د فرضو مخکي څلور رکعته په يوه سلام سره مستحب دي.

د وترو څخه وروسته هم دوه رکعته د نبي کريم ﷺ څخه نقل دي نو د وترو څخه وروسته هم دوه رکعته مستحب دي.

## بَابُ صَلٰوةِ اللَّيْلِ (د شپې دلمانځه بيان)

د شپې لمونځ يعني د تهجد وغيره په اړه چي د رسول الله ﷺ څخه کوم روايت د هغه د طريقې وغيره په اړه منقول دي هغه په دغه باب کي ذکر کيږي، د شپې د لمانځه په اړه د رسول الله ﷺ څخه مختلف روايتونه منقول دي ، په هغو کي د کوم روايت سره سم چي لمونځ وکړل سي نو د اتباع نبوي فضيلت او د سنت د ادا کولو سعادت تر لاسه کيږي.

او که چيري د ټولو روايتو په نظر کي نيولو سره دا طريقه اختيار کړل سي چي کله د يو روايت سره سم وکړل سي او کله به د بل روايت سره سم نو دا طريقه نه يوازي دا چي ډيره مناسب او غوره ده بلکه د سنت عين مطابق به وي.

د شپې د رسول الله ﷺ د لمانځه د رکعتو په اړه مختلف روايتونه منقول دي ، ديارلس، يوولس، نهه او اووه رکعتونه منقول دي ، ځيني علماؤ پنځه رکعتونه هم روايت کړي دي مگر د ديارلسو څخه زيات ثابت نه دي ، ځيني علماؤ دا شمير د سهار د سنتو سره ذکر کړی دی او ځينو د سهار د سنتو څخه پرته ، او صحيح قول هم دادی، همداسي د وترو د شمير په اړه مختلف روايتونه دي په ځينو روايتونو کي خو وتر يو رکعت سره منقول دی او په ځينو کي درې او په ځينو کي د وتر رکعت هم د تهجد د لمانځه په رکعتو کي شاملولو سره هغه شمير کړی دی او په ځينو روايتو کي د وتر رکعتو څخه بيل شمير کړل سوي دي همداسي په ځينو روايتو کي د وتر اطلاق پر يو رکعت باندي سوی دی او په ځينو کي درې، پنځه اووه پوري سوی دی بلکه په ځينو روايتونو کي خو د شپې ټول لمانځه ته وتر ويل سوي دي دا ټول روايات به تاسو په تفصيل سره په دې باب کي ووينئ

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ماخستن او سهار په مینځ کي یوولس رکعته

﴿۱۱۲۰﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِيمَا

د حضرت عائشي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د لمونځ کوی

بَيْنَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى الْفَجْرِ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُسَلِّمُ مِنْ

د ماخستن د لمانځه وروسته تر سهار پوري په میانه وخت کي یوولس رکعته او سلام به یې ګرځوي

كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَيُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ مِنْ ذَالِكَ قَدْرَ مَا يَقْرَأُ

د هر دوو رکعتو وروسته او یو رکعت وتر به یې کول او د وترو په لمانځه کي به یې دومره اوږده سجده کول په څومره وخت کي چي ویل کیدای سي

اَحَدُكُمْ خَمْسِيْنَ آيَةً قَبْلَ اَنْ يَّرْفَعَ رَاسَهُ فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ مِنْ صَلَاةِ

پنځوس آیاتونه ، بیا چي به مؤذن د سهار د آذان څخه فارغ سو

الْفَجْرِ وَتَبَيَّنَ لَهُ الْفَجْرُ قَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَى

او د سهار رڼا به خپره سول نو رسول الله ﷺ به دریدی او دوه مختصر رکعتونه (د سهار سنت) به یې وکړل بیا به پریوتی

شِقِّهِ الْأَيْمَنِ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ لِلْإِقَامَةِ فَيَخْرُجُ. متفق عليه

پر خپل راسته بغل تر څو چي مؤذن به د رسول الله ﷺ څخه د اقامت کولو اجازه تر لاسه کولو لپاره راغلی او رسول الله ﷺ به لمانځه ته تشریف یووړ . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۷۸، رقم: ۹۹۴، ومسلم ۱\۵۰۸، رقم: ۱۲۲-۷۳۶.

**تشريح** : د حديث الفاظ (و يؤتر بواحدة) مطلب دا نه دی چي رسول الله ﷺ به د وتر لپاره یو رکعت بیل کوی بلکه ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به یوولس رکعته داسي کول چي په آخري دوو رکعتو یعني نهم او لسم سره یو رکعت زیاتولو سره درې سره به یې وتر کول.

ابن حجر شافعي رحمة الله عليه فرمايي ددې حديث څخه دوې خبرې ثابتيږي يو دا چې د وترو کم از کم يو رکعت دی يعني د وتر يو رکعت يوازې کيدای سي ، دوهم دا چې د تهجد په لمانځه کې پر هر دوو رکعتو باندې سلام ګرځول پکار دي ، د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهم دا مذهب دی .

فسجد السجدة.... الخ، ددې څخه په څرګنده دا معلوميږي چې رسول الله ﷺ د هر رکعت سجده اوږده کول مګر ددې مفهوم دا هم اخيستل کيږي چې رسول الله ﷺ به يوازې د وترو په سجدو کې يوه سجده يا د وتر تولې سجدې اوږدې کولې .

په ځينو ځايو کې څه خلک د وتر څخه وروسته کيفيت معروفه سره دوې سجدې کوي او په ځينو ضعيف فقهي رواياتو کې د هغه فضيلت هم مذکور دی نو پوهيدل پکار دي چې د حديثو څخه ددې دواړو سجدو هيڅ ثبوت نسته او نه د فقهي هغه روايات چې معتمد او مختار دي په هغو کې د هغه ذکر دی او په حرمين شريفين کې په ټول عرب کې هيڅ چيري هم دا سجدې نه کيږي .

په دې اړه يو حديث منقول دی چې په هغه کې دغه سجدو ته اختراع درجه ورکړل سوې ده بيا دا چې په څلورو امامانو کې يو امام هم نه ددې د مسنون کېدو قائل دی او نه ددې د مستحب کېدو بلکه په عربو هيوادو کې اکثر حنفيه خو دا نه پيژني، او ځيني علماؤ دا مکروه ګرځولي دي .په هر حال که چيري دا طريقه رواج ده نو ددې څخه پرهيز کول پکار دي .

رکعتين خفيفتين يعني د سهار سنت مختصر کولو مطلب دادی چې رسول الله ﷺ به په دواړو رکعتو کې قل يا ايها الکافرون او قل هو الله احد ويل او دا مستحب دي مګر لازم نه دي .

د سهار سنت کولو څخه وروسته د لږ وخت لپاره به رسول الله ﷺ ځکه پريوتی چې ټوله شپه د الله تعالى په عبادت او لمانځه کې د بوختيا په وجه به ستړی وو چې په لږ آرام کولو سره هغه ستړيا ختم سي او فرض په ښه توګه سره اداسي، نو مختار قول دادی چې کوم سړی د شپې په عبادت ،ذکر وغيره کې مشغول وي نو د هغه لپاره د سهار د سنت کولو وروسته د لږ وخت لپاره د استراحت په نيت پريوتل مستحب دي .

## د سهار د فرض او سنت لمنځو په منځ کې خبري کول

﴿۱۱۲۱﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيْ الْفَجْرِ فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِي وَإِلاَّ اضْطَجَعَ . رواه مسلم

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د سهار دوه رکعته سنت وکړل نو زما په لور به متوجه سو که زه به وېښه وم نو زما سره به يې خبري کولې او که زه به بيده وم نو رسول الله ﷺ به هم څنګ ووهی . مسلم ،

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۵۱۱، رقم: ۱۲۳- ۷۴۳.

**تشريح** : ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي په دې حديث کي ددې خبري دليل دی چي د سهار د فرض لمانځه او سنتو په مينځ کي فرق کول جائز دي او دا حديث ددې خبري دليل هم دی چي دا وخت (يعني د سهار تر سنتو وروسته او د فرضو مخکي) د خپلي کورنۍ سره په خبرو کي بوخت کېدل مستحب دي ، ګويا د ابن مالک رحمة الله عليه د ارشاد مطلب دادی چي کوم خلک دا وايي چي د فرضو او سنتو په مينځ کي خبري کول لمونځ يا د هغه ثواب ختموي، دا قول غلط دی مګر بيا هم په دې کي شبه نسته چي د رسول الله ﷺ مقصد به دنيا نه وه بلکه د رسول الله ﷺ خبري به ديني او اخروي وې ځکه دا خو به منل وي چي د فرض او سنت لنځو په مينځ کي دنياوي خبرو کي بوخت کېدل غوره نه دي ځکه چي د سنت لمنځو د مشروعيت حکمت دادی چي فرض لمونځ کونکی سړی د مخکي په يو څه لمونځ کولو سره د کمال حالت لپاره تيار سي او په دې سره غفلت او سستي ليري سي چي په فرض لمانځه کي پوره خشوع او خضوع راسي او د هغه زړه او دماغ د دنيا څخه په پوره توګه يوې خوا کېدو سره توجه الی الله کي پوره مستغرق سي، پر خلاف ددې په سنت لمونځ کولو سره د فرض لمونځ پيل کولو مخکي دنيا خبرو کي بوخت کېدل ددې حکمت خلاف دي ځکه چي په داسي کولو سره زړه او دماغ د شوق او حصورۍ څخه په بېل کېدو دنيا او ددنيا د خبرو په بوختيا کي راسي .

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله ليکلي دي چي د صحابه وغيره څخه ځيني علماؤ د سهار کېدو څخه وروسته د سهار لمونځ ادا کولو څخه مخکي په دنياوي خبرو کي بوخت کېدو ته مکروه ويلي دي هو د الله تعالی ذکر يا داسي دنياوي خبري چي د هغه په حقيقت کي هغه وخت ضرورت وي ددې څخه مستثنی دی ، داحمد او اسحاق دا قول دی .

د دې حديث په باره کي ويل کيږي چي رسول الله ﷺ به د سهار سنت کولو سره د بي بي عائشې رضي الله عنها سره خبري کولې يا به هغه ديني او اخروي وې يا د يو حاجت او ضرورت په وجه به رسول الله ﷺ د هغې سره په خبرو کي بوخت کيدی ، په دې اړه د بي بي عائشې رضي الله عنها د دوهم روايت الفاظ (ان كانت له الي حاجة كلمني) يعني کله چي به د رسول الله ﷺ يو ضرورت وو نو زما سره به يې په خبرو کولو کي هم هغه خوا ته اشاره کول .

## د سهار د سنتو وروسته آرام

﴿۱۱۲۲﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ اضْطَجَعَ عَلٰى شَقِّهِ الْأَيْمَنِ. متفق عليه

د حضرت عائشې ﷞ څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ د سهار دوه رکعته (سنت) وکړل نو پر راسته بغل به پریوتی. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۱۲\۱۰۹، رقم: ۶۲۶، ومسلم ۱\۵۰۸، رقم: ۱۲۲- ۷۳۶.

﴿۱۱۲۳﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً مِّنْهَا الْوِتْرُ وَرَكْعَتَا الْفَجْرِ. رواه مسلم.

د حضرت عائشې ﷞ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د شپې دیارلس رکعته کول چي په هغو کي به وتر هم وه او د سهار دوه رکعته سنت هم. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\۵۱۰، رقم: ۱۲۸- ۷۳۸.

**تشریح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د شپې دیارلس رکعته کول او په هغو کي به د وترو درې رکعته او د سهار دوه رکعته سنت هم وه ، که څه هم د حدیث په الفاظو کي د وتر سره د درو رکعتو یادونه نسته مګر د ټولو علماؤ په نزد د وتر درې رکعته کول افضل دي ځکه نو د درو رکعتو قید لګولو کي څه پرواه نسته، بیا دا چي په نورو روایتو کي د درو رکعتو صراحت هم سته ، ترمذي رحمة الله علیه په شمائل کي یو روایت نقل کړی دی چي د هغه الفاظ دادي : (ثم یصلی ثلثا) یعني بیا به رسول الله ﷺ درې رکعته کول، همداسي د مسلم په روایت کي (ثم اوتر بثلاث) یعني بیا به رسول الله ﷺ درې رکعته کول، الفاظ منقول دي .

په دې حدیث کي د رکعتو شمیر دیارلس داسي نقل سوی دی چي د سهار دوه رکعته سنت هم په دې کي شمیرل سوي دي کنه رسول الله ﷺ به د شپې د وترو سره ټول یوولس رکعته کول څرنګه چي په نورو روایتونو کي مذکور دي ، د تهجد لمونځ کولو او د سهار د سنتو کولو درمیاني وقفه به زیاته نه وه بلکه تقریبا دواړه لمنځونه به یې پرله پسې کول ځکه دا دواړه رکعتونه هم په هغه کي شمیرل سوي دي .

﴿۱۱۲۴﴾: وَعَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلاَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ فَقَالَتْ سَبْعٌ وَّتِسْعٌ وَإِحْدٰى عَشَرَ رَكْعَةً سِوٰى رَكْعَتَي الْفَجْرِ. رواه البخاري

د حضرت مسروق رحمه الله څخه روايت دى چي ما د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه د رسول الله ﷺ د شپې د لمانځه په اړه پوښتنه وکړه،

هغې وويل كله اوه ركعته كله نهه ركعته او كله يوولس ركعته د سهار د دوو سنتو ماسيوا. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰، رقم: ۱۱۳۹.

**تشريح**: څرګنده ده چي د سهار د سنتو څخه پرته يوولس ركعته به يې كول. دلته دې ته اشاره ده چي په كومو روايتو كي ديارلس ركعته منقول دي په هغو كي د سهار دوه ركعته هم شامل دي، ملاعلي قاري رحمة الله عليه فرمايي په يوه روايت كي چي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ د شپې پنځلس ركعته هم كړي دي نو ددې محمول دادى چي په پنځلس ركعتو كي د سهار دوه ركعتونه سنت هم شميرل سوي دي يعني ديارلس ركعته د تهجد او دوه ركعته د سهار سنت مګر د دې احتمال څخه هم صرف نظر نسي كيداى چي دوولس ركعته رسول الله ﷺ د تهجد كړي دي او درې ركعته وتر، ددې دليل يو روايت دى چي د هغه الفاظ دادي چي كله به پر رسول الله ﷺ خوب غلبه وكړل او د تهجد كولو څخه پرته به بيده سو نو بيا د ورځي به يې دوولس ركعته كول.

## د تهجد د لومړنيو دوو ركعتو كيفيت

﴿۱۱۲۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ لِيُصَلِّيَ افْتَتَحَ صَلاَتَهُ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ. رواه مسلم.

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي كله به رسول الله ﷺ د شپې د لمانځه لپاره راپورته كېدى نو اول به يې دوه مختصر ركعتونه كول. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۵۳۲، رقم: ۱۹۷- ۷۶۷.

**تشريح**: په كتاب ازهار كي ليكلي دي چي دوه مختصر ركعتونه د اوداسه ركعتونه دي چي

هغه مختصر كول مستحب دي مګر صحيح دادی چي هغه دواړه رکعتونه به د تهجد وه چي د تحية الوضوء قائم مقام وه او رسول الله ﷺ به هغه وخت د اوداسه لپاره بيل لمونځ نه کوی .

﴿۱۱۲۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ فَلْيَفْتَحِ الصَّلَاةَ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي تاسو د شپې د لمانځه لپاره راپورته کيږي نو اول دي دوه مختصر رکعتونه کوي . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۵۳۲، رقم: ۱۹۸- ۷۶۸.

﴿۱۱۲۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُوْنَةَ لَيْلَةً وَالنَّبِيُّ صَلَّى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه شپه زه د خپلي خاله ميمونې کره پاته سوم په هغه شپه رسول الله ﷺ

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا فَتَحَدَّثَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ اَهْلِهِ

د هغې سره وو، رسول الله ﷺ د خپلي بي بي (ميمونې) سره خبري وکړې

سَاعَةً ثُمَّ رَقَدَ فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ اَوْ بَعْضُهُ قَعَدَ فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ

د لږ وخت لپاره او بيا بيده سو ، کله چي د شپې آخري دريمه برخه پاته سوه يا د دې څخه څه کمه نو رسول الله ﷺ راپورته سو د آسمان په لوري يې کتل

فَقَرَأَ إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُوْلِي

او دا آيت يې تلاوت کوی (ان في خلق السموات....)، (د آسمانو او مځکو په پيدا کولو او د شپې او ورځي په اختلاف کي د عقلمندو لپاره ننبي دي )

الْأَلْبَابِ حَتَّى خَتَمَ السُّوْرَةَ ثُمَّ قَامَ إِلَى الْقِرْبَةِ فَأَطْلَقَ شِنَاقَهَا ثُمَّ صَبَّ فِيْ

دا سورت يې تر پايه تلاوت کړ، بيا د ژي (د اوبو لوښي) په لور ولاړی د هغه خوله يې خلاصه

کړل او پياله يې د اوبو څخه ډکه کړه

الْجَفْنَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوءًا حَسَنًا بَيْنَ الْوُضُوئَيْنِ لَمْ يُكْثِرْ وَقَدْ أَبْلَغَ فَقَامَ

بيا يې په ښه ډول اودس وکړ او به يې ډيري ونه بيولې او پوره اودس يې وکړ بيا ودريدی

فَصَلَّى فَقُمْتُ وَتَوَضَّأْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَّسَارِهِ فَأَخَذَ بِأُذُنِيْ فَأَدَارَنِيْ عَنْ يَّمِيْنِهِ

او لمونځ يې وکړ (ددې په ليدو سره ابن عباس رضي الله عنه وايي) زه هم راپورته سوم اودس مې وکړ او د رسول الله ﷺ چپه خوا ته ودريدم، رسول الله ﷺ زما غوږ ونيوی او د چپه خوا څخه يې راسته خوا ته کړم،

فَتَتَامَّتْ صَلَاتُهُ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ وَكَانَ إِذَا

رسول الله ﷺ ديارلس رکعته پوره کړل بيا رسول الله ﷺ بيده سو تر دې چې د رسول الله ﷺ خراری (دخوب آواز) واوريدل سو او د رسول الله ﷺ دا عادت وو چې کله به

نَامَ نَفَخَ فَآذَنَهُ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ وَكَانَ فِيْ دُعَائِهِ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ

بيده سو نو خراری به يې کوی، ددې وروسته بلال رضي الله عنه آذان وکړ او رسول الله ﷺ يې د لمانځه تياری ته خبر کړ، رسول الله ﷺ راپورته سو او د اوداسه کولو پرته يې لمونځ وکړ او د رسول الله ﷺ هغه دعاء چې د سنتو او فرضو په منځ کې به يې کوله داوه: (اللهم اجعل ....)، (اې الله

فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا وَفِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا وَفِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا وَعَنْ يَّمِيْنِيْ نُوْرًا وَعَنْ يَّسَارِيْ

زما په زړه کې نور پيدا کړې زما په سترګو کې نور زما په غوږو کې نور زما راسته خوا ته نور زما چپه خوا ته

نُوْرًا وَفَوْقِيْ نُوْرًا وَتَحْتِيْ نُوْرًا وَأَمَامِيْ نُوْرًا وَخَلْفِيْ نُوْرًا وَاجْعَلْ لِّيْ نُوْرًا وَزَادَ

نور، زما سربيره نور، زما لاندې نور، زما مخ ته نور زما شا ته نور او زما دپاره نور پيدا کړې) او په ځينې رواياتو کې دا الفاظ هم ليکل سوي دي چې

بَعْضُهُمْ وَفِيْ لِسَانِيْ نُوْرًا وَذَكَرَ وَعَصَبِيْ وَلَحْمِيْ وَدَمِيْ وَشَعْرِيْ وَبَشَرِيْ.

(زما په ژبه کې نور) او ځينو دا هم ليکلي دي چې زما په دماغ کې نور زما په غوښه کې نور زما

په وينه كي نور زما په وېښتانو كي نور او زما په پوست كي نور پيدا كړې.

متفق عليه، وَفِيْ رِوَايَةٍ لَّهُمَا وَاجْعَلْ فِيْ نَفْسِيْ نُوْرًا وَاَعْظِمْ لِيْ نُوْرًا وَ فِيْ أُخْرٰى لِمُسْلِمٍ اَللّٰهُمَّ اَعْطِنِيْ نُوْرًا.

(بخاري او مسلم) د بخاري او مسلم په يو بل روايت كي دا الفاظ هم دي (زما په نفس كي نور او زما لپاره نور لوى كړې) او د مسلم په يو بل روايت كي دا الفاظ دي: (اې الله ما ته نور را كړې).

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۱۱\۱۱۶، رقم: ۶۳۱۶ ومسلم ۱\۵۲۵، رقم: ۱۸۱- ۷۶۳.

**د لغاتو حل:** (شِنَاقُهَا): اى خيطها الذي يشد به فمها (هغه رسۍ چي د ژي خوله په تړل كيږي). (الجُفنة): القصعة من الجفن. (پياله). (نَفَخَ): اى تنفس بصوت حتى يسمع منه صوت التفخ بالفم كما يسمع من النائم. (خرهاى).

**تشريح:** كله چي بلال ﷺ راغلى او رسول الله ﷺ ته يې د لمانځه د وخت كېدو خبر وركړ او رسول الله ﷺ د خوب څخه راويښ سو نو پرته د اودس كولو څخه د سهار سنت يې وكړل، دلته دا اشكال نسي پيدا كيداى چي رسول الله ﷺ بيله اودسه لمونځ څنګه وكړ؟ ځكه چي علماء ليكي چي د بيده كېدو سربيره رسول الله ﷺ اودس ځكه ونه كړ چي فقط په بيده كېدو سره اودس نه ماتيږي بلكه د خوب څخه د وېښېدو وروسته د لمانځه لپاره اودس ځكه ضروري وي چي په خوب كي د اوداسه ماتېدو احتمال وي مګر د رسول الله ﷺ زړه مبارك به هميشه بيداره وو تر دې چي د خوب په حالت كي به د رسول الله ﷺ پر زړه غفلت نه راتلى ځكه د رسول الله ﷺ په خوب كي دا ګمان نسي كيداى چي د رسول الله ﷺ اودس به مات سوى وي او رسول الله ﷺ ته معلوم سوى نه وي.

دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د ماخستن د لمانځه څخه وروسته دا سي خبري چي د هغه موضوع دين، آخرت، وعظ او نصيحت وي يا د خپل كوروالا سره په طريقه د اختلاف وي نو هغه مكروه نه دي. دا حديث د بي بي عائشې ﷺ تير سوي حديث سره مخالف معلوميږي ځكه چي دلته د ابن عباس ﷺ د قول څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د شپې ديارلس ركعته وكړل او په هغو كي د وتر درې ركعته هم شامل وه مګر د سهار دوه ركعته په هغه كي شامل نه وه او د بي بي عائشې ﷺ د روايت څخه معلوميږي چي په ديارلسو ركعتو كي د وترو سره د سهار دوه ركعته سنت هم شامل وه.

نو په دغه دواړو حديثو كي په دې تاويل سره مطابقت پيدا كيږي چي رسول الله ﷺ به كله ديارلس ركعته داسي كول چي په هغو كي به د سهار دوه سنت هم شامل وه لكه څرنګه چي بي بي عائشې رضي الله عنها ذكر كړی دی او كله به يې داسي كول چي په هغو كي به د سهار دوه سنت شامل نه وه لكه څرنګه چي دلته د ابن عباس رضي الله عنهما د الفاظو څخه معلوم سول .

د ابن عباس رضي الله عنهما د الفاظو څخه دا هم معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د خوب په حالت كي خرخر كوی ، نو ظاهره ده چي داسي كيدل هم پكار وه چي خرخر كول د ساه آخيستو د ناليو د پراختيا او د بدني پاكوالي او روغتيا نښه ده او ددې څخه څوك انكار نسي كولای چي رسول الله ﷺ نه يوازي دا چي په روحاني او باطني توګه سره كامل او اكمل وو بلكه په بدني توګه سره هم زيات صحت مند ، قوي ، او د پاكو اندامو څښتن وو .

په حديث كي پورتنی دعاء ته دعاء طويل وايي ، دا دعاء د اكثرو مشائخو معمول هم دی ، ددغه دعاء د تهجد وروسته ويل ثابت دي ، ددې دعاء ډير عظمت او فضيلت دی .

شيخ شهاب الدين سهروردي رحمة الله عليه په عوارف كي ليكلي دي چي كوم سړی ما پر دغه دعاء هميشه ويلو باندي ليدلی دی د هغه سره يو بركت محسوس كيږي .

## دوتر لمونځ درې ركعته دی

﴿۱۱۲۸﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ رَقَدَ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَيْقَظ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي زه يوه شپه د رسول الله ﷺ په كور كي بيده وم ، رسول الله ﷺ د شپې وينس سو

فَتَسَوَّكَ وَتَوَضَّأَ وَهُوَ يَقُولُ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ حَتّٰى خَتَمَ السُّورَةَ

مسواك يې وكړ او اودس يې وكړ بيا يې دا آيت تلاوت كړ (ان في خلق السموات.....) تر پايه

ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ فَأَطَالَ فِيهِمَا الْقِيَامَ وَالرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ ثُمَّ انْصَرَفَ

بيا رسول الله ﷺ ودريدی او دوه ركعته لمونځ يې وكړ چي په هغه كي يې ولاړه ، ركوع او سجده ډيره اوږده وكړل بيا وګرځيدی

فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ ثُمَّ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ سِتَّ رَكَعَاتٍ كُلَّ ذٰلِكَ يَسْتَاكُ

نو رسول الله ﷺ پريوتی او بيده سو او خراری يې پيل كړ ، درې ځله رسول الله ﷺ داسي وكړل

او شپږ رکعته يې وکړل او هر ځل يې مسواک

وَيَتَوَضَّأُ وَيَقْرَأُ هٰؤُلَاءِ الْآيَاتِ ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ. رواه مسلم.

او اودس کوی او ذکر سوي آياتونه يې ويل، بيا يې درې رکعته وتر وکړل. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ١/ ٥٣٠، رقم: ١٩١- ٧٦٣.

**تشريح**: دا حديث په ځرګنده ددې خبرې دليل دی چې د وتر لمونځ درې رکعته دی، د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه دا مذهب دی که څه هم د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد يو رکعت کيدای سي مګر تر دې حده خو هغه هم د حنفيه سره دی چې د هغه په نزد هم د وتر لپاره يوازې يو رکعت کول مکروه دي.

## د نبي کريم ﷺ د تهجد د لمانځه کيفيت

﴿۱۱۲۹﴾: وَعَنْ زَيْدِ ابْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ أَنَّهُ قَالَ لَأَرْمُقَنَّ صَلَاةَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت زيد بن خالد الجهني رضي الله عنه څخه روايت دی چې هغه يو ځل اراده وکړه چې زه د رسول الله ﷺ لمونځ وګورم،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّيْلَةَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ

نن شپه، نو لومړی خو رسول الله ﷺ دوه مختصر رکعته وکړل بيا يې دوه اوږده رکعته وکړل

طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ

چې اوږده اوږده وه بيا يې دوه رکعته درميانه رکعتونه وکړل بيا يې دوه رکعته

وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ صَلّٰى

تر هغو لنډ وکړل بيا يې دوه رکعته تر هغو لنډ وکړل بيا يې دوه رکعته تر هغو لنډ وکړه بيا يې وکړه

رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ أَوْتَرَ فَذٰلِكَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً. رواه مسلم، قوله ثم صلى ركعتين وهما دون اللتين قبلهما اربع مرات هكذا في صحيح مسلم و افراده من كتاب الحميدي وموطاء مالك و سنن ابي

داؤد و جامع الاصول .

دوه رکعته تر هغو لنډ و کړل بيا يې وتر وکړل او دا ټول ديارلس رکعته سول . ،مسلم.

**تخريج :** صحيح مسلم: ۱\۵۳۱- ۵۳۲، رقم: ۱۹۵- ۷۶۵.

**د لغاتو حل :** (لارمُقَن): من الرمقة اى النظر اليه . (كتل).

**تشريح :** د دې حديث څخه په څرګنده دا نه معلوميږي چي رسول الله ﷺ وتر دري رکعته کړې وه يا يو رکعت يې کړی وو ځکه که دوه مختصر رکعتونه په دې کي شمير نه کړل سي نو د وترو دري رکعته ثابتيږي او که دا دواړه رکعتونه هم په دې لمانځه کي شامل کړل سي نو د دې مطلب به دا وي چي وتر يې يو رکعت کړي وه ، مګر صحيح او ظاهر دادی چي دواړه مختصر رکعتونه په دې لمانځه کي شامل نه وه ، همداسي رسول الله ﷺ د وتر دري رکعته وکړل .

د حميدي په کتاب جمع بين الصحيحين کي دري ډوله حديثونه منقول دي :

۱. متفق عليه يعني د بخاري او مسلم دواړو روايتونه،

۲. افراد بخاري: يعني هغه روايتونه چي هغه يوازي بخاري نقل کړي دي .

۳. افراد مسلم : يعني هغه روايتونه چي هغه يوازي مسلم روايت کړي دي .

نو د روايت د آخري الفاظو مطلب دادی چي د حديث الفاظ (ثم صلى ركعتين و هما دون اللتين قبلهما) دا الفاظ په صحيح مسلم کي څلور واره منقول دي همداسي په کتاب حميدي کي چي په هغه کي يوازي د مسلم روايات منقول دي ، په مؤطا امام مالک، سنن ابي داؤد او جامع الاصول کي هم څلور واره منقول دي ، د مشکوة مؤلف دا شيان په دومره شد او مد او مبالغې سره ځکه بيان کړي دي چي د صاحب مصابيح رد وسي چي هغه دا عبارت دري واره نقل کړی دی چي د هغه په وجه د رکعتو شمير يوولس پاته کيږي .

**رسول الله ﷺ په اخر عمر کي نفل لمونځ په ناسته کوی**

﴿۱۱۳۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا بَدَنَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَثَقُلَ كَانَ أَكْثَرُ صَلاَتِهِ جَالِسًا . متفق عليه

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دیچي په آخر عمر کي، کله چي د رسول الله ﷺ بدن مبارک درووند سو نو نفل لمونځ به يې اکثر په ناسته کوی . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۸۹، رقم: ۱۱۱۸ ومسلم ۱\۵۰٦، رقم: ۱۱۷- ۷۳۲.

## په تهجد کي رسول الله ﷺ کوم کوم سورتونه ويل

﴿۱۱۳۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَقَدْ عَرَفْتُ النَّظَائِرَ الَّتِيْ كَانَ النَّبِيُّ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي د قرآن کريم د هغو سورتونو څخه خبريم چي يو دبل سره مماثل دي او رسول الله ﷺ به

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرِنُ بَيْنَهُنَّ فَذَكَرَ عِشْرِيْنَ سُوْرَةً مِّنْ أَوَّلِ الْمُفَصَّلِ

دا يوځای کول نو هغه شل سورتونه بيان کړل چي مفصل ورته ويل کيږي ،

عَلٰى تَأْلِيْفِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ سُوْرَتَيْنِ فِيْ رَكْعَةٍ آخِرُهُنَّ ( حٰمٓ الدُّخَانِ وَ عَمَّ يَتَسَاءَلُوْنَ . متفق عليه

رسول الله ﷺ به دا سورتونه داسي يو ځای کول چي په يوه رکعت کي به يې دوه سورتونه ويل او په دې شلو سورتونو کي آخري دوه سورتونه (حم الدخان او عم يتساءلون) دي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۳۹، رقم: ۴۹۹٦ ومسلم ۱\۵٦۳، رقم: ۲۷۵- ۷۲۲.

**تشريح** : په خپلو کي هم مثله سورتونو څخه مراد هغه سورتونه دي چي په اوږدوالي او مختصر والي کي برابر دي ، د مفصل مطلب په باب القراة کي بيان سوی دی .

د مشهور قول سره سم د سورة حجرات څخه تر آخر پوري سورتونو ته مفصل وايي هغه سورتونه په خپلو کي د يو بل برابر دي.

د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د ترتيب سره سم چي هغه کلام الله جمع کړی وو يو ځای وو ، ددغه شلو سورتونو تفصيل په ابوداؤد کي همداسي مذکور دی، رسول الله ﷺ به په يوه رکعت کي دوه دوه سورتونه داسي ويل چي سورة رحمان او سورة نجم په يوه رکعت کي،. اقترب الساعة او الحاقة په بل رکعت کي، سورة طور او ذاريات په يوه رکعت کي او اذا واقعت الواقعة او سورة نون په يوه رکعت کي ، سال سائل او والنازعات په يوه رکعت کي ، ويل للمطففين او عبس په يوه رکعت کي ، مدثر او مزمل په بل رکعت کي ، هل اتلی او لا اقسم بيوم القيامة په يوه رکعت کي ، عم يتساءلون او مرسلات په بل رکعت کي ، سورة دخان او اذا

الشمس په یوه رکعت کي ، ابوداؤد ددې خبري وضاحت کړی دی چي دا ترتیب د عبدالله ابن مسعود ﷺ د یوځای کولو سره سم دی .

د حدیث د ظاهري الفاظو مطلب په څرګنده دا معلومیږي چي د پورتنی طریقې سره سم رسول الله ﷺ سورة دخان او عم یتساءلون په یوه رکعت کي ویل حال دا چي داسي نه ده ځکه چي دا دواړه سورتونه نه یوازي دا چي هم مثل او په خپلو کي برابر نه دي بلکه داسي د حدیث ددې آخري جز او د حدیث دظاهري معنی او په مفهوم کي مطابقت نه پاته کیږي ، ددې جز وضاحت دا کول کیږي چي د حدیث ددغه الفاظو حقیقي معنا داده چي په دغه شلو رکعتونو کي آخري سورتونه حم الدخان او ددې هم مثل یعني اذا الشمس کورت او عم یتساء لون او ددې هم مثل یعني والمرسلات دي ، ددې مطلب به اوس دا سي چي رسول الله ﷺ به په یوه رکعت کي حم الدخان او اذا الشمس کورت وایه چي هم مثل او برابر سورتونه دي ، همداسي په یوه رکعت کي عم یتساء لون او والمرسلات به یې وایه چي هم مثل او برابر سورتونه دي .

## د قرآن کریم ویلو ترتیب

د علماوو پر دې خبره اجماع او اتفاق دی چي قرآن کریم په دغه ترتیب سره وویل سي کوم چي اوس رواج دي په یو بل ترتیب دي نه ویل کیږي، مګر هو ماشومانو ته د ښوونې په وجه د پای څخه ویل هم جائز دي او که چیري په لمانځه کي د ترتیب څخه خلاف وویل سي نو دا به غوره نه وي بلکه د ځینو علماؤ په نزد دا مکروه دی د امام احمد رحمة الله علیه دا مذهب دی .

## په لومړي رکعت کي د سورة والناس ویلو مسئله

دلته یو سوال پیدا کیږي که یو سړی په لومړي رکعت کي سورة والناس ووایي نو په دوهم رکعت کي هم سورة والناس ویل پکار دي ، مګر امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي که په لومړي رکعت کي سورة والناس وویل سي نو په دوهم رکعت کي دي سورة بقرة پیل کړل سي په داسي توګه چي د الم څخه تر مفلحون پوري آیاتونه دي ووایي ، په یوه روایت کي د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه څخه دا هم منقول دي بلکه دا قول زیات غوره دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د رسول کریم ﷺ د تهجد کیفیت

﴿۱۱۳۲﴾ : عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ

د حضرت حذيفة ﷺ څخه روايت دی چي هغه رسول الله ﷺ د شپې پر لمانځه کولو وليدی ،

وَكَانَ يَقُوْلُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ ثَلَاثًا ذُوْ الْمَلَكُوْتِ وَالْجَبَرُوْتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظْمَةِ ثُمَّ

رسول الله ﷺ به درې ځله الله اکبر وايه بيا به يې ويل : ( د ملک ، غلبې ،لوئي او برزګي خاونده ) تر دې وروسته به يې

اسْتَفْتَحَ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ ثُمَّ رَكَعَ فَكَانَ رُكُوْعُهُ نَحْوًا مِّنْ قِيَامِهِ فَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ

شروع په کول سبحانک اللهم..... بيا به يې سورة بقرة ويل او ددې وروسته به يې رکوع کول ، د رسول الله ﷺ رکوع به هم د ولاړې په اندازه وه او رسول الله ﷺ به په رکوع کي

رُكُوْعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ فَكَانَ قِيَامُهُ نَحْوًا

سبحان ربي العظيم ويل ، بيا رسول الله ﷺ د رکوع څخه سر پورته کړ او د رسول الله ﷺ قومه يعني د رکوع څخه دريدل د رکوع په اندازه وه ،

مِّنْ رُّكُوْعِهِ يَقُوْلُ لِرَبِّيَ الْحَمْدُ ثُمَّ سَجَدَ فَكَانَ سُجُوْدُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ فَكَانَ

په قومه کي به رسول الله ﷺ (لِرَبِّي الحَمد) ويل ، بيا رسول الله ﷺ سجده وکړه او سجده يې هم د قيام په اندازه وه ،

يَقُوْلُ فِيْ سُجُوْدِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُوْدِ وَكَانَ يَقْعُدُ

او په سجده کي يې ويل : سبحان ربي الاعلى ، بيا رسول الله ﷺ د سجدې څخه سر راپورته کړ او کښينستى

فِيْمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ نَحْوًا مِّنْ سُجُوْدِهِ وَكَانَ يَقُوْلُ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ فَصَلّٰى أَرْبَعَ

د دواړو سجدو په منځ کي د يوې سجدې په اندازه او دا يې ويل : رب اغفرلي ، همدارنګه رسول الله ﷺ څلور رکعته وکړل

رَكْعَاتٍ قَرَأَ فِيْهِنَّ الْبَقَرَةَ وَآلَ عِمْرَانَ وَالنِّسَاءَ وَالْمَائِدَةَ أَوِ الْأَنْعَامَ شَكَّ شُعْبَةُ .رواه أبو داود .

چي په هغو کي يې سورة بقرة، سورة آل عمران، سورة نساء او سورة مائده يا سورة انعام ووايه، شعبه راوي د سورة مائده او سورة انعام په منځ کي شک کړی دی . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۵۴۴-۵۴۵، رقم: ۸۷۴.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ رکوع د قيام په اندازه وه، ددې مطلب دا نه دی چي حقيقتا د رسول الله ﷺ رکوع تقريبا د قيام برابر وه ، يا دا چي رسول الله ﷺ به په رکوع کي دومره وخت وو تر څو مره وخت پوري چي به يې قيام کول، بلکه ددې مطلب دادی چي څرنګه رسول الله ﷺ د معمول څخه څه زيات قيام اوږد کړی وو ، همداسي رکوع هم د اندازې د معمول څخه زيات اوږده کړې وه کله دواړه يعني قيام او رکوع به برابر وي څرنګه چي نسائي د عوف بن مالک رضي الله عنه روايت نقل کړی دی ، رب اغفرلي دوه واره ذکر سوی دی په دې اړه دا احتمال هم سته چي رسول الله ﷺ به رب اغفرلي دوه واره وايه او دا هم احتمال دی چي په دې احتمال تر دوو زيات واره ويل وي . والله اعلم .

## د تهجد په لمانځه کي د زياتي ولاړي فضيلت

﴿۱۱۳۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَامَ بِعَشْرِ آيَاتٍ لَّمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِيْنَ وَمَنْ قَامَ بِمِائَةِ آيَةٍ

څوک چي په لمانځه کي لس آياتونه ووايي د هغه نوم به په غافلانو کي ونه ليکل سي او څوک چي سل آياتونه ووايي

كُتِبَ مِنَ الْقَانِتِيْنَ وَمَنْ قَامَ بِأَلْفِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْمُقَنْطِرِيْنَ . رواه أبو داود

د هغه نوم په فرمانبردارانو کي ليکل کيږي او څوک چي زر آياتونه ووايي نو هغه په ډير ثواب تر لاسه کونکو کي ليکل کيږي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۱۱۸، رقم: ۱۳۹۸.

**تشريح** : مطلب دادی چي کوم سړی د تهجد په لمانځه کي لس، سل يا زر آياتونه په ترتيل او اطمينان سره ووايي نو هغه ته پورتنی ثواب او د سعادت فضيلت تر لاسه کيږي او که يو سړی په خپل لمانځه کي لس آياتونه ووايي نو د فضيلت او ثواب په اعتبار به د هغه سړي څخه کم وي

چا چي سل آياتونه په خپل لمانځه کي ويلي وي او هغه به د فضيلت او سعادت په اعتبار تر هغه سړي کم وي کوم چا چي په خپل لمانځه کي زر آياتونه ويلي وي ، دلته دوه سوالونه پيدا کيږي اول خو دا چي د آياتونو شمير په يوه رکعت کي د ويلو اعتبار نه دی يا د يو څخه زيات رکعتو کي به دا شمير ويل کيږي ، دوهم دا چي په دغه شمير کي د سورة فاتحه آياتونه شامل دي يا د هغه څخه پرته نور ؟

د لومړني سوال په اړه علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي د آياتونو شمير په دوو يا د دوو څخه زيات رکعتو کي ويل کيږي .

د دوهم سوال په اړه دا ويل کيږي چي د حديث ظاهري الفاظ خو دا مراد ښيي چي د سورة فاتحې څخه پرته لس آياتونه وي مګر صحيح او ظاهر دادی چي د حديث پورتنی ثواب په دغه صورت کي هم حاصليږي چي پورتنی شمير د سورة فاتحې په شاملولو سره وکړل سي ، په دې توګه چي اووه آياتونه خو د سورة فاتحې سي او درې آياتونه نور چي د لمانځه د قرائت ادنا درجه ده .

قانتين يعني پر دغه اطاعت باندي هميشه کونکی يا په عبادت کي قيام اوږده کونکی ددې مطلب دادی چي کوم خلک په لمانځه کي سل آياتونه وايي د هغوی نوم د الله تعالی په هميشه اطاعت کونکو کي ليکل کيږي ، يا په عبادت کي د قيام په اوږده کونکو کي ليکل کيږي چي ډيره د سعادت او خوشبختۍ خبره ده .

د علامه طيبي رحمة الله عليه د الفاظو څخه چي ددې حديث په تشريح کي دي معلوميږي چي دا حديث مطلق دی د ورځي يا شپې سره مقيد نه دی يعني که څه هم هر يو لمونځ وي د ورځي وي يا د شپې وي ، په کوم لمانځه کي هم چي دغه د آياتونو شمير وويل سي ثواب تر لاسه کيږي .

علامه بغوي رحمة الله عليه دا حديث پر پوره موقع باندي يعني په باب صلوة الليل کي نقل کړی او دې ته يې اشاره کړې ده چي د شپې يعني د تهجد په لمانځه کي پورتني شمير کي چي کوم آياتونه وويل سي نو د هغه ثواب به ډېر زيات حاصل سي ، ځيني علماء ليکي چي قيام کول ددې خبري کنايه ده چي مذکور شمېر کي که آياتونه ياد کړل سي او هغه هر وخت ويل کيږي او دا چي ددې په معنی او مقصد کي غور او فکر او په هغه عمل وکړل سي ، والله اعلم .

## په تهجد کي د رسول الله ﷺ قرائت

﴿۱۱۳۴﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ

يَرْفَعُ طَوْرًا وَّيَخْفِضُ طَوْرًا . رواه أبو داود .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ د شپې قرائت به دول دول وو کله په لوړ آواز او کله په کښته آواز. ابوداؤد

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۲\۸۱، رقم: ۱۳۲۸.

﴿۱۱۳۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَدْرِ مَا يَسْمَعُهُ مَنْ فِي الْحُجْرَةِ وَهُوَ فِي الْبَيْتِ . رواه أبو داود .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په دومره آواز سره قرائت وايه که چيري رسول الله ﷺ به په خونه کي دننه وو نو په غولي کي به اوريدل کيدی . ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۲\۸۱ – ۸۲، رقم: ۱۳۲۷.

**تشريح:** يعني نه خو به يې په لوړ آواز قرائت وايه او نه به يې بالکل په کرار آواز سره چي څوک يې نه اوري بلکه په داسي آواز به يې وايه ، او کله چي به رسول الله ﷺ په حجره کي دننه لمونځ کوی نو کوم خلک چي به دباندي په غولي کي وه هغوی به قرائت اوريدی .

په دې خبره پوه سئ چي د قرائت په اړه څه بيانيږي د هغه تعلق د شپې يعني د تهجد د لمانځه سره دی ځکه چي رسول الله ﷺ به په مسجد کي لمونځ کوی نو د شپې د لمانځه په نبت به يې په زيات لوړ آواز سره قرائت وايه .

## د تهجد په قرائت کي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه طريقه

﴿۱۱۳۶﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ لَيْلَةً

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه شپه د باندي راووتی ،

فَإِذَا هُوَ بِأَبِي بَكْرٍ يُصَلِّي يَخْفِضُ مِنْ صَوْتِهِ وَمَرَّ بِعُمَرَ وَهُوَ يُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَهُ

نو د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره تير سو چي په کښته آواز سره يې لمونځ کوی، بيا د حضرت عمر رضي الله عنه سره نژدې تير سو چي په لوړ آواز سره يې لمونځ کوی،

قَالَ فَلَمَّا اجْتَمَعَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا أَبَابَكْرٍ مَرَرْتُ بِكَ

ابو قتاده رضي الله عنه وايي كله چي ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه دواړه د رسول الله ﷺ سره يو ځای سول نو رسول الله ﷺ وفرمايل : اې ابوبكر ! زه ستا په خوا كي تيريدم

وَأَنْتَ تُصَلِّي تَخْفِضُ صَوْتَكَ قَالَ قَدْ أَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ وَقَالَ

او تا په كرار آواز سره لمونځ كوی، ابوبكر رضي الله عنه عرض وكړ اې د الله رسوله ! ما هغه ته اوروی د چا سره چي مي مناجات كول، بيا رسول الله ﷺ فرمايل

لِعُمَرَ مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَكَ فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللهِ أُوْقِظُ الْوَسْنَانَ

عمر ته چي زه ستا په خوا كي تير سوم نو تا په لوړ آواز سره لمونځ كوی ، عمر رضي الله عنه وويل : اې د الله رسوله ! ما بيده خلك راوېښول

وَأَطْرِدُ الشَّيْطَانَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا بَكْرٍ ارْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ

او شيطان مي تبنتوی، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې ابوبكر ! ته خپل آواز لوړ كړه

شَيْئًا وَقَالَ لِعُمَرَ اخْفِضْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا . رواه أبو داود وروى الترمذي نحوه

يو څه او اې عمره! ته خپل آواز لږ كراره كړه . ابوداؤد او ترمذي .

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۲\۸۱– ۸۲، رقم: ۱۳۲۷. والترمذي ۲\۳۰۹، رقمگ ۴۴۷.

## د يو آيت په وېلو ټوله شپه ولاړه

﴿۱۱۳۷﴾ : وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى أَصْبَحَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د تهجد په لمانځه كي تر سهاره پوري ودرېدی

بِآيَةٍ وَالْآيَةُ: إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ . رواه النسائي وابن ماجه .

او دا آيت يې وايه : (ان تعذبهم ......) (اې الله ! كه ته دوی ته عذاب وركړې نو دا ستا بندګان دي او كه بخښنه ورته وكړې نو ته غالب او د حكمت خاوند يې ) (دغه آيت د سورة مائدة په آخر كي دی). نسائي او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن النسائي ۲\۱۷۷، رقم: ۱۰۰۹، وابن ماجه ۱\۴۲۹، رقم: ۱۳۵۰.

**تشريح**: حضرت عيسى عليه السلام به د قيامت په ورځ د الله تعالى په دربار كي د خپل امت لپاره دا آيت عرض كړي او رسول الله ﷺ د تهجد پر وخت د خپل امت حسب حال دا آيت وايه يعني د پروردګار په دربار كي رسول الله ﷺ د تهجد په لمانځه كي هم په ولاړه تر سهاره پوري په وار وار دعاء كول او د خپل امت مغفرت او بخښنه يې غوښتل. صلى الله عليه الف الف صلوة.

## د سهار د سنت كولو وروسته پريوتل

﴿۱۱۳۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيَضْطَجِعْ عَلٰى يَمِيْنِهِ. رواه الترمذي وأبو داود.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي په تاسو كي يو څوک د سهار دوه ركعته سنت وكړي نو پر راسته بغل دي لږ وخت پريوځي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۴۷، رقم: ۱۲۶۱. والترمذي ۲\۲۸۱، رقم: ۴۲۰.

**تشريح**: د سهار د سنت كولو څخه تر جماعت پيل كېدو پوري پر راسته طرف د پريوتلو لامل ځيني حنفيه علماء دا بيان كوي چي د تهجد لمونځ او په شپه كي د عبادت د بوختيا په وجه په طبعيت كي سستي پيدا كيږي ځكه د سهار سنت كولو وروسته د لږ وخت لپاره پر تكيه كولو حكم يې وكړ چي سستي ختمه سي او راحت او سكون تر لاسه سي چي د هغه په وجه فرض لمونځ په اطمينان سره وسي. ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي كوم سړى چي د شپې د الله تعالى په عبادت كي بوخت وي او د تهجد لمونځ كوي د هغه سړي په حق كي دا (يعني د سهار د سنت كولو وروسته پر راسته اړخ د پريوتلو حكم) د استحباب امر دى.

سيد زكريا رحمة الله عليه چي د هغه شمير د حنفيه په نزد د علم حديث د مشائخو څخه كيږي فرمايي: ښه او غوره داده چي دا طريقه په پټه توګه اختيار كړل سي يعني په كور كي داسي كوي په مسجد كي د خلكو په مخكي دي داسي نه كوي او دا چي دا پريوتل دي صرف د پروتي تر حده وي او ځان دي دخوب څخه وساتي داسي نه چي په پروتي سره بيده سي او په راكښېنستو سره په جماعت كي ګډون وكړي او فرض لمونځ بې اودسه وكړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### پر عمل همیشتوب

﴿۱۱۳۹﴾: عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ أَيُّ الْعَمَلِ كَانَ أَحَبُّ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ

د حضرت مسروق رحمه الله څخه روایت دی چي ما د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي کوم عمل د رسول الله ﷺ زیات خوښ وو ؟

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ اَلدَّائِمُ قُلْتُ فَأَيَّ حِيْنٍ كَانَ يَقُوْمُ مِنَ اللَّيْلِ ؟

هغې وویل: هغه عمل چي تل کیږي، ما بیا پوښتنه وکړه رسول الله ﷺ به څه وخت د شپې د تهجد لپاره راپورته کیدی ؟

قَالَتْ كَانَ يَقُوْمُ إِذَا سَمِعَ الصَّارِخُ . متفق علیه

هغې وویل : کله چي به چرګ آذان وکړ . بخاري او مسلم .

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۶/۳، رقم: ۱۱۳۲، ومسلم: ۵۱۱/۱، رقم: ۱۳۱- ۷۴۱.

**د لغاتو حل:** (الصارخ): ای صورت الدیک (د چرګ آذان).

**تشریح** : د عمل د همیشتوب مطلب دادی چي هغه نیک او بامقصد عمل چي کونکی یې همیشه په پابندي سره کوي او څرنګه چي په ځینو روایاتو کي مذکور دي که څه هم هغه عمل لږ وي ، زموږ په شاوخوا کي خو په عامه توګه سره چرګ د شپې په آخري برخه کي یعني سهار ته نژدې آذان کوي مګر په عربو کي په عامه توګه سره د نیمي شپې وروسته چرګ آذان کوي ، رسول الله ﷺ به د چرګ د آذان اوریدو سره کښینستی او هغه وخت به یې تهجد کول .

### د رسول کریم ﷺ د شپې معمول

﴿۱۱۴۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ مَا كُنَّا نَشَاءُ أَنْ نَرٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي اللَّيْلِ مُصَلِّيًا إِلَّا رَأَيْنَاهُ وَلَا نَشَاءُ أَنْ نَرَاهُ نَائِمًا إِلَّا رَأَيْنَاهُ . رواه النسائي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي که موږ به دا غوښتل چي رسول الله ﷺ د شپې پر لمانځه کولو ووینو ، نو رسول الله ﷺ به مو پر لمونځ کولو ولیدی او که موږ به دا غوښتل چي رسول الله

ﷺ په خوب کولو وويښو نو موږ به هغه مبارک پر خوب کولو وليدی (يعني د تهجد لمونځ به يې هم کوی او خوب به يې هم کوی) . نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۲۱۳، رقم: ۱۶۲۶.

**تشريح** : د انس رضي الله عنه د ارشاد مطلب دادی چې رسول الله ﷺ به د شپې د تهجد وغيره کولو په اړه معقوله رويه اختيارول نه خو به يې ټوله شپه په تهجد کې تيرول او نه به ټوله شپه بيده وو بلکه په هره شپه کې به بيده کېدی هم او تهجد به يې هم کوی نو رسول الله ﷺ به د تهجد لمانځه لپاره نه خو ټوله شپه ويښ وو او نه به ټوله شپه بيده وو ځکه رسول الله ﷺ به د شپې تهجد وغيره کې بو خت هم ليدل کيدی او بيده به هم ليدل کيدی .

﴿۱۱۴۱﴾: وَعَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ إِنَّ رَجُلاً مِنْ أَصْحَابِ

د حضرت حميد بن عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه څخه روايت دی چې د نبي کريم ﷺ په اصحابو کې

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُلْتُ وَأَنَا فِيْ سَفَرٍ مَّعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ

يو کس خپلو ملګرو ته يا په خپل زړه کې وويل چې زه د رسول الله ﷺ سره په سفر کې وم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللهِ لَأَرْقُبَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصَّلَاةِ حَتّٰى أَرٰى

او دا اراده مې کړې وه چې زه به قسم په خدای د رسول الله ﷺ د شپې لمونځ وينم تر دې چې ووينم

فِعْلَهُ فَلَمَّا صَلّٰى صَلَاةَ الْعِشَاءِ وَهِيَ الْعَتَمَةُ اِضْطَجَعَ هَوِيًّا مِنَ اللَّيْلِ ثُمَّ

دده مبارک فعل په خپلو سترګو سره او خپله هم داسې وکړم، نو ما وليدل چې رسول الله ﷺ د ماخستن لمونځ وکړ او بيده سو او تر ډيره وخته پورې بيده وو بيا

اسْتَيْقَظَ فَنَظَرَ فِي الْأُفُقِ فَقَالَ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلاً حَتّٰى بَلَغَ إِلٰى إِنَّكَ

راويښ سو او آسمان ته يې وکتل او دا آيت يې ووايه : (ربنا ماخلقت ....) تر (انک

لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ. ثُمَّ أَهْوٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى فِرَاشِهِ

لاتخلف الميعاد) پورې ، بيا رسول الله ﷺ د بسترې په لور متوجه سو

فَاسْتَلَّ مِنْهُ سِوَاكًا ثُمَّ أَفْرَغَ فِيْ قَدَحٍ مِّنْ إِدَاوَةٍ عِنْدَهُ مَاءً فَاسْتَنَّ ثُمَّ قَامَ

او مسواک يې راوکښی، د پتک څخه يې او به په پياله کي راواخيستې بيا يې مسواک وواهه او اودس يې وکړ او تر دې وروسته ودريدی د لمانځه لپاره

فَصَلَّى حَتّٰى قُلْتُ قَدْ صَلّٰى قَدْرَ مَا نَامَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى قُلْتُ قَدْ نَامَ قَدْرَ مَا

او لمونځ يې وکړ تر دې چي ما په خپل زړه کي وويل چي رسول الله ﷺ دومره بيده سو څومره وخت چي يې

صَلّٰى ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَفَعَلَ كَمَا فَعَلَ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَقَالَ مِثْلَ مَا قَالَ فَعَلَ رَسُوْلُ

لمونځ وکړ، بيا رسول الله ﷺ بيدار سو او همداسي يې وکړل څنګه چي مخکي يې کړی وه او هغه يې وويل کوم چي په لومړي ځل يې ويلي وه، رسول الله ﷺ

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَبْلَ الْفَجْرِ. رواه النسائي.

د سهار د لمانځه څخه ترمخه درې واره داسي وکړل. نسائي.

**تخريج:** سنن النسائي: ۳\۲۱۳، رقم: ۱۶۲۵.

**د لغاتو حل:** (هَوِيا): اى حينا طويلا. (اِدواة): اناء صغير يحمل فيه الماء (د اوبو کوچنی لوښی). (فاستن): الاستِنان هو استعمال السواک. (مسواک وهل).

**تشريح:** د آيت د ويلو په اړه دوه احتماله دي: يو خو دا کيدای سي چي رسول الله ﷺ په هغه شپه کي تر (انک لاتخلف الميعاد) پوري ويلي وي، دوهم احتمال دادی چي رسول الله ﷺ دا آياتونه تر آخر سورت پوري ويلي وي مګر اوريدونکي تر انک لاتخلف الميعاد څخه وروسته آياتونه اوريدلي نه وي، همدارنګه په دې حديث کي او د ابن عباس رضي الله عنه په اتم نمبر حديث کي مطابقت هم پيدا کيږي چي د هغه څخه معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ سورت تر پايه پوري تلاوت کړی وو.

﴿۱۱۴۲﴾: وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت يعلي بن مالک رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه د رسول الله ﷺ د مېرمني ام سلمه رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه

عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَاتِهِ فَقَالَتْ وَمَا لَكُمْ وَصَلَاتَهُ

د رسول الله ﷺ د قرائت په اړه ، هغې وفرمایل : د رسول الله ﷺ د قرائت او لمانځه څخه به تا ته څه په لاس درسي (یعني په تا کي دومره توان نسته)

كَانَ يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى ثُمَّ يُصَلِّي قَدْرَ مَا نَامَ، ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا

رسول الله ﷺ به د شپې لمونځ کوی بیا به بیده سو یعني څومره وخت چي به یې لمونځ کوی هغومره وخت به بیده سو بیا څومره وخت چي به بیده سو هغومره وخت به یې لمونځ کوی بیا به هغومره وخت بیده کیدی څومره وخت چي به یې

صَلَّى حَتَّى يُصْبِحَ ثُمَّ نَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي.

لمونځ کوی تر دې چي سهار به سو ، د دې وروسته ام سلمه د رسول الله ﷺ د قرائت بیان وکړ تر دې چي یو یو حرف یې د رسول الله ﷺ د قرائت بیان کړ. ابوداؤد، ترمذي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۲\ ۱۵۴، رقم: ۱۴۶۶. والترمذي ۵\ ۱۶۷، رقم: ۲۹۲۳، والنسائي: ۳\ ۲۱۴، رقم: ۱۶۲۸.

==================

# بَابُ مَا يَقُوْلُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ

## نبي كريم ﷺ به د شپې په لمانځه کي څه ويل

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د تهجد په لمانځه کي د نبي کريم ﷺ دعاء

﴿۱۱۴۳﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ دریدی

مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ قَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ

د شپې د تهجد لپاره نو دا دعاء به یې کول : (اې الله ! ته قائم ساتونکی یې د آسمانونو او مځکې او هغو شیانو

فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ نُوْرُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ

چې ددې په منځ کې دي او ټول تعریف یوازې تا لره دي ته د آسمانو ، مځکې او هغه څه چې ددوی په منځ کې دي نور یې او ټول تعریف یوازې تا لره دي ته

مَلِكُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ الْحَقُّ وَوَعْدُكَ الْحَقُّ

د آسمانو او مځکو او څه چې په دې کې دي پاچا یې او ټول تعریف یوازې تا لره دی ته حق یې ستا وعده حق ده

وَقَوْلُكَ الْحَقُّ وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالنَّبِيُّونَ حَقٌّ وَمُحَمَّدٌ

ستا قول حق دی ستا ملاقات حق دی جنت حق دی او دوږخ حق دی انبیاء حق دي او محمد (ﷺ)

حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ اللّٰهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْكَ

حق دی او قیامت حق دی ، اې الله ! زه ستا فرمانبردار یم او پر تا مې ایمان راوړی دی او ما پر تا باور کړی دی او ستا په لور مې

أَنَبْتُ وَبِكَ خَاصَمْتُ وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا

رجوع وکړه زه ستا په مرسته سره د خپل د ښمن سره جګړه کوم او ستا و لوري ته مې فریاد راوړی دی نو زما هغه ګناه و بخښې چې ما مخکې کړې ده یا یې وروسته کوم او کوم چې

أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّيْ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ. متفق علیه

ما پټ کړې دي او کومه چې مې په ښکاره کړې ده او ته په هغو ګناهو زما څخه زیات خبر یې ته وړاندې کونکی او ته وروسته کونکی یې ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او ستا څخه پرته

بل خدای نسته.) بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳، رقم: ۱۱۲۰، ومسلم ۱\۵۳۲، رقم: ۱۹۹– ۷۶۹.

**تشريح:** ځرګنده خو داده چي رسول الله ﷺ دغه دعاء د تكبير تحريمه وروسته يا د ركوع څخه وروسته په قومه كي كړې وه لكه څرنګه چي په ځينو روايتو كي د دې وضاحت دی.

﴿۱۱۴۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنْ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ د لمانځه لپاره ودريدی

اللَّيْلِ افْتَتَحَ صَلَاتَهُ فَقَالَ اللّٰهُمَّ رَبَّ جَبْرَائِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ

د شپې نو خپل لمونځ به يې په دغه دعاء پيلوی: اې الله! پروردګاره د جبرائيل، ميكائيل او اسرافيل

فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ

اې د آسمان او مځكي پرودرګاره، اې د پټ او ځرګند پيژندونكې ته به د قيامت په ورځ د خپلو بندګانو په منځ كي پريكړه وكړې

فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ اهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ إِنَّكَ تَهْدِي

د هر هغه شي چي هغوی پكښي اختلاف كوی په هغه شی كي زما لارښوونه وكړې چي د امر حق څخه پكښي اختلاف كړل سوی دی، بېشكه ته ښيي

مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ. رواه مسلم

چا ته چي ستا خوښه سي سيده لاره. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\۵۳۴، رقم: ۲۰۰– ۷۷۰.

## د خوب څخه د كښينستو وروسته تسبيح او د هغه فضيلت

﴿۱۱۴۵﴾: وعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ

څوک چي د شپې د خوب څخه راوېښ سي نو دا دعاء دي غواړي : (د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته هغه يوازي دی هغه څوک شريک نه لري پاچاهي د هغه ده او د هغه لپاره دي

اَلْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَسُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَاللهُ

هر ډول تعريف او هغه پر هر شي واكدار دی او الله ﷻ د هر عيب څخه پاک دی او ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي د هغه څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او الله ﷻ

أَكْبَرُ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ ثُمَّ قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ أَوْ قَالَ ثُمَّ دَعَا اسْتُجِيْبَ

ډير لوی دی د عبادت توان او د ګناه څخه د خلاصون توان د الله ﷻ په مرسته دی) د دې وروسته دي دا ووايي : اې الله ﷻ! ما و بخښې ، بيا رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي بيا دي دا دعاء وکړي قبوله به سي

لَهُ فَإِنْ تَوَضَّأَ وَصَلّٰى قُبِلَتْ صَلاَتُهُ. رواه البخاري .

او که اودس وکړي نو لمونځ دي وکړي لمونځ به يې قبول سي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۹، رقم: ۱۱۵۴.

**د لغاتو حل**: (تَعَارَ): انتبه من النوم : (د خوبه را پاڅېدل).

**تشريح** : د (تعار) معنی ځينو د خوب څخه د کښېنستو او ځينو د اړخ بدلېدو اخيستې ده، او ابن مالک رحمة الله عليه ددې معنی په زغ سره د کښېنستلو ليکلې ده ځرنګه چي د کښېنستو په وخت کي د خولې.څخه آواز وځي نو رسول الله ﷺ دا خوبښ کړی او غوره ګرځولی دی چي د وېښېدو څخه وروسته کوم آواز د خولې څخه وځي هغه دي د تسبيح وغيره آواز وي، د الله تعالی سره تعلق لرونکي چي د خوب څخه کښېنيني نو د هغوی د خولې څخه کلمه يا دا ډول د تسبيح او دعاء آواز راوځي ، ځينو حضراتو ليکلي دي چي هغه دعاء چي د خوب څخه د وېښېدو وروسته ويل کيږي هغه ته (درهم الکيس) وايي يعني ځرنګه چي يو سړی درهم او روپۍ په کڅوړه کي اچوي او کله چي غواړي د هغه څخه يې راکاږي چي په هغه سره د هغه اړتيا پوره سي همدا سي دا دعاء چي د مؤمن په زړه او دماغ کي محفوظ وي کله چي هغه د خوب څخه راکښيني او دا دعاء هغه د خولې څخه راوباسي نو هغه د الله تعالی په دربار کي د قبوليت درجه تر لاسه کوي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### دويښېدو په وخت کي د رسول الله ﷺ دعاء

《۱۱۴۶》: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ را وېښ سو

مِنَ اللَّيْلِ قَالَ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ أَنْتَ سُبْحَانَكَ اَللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي

د شپې نو دا کلمات به يې ويل: (اې الله! ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته ته پاک يې، اې الله! زه ستا پاکي بيانوم او د خپلو ګناهونو بخښنه غواړم

وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ اَللّٰهُمَّ زِدْنِيْ عِلْمًا وَلاَ تُزِغْ قَلْبِيْ بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِيْ وَهَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ. رواه أبو داود.

او ستا څخه ستا د رحمت غوښتونکی يم، اې الله! زما علم زيات کړې د هدايت راکولو څخه وروسته زما په زړه کي کوږوالی پيدا مه کړې او د خپل لوري څخه زما لپاره رحمت راکړې ته ډير بخښونکی يې) ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد: ۵\۳۰۶، رقم: ۵۰۶۱.

### دويښېدو وروسته د ذکر فضيلت

《۱۱۴۷》: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَامِنْ مُسْلِمٍ يَبِيْتُ عَلٰى ذِكْرٍ طَاهِرًا فَيَتَعَارُ مِنَ اللَّيْلِ فَيَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا إِلاَّ أَعْطَاهُ اللهُ إِيَّاهُ. رواه أحمد وأبو داود.

کوم څوک چي د او داسه په حالت کي د الله جل جلاله په ذکر کولو کي بيده سي او بيا د شپې راکښېني او د الله څخه د خير دعاء وغواړي نو الله تعالى به د دين او دنيا خير ورکړې. احمد. ابوداؤد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۲۴۱، وابوداؤد ۵\۲۹۶، رقم: ۵۰۴۲.

## د تهجد د لمانځه مخکې تسبيح او دعاء

﴿۱۱۴۸﴾: وَعَنْ شَرِيْقِ الْهَوْزَنِيِّ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عَائِشَةَ فَسَأَلْتُهَا بِمَ كَانَ

د حضرت شريق الهوزني رحمه الله څخه روايت دی چې زه د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کې حاضر سوم او پوښتنه مې وکړه چې

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَتْ سَأَلْتَنِيْ

رسول الله ﷺ به د شپې راويښ سو نو د کوم عبادت څخه به يې شروع کول ؟ بي بي عائشې رضي الله عنها ورته وويل : تا زما څخه پوښتنه وکړه

عَنْ شَيْءٍ مَا سَأَلَنِيْ عَنْهُ أَحَدٌ قَبْلَكَ كَانَ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ عَشْرًا وَّحَمِدَ

د هغه شي چې تر اوسه پوري داسې پوښتنه چا نه وه کړې ، رسول الله ﷺ چې به د شپې راکښېنستی نو لس واره به يې الله اکبر وايه،

اللهَ عَشْرًا وَقَالَ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ عَشْرًا وَقَالَ سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ

لس واره به يې الحمد لله ويل ، لس واره به يې سبحان الله وبحمده ويل ، او ويل به يې سبحان الملک القدوس

عَشْرًا وَاسْتَغْفَرَ عَشْرًا وَهَلَّلَ عَشْرًا ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ ضِيْقِ

لس واره او استغفار لس واره او لا اله الا الله لس واره بيا به يې لس واره دا کلمات ويل : (اې الله ! زه پناه غواړم د تنګۍ څخه

الدُّنْيَا وَضِيْقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ عَشْرًا ثُمَّ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ . رواه أبو داود .

د دنيا او د قيامت د ورځې د تنګۍ او سختۍ څخه د دې وروسته به يې لمونځ پيل کړ ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۵\۳۲۲ – ۲۳۲، رقم: ۵۰۸۵.

**تشريح**: د صوفيانو په نزد دلته لس تسبيحات دي چې اووه اووه واره ويل کيږئ او هغو ته د دوی په اصطلاح کي (مسبعات عشره) وايي ، په دې حديث کي اووه تسبيحات دي چې هغه

لس لس واره ویل یې ذکر سوي دي ، د صوفیانو په اصطلاح کي د (مسبعات عشره) په مقابله کي د محدثینو کرامو په نزد په دغه حدیث کي ذکر سوي تسبیحات او د هغه شمیر ته (معشرات سبعه) وایي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د شپې اذکار

﴿۱۱۴۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ

د حضرت ابو سعید ﷛ څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ د لمانځه لپاره راکښېنستی

مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ ثُمَّ يَقُولُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى

د شپې نو الله اکبر به یې وایه او بیا به یې دا ویل : (سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى

جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ ثُمَّ يَقُولُ اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا ثُمَّ يَقُولُ أَعُوذُ بِاللهِ السَّمِيعِ

جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ) بیا به یې (اَللهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا) وایه او ددې وروسته به یې دا ویل : (أَعُوذُ بِاللهِ السَّمِيعِ

الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي و زاد ابوداؤد بعد قوله غيرك ثم يقول لااله الاالله ثلثا وفي آخر الحديث ثم يقرا.

الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ) . ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابوداؤد د (غیرک) څخه وروسته دا الفاظ زیات کړي دي چي بیا به رسول الله ﷺ درې واره (لااله الاالله) ویل ، او حدیث په پای کي دي چي بیا به یې قرائت وایه .

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۹-۱۰، رقم: ۲۴۲، وابوداؤد ۱\۴۹۰، رقم: ۷۷۵. والنسائي: ۲\۱۲۲، رقم: ۸۹۹

﴿۱۱۵۰﴾: وَعَنْ رَّبِيعَةَ بْنِ كَعْبِ الْأَسْلَمِيِّ قَالَ كُنْتُ أَبِيتُ عِنْدَ حُجْرَةِ النَّبِيِّ

د حضرت ربیعة ﷛ څخه روایت دی چي ما به د رسول الله ﷺ د حجرې سره نژدې شپه تیرول ،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَقُوْلُ سُبْحَانَ رَبِّ

رسول الله ﷺ چي به د شپې راكښېنستی نو ما به آواز واوريدی چي رسول الله ﷺ به تر ډيره وخته پوري (سُبْحَانَ رَبِّ

الْعَالَمِيْنَ الْهَوِيَّ ثُمَّ يَقُوْلُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ الْهَوِيَّ . رواه النسائي وللترمذي نحوه وقال هذا حديث حسن صحيح .

الْعَالَمِيْنَ) وايه، بيا به يې تر ډيره وخته پوري ويل (سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ) نسائي ،ترمذي.

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۲۰۹، رقم: ۱۷۱۶. والترمذي ۵\۴۴۸، رقم: ۳۴۱۶.

**د لغاتو حل**: (الهَوِي): هو الزمن الطويل، وقيل: انه مختص بالليل. مرقات. (اوږد مهال).

==========

# بَابُ التَّحْرِيْضِ عَلٰى قِيَامِ اللَّيْلِ

## د شپې د عبادت د ترغيب بيان

د قيام الليل مطلب دادی چي په شپه کي د الله تعالی په عبادت مثلا تهجد، ذکر وغيره کي بوخت اوسيدل، له دې کبله (قائم الليل) هغه خوشبخته او باسعادت خلکو ته ويل کيږي چي د شپې په پورته کېدو سره د خپل پروردګار عبادت او د هغه په ذکر کي بوخت وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د شيطان چمبازي

﴿۱۱۵۱﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْقِدُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوټې ورکوي

الشَّيْطَانُ عَلٰى قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ إِذَا هُوَ نَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ يَضْرِبُ عَلٰى كُلِّ

شيطان په تاسو کي د يو چا څټ ته درې غوټې کله چي هغه بيده سي او د هري غوټې پر وخت دا

(وسوسه) وراچوي چي

عُقْدَةٍ عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيلٌ فَارْقُدْ فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللّٰهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَإِنْ

شپه لا ډيره پاته ده بيده سه ، که هغه بيده راکښېني او د الله ﷻ ذکر کوي نو يوه غوټه خلاصه سي او که

تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَأَصْبَحَ نَشِيطًا طَيِّبَ النَّفْسِ وَإِلاَّ أَصْبَحَ خَبِيثَ النَّفْسِ كَسْلاَنَ . متفق عليه

هغه اودس کوي نو د وهمه غوټه هم خلاصه سي بيا چي هغه لمونځ کوي نو دريمه غوټه هم خلاصه سي نو دی سهار ښه خوشحاله او پاک نفس وي او که نه راکښيني د الله ﷻ ذکر ونه کړي نو هغه په دې حالت کي سهار راکښيني چي سست او ناپاک وي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۲۴، رقم: ۱۱۴۲. ومسلم ۱\ ۵۳۸، رقم: ۲۰۷- ۷۷٦.

**تشريح** : د غوټي په معنی او مطلب کي اختلاف دی ، د ابن مالک رحمة الله عليه قول دا دی چي د غوټي څخه مراد د سستی غوټه ده يعني شيطان په خپل چمو سره په شپه کي د الله تعالی د عبادت لپاره پورته کېدونکو لپاره د سستی باعث جوړېږي ، د ميرک شاه رحمة الله عليه د قول سره سم ځيني علماء دا وايي چي دا پر حقيقت باندي محمول دی يعني شيطان مردود واقعا د بيده کيدونکي غاړه غوټه کوي لکه څرنګه چي جادوګر د جادو کولو په وخت کي يو تا ته غوټه ورکوي د دې تائيد د يوه روايت څخه هم کيږي چي په مرقات کي منقول دی .

د ځينو حضراتو وينا ده چي دا پر مجاز باندي محمول دی لکه څرنګه چي غوټه ورکول د ساحر کار دی هغه د دې په ذريعه مسحور د هغه د مراد څخه منعه کوي په دې سره بيده کيدونکي ته په شپه کي د لمانځه کولو او د الله ﷻ په ذکر کي د بوخت کېدو سره د شيطان په منعه کولو سره مشابهت ورکړل سوی دی يعني څرنګه چي يو ساحر د سحر په وخت کي يو تا ته په غوټه ورکولو سره هغه د خپل مقاصدو څخه منعه کوي په دې توګه چي د مسحور عملي قوتونه مفلوج سي همداسي شيطان هم په شپه کي بيده د خپلو مکرو په ذريعه د ذکر الله او په عبادت کي د بوخت کېدو لپاره د پورته کولو څخه منعه کوي .

د ځينو علماؤ قول دا دی چي د دې څخه مراد د زړه غوټه او د شيطان له خوا بيده سړی پر يو شي مصمم او قائمول دي يعني شيطان د بيده په زړه کي دا وسوسه اچوي او د دې خبري يقين

ورکوي چي اوس لا شپه ډيره پاته ده بيده سه نو هغه د شيطان په فريب کي اخته سي او په پورته کېدو سره د لمانځه څخه منعه سي.

د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي کوم سړی په شپه کي د شيطان په مکر او فريب کي نه وموښلي بلکه پر وخت پورته کېدو سره تهجد لمونځ او د الله په ذکر کي بوخت سي نو هغه سهار د ځان سره خوشبختي، پاک نفسي او د پاکی سعادتونه راوړي چي د هغه په وجه هغه ټول ورځ د الله تعالی د رحمتونو په سايه کي وي او د هغه زړه او د ماغ د هر ډول بيري او خطرې څخه بې پرواه او ددين او دنيا په امورو کي په اطمينان سره وي، ددې بر خلاف کوم سړی چي د شيطان د فريب ښکار سي او د هغه د مکر په جال کي وموښلي چي د هغه په وجه نه خو هغه د شپې په پورته کېدو د الله تعالی ذکر کوي او نه په تهجد لمانځه کي بوخت کيږي بلکه بيده وي نو د هغه لپاره سهار په خپل لمن کي سستي، غفلت او د چټل نفس بار راوړي چي د هغه په وجه هغه ټوله ورځ چټل نفس، غمجن، متفکر او د خپلو کارو په پای ته رسولو کي حيران او پريشان وي، يعني د سستی او غفلت په وجه هغه چي د کوم کار اراده کوي نو په هغه کي ناکام او بد زړه وي ځکه چي هغه د شيطان د مکر او فريب په جال کي مقيد او د قرب الهي د رحمتونو څخه ليري وي.

## دنبي کريم ﷺ اکثر عبادت د شکر لپاره وو

﴿۱۱۵۲﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تَوَرَّمَتْ

د حضرت مغيرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د شپې دومره اوږده ولاړه وکړه چي

قَدَمَاهُ فَقِيلَ لَهُ لِمَ تَصْنَعُ هٰذَا وَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا

پښې مبارکي يې وپړسيدلې، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! تاسو داسي ولي کوئ ستاسو خو مخکي او

تَأَخَّرَ قَالَ أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا. متفق عليه

وروسته ټول گناهونه بخښل سوي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا زه شکر گزار بنده جوړ نه سم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۵۸۴، رقم: ۴۸۲۶. ومسلم ۴\ ۲۱۷۱، رقم: ۷۹-۲۸۱۹.

**تشریح** : د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي الله تعالی زما ټول گناهونه بخښلي دي او زه ددين او دنيا تر ټولو اعلی مقام باندي فائز کړی یم نو ایا زما حق دادی چي زه د عبادت په محنت او مشقت کولو سره د هغه الله ﷻ چي زه يې په خپل بې شمیره رحمتونو او نعمتونو مشرف کړی یم شکر کوونکی جوړ نسم ، نه بلکه الله ﷻ چي د مغفرت او بخښني کوم نعمت ما ته راکړی دی او کوم لامحدوده او بې پایه نعمتونو سره يې زه نازولی یم د هغه سره سم پر ما فرض دي چي زه د هغه د خوښۍ او رضا تر لاسه کولو لپاره زيات محنت او مشقت وکړم او زيات عبادت وکړم چي د هغه شکر کونکی بنده جوړ سم .

## د عبادت په اړه د حضرت علي رضی الله عنه مقوله

د حضرت علي رضی الله عنه ذات په علم، فضل، ذهانت او عقل په اعتبار په پوره امت کي د امتياز مقام ورته حاصل دی، د عبادت په اړه چي هغه کومه تجزيه فرمايلې ده او کومه رايه يې قائمه کړې ده هغه واورئ او د ځان لپاره يې دلاري مشال وګرځوئ، فرمايي : کومو خلکو چي د نعمتونو طلب يعني د جنت ارزو او ثواب په ارمان کي عبادت وکړنو داسي عبادت د سوداګرو عبادت دی او کومو خلکو چي د عذاب الهي او د دوږخ د بيري څخه عبادت وکړنو هغه د غلامانو عبادت دی او کومو خلکو چي د خپل مولی د ورکړي نعمتونو د شکر ادا کولو لپاره عبادت وکړنو هغه د آزادو خلکو عبادت او دا عبادت تر ټولو د لوړي درجي عبادت دی .

## د شپې د عبادت نه کوونکي بدي

﴿۱۱۵۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په وړاندي د يو سړي يادونه وسول چي

فَقِيْلَ لَهُ مَا زَالَ نَائِمًا حَتّٰى اَصْبَحَ مَا قَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ قَالَ ذَالِكَ رَجُلٌ بَالَ

هغه ټوله شپه بیده پروت وي او تر سهاره نه کښيني او نه لمانځه ته کښيني ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : بولي کوي

الشَّيْطَانُ فِيْ اُذُنِهٖ اَوْ قَالَ فِيْ اُذُنَيْهِ . متفق عليه

شيطان د هغه په غوږ کي يا د هغه په دواړو غوږو کي بولي کوي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۸، رقم: ۱۱۴۴، ومسلم: ۱\۵۳۷، رقم: ۲۰۵- ۷۷۴.

**تشريح**: د لمانځه څخه مراد د تهجد لمونځ هم كيداى سي او د سهار لمونځ هم يعني يا خو به هغه سړى د تهجد د لمانځه لپاره نه پورته كيدى يا دا چي د سهار لمونځ به ځيني قضا كيدى، په هر حال د شيطان د بولو په باره كي ځيني علماؤ ويلي دي چي حقيقتا داسي كيږي، د ځينو صالحينو په اړه منقول دي چي يو وار د هغه سترګي ولګيدلې چي د هغه په وجه لمونځ يې نه وكړ نو هغه په خوب كي وليدل چي يو سړى چي تور رنګ يې وو راغلی خپل پښه يې پورته كړه او د هغه په غوږ كي يې بولي وكړې.

ځيني حضرات وايي چي د شيطان بولي كول د دې خبري كنايه ده چي شيطان داسي سړى حقير او ذليل ګڼي ځكه چي دا قاعده ده ځكه چي كوم سړى يو شي حقير او كم ګڼي نو پر هغه بولي كوي.

## د ښځو لپاره د تهجد لمونځ

﴿۱۱۵۴﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ اسْتَيْقَظَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دى چي يوه شپه رسول الله ﷺ د خوب څخه راكښينستى

فَزِعًا يَّقُوْلُ سُبْحَانَ اللهِ مَاذَا أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْخَزَائِنِ وَمَاذَا أُنْزِلَ مِنَ

په بيره كي او داسي يې ويل: (الله پاک دى په نن شپه كي څومره خزاني او څومره فتنې نازلي كړل سوې)

الْفِتَنِ مَنْ يُّوْقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ يَرِيْدُ أَزْوَاجَهُ لِكَيْ يُصَلِّيْنَ رَبِّ كَاسِيَةٍ

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک نسته چي حجرې والا را پورته كړي (يعني خپلي بيبياني) چي هغوى لمونځ وكړي ځكه ډيري ښځي دي

فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ فِي الآخِرَةِ. رواه البخاري.

چي په دنيا كي به جامې اغوستونكي وي مګر په آخرت كي به لوڅي وي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۰، رقم: ۷۰۶۹.

**تشريح**: د حديث د لومړنى برخي مطلب دا دى چي كومي خزانې او مال او دولت د رسول الله ﷺ د امت تر لاسه سوى وو چي د كوم امتي په قسمت كي څومره دولت ليكلى دى په دې شپه كي د هغه نازليدل رسول الله ﷺ ته معلوم سوي وه، همداسي په دې امت كي چي څومره فتنې مقدر

سوي وي هغه هم په دغه شپه کي رسول الله ﷺ ته معلومي سوي وې.

ملا علي قاري رحمة الله عليه او نور علماء فرمايي چي په حديث کي د خزانو څخه مراد د الله تعالی رحمت او د فتنو څخه مراد د هغه عذاب دی.

## د ښځو لپاره سزا

د حديث د آخري برخي څو مطلبه دي:

۱. اول دا چي اکثر ښځي په دنيا کي ډول ډول او ښه جامې اغوندي او په هغه فخر کوي حال دا چي د هغوی به دا حال وي چي د الله تعالی د حکم نه منلو په وجه هغوی به په آخرت کي د نيکو اعمالو څخه خالي وي.

۲. دوهم دا چي اکثر ښځي د خوب جامې اغوندي يعني د خوب د غفلت په وجه د الله تعالی د ياد څخه غافلي وي او د هغه نتيجه دا وي چي په آخرت کي به د ښه او لوړو درجو څخه خالي وي.

۳. دريم دا چي اکثر ښځي بدن څرګندونکي داسي جامې اغوندي چي هغوی به په دنيا کي او حقيقتا بدن پټ کړی وي مګر د آخرت د حکم په اعتبار به هغوی لوڅي وي يعني کومي جامې چي په ليدو کي ښکلي او نازکي معلوميږي لکه د جالی نائيلو وغيره جامې چي د هغه د ښځو لپاره استعمال د شريعت له مخي ممنوع دی داسي جامو والا ښځي به په آخرت کي لوڅي وي.

د دې حديث څخه هغه ښځو ته په خاصه توګه عبرت تر لاسه کول پکار دي چي د نن سبا د فيشن په زمانه کي د جامو په اړه د زيات بې لاري کېدو او غير شرعي طريقې يې اختيار کړي دي او داسي جامي استعمالوي چي د الله تعالی او د هغه د رسول د مرضی خلاف او د آخرت د عذاب سبب دي، ميندي او خويندي دي په خلاصو غوږو سره واوري چي دنيا که څه هم زياته فيشن والا سي تهذيب او تمدن که هر څومره عروج ته ورسيږي او د انسان ذهني او فکري او عملي ترقي که څه هم سپوږمۍ تابع کړي مګر اسلام او د پيغمبر اسلام هغه فرمان چي څلورلس سوه کاله مخکي جاري سوی وو نن هم په پوره توګه سره موجود دی د هغه ارزښت او پر هغه د عمل کولو سختوالی په هيڅ حالت کي هم ختميدای نسي ، د اسلامي او شرعي احکامو د قيانوسيت په الفاظو سره په مخصرو کولو سره د فيشن په نوم اخيستلو سره که يوه ښځه خپل ظاهري ژوند او د دنيا په نظر کي جاذب نظر او عصري او معزز جوړ کړي مګر هغې ته ياد ساتل

پکار دي چي د دنیا په دغه یو څو ورځو ژوند او د اوسني فیشن فاني کېدو سره یوه ورځ هغې ته د الله تعالی په دربار کي رسیدل دي چي غفار او رحیم ذات جبار او قهار هم دی او بیا به هلته هغوی د خپلو بدعملو جواب ورکوي.

## د الله تعالی د رحمت د نزول وخت

﴿۱۱۵۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْزِلُ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نزول كوي

رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ

الله جل جلاله هره شپه د دنيا آسمان ته د شپې په آخري دريمه برخه كي

يَقُولُ مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ وَمَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ وَمَنْ يَسْتَغْفِرُنِي

او فرمايي: څوک سته چي زما څخه سوال وکړي چي زه يې سوال قبول کړم، څوک سته چي زما څخه بخښنه وغواړي

فَأَغْفِرَ لَهُ. متفق عليه، و في رواية لمسلم ثم يبسط يديه يقول من يقرض غير عدوم و لاظلوم حتى ينفجر الفجر.

او زه يې و بخښم، (بخاري او مسلم) د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي بيا الله جل جلاله د (لطف او رحمت) لاسونه خلاص کړي او وايي څوک دی چي داسي ذات ته پور ورکړئ چي نه خو فقير او نه ظالم دی نو تر سهار کيدو پوري الله جل جلاله داسي فرمايي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۳\۲۹، رقم: ۱۱۴۵ و مسلم ۱\۵۲۱، رقم: ۱۶۸ - ۷۵۸.

**تشريح**: د (ينزل ربنا) مطلب څرګند دی، داسي نسي کيدای چي الله تعالی خپله د دنيا آسمان ته راکښته کيږي ځکه چي هغه د جسم د ثقالت څخه پاک دی او يو داسي نور دی چي هر وخت د کائناتو پر ذره ذره باندي محيط دی او د يو خاص ځای او وخت پابند نه دی.

لکه څرنګه چي علامه ابن حجر او امام مالک رحمة الله عليهما ددې په تاويل کولو سره دا مطلب بيان کړی دی چي د الله تعالی رحمت يا د هغه ملائکي هغه وخت د دنيا آسمان ته راکښته کيږي او د الله تعالی د لوري دا اعلان کوي، ددې تائيد د يو صحيح حديث څخه هم کيږي چي

په مرقات کي مذکور دی ، يا دا به ويل کيږئ چي دا ارشاد د متشابهاتو څخه دی چي د هغه حقيقي معنی او مطلب باندي الله تعالی ښه پوهيږي .

(من يدعوني) د دعاء په معنی دی ، بلل، آواز، نعرې، خواهش، غوښتنه ، زاري، فرياد، استغاثه لکه بنده ووايي يارب ددې په مقابله کي اجابت او قبوليت کيږئ لکه څرنګه چي پروردګار د بنده ددې نارې په جواب کي فرمايي : لبيک عبدي .

من يسالني د سوال په معنی دی ، يو شی غوښتل او د هغه طلب کول او ددې په مقابله کي د سوال پوره کول وي يعني کوم شی چي وغوښتل سي او طلب کړل سي د هغه ورکول ، دا حديث د هغه روايت خلاف نه دی چي په هغه کي منقول دي چي الله تعالی د دنيا آسمان ته نزول فرمايي کله چي اوله برخه شپه تيريږي او د هغه روايت هم خلاف نه دی چي په هغه کي منقول دي چي هغه وخت نزول فرمايي کله چي نيمه شپه يا دريمه برخه شپه تيريږي ځکه احتمال دی چي په ځينو صورتو کي نزول د شپې په آخري برخه کي وي او په ځينو شپو کي په اوله برخه کي وي او په ځئنو شپو کي د شپې د نيمي برخي يا دريمه برخي تيرېدو وروسته وي .

من يقرض : يعني څوک سته چي قرض ورکړي، ددې مطلب دادی چي څوک سته چي د قرض په توګه او د جزا اخيستو په توګه بدني او مالي عبادت الله تعالی ته ورکړي چي نه خو فقير دی او نه د بخښني څخه عاجز دی او دا چي نه ظلم کونکی دی چي خپل عهد پوره نه کړي يا کم ثواب ورکړي ، يعني په دې طريقې سره مسلمانانو ته په دنيا کي د نيکو او صالح عملو کولو ترغيب ورکول کيږي چي هغه څوک خوشبخته او باسعادت مسلمان دی چي د آخرت سعادتونه او راحتونه او د هغه ځای د ثواب په اميد کي د هغه غني پروردګار لپاره په دنيا کي نيک عمل وکړي چي د هغه حق يعني په آخرت کي د دنيا د نيک عمل په ثواب ورکولو کي عاجز نه دی او کوم خوشبخته او باسعادت مؤمن دی چي هغه د عادل الله لپاره په دنيا کي نيک عمل وکړي چي د پور ورکونکي سره د ظلم معامله نه کوي يعني کوم شی چي د هغه په دربار کي وړاندي کيږي په هغه کي کمي او نقصان کولو سره نه ستنيږي بلکه د هغه شان عدل او رحمت خو دادی چي په هغه کي څو برابر زياتوب ورکوي .

په دې اړه دا خبره په خاصه توګه د فکر وړ ده چي دلته د الله تعالی تعريف په دې توګه سوی دی چي د هغه ذات څخه ددې دواړو صفتو فقر او ظلم نفي سوې ده ځکه چي د پور د ستنېدو په اړه دا دواړه صفتونه حائل کيږي که څوک عاجز او فقير وي نو هغه د پور د ستنېدو څخه معذور وي که يو سړی ظالم وي نو هغه د خپل ظلم په وجه د پور پوره ادا کول نه کوي بلکه

په هغه کي کمي او تاوان کولو سره ستنوي او د الله تعالی ذات مبارک ددې دواړو صفتونو څخه پاک دی نه خو هغه ظالم دی او نه هغه عاجز او فقیر دی بلکه عادل او غني دی ، نو ددې مطلب دا سو چي کوم سړی په دنیا کي نیکي کوي او نیک عمل کوي هغه به الله تعالی سره په عقبا کي پوره جزا او ثواب تر لاسه کوي.

## په هره شپه کي د قبولیت یو ساعت

﴿۱۱۵۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُوْلُ إِنَّ فِي اللَّيْلِ لَسَاعَةً

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل يې: په شپه کي يو ساعت راځي

لاَ يُوَافِقُهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللّٰهَ فِيْهَا خَيْرًا مِنْ اَمْرِ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ إِلاَّ

که په هغه کي يو مسلمان د دین او دنیا د خیر د عاء وکړي

أَعْطَاهُ إِيَّاهُ وَذَالِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ. رواه مسلم

نو الله تعالی يې ورکوي او دا ساعت هره شپه وي . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۵۲۱، رقم: ۱۶۶- ۷۵۷.

**تشریح**: مطلب دادی چي په هره شپه کي يو ساعت خامخا راځي چي د قبولیت زیری په لمن کي راوړي د کوم باسعادت او خوشبخت مسلمان چي هغه ساعت په برخه سي او په هغه کي د الله تعالی په وړاندي يو دنیاوي یا اخروي خیر لپاره درخواست وړاندي کړي نو هغه قبول او کامیاب کیږي او د هغه درخواست د الله تعالی په دربار کي د قبولیت درجه تر لاسه کوي .

د قبولیت او د الله تعالی د لوري ورکړه او بخښنه حکما هم کیدای سي او حقیقتا هم ، د قبولیت د ساعت په تعین کي د علماؤ اختلاف دی ، ځیني حضرات وایي چي دا ساعت مبهم دی لکه لیلة القدر او د جمعې ساعت چي په هغه کي د يو خاص وخت په باره کي څه نسي ویل کیدای چي هغه ساعت په فلاني وخت کي راځي ، همداسي په هره شپه کي هم د قبولیت د ساعت يو خاص وخت ټاکلی نه دی بلکه يو وخت هم راتللای سي ، او ځیني علماء وایي چي د نیمي شپې وخت د قبولیت ساعت دی . والله اعلم .

## د حضرت داؤد علیه السلام لمونځ او روژه

﴿۱۱۵۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

أَحَبُّ الصَّلَاةِ إِلَى اللهِ صَلَاةُ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَأَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللهِ صِيَامُ

د الله تعالی په نزد تر ټولو غوره لمونځ د حضرت داؤد علیه السلام او تر ټولو غوره روژه هم د حضرت داؤد علیه السلام ده،

دَاوُدَ كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَيَقُومُ ثُلُثَهُ وَيَنَامُ سُدُسَهُ وَكَانَ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا. متفق عليه

حضرت داؤد علیه السلام به نیمه شپه خوب کوی او دریمه برخه د شپې به یې عبادت کوی او بیا د شپې شپږمه برخه به یې ارام کوی او یوه ورځ به یې روژه نیول او یوه ورځ به یې ماتول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۶\۳، رقم: ۱۱۳۱، ومسلم ۲\۸۱۶، رقم: ۱۸۹- ۱۱۵۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي الله تعالی ته د حضرت داؤد علیه السلام د لمانځه او روژې طریقه ډیره خوښه وه ځکه په دې طریقه سره نفل لمونځ کول او نفل روژې نیول د الله تعالی په نزد ډیر خوښ دي، په پورتنی طریقه سره د شپې لمونځ الله تعالی ته ډیر خوښ ځکه دی چي کله یو سړی د شپې دوې حصې خوب وکړي او د هغه نفس دومره آرام وکړي نو د هغه عبادت په پوره فرحت او د زړه او دماغ په پوره خوشحالي سره ادا سي، همداسي په پورتنی طریقې سره روژې نیول هم ځکه خوښي دي چي په دې کي نفس ته ډیر زیات مشقت وي کوم چي د عبادت حاصل دی.

## د شپې په عبادت کي د رسول کریم ﷺ طریقه

﴿۱۱۵۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ تَعْنِيْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنَامُ

د حضرت عائشې رضي الله عنها ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به ببدېدی

أَوَّلَ اللَّيْلِ وَيُحْيِيْ آخِرَهُ ثُمَّ إِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ إِلَى أَهْلِهِ قَضٰى حَاجَتَهُ ثُمَّ

په اول د شپې کي او آخري برخه د شپې به ویښ وو، بیا که به د رسول الله ﷺ خپلو ازواجو ته د

ورتلو ضرورت وو نو خپل ضرورت به یې پوره کوی او بیا به

يَنَامُ فَإِنْ كَانَ عِنْدَ النِّدَاءِ الْأَوَّلِ جُنُبًا وَثَبَ فَأَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَاءَ وَإِنْ

بیدېدی او د لومړي آذان پر وخت که به رسول الله ﷺ د جنابت په حال کي وو نو ولاړېدی به غسل به یې کوی

لَمْ يَكُنْ جُنُبًا تَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ. متفق عليه

او که به د جنابت په حال کي نه وو نو اودس به یې کوی او بیا به یې دوه رکعته لمونځ کوی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۲\۱۳، رقم: ۱۱۴۶، ومسلم ۱\ ۵۱۰، رقم: ۱۲۹ - ۷۳۹.

**تشريح**: په شمائل ترمذي کي د بي بي عائشې ﷺ څخه دا روايت په تفصيلي توګه داسي بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ به د شپې په لومړنۍ برخه کي (يعني د ماخستن د لمانځه څخه وروسته تر نيمي شپې پوري) بيده کيدی، په څلورمي، پنځمي او شپږمي برخه کي به د تهجد د لمانځه لپاره پورته کيدی او کله چي سهار به نژدې سو نو وتر به یې کول او بيا به یې بستري ته د آرام کولو لپاره تشريف راوړ ځکه چي د تهجد د لمانځه وغيره څخه وروسته د سهار د لمانځه مخکي تر يو څه وخت پوري آرام کول مستحب دي چي د سهار لمونځ او د هغه وروسته اوراد او وظائفو لپاره قوت تر لاسه سي، او بيا که چيري به رسول الله ﷺ ته به د خپل بي بي سره د کوروالۍ ضرورت وو نو هغه به یې پوره کړ تر دې چي د سهار د آذان په اورېدو سره به پورته کيدی او که چيري د ناپاکۍ په حالت کي به وو نو پر خپل بدن به یې اوبه واچولې او که به په حالت د ناپاکۍ کي نه وو او دس به یې کوی او د سهار دوه رکعته سنت په کور کي کولو سره د لمانځه لپاره به یې مسجد ته تشريف وړی.

د دغه تفصيل په رڼا کي د پورتني حديث په لومړنۍ برخه کي د شپې په لومړنۍ برخه کي به بيده کيدی او د شپې په آخري برخه کي به پورته کيدی، د دې معنی واضحه سول.

په څرګنده دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د زوجيت د وظيفې څخه د فارغه کېدو وروسته به اودس کوی او د هغه وروسته به بيده کيدی.

د اول آذان څخه مراد آذان متعارف دی او د دوهم آذان څخه اقامت مراد دی.

د حديث د ظاهري الفاظو څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي رسول الله ﷺ به تر نيمي شپې پوري

بيده وو او تر نيمي شپې پورې به د خپل پروردګار په عبادت کې بوخت وو ځکه چې د شپې په لومړنۍ شپږمه برخه کې تر ماخستن پورې به ویښ وو، او بيا د ماخستن څخه وروسته په دوهم او دريم سدس کې به يې آرام کوی ، بيا په څلورم او پنځم سدس کې به بيده کيدی ، همداسي درې سدس خو به رسول الله ﷺ بيده کيدی او درې سدس به ويښ وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د تهجد د لمانځه تاکيد او فضيلت

﴿۱۱۵۹﴾: عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو پر ځان لازم کړئ

بِقِيَامِ اللَّيْلِ فَإِنَّهُ دَأْبُ الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ وَهُوَ قُرْبَةٌ لَّكُمْ إِلَى رَبِّكُمْ وَمَكْفَرَةٌ

د شپې لمونځ (تهجد) ځکه دا طريقه د هغه نيکانو خلکو ده چې ستاسو څخه وړاندي وه او د شپې عبادت الله جل جلاله ته د نژدې والي سبب دی او کفاره ده

لِلسَّيِّئَاتِ وَمَنْهَاةٌ عَنِ الْإِثْمِ. رواه الترمذي

د ګناهو او د ګناهو څخه منعه کونکی دی . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۱٦، رقم: ۳۵۴۹.

**تشريح** : د نيکانو خلکو څخه مراد د مخکنۍ زمانې انبياء او اولياء دي، ګويا داسي رسول الله ﷺ د خپل امت خلکو ته تنبيه فرمايي چې تاسو ته دا لمونځ کول پکار دي ځکه چې تاسو د مخکنيو ټولو امتونو څخه غوره او اعلی ياست ، دا حديث دې ته اشاره کوي چې کوم خلک ټول فرض لمنځونه خو کوي مګر د تهجد لمونځ نه کوي نو هغوی د صالحينو په ډله کي شامل نه دي بلکه د هغوی درجه داسي ده لکه څرنګه چې په ظاهري توګه سره د زکوة ورکونکو درجه وي د هغه خلکو په مقابله کي چې په پټه توګه سره هم زکوة ورکوي .

### د تهجد کونکي خوشبختي

﴿۱۱٦۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

ثَلَاثَةٌ يَضْحَكُ اللهُ إِلَيْهِمُ الرَّجُلُهُ إِذَا قَامَ بِاللَّيْلِ يُصَلِّيْ وَالْقَوْمُ إِذَا صَفُّوْا فِي

درې کسان دي چي د هغو څخه الله تعالى خوشحاله کيږي او راضي وي يو هغه کس چي د شپې لمونځ وکړي دوهم هغه خلک چي دلمانځه لپاره صفونه برابر کړي

الصَّلَاةِ وَالْقَوْمُ إِذَا صَفُّوْا فِيْ قِتَالِ الْعُدُوِّ. رواه في شرح السنة.

او دريم هغه خلک چي د دښمن په مقابله کي د جنګ لپاره صفونه ترتيب کړي. شرح السنة.

**تخريج:** البغوي في شرح السنة ۴۲\۴، رقم: ۹۲۹.

## د شپې په آخره برخه کي د ذکر فضيلت

﴿۱۱۶۱﴾: وَعَنْ عَمْرِو ابْنِ عَنْبَسَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن عنبسه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَقْرَبُ مَا يَكُوْنُ الرَّبُّ مِنَ الْعَبْدِ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ الْآخِرِ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ

الله تعالى بنده ته په منځ د شپې په آخري برخه کي زيات نژدې وي که ستا په وس وي چي

تَكُوْنَ مِمَّنْ يَذْكُرُ اللهَ فِي تِلْكَ السَّاعَةِ فَكُنْ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح غريب اسنادا.

ته په دې ساعت کي د الله جل جلاله ذکر وکړې نو ته داسي وکړه، ترمذي ويلي دي چي دا حديث د سند په لحاظ حسن صحيح غريب دی.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵۳۲\۵، رقم: ۳۵۷۹.

**تشريح**: د دې حديث څخه معلومه سوه چي د شپې په آخري برخه له دې کبله افضل او اشرف ده چي هغه په خپل لمن کي د الله تعالى د رحمتونو او مهربانيو خزانې يو ځای کړي وي اوس دا د همت او قسمت خبره ده چي څوک د دغه خزانو څخه مستفيد کيږي او څوک ځيني محروم کيږي، څوک چي سعادت مند وي هغه د شپې په دغه برخه کي په پورته کېدو سره د الله تعالى د رحمت څخه خپل لمن ډکوي او څوک چي بد نصيب وي هغوی د شيطان په مکر او فريب کي راتلو سره

نه یوازي خپل زړه او د ماغ خوب ته حواله کوي بلکه د هغوی سعادت او د هغوی خوشبختي هم د غفلت او سستي نذر کیږي .

په هر حال د پروردګار خپل بنده ته د نژدې کېدو مطلب دادی چې د هغه رضا او خوښي بنده ته نژدې کیږي او د هغه د رحمتونو سایه د بنده سربیره وي .

د آخري نیمي شپې څخه د شپې هغه برخه مراد ده چې د هغه پیل د آخري دریمي برخي څخه کیږئ او هغه وخت د تهجد د لمانځه لپاره د پورته کېدو دی .

عمروبن عنبسه رضي الله عنه چې حدیث روایت کوي د الله تعالی د دربار یو مجذوب او د رسول کریم کریم ﷺ یو مقرب او ذي شان خادم وو د هغه ډېر عظمت او فضیلت دی د نبوت په پیل کي چې کله رسول الله ﷺ په مکه کي د کفر او شرک غاړي د یوه الله په حضور کي د کښېنه کولو په هڅه کي بوخت وو او د رسول کریم ﷺ د تبلیغ پیل سوی وو نو عمروبن عنبسه رضي الله عنه په خپل هیواد کي وو ناڅاپه د هغه په زړه کي د توحید نور وځلیدی او د شرک او بت پرستۍ نفرت ناکراره کړ او وا یې وریدل چې په مکه کي یو سړی پیدا سوی دی چې خلک د توحید خوا ته رابولي او د بتانو د عبادت څخه یې منعه کوي د دې په اورېدو سره هغه سمدستي قلب مضطر مکې ته په تلو مجبور کړ ، مکې ته په رسیدو سره د رسول الله ﷺ په دربار کي یې پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ په هغه زمانه کي د کفارو د سخت مخالفت په وجه د الله تعالی په حکم سره د خپلو دښمانو څخه پټ د الله تعالی د دین تبلیغ او د هغه په عبادت کي بوخت وو ، عمرو بن عنبسه رضي الله عنه د خلکو څخه پوښتنه وکړه چې په تاسو کي هغه کوم سړی پیدا سوی دی چې ستاسو د لاري څخه په آخوا کېدو سره بل دین ته خلک رابولي خلکو وویل هو هغه یو لیونی دی چې د خپل پلار او نیکه طریقه یې پرې ایښې ده او یو نوی رواج یې را ایستلی دی ،

دیوانه کني هر دو جهانش بخشي دیوانه تو هر دو جهان را چه کند

هغه پوښتنه وکړه چې هغه به چیري وي ؟ خلکو ورته وویل هغه سړی نیمه شپه د باندي راوځي او د بیت الله شا خوا ګرځي .

عمروبن عنبسه رضي الله عنه په نیمه شپه کي حرم شریف ته راغلی او د کعبه الله په پرده مبارکه کي پټ ودریدی ناڅاپه یې ولیدل چې یو سړی د تیارو د پردو څیرلو سره د نور یوه دنیا په خپل اړخ کي اخیستې ظاهر سو د هغه سړي سر تر پایه نوراني مخ او د بدن دا عالم وو چې لمر او سپوږمۍ د هغه په وړاندي شرمنده وه ، عمرو سمدستي د پردې د باندي راووتی او څرګند سو ، سړي ته یې سلام وکړ او پوښتنه یې وکړه چې تاسو څوک یاست ؟ او ستاسو دین څه دی ؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل زه د الله رسول يم او زما دين لااله الاالله دی، د دې خوشحالۍ څخه عمرو سمدستي وويل زه هم دادين خوښوم نو د رسول الله ﷺ په مخکي يې ايمان راوړ، همداسي عمرو بن عنبسه رضي الله عنه دريم يا څلورم مسلمان دی يعني د هغه څخه مخکي يوازي دوه يا دري کسانو ايمان راوړی وو.

د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ هغه رخصت کړ او وه يې فرمايل: زما پروردګار زما سره وعده کړې ده کله چي هغه پوره سي نو ماته راسه، نو کله چي رسول الله ﷺ مدينې منورې ته په هجرت تشريف راوړ نو عمرو بن عنبسه مدينې منورې ته راغلی او د رسول الله ﷺ په خدمت کي د اوسيدو سعادت يې ترلاسه کړ.

## په عبادت کي د يو بل مرسته وکړئ

﴿۱۱۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِمَ اللهُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله ﷻ دي رحم وکړي

رَجُلاً قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّتْ فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِيْ وَجْهِهَا

پر هغه چا چي د شپې را پورته سي او لمونځ وکړي او خپله ښځه راوېښه کړي او هغه هم لمونځ وکړي بيا که ښځه راوېښه نه سي نو دهغې پر مخ وپاشي

الْمَاءَ رَحِمَ اللهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا فَصَلَّى فَإِنْ

د اوبو څاڅکي او پر هغه ښځې دي الله ﷻ رحمت نازل کړي چي د شپې راکښيني او لمونځ وکړي او خپل خاوند هم راوېښ کړي او هغه هم لمونځ وکړي او که

أَبَى نَضَحَتْ فِيْ وَجْهِهِ الْمَاءَ. رواه أبو داود والنسائي.

هغه انکار وکړي نو د هغه پر مخ د اوبو څاڅاکي وپاشي. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۳، رقم: ۱۳۰۸، والنسائي: ۳\۲۰۵، رقم: ۱۶۰۹.

**تشريح**: د شپې په پورته کېدو سره د لمونځ کولو څخه مراد د تهجد لمونځ دی مګر که چيري په سرې يا ښځه کي د يو چا څخه هم يو لمونځ قضا سوی وي او هغه وخت د هغه پر ذمه قضاء وي نو قضا لمونځ کول به هغه وخت غوره وي.

پر مخ د اوبو پاشلو مطلب دادی چي د هغه د لمانځه کولو او د پروردګار عبادت د بيداره

كولو لپاره څرنګه چي هم ممكن وي سعي او هڅه وكړي.

په هر حال د حديث خلاصه داده چي ښځه او خاوند څرنګه چي په دنياوي ژوند كي د يو بل مرسته كونكي وي همداسي په ديني امورو، اطاعت الهي او عبادت كي هم د يو بل مرسته كونكي جوړېدل پكار دي، او كه يو وخت ښځه لمونځ ونه كړي نو د خاوند دا حق دى چي څرنګه ممكن وي پر لمانځه كولو يې مجبوره كړي همداسي كه سړى په لمانځه كولو كي سستي كوي يا په يو داسي وجه د لمانځه كولو څخه پاته سي چي د لمانځه په ادا كولو كي بنديز سوى وي نو د ښځي دا حق دى چي هغه ته په پوره قوت سره د لمانځه كولو لپاره ووايي او كوم شى چي د هغه په لمانځه كولو كي خنډ جوړ سوى دى هغه ختم كړي، مثلاً كه چيري په ښځه او خاوند دواړو كي يو په داسي د خوب په غفلت كي پروت وي چي د هغه لمونځ كه فرض وي يا تهجد وغيره لمونځ وي نو نو په دواړو كي چي هر يو ويښ سي هغه دي دوهم هم د خوب څخه را پورته كوي او كه چيري هغه نه پورته كيږي نو داسي طريقه دي وكړي چي په هغه سره خوب ختم سي او هغه ولاړ سي لمونځ وكړي، همدارنګه په اجتماعي توګه سره هم د خلكو لپاره ضروري دي چي هغوى په خپل مينځ كي د يو بل مرسته كونكي جوړ سي او د يو بل د لمانځه كولو او په عبادت كي د بوخت ساتلو هڅه كوي، ددې حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي پر يو سړي باندي د خير په معامله كي زور كول نه يوازي دا چي جائز دى بلكه مستحب دى.

## د دعاء د قبلېدو وخت

﴿۱۱۶۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الدُّعَاءِ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي د دعاء د قبلېدو وخت كوم وخت دى؟

أَسْمَعُ قَالَ جَوْفَ اللَّيْلِ الْآخِرِ وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ. رواه الترمذي

هغه ورته وفرمايل: د شپې د آخري برخي منځ او د فرض لمانځه وروسته. ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۴۹۲، رقم: ۳۴۹۹.

## د نيكو كارو كوونكي لپاره زيرى

﴿۱۱۶۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ مَالِكٍ الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو مالک اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَغُرَفًا يُرَى ظُهُورُهَا مِنْ بُطُونِهَا وَبُطُونُهَا مِنْ ظُهُورِهَا اَعَدَّهَا

په جنت کي داسي خوني دي چي د هغو دننه د باندي شیان معلومیږي او د باندي څخه د ننه شیان نه معلومیږي دا د هغو خلکو لپاره جوړي سوي دي

اللهُ لِمَنْ أَلَانَ الْكَلَامَ وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ وَتَابَعَ الصِّيَامَ وَصَلَّى بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ . رواه البيهقي في شعب الايمان و روي الترمذي عن علي نحوه و في روايته لمن اطاب الكلام .

چي په نرمۍ سره خبري کوي خلکو ته ډوډۍ ورکوي او پرله پسې روژې نیسي او د شپې هغه وخت لمونځ کوي چي نور خلک بیده وي، د حضرت علي په یوه روایت کي دا الفاظ هم دي چي د یو چا لپاره ښه خبره کوي . بیهقي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳\۴۰۴، رقم: ۳۸۹۲. سنن الترمذي ۴\۵۸۱، رقم: ۲۵۲۷.

**تشريح** : ځیني علماء وایي په حدیث کي چي د پرله پسې نفل روژو په اړه فرمایل سوي دي نو د هغه آخري درجه داده چي په هره میاشت کي کم تر کمه درې روژې د نفل په نیت ونیول سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د تهجد د پرېښودو ممانعت

﴿۱۱۶۵﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرِو ابْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَا

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اې

عَبْدَ اللهِ لَا تَكُنْ بِمِثْلِ فُلَانٍ كَانَ يَقُومُ اللَّيْلَ فَتَرَكَ قِيَامَ اللَّيْلِ. متفق عليه

عبد الله ! د فلاني کس په ډول مه کیږه چي د شپې به یې لمونځ کوی بیا یې پرېښودی . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)۳\۳۷، رقم: ۱۱۵۲، ومسلم ۲\۸۱۴، رقم: ۱۸۵- ۱۱۵۹.

**تشريح** : یو صحابي وو چي مخکي به یې تهجد کول او وروسته بیله یو عذره د خپل نفس په خواهش کي په اخته کېدو سره ددغه لوی سعادت څخه بې برخي سوی وو ، رسول الله ﷺ

عبدالله بن عمرو رضي الله عنه خبردار کړ چي فهم کوه ته هم د هغه په ډول د تهجد د لمانځه په پرېښودو سره د نفس په فریب کي اخته نه سې ځکه چي دا خلک چي د نیک عمل عادت او خپل دیني طریقي بیله یو عذره او بې مجبورۍ پرېږدي نو هغه خلکو د هغه خلکو په ډله کي سي چي د هغو په اړه صحیح فیصله داده چي (تارک الورد ملعون) یعني دیني معمول پرېښودونکی ملعون دی. په دې حدیث کي لکه چي دې ته اشاره ده چي د الله تعالی عبادت پرېښودل او د نفسانیت غلطي لاري ته ګرځېدل په حقیقت کي په سعادت او فلاح کي د پرمختګ څخه وروسته په تاوان کي واقع کېدل دي چي د هغه څخه رسول الله ﷺ په دا ډول پناه غوښتې ده چي نعوذبالله من الحور بعد الکور، یعني موږ د پرمختګ څخه وروسته په تاوان کي واقع کېدو څخه د الله تعالی پناه غواړو.

د طریقت او شریعت سالک ته پکار ده چي هغه نه یوازي دا چي د الله تعالی عبادت او د هغه ذکر نه پرېږدي او په هغه کي کمي اختیار نه کړي بلکه په هغه کي د زیاتوب غوښتونکی وي ځکه ویل یسوي دي چي کوم سړی د زیاتوب غوښتونکی نه وي نو هغه د تاوان پر لاره دی.

## د حضرت داؤد علیه السلام د شپې عبادت

﴿۱۱۶۶﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عثمان بن ابو العاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي

وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كَانَ لِدَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ يُوْقِظُ فِيْهَا أَهْلَهُ

چي فرمایل یې: حضرت داؤد علیه السلام د شپې یو وخت ټاکلی وو هغه به په دغه وخت کي د خپل کور خلک راوېښول

يَقُوْلُ يَا آلَ دَاوُدَ قُوْمُوْا فَصَلُّوْا فَإِنَّ هٰذِهِ سَاعَةٌ يَسْتَجِيْبُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيْهَا الدُّعَاءَ إِلَّا لِسَاحِرٍ أَوْ عَشَّارٍ. رواه أحمد.

او ورته ویل به یې: ای د داؤد کورنۍ! پورته سئ او لمونځ وکړئ ځکه چي په دې ساعت کي الله تعالی دعاء قبلوي خو د جادوګرانو او په ظلم د محصول اخیستونکو دعاء نه قبلیږي. احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲۲/۴.

**د لغاتو حل:** (عشار): هو الذي ياخذ العشر من اموال الناس (هغه كس چي د خلكو د مالونو څخه عشر يعني لسمه برخه اخلي).

**تشريح:** د عشار څخه هغه غل مراد دی چي په لاره کي ناست وي او د خلکو څخه په ظلم مال اخلي، ددې هغه څخه حکومتي خلک هم مراد کیدای سي چي د محصول وغیره د تر لاسه کولو لپاره تاکل سوي وي او هغوی په ناجائزه او غلطه طریقه باندي د خلکو څخه مال او اسباب غصب کوي، په هر حال حاصل دادی چي په دغه مقدس ساعت کي او د الله تعالی د عام فیضان په دغه برکتناکه موقع باندي هم د ساحر يعني جادوګر او عشار دعاء قبلیږي ، ځکه چي ددغه خلکو څخه د الله تعالی مخلوق ته تکلیف رسیږي او پروردګار د داسي خلکو سره هیڅکله هم غوره معامله نه کوي چي د هغه د مخلوق لپاره د ضرر او تکلیف سبب جوړیږي ، په دې وجه د ځينو عارفينو دا عارفانه ارشاد دی چي کمال عبوديت يعني په پوره توګه سره د الله تعالی بنده جوړيدل دادی چي د الله تعالی د حکم تعظیم وکړل سي او د الله تعالی د مخلوق سره د مهربانی او شفقت چلن وکړل سي .

## د تهجد د لمانځه فضيلت

《۱۱۶۷》: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ أَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْمَفْرُوْضَةِ صَلَاةٌ فِيْ جَوْفِ اللَّيْلِ . رواه أحمد .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي : د فرض لمانځه وروسته په ټولو لمنځو کي غوره لمونځ د نيمي شپې لمونځ دی . احمد .

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ۲\۳۴۲.

**تشريح:** ميرک شاه رحمة الله عليه فرمايي دا حديث د ابي اسحاق مروزي شافعي رحمة الله عليه د دې قول دليل دی چي د تهجد لمونځ د سنن رواتب څخه افضل دی ، هر کله چي د اکثرو علماؤ دا قول دی چي سنن رواتب افضل دي د ابو اسحاق مروزي رحمة الله عليه قول قوي دی ځکه چي دا حديث په وضاحت سره د هغه د قول تائيد کوي .

په هر حال ددې مسئلې تحقيق دادی چي تهجد لمونځ په دې توګه افضل دی چي په دغه لمانځه کي نفس ډير زيات په سختۍ کي اخته وي او لمونځ کونکی د ريا او ځان ښوونې څخه ليري وي ، او سنن رواتب په دې وجه افضل دي چي د فرض لمنځو سره د هغه د کولو ډير تاکيد

سوی دی او دا چي سنن رواتب د فرض لمنځو لپاره متمم دي يعني ددې په ذريعه فرض لمنځونه درجه کمال او اتمام ته رسيږي همداسي د دواړو فضيلتونو پر خپل خپل ځای مسلم دي او په دواړو اقوالو کي څه مخالفت نسته، يا دا چي د شپې د لمانځه د فضيلت په اړه داهم ويل کيدای سي چي د شپې لمونځ ځکه افضل دی چي دا پر وترو باندي مشتمل دي او وتر واجب دي، د سيد الطائفه حضرت جنيد بغدادي رحمة الله عليه په اړه منقول دي چي د وفات څخه وروسته هغه يو چا په خوب کي وليدی او پوښتنه يې ځيني وکړه چي پروردګار ستاسو سره څه معامله وکړه؟ هغه جواب ورکړ:

(تاهت العبادات وفنيت الاشارات وما نفعنا الا ركعات صليناها في جوف الليل)

ژباړه: هغه خبري چي د حقائق او معارف په بيان کي مي ويلې هغه ولاړې او هغه نکات چي مي بيانول هغه ختم سول ما ته خو يوازي د لمانځه هغه څو رکعتو ګټه راکړه چي ما به په نيمه شپه کي کول.

يعني د حق طالبينو او د شريعت سالکينو ته ترغيب ورکړل سوی دی چي د تصوف او طريقت حکمات او نکات پسي مه ګرځئ او د ګفتار څخه د کردار غازي جوړ سئ عملي ژوند جوړ کړئ او د الله تعالی د بندګی پر لار په تللو کي پوره هڅه کوئ او د رياضت او عبادت پوره اهتمام کوئ ځکه چي په دې کي د دنيا هم خير دی او د آخرت هم خير دی.

کار کن کار بگزر از گفتار　　　کاندرين راه کار دارد کار

## د تهجد لمونځ د بدی څخه منعه کوي

﴿۱۱۶۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ إِنَّ فُلَانًا يُصَلِّي بِاللَّيْلِ فَإِذَا أَصْبَحَ سَرَقَ فَقَالَ إِنَّهُ سَتَنْهَاهُ مَا تَقُوْلُ. رواه أحمد والبيهقي في شعب الإيمان

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ: فلانی سړی د شپې لمونځ کوي او کله چي سهار سي نو غلا کوي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: لمونځ به يې ژر د هغه کار څخه منعه کړي د کوم چي تا يادونه کړې ده. احمد او بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲/۴۴۷.

**تشريح**: د لمانځه دا ځانګړتيا ده چي هغه انسان د بدی د لاري څخه منعه کوي او د نيکی پر

لاريې روانوي لكه چې د الله تعالى ارشاد دى :

إِنَّ الصَّلاَةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاء وَالْمُنكَرِ

ژباړه : بيشكه لمونځ د بې حيايي او خرابو خبرو څخه منعه كوي .

د رسول الله ﷺ په وړاندې چې د يو سړي يادونه وسول چې د شپې به په عبادت كې بوخت وو او سهار به يې د غلا په ډول بد عمل كوى نو رسول الله ﷺ دا وفرمايل كه چيري هغه په خلوص نيت او خالص جذبې سره د شپې پر لمانځه هميشتوب كوي نو انشاء الله تعالى ډير ژر به الله تعالى د هغه لمانځه په بركت هغه د دغه قبيح عمل څخه د توبې توفيق وركړې او په خپل زړه او دماغ كې د لمانځه د بركت او نورانيت د اثر په وجه به هغه د غلا كولو څخه منعه سي .

## د كورنۍ سره يو ځاى د تهجد كولو فضيلت

﴿۱۱۶۹﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَّأَبِي هُرَيْرَةَ قَالاَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد رضی الله عنه او ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا أَيْقَظَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّيَا أَوْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ جَمِيعًا كُتِبَا فِي الذَّاكِرِينَ وَالذَّاكِرَاتِ . رواه أبو داود وابن ماجه .

كله چې يو څوك د شپې خپله ښځه راوېښوي او دواړه لمونځ وكړي يا دواړه دوه ركعته يو ځاى وكړي نو دا دواړه په ذاكرين او ذاكرات كې ليكل كيږي . ابو داؤد ، ابن ماجه .

**تخريج :** سنن ابي داؤد ۲\۷۳ ، رقم : ۱۳۰۹ وابن ماجه : ۱\۲۲۳ ، رقم : ۱۳۳۵ .

**تشريح :** په حديث كې د اهل څخه مراد يوازي ښځه هم اخيستل كيداى سي او ښځه ، اولاد ، غلام او مينځې هم مراد اخيستل كيداى سي ، د روايت په مينځ كې راوي ته شك سوى دى چې رسول الله ﷺ لفظ د فصليا يعني هغوى دواړه لمونځ وكړي فرمايلى دى يا لفظ د صلى يعني هر يو دوه ركعته يو ځاى وكړي فرمايلى دى ، په هر حال دا يوازي لفظي اختلاف دى د دواړو مطلب يو دى د ذكر كونكو خلكو او د ذكر كونكو ښځو څخه د قرآن كريم دې آيت ته اشاره ده :

وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا

ژباړه : او د الله تعالى ډير زيات يادونكي خلك او ښځي چې الله تعالى د هغوى لپاره مغفرت او ډير زيات ثواب تيار كړى دى .

مطلب دادی چي کوم سړی د شپې خپله هم پورته کيږي د تهجد لمونځ وکړي او د الله تعالی په ذکر کي بوخت وي او خپله ښځه او نوره کورنۍ هم په وېښولو سره د الله تعالی په عبادت کي بوخت ساتي نو ددغه ټولو شمير به په هغه نيکو او باسعادت خلکو او ښځو کي وي چي د هغوی د فضيلت په اړه په دې آيت کي بيان سوی دی .

**د امت غوره خلک څوک دی؟**

﴿۱۱۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْرَافُ أُمَّتِيْ حَمَلَةُ الْقُرْآنِ وَأَصْحَابُ اللَّيْلِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت لوړي مرتبې والا هغه خلک دي چي قرآن مجيد پورته کوونکی او د شپې لمونځ کوونکی وي . بيهقي

**تخريج:** البيهقي في شعب الايمان ۲\۵۵۶، رقم: ۲۷۰۳.

**تشريح** : د قرآن پورته کونکو څخه مراد هغه خلک دي چي قرآن کريم يادوي او د هغه په احکامو عمل کوي په دې توګه چي قرآن کريم د کومو کارو حکم کړی دی هغه کوي او د کومو کارو څخه چي يې منعه کړې ده د هغه څخه ځان ساتي .

د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي داسي خلک زما د امت د لوړي مرتبې او باسعادت کسان دي، د قرآن کريم يادونکو او د هغه د احکامو د پابند خلکو فضيلت په يو بل روايت کي داسي بيان سوی دی چي کوم سړی قرآن کريم ياد کړي نو بيشکه پر هغه د فيضان نبوت دروازې خلاصيږي مګر هغه ته وحي نه راځي، البته وحي خفي هغه ته راځي (يعني د وحي جلي مطالب او معارفو فيضان د هغه په زړه او دماغ کيږئ) مطلب دادی چي قرآن کريم يادونکی سړی په دې وجه د ډير زيات فضيلت او سعادت وړ منل کيږي چي د هغه په زړه کي دننه د قرآن کريم د الفاظ، په صورت کي نور نبوت اېښودل کيږي د هغه اثر دا وي چي وحي خفي يعني د قرآن ريم د ظاهري الفاظو مطالب او معارف فيضان د هغه پر زړه او دماغ کي روښانه کوي ، او د قرآن کريم د الفاظو د نور په برکت په وحي جلي باندي چي د هغه انبياؤ مخصوصه برخه ده د هغه ايمان او ايقان قوي کيږي ، علامه يحيی رحمة الله عليه وايي چي د قرآن يادولو مطلب دادی چي قرآن کريم ياد کړي او خپل عملي ژوند د هغه مطابق کړي داسي چي قرآن کريم کوم احکام ورکړي دي پر هغه په پوره قلبي خلوص او هميشتوب سره عمل وکړي

کنه محض قرآن یادونکی او پر هغه عمل نه کونکی په هغه خلکو کي شمیرل کیږي چي د هغو په اړه الله تعالی فرمایلي دي :

کَمَثَلِ الْحِمَارِ یَحْمِلُ أَسْفَارًا

ژباړه : یعني (کوم خلک چي حافظ قرآن خو وي مګر عامل قرآن نه وي نو) هغوی داسي دي لکه څرنګه چي پر خره باندي کتابونه واچول سي .

یعني څرنګه چي پر خره باندي کتابونو اچولو سره خره ته هیڅ ګټه نه رسیږي بالکل همداسي په قرآن کریم باندي عمل نه کونکي حافظ ته هم د قرآن کریم د حفظ کولو هیڅ ګټه نه وي او هغه د سعادت او مرتبې په اعتبار په هیڅ حیثیت کي نه وي .

د اصحاب اللیل څخه مراد هغه خلک دي چي د لمانځه او قرآن کریم ویلو لپاره د شپې پر بیداره کېدو باندي همیشوب کوي یعني په پابندي سره هره ورځ د شپې پورته کیږي او د الله تعالی په عبادت او ذکر کي بوخت وي ، داسي خلک د الله تعالی او د هغه د رسول په نظر کي د لوی فضیلت والا دي، او د رسول الله ﷺ د ارشاد سره سم د امت مرحومه د غټي درجې والا په کسانو کي شمیرل کیږي .

## د شپې په عبادت کي د حضرت عمر رضي الله عنه طریقه

﴿۱۱۷۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ أَبَاهُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ مَا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د هغه پلار حضرت عمر رضي الله عنه به د شپې لمونځ کوی

شَاءَ اللهُ حَتّٰى إِذَا كَانَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ أَيْقَظَ أَهْلَهُ لِلصَّلَاةِ يَقُوْلُ لَهُمُ الصَّلَاةَ

څومره چي به الله جل جلاله ته منظوره وه کله چي به د شپې آخري برخه سوه نو خپله کورنۍ به یې د لمانځه لپاره راوېښول او ویل به یې لمونځ وکړئ ،

ثُمَّ يَتْلُوْ هٰذِهِ الْآيَةَ (وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى) رواه مالك .

بیا به یې دا آیت تلاوت کړ : (خپلي کورنۍ ته د لمانځه کولو حکم ورکوه او پر دې صبر کوه موږ ستا څخه روزي نه غواړو بلکه موږ تا ته رزق درکوو او آخرت د پرهیزګارو لپاره دی) مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱۱۹/۱۱، رقم: ۵.

**تشريح**: د آيت مطلب دادی چي د خپل قريبانو او کورنۍ ته د لمانځه کولو هدايت کوه او خپله هم د لمانځه کولو پر مشقت او محنت باندي صبر کوه او په دې اړه چي ستا خپلوان کوم مشقت پورته کوي هغه هم زغمه او د هغوی سره د الله تعالی په عبادت او بندګۍ کي بوخت اوسه د الله تعالی پر ذات توکل لره د هغه څخه د ظاهري او باطني عناء لپاره د مرستي غوښتونکی اوسه د خپل رزق او معاش فکر مه کوه ، موږ ستا څخه رزق نه غواړو چي د خپل رزق او اسباب معيشت د تر لاسه کولو او د نورو لپاره د رزق ذمه داري پر تا واچوو چي ستا لپاره د لمانځه په ادا کولو خنډ سي لکه څرنګه چي موږ نورو ته رزق ورکوو همداسي تا ته هم رزق در کوو ستا کار خو يوازي دادی چي د دنيا او مافيها څخه په مخ اړولو سره خپل زړه او دماغ يوازي د آخرت خير او د خپلو قريبانو په اصلاح کي مصروف وساتې . او په دې پوه سه چي عاقبت محموده يعني د دنيا او آخرت دواړو ځايو انجام پر خېر کېدل يوازي د متقيانو او د الله تعالی د نيکو بندګانو لپاره دی .

============

# بَابُ الْقَصْدِ فِي الْعَمَلِ

## په اعمالو کي د ميانه روي او استقامت بيان

په دې باب کي هغه حديثونه نقل کيږي چي د هغو څخه څرګنديږي چي څرنګه په دنياوي چارو کي افراط او تفريط يعني تر حد زياتوب او تر حد کمي ګټور نه ده همداسي په ديني کارو يعني په نفل اعمالو کي هم افراط او تفريط مطلوب نه دی بلکه ميانه روي او په هغو کي اعتدال اختيارول ضروري دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۱۱۷۲﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ مِنَ الشَّهْرِ

د انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د مياشتي په اکثرو ورځو کي روژه نه نيول

حَتّٰى نَظُنَّ أَنْ لَا يَصُوْمُ مِنْهُ شَيْئًا وَيَصُوْمُ حَتّٰى نَظُنَّ أَنْ لَا يُفْطِرَ مِنْهُ شَيْئًا

تر دې چې زموږ به دا خيال سو چې رسول الله ﷺ په دې مياشت کې روژې نه نيسي، او رسول الله ﷺ به په اکثرو ورځو کې روژې نيولې تر دې چې زموږ به دا خيال سو چې اوس به رسول الله ﷺ روژې نه پرېږدي،

وَكَانَ لاَ تَشَاءُ أَنْ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا إِلاَّ رَأَيْتَهُ وَلاَ نَائِمًا إِلاَّ رَأَيْتَهُ . رواه البخاري .

که ته غواړې چې د شپې رسول الله ﷺ پر لمانځه کولو ووينې نو پر لمانځه کولو به يې ووينې او که ته غواړې چې پر خوب کولو يې ووينې نو پر خوب کولو به يې هم ووينې . بخاري .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۲، رقم: ۱۱۴۱.

**تشريح:** مطلب دا دی چې رسول الله ﷺ به په نفل اعمالو کې د اعتدال لار اختيارول نه خو به يې هميشه روژې نيولې چې افراط يعني زياتوب لازم سي او نه به يې هميشه روژې خوړلې چې تفريط يعني کمي لازم سي بلکه د رسول الله ﷺ طريقه دا وه چې په هره مياشت کې به يې يو څو ورځي روژې وې او يو څو ورځي بيله روژې به وو ، همداسې د نفل لمانځه په اړه هم د رسول الله ﷺ طريقه دا وه چې د شپې به بيده کيدی هم او لمونځ به يې هم کوی نه خو به ټوله شپه بيده وو او نه به يې ټوله شپه لمونځ کوی ، مقصد دا چې په ټولو کارو کې د رسول الله ﷺ عمل د اوسط درجې وو .

## د هميشه عمل فضيلت

﴿۱۱۷۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللهِ أَدْوَمُهَا وَإِنْ قَلَّ . متفق عليه

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله په نزد غوره اعمال هغه دی چې تل کول کيږي که څه هم لږ وي . بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۱۰۱، رقم: ۴۳ ، ومسلم ۱\۵۴۰، رقم: ۲۱۵- ۷۸۲.

**تشريح :** حضرت مظهر رحمة الله عليه فرمايي چې اهل تصوف او طريقت د دې حديث سره سم اوراد او وظائف پرېښودل داسې بد ګڼي لکه څرنګه چې فرض پرېښودل ، مګر صحيح دا دی چې دا پرېښودل يو بهتره پرېښودل دي، يعني د فرضو پرېښودلو او وظائفو په پرېښودلو کې فرق دی د فرضو پرېښودل ګناه کبيره ده ، او د اورادو او وظائفو پرېښودل د اولی بهتر دی ، او

څرګنده ده چې د اولی پرېښودل د فرضو د پرېښودو په درجه کي نسي راتلای او ددې وجه داده چې بنده اطاعت بيله ضرورته ترک کړي نو ګويا هغه د مولی د عبادت څخه مخ واړوی نو هغه د عتاب مستحق سو ، پر خلاف د مداومت کونکي چې هغه ددې خبري مستحق وي چې د پروردګار محبوب وي .

وان قل : ددې مطلب دادی چې لږ عمل وکړه مګر پرهغه هميشتوب اختيار کړه نو هغه د زيات عمل څخه کله چې د هغه د آدابو او شرطونو رعايت نه کيږي او هميشه يې نه کوي غوره دي .

## د توان سره سم عمل

﴿۱۱۷۴﴾: وَ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذُوْا مِنَ الْأَعْمَالِ مَا تُطِيْقُوْنَ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يَمَلُّ حَتّٰى تَمَلُّوْا . متفق عليه

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د اعمالو څخه چې څومره کولای سئ هغه غوره کړئ ځکه چې الله تعالی (په ثواب ورکولو کي) نه ستړی کيږي تر څو پوري چې تاسو ستړي نه سئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۶ رقم: ۱۱۵۱ ، ومسلم ۱\۵۴۲ رقم: ۲۲۰- ۷۸۵.

**تشريح** : مطلب دادی چې د ځان لپاره دومره زيات عبادت ضروري مه ګرځوئ چې هميشه په پابندي سره نه کول کيږي ځکه چې الله تعالی په ثواب ورکولو کي تنګي نه کوي يعني ثواب ورکول نه پرېږدي تر دې چې تاسو خپله د عبادت د زياتوب څخه په پريشانه کېدو سره عبادت نه پرېږدئ ، خلاصه داده چې الله تعالی عبادت کونکي ته ثواب ورکول ، هو که يو سړی د زياتوب په سبب په ستړي کېدو سره عبادت پرېږدي نو الله تعالی ثواب ورکول هم پرېږدي نو د عبادت په اړه د اعتدال لاره اختيارول پکار ده چې هميشه عبادت جاري وي، او د الله تعالی د لوري د ثواب لړی هم قائمه وي .

## عبادت د خوښي تر حده کوئ

﴿۱۱۷۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّ أَحَدُكُمْ نَشَاطَهُ وَإِذَا فَتَرَ فَلْيَقْعُدْ . متفق عليه .

د انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : تر څو پوري چې تاسو په خوښي او

اطمینان سره لمونځ کولای سئ نو وه یې کړئ او کله چي سست سئ نو کښېنئ. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۶\۳، رقم: ۱۱۵۰، ومسلم ۱\۵۴۱، ۵۴۲، رقم: ۲۱۹-۷۸۴.

**تشريح:** د حديث خلاصه داده چي د آخرت د سعادت لار اختيارونكي ته پكار ده چي په عبادت كي د خپل توان سره سم هڅه كوي د طاعت په اړه دي ميانه روي اختيار كړي او په تنګ زړه سره د عبادت كولو څخه دي پرهيز كوي، عبادت دي هغه وخت كوي چي د زړه سكون او اطمينان ورته تر لاسه وي كه يو سړى په عبادت كولو كي ستړى سي او سست سي او په عبادت پرېښودو سره په يو مباح امر كي بوخت سي مثلا بيده سي يا په خبرو وغيره كي بوخت سي چي د عبادت لپاره اطمينان او سكون تر لاسه كړي نو د هغه دا بوختيا په عبادت او طاعت كي شميرل كيږي ځكه چي فرمايل سوي دي د عالم خوب هم عبادت دى.

د طبيعت د نه كېدو په وخت كي د نفل اعمالو د پرېښودو په اړه ډير حديثونه راغلي دي په داسي وخت كي چي په طبيعت كي سستي پيدا سي د نفل اعمالو پرېښودلو اجازه ځكه وركړل سوې ده چي د عمل پر نفس مشكل كيدل آخر د عمل پرېښودو يا په هغه كي د نقصان واقع كېدو سبب جوړيږي.

مګر په دې خبره پوه سئ چي په نفس كي د ډير زيات عبادت كولو عادت اچول پكار دي چي طبيعت د عبادت مشقت او رياضت سره عادت سي، د كاهل طبيعت او سست مزاج خلكو په ډول كېدل نه دي پكار چي لنډ عبادت او لږ عمل سره هم ستړي كيږي د هغه نتيجه داسي چي د هغوى عبادت، رياضت او مجاهده نيم ګړې پريږدي مګر كه د ډير زيات عبادت كولو عادت وي نو زيات عبادت هم پر طبيعت مشكل نه وي، اكثر داسي كيږي چي كومو خلكو ته مخكي دوه رکعته لمونځ كول او د قرآن كريم د يوې پارې تلاوت هم مشكل وه او د هغه په وجه د هغو په طبيعت كي سستي پيدا كړه هغوى چي د زيات عبادت، رياضت او مجاهدې عادت پيدا كړى او خپل نفس او خپل طبيعت يې د الله تعالى په لاره كي د نيک بختيو تر لاسه كولو لپاره د مشقت او محنت عادي جوړ كړى نو هغوى ته سل ركعته لمونځ كول او د قرآن كريم لس پارو تلاوت كول هم آسان وي.

## په ستړيا كي لمونځ مه كوئ

﴿۱۱۷۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي پر تاسو په لمانځه

كي خوب غلبه وكړي

يُصَلِّيْ فَلْيَرْقُدْ حَتّٰى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا صَلّٰى وَهُوَ نَاعِسٌ لاَ يَدْرِيْ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبَّ نَفْسَهُ . متفق عليه

نو هغه ته پكار ده چي بيده سي تر څو چي خوب ځيني ولاړ سي ځكه چي د خوب د غلبې په حالت كي هغه په. دې نه پوهيږي چي څه وايي ممكن ده چي هغه د مغفرت غوښتونكى وي او د هغه د ژبي څخه بده دعاء ووزي. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۳۱۵، رقم: ۲۱۲ ومسلم ۱\ ۵۴۲، ۵۴۳، رقم: ۲۲۲– ۷۸۶.

**تشريح** : مطلب دادى چي د خوب د غلبې او سستى په حالت كي دي لمونځ نه كوي ځكه چي داسي وخت نه خو زړه او د ماغ حاضر وي او نه پر ژبه واک وي ، دا وجه ده چي په داسي حالت كي ويل يو څه غواړي او د ژبي څخه بل څه وځي ، د لمانځه په حالت كي كه زړه، دماغ او ژبه خطا سي نو ښرگنده ده چي ددې پاى ډير خراب كېداى سي ، د مثال په توگه داسي پوه سئ چي يو سړى لمونځ كوي او پر هغه د خوب غلبه راغلل او هغه د خوب څخه زانگي چي د هغه په وجه د هغه زړه ، دماغ او ژبه باندي د غفلت او سستى واک دى اوس هغه په دغه حالت كي ويل غواړي چي : اللهم اغفرلي (اې الله ! ما و بخښې) . مگر د خوب د غفلت په وجه د هغه د ژبي څخه دا الفاظ ووځي :(اللهم اعفر لي ) اې الله ! ما په خاورو ولړې.

تاسو ولېدل چي د خوب غفلت يوازي د يوه لفظ په وجه څه وكړل چيري چي د خپل مغفرت او آخرت د خپل عزت او كاميابى دعاء يې غوښتل او چيري چي د خپل نفس لپاره د ښيرا الفاظ سره ذلت او خوارى يې وغوښتل ځكه منعه كيږي چي هر كله د خوب غلبه وي او سستي راسي نو هغه وخت لمونځ كول پكار نه دى.

## اسلام يو اسان دين دى

﴿۱۱۷۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الدِّيْنَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بېله شكه دين

يُسْرٌ وَلَنْ يُّشَادَ الدِّيْنَ أَحَدٌ إِلاَّ غَلَبَهُ فَسَدِّدُوْا وَقَارِبُوْا وَأَبْشِرُوْا وَاسْتَعِيْنُوْا

يو آسانه شى دى او په دين كي چي څوک سختي كوي دين پر هغه غالب كيږي له دې كبله ميانه

روي غوره كړئ د توان سره سم عمل كوئ خوښ اوسئ او مرسته غواړئ د الله ﷻ څخه

بِالْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَشَيْءٍ مِّنَ الدُّلْجَةِ . رواه البخاري .

سهار، مابنام او د شپې لږ برخه . بخاري .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۹۳، رقم: ۳۹.

**تشريح** : په دغه حديث شريف كي په څرګنده اعلان كيږي چي دين ډير آسان دی ، د انساني مزاج او فطرت عين مطابق دی او د انساني ذهني، فكري، او عملي قوتونه ډير په سكون سره د هغه همنوا جوړيدلای سي، هو ددې خبري هيڅ علاج نسته چي يو سړی د خپل لوري په بې ځايه پابندي كولو سره په اعمالو كي زياتوب وكړي او په دين او شريعت كي د خپل لوري څخه د خبرو زياتولو سره خپله پر ځان ستونزي او تنګی مسلط كړي ، دلته په صراحت سره حكم وركول كيږي چي الله تعالیٰ د دين احكام ډير آسان ټاكلي دي ځكه د رهبانيت په توګه دا احكام د ځان لپاره سخت او هيبتناک مه جووړئ .

(دين پر هغه غالب سي) : ددې مطلب دادی چي كوم سړی پر خپل ځان غير واجب خبري واجب كوي او په ستونزمنو طريقو سره د عبادت بوختيا اختياروي نو دين پر هغه غالب كيږي يعني هغه وروسته د دين د حق د ادا كولو څخه عاجز كيږي همدا سي هغه مغلوب او دين غالب سي .

(قاربوا) : ددې مطلب دادی چي په سهولت او آسانيو سره ديني امورو ته نژدې سئ او پر خپل ځان باندي بې ځايه پابندۍ لګولو سره او په سختيو او مشكلاتو كي د ځان اخته كولو سره د دين څخه ليري والی مه غوره كوئ .

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي قاربوا په اصل كي د سددو (ميانه روي اختيار كړئ) تاكيد دی، كومه معنی چي د (سددوا) ده هغه معنی د (قاربوا) ده .

ځينو حضراتو ددې معنی دا ليكلې ده چي د الله تعالی قرب لټوئ ، په هر حال د حديث مطلب دادی چي ډير زيات عبادت مه كوئ چي هر وخت خپل ځان د عبادت په محنت او مشقت كي اخته ساتئ بلكه په دغه درو وختونو كي عبادت كول غنيمت وګڼئ : (۱) يعني د ورځي په لومړنۍ برخه كي . (۲) د ورځي په آخري برخه كي (۳) او د شپې په آخري برخه كي چي دا د تهجد په لور اشاره ده .

## د شپې پاته وظيفه د ورځې پوره کول پکار ده

﴿۱۱۷۸﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ أَوْ عَنْ شَيْءٍ مِّنْهُ فَقَرَأَهُ فِيْمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ كُتِبَ لَهُ كَأَنَّمَا قَرَأَهُ مِنَ اللَّيْلِ. رواه مسلم

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم څوک چې بیده سي د خپلي وظیفې د پوره والي څخه پرته یا څه وظیفه ځیني پاته سي او خوب ورسي او بیا هغه د سهار او ماپښین په لمونځ کي وکړي نو هغه به په دې حساب کي شمیرل کیږي لکه هغه چي د شپې ویلي وي. مسلم.

**تخریج:** صحیح مسلم: ۱\ ۵۱۵، رقم: ۱۴۲ – ۷۴۷.

**تشریح:** مطلب دادی که یو سړي د کلام الله، لمونځ او اذکارو څخه یو وظیفه ټاکلې وي چي هغه یې د شپې کوي مگر د شپې بیده سو پوره وظیفه یا یو څه برخه ځیني پاته سوه او هغه د سهار د لمانځه او د ماپښین د لمانځه په مینځ کي یعني د زوال څخه مخکي پوره کړل نو د هغه لپاره په شپه کي د کولو ثواب لیکل کیږي.

همداسي د ورځي د وظیفې حکم دی که په ورځ کي وظیفه ځیني پاته سوه بیا د شپې یې وکړه نو د هغه لپاره د ورځي د کولو ثواب لیکل کیږي، شپه او ورځ په خپلو کي د یو بل خلیفه دی، په حدیث کي یوازي د شپې د وظیفې په باره کي ځکه ذکر سوی دی چي اکثر د شپې وظیفه پاته کیږي یعني د خوب د غلبې په وجه د تهجد لمونځ، اوراد او اذکار فوت کیږي دا وجه ده چي دا حدیث په دغه باب کي ذکر سوی دی.

## د معذورۍ په حالت کي په ناسته او پروته لمونځ کول

﴿۱۱۷۹﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ. رواه البخاري

د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په ولاړه لمونځ وکړه که د ولاړي توان دي نه وي نو په ناسته یې وکړه او که د ناستي توان دي نه وي نو په پروتي

يې وکړه . بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۸۷، رقم: ۱۱۱۷.

**تشريح :** که يو سړی د سخت عذر مثلا ناروغۍ وغيره په وجه په ولاړه لمونځ نسي کولای نو په ناسته دې لمونځ وکړي او که عذر دومره سخت وي چي په ناسته لمونځ کول هم د قدرت څخه وتلي وي نو بيا آخري مرحله داده چي په پروته او اړخ دې د قبلې و طرف ته په مخ کېدو سره وکړي، بيا په دې کي هم دومره آساني ده که يو سړی قبلې ته مخ کولای نسي او داسي څوک ورسره نه وي چي د معذور مخ قبلې ته کړي نو کومي خوا ته چي وي هغه خوا ته دې لمونځ وکړي لمونځ يې جائز دی .

حنفيه وايي چي په پروته لمونځ کولو کي غوره داده چي مخ پر قبله کېدو سره دې پريوځي او د اوږو لاندي تکيه ايښودو سره دې سر پورته کړي او په اشاره سره دې لمونځ وکړي .

دار قطني يو حديث نقل کړی دی چي د هغه څخه په پروته د لمانځه کولو اثبات کيږي، دلته چي کوم حديث ذکر سوی دی د هغه په باره کي د حنفيه د خوا ويل کيږي چي رسول الله ﷺ دا حکم په خاصه توګه د حضرت عمران ؓ لپاره کړی وو ځکه چي هغه د بواسير په ناروغۍ اخته وو او هغه سم نسو پريوتلای ، نو دا حديث د نورو لپاره حجت نسي کيدای .

په پای کي په دې خبره هم پوه سئ چي رسول الله ﷺ دا حکم د فرض لمانځه لپاره فرمايلی دی ځکه نو د نفل لمنځو لپاره په طريقه اولی جائز دی .

## بيله عذره په ناسته نفل کونکي ته نيم ثواب ورکول کيږي

﴿۱۱۸۰﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ الرَّجُلِ قَاعِدًا

د حضرت عمران بن حصين ؓ څخه روايت دی چي هغه د رسول الله ﷺ څخه د هغه کس په اړه پوښتنه وکړه چي (نفل) لمونځ په ناسته کوي ،

قَالَ إِنْ صَلَّى قَائِمًا فَهُوَ أَفْضَلُ وَمَنْ صَلَّى قَاعِدًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَائِمِ

رسول الله ﷺ وفرمايل : که په ولاړه يې وکړي نو غوره ده او په ناسته د نفل کولو ثواب د ولاړي په نيمه دی

وَمَنْ صَلَّى نَائِمًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَاعِدِ . رواه البخاري

او څوک چي په پروتي نفل وکړي نو د هغه ثواب د ناستي تر ثواب په نيمه دی . بخاري .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۸٦\۲، رقم: ۱۱۱٦.

**تشريح:** دا حديث پر نفل لمانځه محمول دی ځکه چي فرض لمونځ خو بيله عذره په ناسته کول صحيح نه دی ، هو که يو عذر وي نو ولاړه ساقط کيدای سي او معذور په ناسته هم فرض لمونځ کولای سي . په هر حال د حديث مطلب دادی چي نفل لمونځ بيله عذره په ناسته کونکي د لمانځه پوره ثواب نه تر لاسه کيږي بلکه څومره ثواب چي په ولاړه لمانځه کي تر لاسه کيږي نو د هغه نيم ثواب هغه ته تر لاسه کيږي ، هو که د يو چا عذر وي او پر ولاړي باندي قادر نه وي نو بيا په ناسته لمونځ کونکي ته هم په ولاړه لمونځ کونکي په نسبت نيم ثواب نه ورکول کيږي بلکه پوره ثواب ورکول کيږي .

## بيله عذره په پروته نفل لمونځ کول جائز دي که يا ؟

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي کوم سړی چي په ولاړه يا ناسته لمونځ کولای سي او هغه ته د قيام او قعود قدرت نه وي نو ايا د داسي سړي لپاره نفل مونځ کول په پروته جائز دی که يا ؟ د ځينو حضراتو دا قول دی چي بيله عذر په پروته لمونځ کول جائز نه دي ، مګر د علماؤ د يو ډلي رايه داده چي بيله عذره په پروته نفل لمونځ کول جائز دی ، او د يو ډلي دا قول هم دی چي بيله عذره په پروته نفل مونځ کونکي ته په ناسته لمونځ کونکي په نسبت نيم ثواب ورکول کيږي .

څرنګه چي ددې حديث څخه معلوميږي د حسن بصري رحمة الله عليه قول هم دادی او د حديث د ثابت کېدو په وجه دا قول صحيح او اولی دی، مګر امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي دا جائز نه دی ، او ددې حديث په باره کي د هغه د لوري دا ويل سوي دي چي دا حديث د فرض لمانځه په باره کي دی که يو سړی دومره ناروغ وي چي د مرض د زياتوب او سختوالي سربيره په ولاړه يا په ناسته لمونځ کول د هغه لپاره ممکن وي نو هغه ته په پروته د لمانځه کولو په صورت کي په ناسته لمونځ کونکي په نسبت نيم ثواب ورکول کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

**تر خوب راتلو پوري په اوداسه باندي د الله تعالی په ذکر کي بوختيا**

﴿۱۱۸۱﴾: عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ

د حضرت ابو امامه ﷺ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي ځوک چي

اٰوٰی إِلٰی فِرَاشِهٖ طَاهِرًا وَذَکَرَ اللّٰهَ حَتّٰی یُدْرِکَهُ النُّعَاسُ لَمْ یَتَقَلَّبْ سَاعَةً مِنَ

په اوداسه خپلي بستري ته ولاړ سي او د الله ﷻ ذکر کوي تر څو چي خوب ورسي او هر کله چي د شپې اړخ بدلوي

اَللَّیْلِ یَسْأَلُ اللّٰهُ فِیْهَا خَیْرًا مِّنْ خَیْرِ الدُّنْیَا وَالاٰخِرَةِ إِلاَّ أَعْطَاهُ إِیَّاهُ. ذکره النووي في کتاب الأذکار بروایة ابن السني.

نو د الله تعالی څخه د دین او دنیا خیر غواړي نو الله ﷻ د دین او دنیا خیر ورکوي. کتاب الاذکار

**تخریج:** عمل الیوم واللیلة لابن السني ص ۳۰۴، رقم: ۷۱۷.

## دوه خوشبخته انسانان

﴿۱۱۸۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَجِبَ رَبُّنَا مِنْ رَّجُلَیْنِ رَجُلٌ ثَارَ عَنْ وِطَائِهٖ وَلِحَافِهٖ مِنْ بَیْنِ حِبِّهٖ وَأَهْلِهٖ إِلٰی

زموږ رب د دوو خلکو ته تعجب کوي (راضي کیږي) هغه کس چي د خپل نرم تلتک او خپلي خوښي ښځي څخه د شپې د لمانځه لپاره بیلیږي

صَلاَتِهٖ فَیَقُوْلُ اللّٰهُ لِمَلاَئِکَتِهٖ اُنْظُرُوْا إِلٰی عَبْدِیْ ثَارَ عَنْ فِرَاشِهٖ وَوِطَائِهٖ مِنْ

نو الله تعالی د دې کس په اړه خپلو ملائکو ته وایي زما بنده ته وګورئ چي یوازي د لمانځه لپاره د خپل نرم او ګرم تلتک

بَیْنِ حِبِّهٖ وَأَهْلِهٖ إِلٰی صَلاَتِهٖ رَغْبَةً فِیْمَا عِنْدِیْ وَشَفَقًا مِّمَّا عِنْدِیْ وَرَجُلٌ غَزَا

او خوښي ښځي څخه بیل سو او د هغه شي د غوښتوني لپاره بیل سو کوم چي زما سره دی (یعني جنت او ثواب) او د هغه شي د خوف څخه چي زما سره دی (یعني دوږخ او عذاب)، او دوهم هغه کس چي وجنګیږي

فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَانْهَزَمَ مَعَ أَصْحَابِهِ فَعَلِمَ مَا عَلَيْهِ فِي الْاِنْهِزَامِ وَمَا لَهُ فِي

يوازي د الله ﷻ په لار كي او د خپلو ملګرو سره د ښمن په مقابله كي تېښتي ته تيار سو بيا هغه دا محسوسه كړه چي په تېښته كي څومره لويه ګناه ده او په جنګېدو كي څومره ثواب دى

الرُّجُوْعِ فَرَجَعَ حَتّٰى اُهْرِيْقَ دَمُهُ فَيَقُوْلُ اللهُ لِمَلَائِكَتِهِ انْظُرُوْا إِلٰى عَبْدِيْ

د دې په حس كولو سره بيرته ستون سو تر دې چي شهيد سي نو الله تعالى د هغه په اړه ملائكو ته وايي زما بنده ته وګورئ

رَجَعَ رَغْبَةً فِيْمَا عِنْدِيْ وَشَفَقًا مِّمَّا عِنْدِيْ حَتّٰى اُهْرِيْقَ دَمُهُ . رواه في شرح السنة

چي بيرته راغلى خاص د دې شي د غوښتني لپاره چي زما سره دى او د هغه شى د بيري څخه چي زما سره دى ، تر دې چي د هغه وينه وبيول سي .(يعني شهيد سي). شرح السنه .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۴\۴۲-۴۳، رقم: ۹۳۰.

**تشريح**: مطلب دادى چي د شپې د سكون او آرام په وخت كي د يو سړي لپاره نرم بستر، آرام، تلتک او محبوبي ښځي قرب تر ټولو زيات خواږه او خوښ شيان دي مګر د دې سربيره هغه سړى د خپل رب عبادت او د هغه د جزا او انعام په شوق كي دا ټول شيان پرېږدي او د پروردګار په حضور كي د خپل بندګۍ او عبوديت نذرانه وړاندي كوي ځكه چي هغه پوهيږي چي د دنيا ټول خوښ شيان په دنيا كي د زړه او د ماغ د سكون او د انساني عيش او مشرت سامان جوړېداى سي مګر دا نه خو په قبر كي ګټه رسولاى سي او نه په حشر كي د كاميابۍ ضامن كيږي ، په قبر او حشر كي خو يوازي د پروردګار اطاعت او د هغه عبادت په كار راځي او هغه يې د سعادت او كاميابۍ منزل ته رسوي .

په دې حديث كي دې ته اشاره ده چي د الله تعالى لپاره عبادت كول او پر هغه د ثواب اميد لرل د اخلاص او كمال خلاف نه دي كه څه هم د اكمل درجې خلاف دى ځكه چي د عبادت په اړه اكمل درجه داده چي عبادت صرف د الله تعالى د رضا او د هغه د خوښي تر لاسه كولو لپاره وكړل سي او د دې سره هيڅ غرض مثلا د ثواب تر لاسه كېدل يا د عذاب بيره تړلې نه وي مګر هو كه يو سړى عبادت صرف د ثواب لپاره يا د عذاب د بيري څخه كوي نو هغه نه ګڼي چي د هغه دا عبادت عبادت نه دى يوازي وخت ضائع كول دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۱۱۸۳﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ حُدِّثْتُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن عمرو ﷠ څخه روايت دى چي ما ته دا حديث بيان کړل سو چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ قَالَ صَلاَةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلاَةِ قَالَ فَأَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي

وفرمايل : د سړي لمونځ (نفل) په ناسته کول نيم لمونځ دى، راوي وايي يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو رسول الله ﷺ مي وليدى چي لمونځ کوي پې

جَالِسًا فَوَضَعْتُ يَدِي عَلَى رَأْسِهِ فَقَالَ مَا لَكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو قُلْتُ

په ناسته نو ما خپل لاس د رسول الله ﷺ پر مبارک سر کښېښودى، رسول الله ﷺ وفرمايل : اې د عمرو زويه ! په تا څه سوي دي ؟ ما عرض وکړ

حُدِّثْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَنَّكَ قُلْتَ صَلاَةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا عَلَى نِصْفِ الصَّلاَةِ وَأَنْتَ

اې د الله رسوله !ما ته دا ويل سوى دي چيَ تاسو فرمايلي دي چي په ناسته لمونځ کول د نيم لمانځه برابر دى او تاسو په خپله

تُصَلِّي قَاعِدًا قَالَ أَجَلْ وَلَكِنِّي لَسْتُ كَأَحَدٍ مِنْكُمْ. رواه مسلم

په ناسته لمونځ کوئ، رسول الله ﷺ وفرمايل : هو، تا چي څه وويل صحيح دي مګر زه ستاسو په ډول نه يم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۵۰۷، رقم: ۱۲۰- ۷۳۵.

**تشريح** : د عربو عادت دى چي کله د يو چا څخه د تعجب خبره واوري نو د هغه پر سر لاس ايږدي او د هغوى په نزد داسي کول د ادب خلاف نه دى بلکه دا د زياتي ميني او زياتي بې تکلفي سبب دى، د عبد الله بن عمرو ﷠ د رسول الله ﷺ سره د زياتي درجې مينه او بې تکلفي وه ځکه رسول الله ﷺ چي لمونځ وکړ نو د حيرانتيا له مخي هغه هم خپل لاس د رسول الله ﷺ پر سر مبارک کښېښود او هغه ته تعجب پر دې خبره وسو چي رسول الله ﷺ خو به پر افضل خبره باندي عمل کوى نو بيا رسول الله ﷺ ولي په ناسته لمونځ وکړ، د رسول الله ﷺ د جواب خلاصه

داوه چي نه خو نور پر ما او نه ما پر نورو قياس كوه ځكه چي دا خو يوازي زما ځانگړتيا ده چي زه په ناسته هم لمونځ كوم او زما لمونځ ناقص نه وي زه چي هر ډول لمونځ كوم زما لمونځ پوره كيږي.

## په لمانځه كي راحت دى

﴿۱۱۸۴﴾: وَعَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ قَالَ قَالَ رَجُلٌ مِنْ خَزَاعَةَ لَيْتَنِي صَلَّيْتُ

د سالم بن ابو جعد رضي الله عنه څخه روايت دى چي د خزاعة قبيلې يو سړي وويل كاشكي زه لمونځ وكړم

فَاسْتَرَحْتُ فَكَأَنَّهُمْ عَابُوا ذٰلِكَ عَلَيْهِ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

نو پر آرام به سم، صحابه كرامو د هغه پر دې خبره غيب ولگوى هغه وويل ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

وَسَلَّمَ يَقُولُ أَقِمِ الصَّلَاةَ يَا بِلَالُ أَرِحْنَا بِهَا. رواه أبو داود.

چي فرمايل يې: اې بلاله! اقامت وكړه چي موږ راحت تر لاسه كړو. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۵\۲۶۲، رقم: ۴۹۸۵.

**تشريح**: د لمانځه تاثير انساني راحت، اطمينان او د زړه سكون دى، كوم څوک چي د زړه په اخلاص سره لمونځ كوي نو هغه ته يو عجيب ډول راحت تر لاسه كيږي او د هغه زړه او دماغ د سكون او اطمينان د خزانو څخه ډكيږي.

د خزاعه قبيلې د ياد سوي سړي د ويلو مطلب دا وو چي زه غواړم لمونځ وكړم او بيا د خپل پروردگار عبادت، د هغه مناجات، حمد او د هغه د كلام پاک د ويلو د خوند څخه راحت او سكون تر لاسه كړم، خلكو د هغه خبره بده وگڼل نو يوه وجه دا چي د هغه د قول دوې معناوي كيداى سي: لومړى خو دا چي د لمانځه په ذريعه راحت تر لاسه كړم، دوهم دا چي د لمانځه څخه راحت تر لاسه كړم، يعني لمونځ وكړم او په ارامه سره كښېنم، د هغه مراد خو اوله معنى وه مگر خلكو د دوهمي معنى مراد واخيستى چي د هغو خوښه نه سول ځكه هغه د خلكو غلط فهمى ليري كولو لپاره او د خپل مراد څرگند كولو لپاره د رسول الله ﷺ دا ارشاد چي بلال رضي الله عنه ته يې فرمايلى وو نقل كړ چي اې بلاله! اقامت وكړه چي موږ ددې په ذريعه راحت تر لاسه كړو ځكه چي د رسول الله ﷺ لپاره يوازي د الله تعالى په عبادت كي راحت وو او په لمانځه كي بوخت كېدل د رسول الله ﷺ د آرام او سكون لويه ذريعه وه، د لمانځه څخه پرته د دنيا ټول

اعمال رسول الله ﷺ د رنځ او عدن په لمانځه کي دننه د خپل پروردګار لوئي او د خپل خالق مناجات او حمد بيانيږي چي د يو کامل او اکمل بنده د خپل پروردګار په مناجاتو کي بوخت کېدل د هغه لپاره تر ټولو لوی راحت دی ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

(قُرَّةُ عَيْنِيْ فِي الصَّلٰوةِ)

ژباړه : زما د سترګو يخوالی په لمانځه کي دی .

============

# بَابُ الْوِتْرِ (د وتر لمانځه بيان)

وِتر[1] هغه لمانځه ته وايي چي په هغه کي طاق رکعتونه وي مګر د فقهاؤ په نزد وتر هغه خاص لمانځه ته وائي چي د هغه وخت د ماختن د لمانځه وروسته وي چي په عامه توګه د ماختن وروسته يې وکړي او په دې باب کي د دغه وتر بيان کيږي .

## ايا وتر لمونځ واجب دې که سنت ؟

د وتر لمانځه په اړه د امامانو په نزد په دوو شيانو کي اختلاف دی: اول شی خو دا چي ايا وتر لمونځ واجب دی که سنت؟ امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمائي چي وتر لمونځ واجب دی، امام شافعي رحمة الله عليه او قاضي ابويوسف رحمة الله عليه فرمائي چي وتر سنت دی .

## وتر يو رکعت دی که درې رکعته ؟

د علماؤ په نزد دوهم دا اختلاف دی چي وتر لمونځ يو رکعت دی که درې؟ د حنفيه په نزد وتر درې رکعته دي او د اکثرو امامانو مذهب دادی چي وتر لمونځ يو رکعت دی مګر د دې حضراتو په نزد هم د وتر لپاره يوازي يو رکعت کول مکروه دی بلکه دا حضرات وايي چي اول دي په دوو رکعتو کولو سره سلام وګرځوي د هغه وروسته دي وتر وکړي .

## د وتر لمانځه طريقه څرنګه ده ؟

د حنفيه په نزد د وتر لمونځ د ماښام د لمانځه په ډول درې رکعته کيږي، د دې د کولو هغه طريقه ده کومه چي د فرض لمانځه وروسته ده خو فرق يوازي دادی چي د فرض لمانځه يوازي

[1] - د (وتر) په لفظ کي واو په زور او زېر دواړو ويل کيدای سي مګر په زير سره ويل يې ډير مشهور دي

په دوو رکعتو کي د سورة فاتحه وروسته دوهم سورت ويل کيږي او په وتر لمانځه کي په درو سره رکعتو کي د دوهم سورت ويلو حکم دی او په دريم رکعت کي د دوهم سورت وروسته دواړه لاسونه په تکبير ويلو سره غوږو ته پورته کړل سي او په کرار اواز سره دي دعاء قنوت ووايي، دعاء قنوت دا دی.

(اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَهْدِيْكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنَتُوْبُ اِلَيْكَ وَ نُؤْمِنُ بِكَ وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ وَنَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ وَاِلَيْكَ نَسْعٰی وَنَحْفِدُ وَنَرْجُوْا رَحْمَتَكَ وَنَخْشٰی عَذَابَكَ اِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ.)

ژباړه: اې الله! موږ ستا څخه مرسته غواړو، او ستا څخه د هدايت غوښتونکي يو ستا څخه د خپلو ګناهو معافي غواړو موږ ستا په وړاندي توبه کوو، پر تا باندي ايمان راوړو ستا ښه تعريف کوو موږ ستا شکر ادا کوو ناشکري نه کوو او کوم څوک چي ستا ناشکري او نافرماني کوي موږ هغه پريږدو، اې پروردګاره! موږ ستا عبادت کوو تا ته لمونځ کوو تا ته سجده کوو ستا په لور درځغلو ستا په عبادت کي ژر مستعد کيږو ستا د رحمت اميد لرو، ستا د عذاب څخه بيريږو بيشکه ستا عذاب پر کافرانو نازليدونکی دی.

که ددې څخه وروسته دغه دعاء هم ووايي نو غوره ده:

اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَ عَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَ تَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَ بَارِكْ لِيْ فِيْمَا اَعْطَيْتَ وَ قِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَاِنَّكَ تَقْضِيْ وَ لَا يُقْضٰی عَلَيْكَ اِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ.

ژباړه: اې الله! د هغه کسانو سره ما ته هدايت وکړې چي هغوی ته تا هدايت کړی دی ما د هغه کسانو سره د مصيبتو او آفتو څخه وساتې کوم چي تا ساتلي دي د هغه کسانو سره زما مينه پيدا کړې د کوم چا سره چي ته مينه کوې او څه چي تا راکړي دي په هغه کي ما ته برکت راکړې او ما د هغه بديو څخه وساتې کوم چي مقدر دي بيشکه ته حاکم يې محکوم نه يې او د چا سره چي ته مينه وکړې هغه ذليل کيدای نسي او د چا سره چي ستا عداوت وي هغه عزت نسي تر لاسه کولای، اې الله ستا ذات بزرګ او لوړ دی.

که د چا دعاء قنوت په ياد نه وي نو هغه دي د دعاء قنوت پر ځای دغه دعاء وايي:

(رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ)

ژباړه: اې زموږ پروردګاره! موږ ته په دنيا او آخرت کي نيکي راکړې او موږ د دوږخ د عذاب څخه وساتې . او که يو څوک دغه دعاء هم نه سي ويلای نو بيا دي (اللهم اغفرلي) يا (يارب) درې ځله و وايي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### دوتر لمانځه رکعتونه

﴿۱۱۸۵﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلاَةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د شپې لمونځ دوه دوه

فَإِذَا خَشِيَ أَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلَّى رَكْعَةً وَاحِدَةً تُوتِرُ لَهُ مَا قَدْ صَلَّى . متفق عليه

رکعته دی هر کله چي په تاسو کي د يو چا د سهار کېدو بيره وي نو يو رکعت دي بل وکړي چي هغه لمونځ وتر جوړ سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۷۷، رقم: ۹۹۰، ومسلم: ۱\۵۱۶، رقم: ۱۴۵- ۷۴۹.

**تشريح** : د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي په شپه کي کونکي نفل لمنځونه دي دوه دوه رکعته وکړل سي، امام شافعي رحمة الله عليه ، امام ابويوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه د دغه حديث په رڼا کي ويلي دي : غوره داده چي په شپه کي نفل لمنځونه دي داسي وکړل سي چي د هرو دوو رکعتو وروسته دي سلام وګرځول سي يعني دوه دوه رکعتونه دي کوي.

د حديث د دوهمي برخي مطلب دادی: چي په شپه کي په لمانځه بوخت کېدونکی سړی چي دا ويني چي شپه ختميږي او سهار پيل کيدونکی دی نو د دغه لمنځو وروسته دي يو رکعت وکړي چي دا يو رکعت مخکي وکړي چي لمونځ طاق سي همداسي دا حديث د امام شافعي رحمة الله عليه دليل دی ځکه د هغه په نزد وتر يو رکعت دی.

امام طحاوي (حنفي) رحمة الله عليه د (رکعة واحد) مطلب دا بيان کړی دی چي يو رکعت دي داسي وکړي چي د هغه مخکي دي دوه رکعته وکړي چي دا رکعت دي مخکي شفع يعني د

يوه ركعت مخكي دي دواړه ركعتونه طاق كړي ګويا يو ركعت نسي كولاى بلكه دوه ركعته په يو ځاي كولوسره دي وكړل سي.

علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي چي د دغه حديث څخه دا ثابتيږي چي وتر يو ركعت دى ځكه نو ددي لپاره دي بيل تكبير تحريمه وكړل سي نو د دې په ذريعه د وتر په يو ركعت كيدو باندي استدلال كول صحيح نه دى، بيا د وتر د درو ركعتو په اړه د حنفيه يو دليل دا هم دى چي رسول الله ﷺ صلوة بتيرا يعني يو اځي يو ركعت د لمانځه كولو څخه منعه فرمايلې ده.

او كوم چي د صحابه كرامو او سلفو عمل دى نو د دې په باره كي په شوق سره ويل كيداى سي چي اكثرو فقهاؤ، صحابه كرامو او د سلفو معمول وتر درې ركعته كول وه، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په باره كي بيانيږي چي د هغه به په دې اړه ډيره زياته پابندي وه، هغه يو وار سعيد بن مسيب رحمة الله عليه د وتر پر يو ركعت كولو باندي وليدى نو ورته وه يې فرمايل: څرنګه نيمګړى لمونځ كوې دوه ركعته نورو وكړه كنه نو سزا به دركړم (نهايه).

امام ترمذي رحمة الله عليه د حضرت علي رضي الله عنه څخه د وتر درې ركعته نقل كړي دي او دا يې د عمران بن حصين رحمة الله عليه، بي بي عائشې رضي الله عنها، ابن عباس رضي الله عنه او ابو ايوب رضي الله عنه خوا ته منسوب كړى دى او په اخر كي يې صراحت كړى دى چي د صحابه كرامو او تابعينو ډله دې خوا ته دي.

د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه په اړه ذكر دى چي د هغوى په نزد وتر درې ركعته دي، امام حسن بصري رحمة الله عليه فرمايي چي د پخوانيو بزرګانو پر دې معمول وو (هدايه).

درې ركعته وتر په صحابه كرامو كي مشهور وه، يو ركعت وتر خو په عامه توګه خلكو پيژنده هم نه د ابن عباس يو وار معاويه رضي الله عنه يو ركعت په وتر كولو باندي وليدى نو هغه ته ډير تعجب وسو هغه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په خدمت كي حاضر سو هغه ته يې ډير په اهتمام سره بيان وكړ، ابن عباس رضي الله عنه د هغه وحشت او حيرت په دې ويلو سره ختم كړ چي معاويه رضي الله عنه ديني عالم دى د رسول الله ﷺ د صحبت څخه مشرف سوى دى پر هغه اعتراض مه كوئ (بخاري).

په هرحال د دې ټولو خبرو په دليل سره فيصله كيږي چي د وتر درې ركعته دي كوم حديثونه چي د وتر د يوه ركعت څخه ثابتيږي هغه ټول د تاويل قابل دي چي پر وخت باندي به انشاءالله بيان كړل سي، يا دا چي په هغه كي د رسول الله ﷺ د مخكنيو حالاتو ذكر سوى دى په پاى كي د رسول الله ﷺ درې ركعته وه چي په صحابه كرامو كي ډير مشهور وه، او څرګنده ده چي د امت لپاره د رسول الله ﷺ هغه فعل حجت او دليل جوړيداى سي پر كوم چي رسول الله ﷺ په پاى كي عمل اختيار كړى وي.

﴿۱۱۸۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوِتْرُ رَكْعَةٌ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ. رواه مسلم

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: وتر د شپې د آخري برخي يو ركعت دى. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱/ ۵۱۸، رقم: ۱۵۳- ۷۵۲.

**تشريح**: د (الوتر ركعة) مطلب دا دى چي د مخكي سورو دوو ركعتونو سره يوځاى د وتر يو ركعت دى ګويا د دې مفهوم داسو چي د وتر لپاره درې ركعته يعني دوه ركعته مخكي او د سلام ګرځولو وروسته بيا يو ركعت دي وكړل سي، د حديث د ښكاره الفاظو څخه په آخوا كيدو د تاويل په اختيارولو سره دا معنى ځكه بيان سوې ده چي په هغه حديثو كي چي د هغه څخه د وتر درې ركعته ثابت دي او په هغه حديثو كي چي د هغه څخه د يوه ركعت اثبات كيږي تطبيق پيدا سي او د حديث حقيقي معنى او په مفهوم كي مخالفت نه پيدا كيږي، د وتر كولو غوره وخت د شپې اخري وخت دى كله چي د تهجد وغيره لمونځ وكړل سي مګر په عامه توګه سره خلک د تهجد د لمانځه لپاره نه ولاړيږي ځكه د ماخستن د لمانځه څخه سمدستي وروسته وتر هم كوى، شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه ليكلي دي چي دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د وتر يو ركعت دى، په كومو حديثونو كي چي د وتر درې ركعتونه ثابت دي هغه مخكي ذكر كيږي.

### په يوه تشهد سره د پنځو ركعتو مسئله

﴿۱۱۸۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً يُوتِرُ مِنْ ذٰلِكَ بِخَمْسٍ لَا يَجْلِسُ فِيْ شَيْءٍ إِلَّا فِيْ آخِرِهَا. متفق عليه

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به لمونځ ادا كوى د شپې ديارلس ركعته او په هغو كي پنځه ركعته به يې وتر كول او د هغو په منځ كي به يوازي په آخري ركعت كي د تشهد لپاره كښېنستى. بخاري او مسلم.

**تخریج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲٦، رقم: ۱۱۴۰، ومسلم ۱\۵۰۸، رقم: ۱۲۳- ۷۳۷.

**تشریح:** په شپه کي د رسول الله ﷺ لمونځ په څو طريقو سره ذکر سوی دی په هغه کي يوه طريقه دا هم ده چي رسول الله ﷺ به اته رکعته په څلور واره سلام ګرځولو سره يعني دوه دوه رکعته کول بيا په اخر کي پنځه رکعته په يوه تشهد او يوه سلام سره به يې داسي کول چي په هغه کي به يې د وتر نيت هم کوی يعني وتر لمونځ به يې هم په هغه پنځو رکعتو کي ګډوی او په هغه پنځو رکعتو کي په يوه رکعت کي هم نه خو د تشهد لپاره کښېنستی او نه به يې سلام ګرځوی نو دا حديث په صحيح توګه د دې خبري دليل دی چي پنځه رکعته داسي په يوځاي کولو سره چي په هغه کي په هيڅ يو رکعت کي هم د تشهد لپاره نه کښېني بلکه يوازي اخري يعني د پنځم رکعت وروسته قعده وکړل سي مګر د فقهاؤ په نزد دا مسئله مخالفه ده د کومو حضراتو په نزد چي دا جائز نه ده هغوی دنه کښېنستو او سلام نه کولو سره کوي يعني د هغوی په نزد (لايجلس في شيئ الا في آخرها) مطلب دا بيانوي چي رسول الله ﷺ به په دغه پنځو رکعتو کي يوازي د آخري رکعت وروسته سلام ګرځوی او په مينځ کي به يې د هيڅ رکعت وروسته سلام نه ګرځوی، په ځينو روايتو کي ذکر دي چي (لم يسلم لا في الآخرين) ځيني حضراتو دا تاويل هم کړی دی چي په دغه پنځو رکعتو کي پرته د اخري رکعت څخه په هيڅ يو رکعت کي اوږده قعده نه کول يوازي په اخري رکعت کي به يې اوږده قعده کول په هرحال تر څلورو زيات رکعتونه په يوځاي کولو سره په يوه سلام سره کول په متفقه توګه د ټولو علماؤ په نزد جائز دي مګر د حنفيه په نزد دومره فرق دی چي د هغوی په نزد تر اتو رکعتو پوري په يو ځاي کولو سره په يوه سلام سره کول بلاکراهيته جائز دی خو د اتم رکعت وروسته په کراهت سره جائز دي.

## د نبي کريم ﷺ تهجد او وتر لمونځ

﴿۱۱۸۸﴾: وَعَنْ سَعْدِ ابْنِ هِشَامٍ قَالَ انْطَلَقْتُ اِلٰى عَائِشَةَ فَقُلْتُ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ

د حضرت سعد بن هشام رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه بي بي عائشي رضي الله عنها ته ورغلم او عرض مي وکړ چي اې د مؤمنانو موري!

أَنْبِئِينِي عَنْ خُلُقِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ

د رسول الله ﷺ د اخلاقو حال راته بيان کړئ، هغې وفرمايل ايا تا قرآن نه دی ويلي ؟

قُلْتُ بَلٰى قَالَتْ فَإِنَّ خُلُقَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنُ قُلْتُ يَا

ما عرض وكړ : هو ، هغې وفرمايل : د نبي كريم ﷺ اخلاق قرآن وه، ما بيا عرض وكړ چي اې

أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَنْبِئِينِي عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ كُنَّا

ام المؤمنين ! د رسول الله ﷺ د وترو حال راته بيان كړه، هغې وفرمايل : موږ به

نُعِدُّ لَهُ سِوَاكَهُ وَطُهُورَهُ فَيَبْعَثُهُ اللّٰهُ مَا شَاءَ أَنْ يَبْعَثَهُ مِنَ اللَّيْلِ فَيَتَسَوَّكُ

د رسول الله ﷺ لپاره د مسواک او اوبو انتظام كوى الله تعالى به رسول الله ﷺ د شپې را بيداره كړى ، كله چي به رسول الله ﷺ وېښ سو نو مسواک به يې وهى

وَيَتَوَضَّأُ وَيُصَلِّي تِسْعَ رَكَعَاتٍ لاَ يَجْلِسُ فِيهَا إِلاَّ فِي الثَّامِنَةِ فَيَذْكُرُ اللّٰهَ

او اودس به يې كوى او د هغه وروسته به يې نهه ركعته كول چي په هغو كي په اتم ركعت كي به د تشهد لپاره كښېنستى ، د الله جل جلاله ذكر به يې كوى

وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُوهُ ثُمَّ يَنْهَضُ وَلاَ يُسَلِّمُ فَيُصَلِّ التَّاسِعَةَ ثُمَّ يَقْعُدُ فَيَذْكُرُ

او د الله تعريف به يې كوى او دعاء به يې غوښتل تر دې وروسته به ولاړ سو سلام به يې نه ګرزوى تر هغو چي نهم ركعت باندي به كښېنستى نو ياد به يې كړى

اللّٰهَ وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُوهُ ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ مَا

الله جل جلاله او حمد به يې ووايه د الله جل جلاله او دعاء به يې غوښتل، تر دې وروسته به يې موږ ته د اورولو لپاره په لوړ آواز سره سلام وګرځوى بيا به يې دوه ركعته وكړل وروسته تر

يُسَلِّمُ وَهُوَ قَاعِدٌ وَتِلْكَ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يَا بُنَيَّ فَلَمَّا سَنَّ نَبِيُّ اللّٰهِ ﷺ

سلام ګرځولو په ناسته ، زويه! دا يوولس ركعته سول بيا چي د رسول الله ﷺ عمر مبارک زيات سو

وَأَخَذَهُ اللَّحْمُ أَوْتَرَ بِسَبْعٍ وَصَنَعَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِثْلَ صَنِيعِهِ الأَوَّلِ فَتِلْكَ

بدن يې دروند سو نو رسول الله ﷺ به اووه ركعته وتر كول او دوه ركعته به يې وروسته په ناسته كول

تِسْعٌ يَا بُنَيَّ وَكَانَ نَبِيُّ اللّٰهِ ﷺ إِذَا صَلَّى صَلاَةً أَحَبَّ أَنْ يُدَاوِمَ عَلَيْهَا وَكَانَ إِذَا

نو (زويه!) دا نهه ركعته سول، د نبي كريم ﷺ دا عادت وو چي كوم لمونځ به يې كوی نو هغه به يې هميشه كول خوښول او كله چي به

غَلَبَهُ نَوْمٌ أَوْ وَجَعٌ عَنْ قِيَامِ اللَّيْلِ صَلَّى مِنَ النَّهَارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً

د خوب د غلبې له كبله يا د وظيفې له كبله به يې د شپې لمونځ ونه كړ نو د ورځي به يې دوولس ركعته كول

وَلاَ أَعْلَمُ نَبِيَّ اللّٰهِ ﷺ قَرَأَ الْقُرْآنَ كُلَّهُ فِي لَيْلَةٍ وَلاَ صَلَّى لَيْلَةً إِلَى الصُّبْحِ

او زما دا په ياد نه دي چي رسول الله ﷺ ټول قرآن په يوه شپه يا ټوله شپه كي ويلي وي او يا د ماخستن څخه تر سهاره پوري يې لمونځ كړی

وَلاَ صَامَ شَهْرًا كَامِلاً غَيْرَ رَمَضَانَ . رواه مسلم

يا د رمضان د مياشتي څخه پرته په بله مياشت كي د پوره مياشتي روژې نيولي وي . مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\ ۵۱۲- ۵۱۴، رقم: ۱۳۹- ۷۴۶،

**تشريح:** لكه څرنگه چي مخكي ښودل سوي دي چي رسول الله ﷺ به هغه عمل زيات خوښوی چي هميشه به يې كوی، د رسول الله ﷺ مبارک عادت وو چي كله به يې نفل لمونځ يا يو بل نفل عبادت به يې كوی نو پر هغه به يې هميشتوب اختيار وی، هو كه عذر به وړاندي سو يا د بيان جواز مقصد به وو نو كله كله به يې پرېښودل هم، دلته خو بي بي عائشه ﷺ فرمايي چي: رسول الله ﷺ د روژې څخه پرته په هيڅ مياشت كي هم پوره روژې نه نيولې، او د يو بل روايت څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ به د شعبان پوره روژې نيولې مگر د بي بي عائشې ﷺ د دغه دواړو روايتونو څرگنده اختلاف د هغې يو دريم روايت ختموي چي په هغه كي صراحت سوی دی چي رسول الله ﷺ به په شعبان كي يوه مياشت نه بلكه د هغه مياشتي په اكثرو ورځو كي روژې نيولې.

## د وتر وروسته دوه ركعته نفل لمونځ

د وتر وروسته د دوو ركعتو نفل كولو اثبات نه يوازي دا چي د روايت څخه كيږي بلكه نور هم ډېر روايتونه وارد دي چي د هغو څخه ثابتيږي چي د وتر وروسته دوه ركعته نفل كيدای سي، مگر اوس تر دې وروسته يو بل روايت راځي چي د هغه الفاظ دا دي (اجعلوا آخر صلاتكم

بالیل وترا ) یعني د شپې په لمانځه کې اخري لمونځ وتر کوئ، په ځرګند خو په ټولو روایتونو کې ډیر سخت ټکر معلومیږي داوجه ده چي د ټکر رفع کولو لپاره علماؤ هڅي کړي دي، امام مالک رحمة الله علیه خو د سره د دې حدیث ځخه انکار کړی دی چي د هغه ځخه د وتر وروسته دوه رکعته نفل ثابتیږي هغه فرمایلي دي چي دا حدیث صحیح نه دی، امام احمد رحمة الله علیه د یو درمیاني لاري را ایستلو لپاره هڅه کړې ده او فرمائي چي د وتر وروسته دوه رکعته لمونځ نه خو زه خپله کوم او نه بل څوك د کولو ځخه منعه کوم.

د جمهور علماؤ وینا ده چي د وتر وروسته دوه رکعته نفل کول د حدیث ځخه ثابت دي ځکه دا بالکل پرېښودل کیدای هم نسي، نو کوم حضرات چي د دوو رکعتو کولو قائل دي او کوم چي د احادیثو په خپلو کي د ټکر د پورته کولو سوال دی نو د دې حضراتو لخوا په دغه حدیثونو کي دوه ډوله تطبیق پیدا کیږي یو خو دا چي په (اجعلوا اخر صلاتکم بالیل وترا) کي د صلوة ځخه مراد د دوو رکعتو ځخه پرته نور نفل لمنځونه دي همداسي د دې حدیث مطلب به دا وي چي د شپې د وتر کولو وروسته د دوو رکعتو وروسته نور نفلونه مه کوئ.

دوهم تطبیق د جمهور علماؤ لخوا دا بیانیږي چي په دې اړه غوره طریقه دا ده چي کله خو د وتر وروسته دوه رکعته کول کیږي او کله نه، چي په دواړو حدیثونو باندي عمل وکړل سي ګویا داسي ویل پکار دي چي حدیث (اجعلوا آخر صلوتکم ........الخ) پر استحباب باندي محمول دی نه پر وجوب باندي، یعني په دې کي چي کوم حکم ورکړل سوئ دی هغه د استحباب په توګه دی د وجوب په توګه نه دی، د دې وروسته دا خبره هم اختلافي ده چي ایا رسول الله ﷺ د وتر لمانځه وروسته دوه رکعته په داسي صورت کي کول چي رسول الله ﷺ به د شپې په لومړنی برخه کي یعني د ماخستن وروسته به یې ادا کول یا په دې شکل کي به یې کول چي رسول الله ﷺ به وتر د شپې په آخر کي د تهجد وروسته ادا کول، په دې اړه دابو امامه رحمة الله علیه ځخه چي کوم حدیث نقل دی هغه خو مطلق دی په هغه کي یوازي دومره مذکور دی چي رسول الله ﷺ به د وتر وروسته دوه رکعته په ناستي کول دا هیڅ ذکر نه دی چي په اوله برخه د شپې کي به یې کول یا د شپې په اخري برخه کي، مګر د ثوبان رضي الله عنه ځخه چي کوم حدیث نقل دی هغه پر دې خبره دلالت کوي چي رسول الله ﷺ د وتر وروسته دوه رکعته کول په دې صورت کي چي د شپې په اوله برخه کي به یې وتر اداء کول دا دواړه حدیثونه د دې باب په اخر کي راځي.

د بخاري، مسلم او موطا روایتونه پر دې خبري دلالت کوي چي دا د قیام لیل په صورت کي وو یعني رسول الله ﷺ به د شپې تهجد لمونځ وکړنو د وتر وروسته به یې دوه رکعته کول او

دا صحیح هم دی .

ځیني علماء فرمايي چي دا دوه رکعته د وتر سره تړلي دي او وتر د سنتو قائم مقام دي يعني څرنگه چي د فرض لمانځه سنت وي چي هغه د فرض لمانځه مخکي يا وروسته وکړل سي همداسي د دواړو رکعتونو وتر د سنتو قائم مقام دي چي د وتر څخه وروسته کول کيږي .

## وتر دي د شپې په آخر کي وسي .

﴿۱۱۸۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِجْعَلُوْا آخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خپل شپې په لمانځه کي آخري لمونځ وتر ولرئ . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱\ ۵۱۷، رقم: ۱۵۱– ۷۵۱.

**تشريح :** د دې حديث په اړه مخکي په تفصيل سره بيان سوی دی مگر په دې باندي يو وار بيا پوه سئ چي په دې حديث کي چي کوم حکم ورکول کيږي هغه د واجب کېدو په توگه نه دی بلکه د مستحب کېدو په توگه دی .

﴿۱۱۹۰﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَادِرُوْا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ .

وراه مسلم .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د سهار کيدو څخه مخکي پر وتر کولو تلوار کوئ . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۱\ ۵۱۷، رقم: ۱۴۹–۷۵۰.

**تشريح :** مطلب دادی چي د سهار کېدو څخه مخکي وتر کوئ د حنفيه په نزد دا حکم د وجوب لپاره دی که په شپه کي وتر لمونځ پاته سي نو د ورځي د هغه قضاء راوړل واجب ده .

## د وتر لمانځه وختونه

﴿۱۱۹۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَافَ أَنْ

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د چا چي دا بيره وي چي

لاَّ يَقُوْمَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوْتِرْ أَوَّلَهُ وَمَنْ طَمَعَ أَنْ يَّقُوْمَ آخِرَهُ فَلْيُوْتِرْ آخِرَ

د شپې په آخره کې د وترو لپاره نه سي پورته کېدلای نو هغه ته پکار دي چي د شپې په اول کي وتر وکړي او د چا چي دا امید وي چي د شپې په آخر کي راپورته کېدای سي نو هغه دي وتر په آخر کي ادا کړي

اللَّيْلِ فَإِنَّ صَلاَةَ آخِرِ اللَّيْلِ مَشْهُوْدَةٌ وَذٰلِكَ أَفْضَلُ . رواه مسلم .

د شپې، ځکه چي د شپې دآخري برخي لمونځ مشهود او افضل دی . مسلم.

**تخریج:** صحیح مسلم ۱\ ۵۲۰، رقم: ۱۶۲- ۷۵۵.

**تشریح** : د شپې د اخري برخي د فضیلت او برکتونو په باره کي تاسو په تېرو صفحو کي وویل چي د شپې په دغه برخه کي چي کوم عبادت وکړل سي هغه د ثواب او سعادت په اعتبار ډېر زيات غوره دی ځکه چي د شپې په اخر کي وتر لمونځ کول افضل دی، نه یوازي دا چي په افضل وخت کي وتر ادا کيږي بلکه په دې وخت کي د رحمت ملائکي او د الله تعالی د انوارو او برکتونو د نزول په وجه ثواب هم زيات تر لاسه کيږي .

﴿۱۱۹۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مِنْ كُلِّ اللَّيْلِ أَوْتَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَأَوْسَطِهِ وَآخِرِهِ وَانْتَهٰى وِتْرُهُ إِلَى السَّحَرِ . متفق علیه

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د شپې په هره برخه کي وتر کړي دي یعني د شپې په لومړۍ برخه کي هم او د شپې په منځنۍ برخه کي هم او د شپې په آخره برخه کي هم، د رسول الله ﷺ د وترو آخري وخت د شپې آخري شپږمه برخه وه . بخاري او مسلم .

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۴۸۶، رقم: ۹۹۶، ومسلم ۱\ ۵۱۲، رقم: ۱۳۶- ۷۴۵.

﴿۱۱۹۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ بِثَلاَثٍ صِيَامِ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَرَكْعَتَيِ الضُّحٰى وَأَنْ أُوْتِرَ قَبْلَ أَنْ أَنَامَ . متفق علیه

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي زما دوست (محمد ﷺ) ما ته د درو خبرو وصیت کړی دی په میاشت کي د درو روژو ساتل، دویم د لمر ختلو وروسته دوه رکعته لمونځ کول او

دریم دا چي د بیده کیدو څخه وړاندي وتر وکړم. مسلم او بخاري

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۲۶، رقم: ۱۹۸۱، ومسلم ۱\۴۹۹، رقم: ۸۵- ۷۲۱.

**تشریح:** د هري میاشتي د درو روژو په تعین کي مختلف قولونه دي ځینو علماؤ ویلي دي چي د میاشتي د درو روژو څخه مراد ایام بیض یعني د هري میاشتي د دیارلسمي، څورلسمي او پنځلسمي نېټې روژې مراد دي، د ځینو حضراتو لخوا ویل سوي دي چي یوه روژه د میاشتي په سر کي او یوه روژه د میاشتي په مینځ کي او یوه روژه د میاشتي په پای کي ونیول سي، د ځینو محققینو رایه ده چي په ټوله میاشت کي کله چي وغواړي درې روژې دي ونیسي، د ضحی د دوو رکعتو څخه د اشراق یا څاښت لمونځ مراد دی چي د لمر پورته کېدو وروسته دي وکړل سي د دې لمنځونو ادنا درجه دوه رکعته دي مګر د اشراق د لمانځه زیاته درجه شپږ رکعته او د څاښت د لمانځه دوولس رکعته دي، ابو هریره رضي الله عنه ته یې د شپې په اول کي د وتر کولو لپاره ځکه وفرمایل چي هغه به د شپې په شروع کي د رسول الله ﷺ حدیثونه یادول او د هغه په تکرار کي به بوخت وو او دا لړۍ به د شپې تر ډېره وخته پوري پیل وه په دې وجه د هغه لپاره په شپه کي راپورته کېدل ډېر ګران کار وو د علم د دې مصروفیت په وجه هغه ته یې د اشراق یا څاښت دوه رکعته کولو لپاره هم وفرمایل، نو د دې څخه دا خبره معلومه سوه چي د علم دین د حاصلولو او د هغه ترویج او اشاعت کي مصروفېدل د نفل عبادت د بوختیا څخه غوره دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د رسول الله ﷺ د وتر وختونه

﴿۱۱۹۴﴾: عَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ أَرَأَيْتَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى

د حضرت غضیف بن حارث رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي ایا تا رسول الله ﷺ لیدلی دی

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فِيْ أَوَّلِ اللَّيْلِ أَمْ فِيْ آخِرِهِ؟ قَالَتْ

چي د جنابت غسل به یې سمدستي د شپې په اول کي کوی که د شپې په آخر کي؟ هغې وویل:

رُبَّمَا اغْتَسَلَ فِيْ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فِيْ آخِرِهِ قُلْتُ اَللهُ أَكْبَرُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

زیات وخت به رسول الله ﷺ د شپې په اول کي غسل کوی او زیات وخت به یې د شپې په آخر کي هم غسل کوی، ما وویل: (الله جل جلاله ډیر لوی دی، ټول تعریفونه الله جل جلاله لره دي

الَّذِيْ جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً قُلْتُ كَانَ يُوْتِرُ أَوَّلَ اللَّيْلِ أَمْ فِيْ آخِرِهِ؟ قَالَتْ رُبَّمَا

چي د دین په امر کي یې پراخي کړې ده) ما بیا پوښتنه وکړه چي ایا رسول الله ﷺ به وتر د شپې په اول کي کول که د شپې په آخر کي؟ بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمایل: کله به یې

أَوْتَرَ فِيْ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَرُبَّمَا أَوْتَرَ فِيْ آخِرِهِ قُلْتُ اَللهُ أَكْبَرُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ

د شپې په اول کي کول او کله به یې د شپې په آخر کي هم، ما وویل: (الله جل جلاله ډیر لوی دی ټول تعریفونه الله جل جلاله لره دي چي

فِيْ الْأَمْرِ سَعَةً قُلْتُ كَانَ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ أَمْ يَخْفِتُ؟ قَالَتْ رُبَّمَا جَهَرَ بِهِ

د دین په امر کي یې پراخي کړې ده) ما بیا پوښتنه وکړه ایا د تهجد په لمانځه کي به رسول الله ﷺ په لوړ آواز قرائت وایه که کرار؟ بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمایل: کله به یې په لوړ آواز وایه

وَرُبَّمَا خَفَتَ قُلْتُ اَللهُ أَكْبَرُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً. رواه أبو داود وروى ابن ماجه الفصل الأخير .

او کله په کښته آواز وایه، ما وویل: (الله جل جلاله ډیر لوی دی ټول تعریفونه الله جل جلاله لره دي چي د دین په امر کي یې پراخي کړې ده) ابوداؤد او ابن ماجه اخیري برخه روایت کړې ده.

**تخریج:** سنن ابي داؤد ۱\ ۱۵۲- ۱۵۳، رقم: ۲۲۶، وابن ماجه ۱\ ۴۳۰، رقم: ۱۳۵۴.

## د تهجد او وتر لمانځه رکعتونه

﴿۱۱۹۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِيْ قَيْسٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ بِكَمْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ

د حضرت عبد الله بن ابو قیس رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ به په څو رکعته سره

ﷺ يُوْتِرُ؟ قَالَتْ كَانَ يُوْتِرُ بِأَرْبَعٍ وَّثَلَاثٍ وَسِتٍّ وَّثَلَاثٍ وَثَمَانٍ وَّثَلَاثٍ وَعَشْرٍ

وتر كول ؟ هغې وفرمايل : نبي كريم ﷺ به وتر كول د څلورو ركعتو او درو ركعتو (يعني اووه ركعتو) او شپږ او درې ركعتو (يعني نهه ركعتو) او اته او درې ركعتو (يعني يوولس ركعتونه) او لس او درې ركعتو (ديارلس ركعتو)

وَثَلَاثَ وَلَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِأَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ وَّلَا بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَ عَشَرَةَ . رواه أبو داود

او رسول الله ﷺ هيڅكله د اوو ركعتو څخه كم او د ديارلسو څخه زيات وتر نه دي كړي . ابوداؤد

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۲\۷۹، رقم: ۱۳۲٦.

**تشريح** : د څلورو او درو ركعتو مطلب دادی چي څلور ركعته به د تهجد وه او درې ركعته وتر، همداسي په مجموعي توګه اووه ركعته سول ګويا مخكي څلور ركعته يې هم مجازا په وتر كي شمېر كړل همداسي شپږ ركعته د تهجد او درې ركعته د وتر د دې مجموعي شمېر نهه سو، اته ركعته د تهجد او درې ركعته د وتر د دې مجموعي شمېر يوولس ركعته سو او لس ركعته د تهجد او درې ركعته د وتر د دې مجموعي شمير ديارلس ركعته سوه.

په هر حال دا حديث په صراحت سره دلالت كوي چي وتر يو ركعت نه دی بلكه درې ركعته دي د حديث د اخري الفاظو مطلب دانه دی چي رسول الله ﷺ هيڅ كله هم وتر لمونځ تر اوو ركعتو كم او تر ديارلسو ركعتو زيات نه دي كړي بلكه مطلب دادی چي اكثر به رسول الله ﷺ تر اوو ركعتو كم وتر نه كول، د رسول الله ﷺ څخه پنځه ركعته كول هم ثابت سوي دي همدارنګه رسول الله ﷺ به اكثر تر ديارلسو ركعتو زيات وتر نه كول، پنځلس ركعته هم د رسول الله ﷺ څخه ثابت دي .

## وتر لمونځ واجب دی

﴿۱۱۹٦﴾: وَعَنْ أَبِيْ أَيُّوْبَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ

د حضرت ابو ايوب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : وتر پر هر مسلمان حق دي (يعني لازم دي)

فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُّوْتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُّوْتِرَ بِثَلَاثٍ فَلْيَفْعَلْ

د چا چي په پنځو ركعتو سره وتر كول خوښ وي نو هغه دي پنځه ركعته وكړي او چا ته چي په درو ركعتو سره كول منظور وي هغه دي درې ركعته وكړي

وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُّوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ . رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه .

او څوک چي يو رکعت کول غواړي نو هغوی دي يو رکعت وکړي . ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۱۳۲، رقم: ۱۴۲۲، والنسائي ۳\۲۳۸، رقم: ۱۷۱۰، وابن ماجه ۱\۳۷۶، رقم: ۱۱۹۰.

**تشريح** : دحق معنى د واجب او ثابت ده، امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه خو د حق معنى واجب اخستې ده ځکه هغه فرمائي چي وتر لمونځ واجب دی، امام شافعي رحمة الله عليه د حق معنى ثابت اخلي يعني وتر لمونځ سنت ثابت دی نو هغه فرمائي چي وتر لمونځ سنت دی، په دې حديث کي د وترو د رکعتو شمير پنځه هم ثابت سوی دی، درې هم او يو هم، ځکه سفيان ثوري رحمة الله عليه او نورو امامانو خو د پنځو شمېر اختيار کړی دی، امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه د درو شمير قبول کړی دی او امام شافعي رحمة الله عليه د يوه شمير په اختيارولو سره ويلي دي چي وتر يو رکعت دی.

## دوتر فضيلت

﴿۱۱۹۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ فَأَوْتِرُوْا يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي .

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : الله تعالى وتر (طاق) دی او وتر خوښوي نو اې د قرآن منونکو وتر کوئ . ترمذي ، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۱۲۷۰ ۱۲۸، رقم: ۱۴۱۶، والترمذي ۲\۲۱۶، رقم: ۴۵۳، والنسائي ۳\۲۲۸، رقم: ۱۶۷۴.

**تشريح** : (الله تعالى وتر (طاق) دی) د دې مطلب دادی چي الله تعالى په خپل ذات او صفاتو کي يواځنی دی د هغه هيڅ مثال نسته همداسي په خپلو افعالو کي هم هغه يو دی چي هيڅ څوک د هغه مرسته کونکی او شريک نسته، طاق خوښوي مطلب دادی چي وتر لمونځ کونکی په ډېر ثواب سره نازول کيږي او د هغه لمونځ قبلوي، د حديث خلاصه داده چي الله تعالى په خپل ذات، صفاتو او افعالو کي يوازي دی هيڅوک د هغه مثل، شريک او مرسته کونکی نسته ځکه هغه طاق عدد خوښوي او وتر هم طاق دی ځکه دا خوښوي د دې کونکی په ډېر ثواب او سعادت سره نازوي .

﴿۱۱۹۸﴾: وَعَنْ خَارِجَةَ ابْنِ حُذَافَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ

د حضرت خارجه بن حذافه رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو ورځ رسول الله ﷺ زموږ په لور تشريف راوړ او وه يې فرمايل :

إِنَّ اللّٰهَ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ الْوِتْرُ جَعَلَهُ اللّٰهُ لَكُمْ

الله تعالى په يوه لمانځه سره ستاسو مرسته کړې ده يعني د پنځو لمنځو څخه يې يو زيات تاسو ته درکړی دی چي ستاسو لپاره د سرو اوښانو څخه غوره دی او هغه لمونځ وتر دی چي د هغه لپاره الله تعالى وخت ټاکلی دی

فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى أَنْ يَطْلُعَ الْفَجْرُ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

د ماخستن د لمانځه څخه وروسته تر سهاره پوري ، ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\ ۱۲۸، ۱۲۹، رقم: ۱۴۱۸. والترمذي ۲\ ۳۱۴، رقم: ۴۵۲.

**تشريح :** په عربو كي سره اوښان ډير ارزښتناک وه او عربو ته په مالونو كي دا تر ټولو زيات خوښ وه ځکه رسول الله ﷺ د شوق وركولو لپاره وفرمايل چي وتر لمونځ تر سرو اوښانو هم غوره دي، د دې مراد دادی چي وتر لمونځ د دنيا تر ټولو سامانونو غوره دی. دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي وتر لمونځ واجب دی او دا د ماخستن د لمانځه څخه مخكي كول جائز نه دی .

## دوتر قضائي

﴿۱۱۹۹﴾: وَعَنْ زَيْدِ ابْنِ اَسْلَمَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ فَلْيُصَلِّ إِذَا أَصْبَحَ . رواه الترمذي مرسلا .

د حضرت زيد بن اسلم رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم څوک چي د وتر لمانځه څخه بيده سي نو هغه ته پكار دي چي د سهار په وخت كي يې ادا كړي . ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\ ۳۳۰، رقم: ۴۶۶.

**تشريح :** كه چيري د يو داسي سړي څخه وتر لمونځ په شپه كي پاته سي چي صاحب ترتيب وي نو د سهار په راپورته كېدو سره كه د هغه لپاره ممكن وي يعني دومره وخت وي چي وتر وكړي نو د سهار د لمانځه څخه مخكي د وترو قضا دي وكړي او كه د سهار د لمانځه څخه مخكي د هغه كول ممكن نه وي يعني دومره وخت نه وي نو بيا د سهار د فرض لمانځه وروسته دي يې ادا كړي هو كه د يو داسي سړي څخه وتر پاته سي چي صاحب ترتيب نه وي نو هغه ته اختيار دی كه

څه هم د سهار د لمانځه څخه مخکي ښې وکړي.

## دوتر لمانځه قرائت

﴿۱۲۰۰﴾: وَعَنْ عَبْدِالْعَزِيْزِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سَأَلْنَا عَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ

د حضرت عبدالعزيز بن جريج څخه روايت دی چي موږ د بي بي عائشې ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي کوم سورت وايه

يُوتِرُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى بِسَبِّحِ اسْمَ

رسول الله ﷺ به په وترو کي؟ بي بي عائشې ﷺ وفرمايل: رسول الله ﷺ به په لومړي ركعت كي (سبح اسم

رَبِّكَ الْأَعْلَى وَفِي الثَّانِيَةِ بِقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَفِي الثَّالِثَةِ بِقُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي عن عبدالرحمن ابن ابزي و رواه احمد عن ابي ابن كعب والدارمي عن ابن عباس و لم يذكر والمعوذتين

ربک الاعلی) وايه، په دوهم ركعت كي (قل يا ايها الكافرون) او په دريم ركعت كي (قل هو الله احد، قل اعوذ برب الفلق، قل اعوذ برب الناس) وايه. (ترمذي، ابوداؤ)

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۲\ ۱۳۳، رقم: ۱۴۲۴، والترمذي ۲\ ۳۲۶، رقم: ۴۶۳، والنسائي: ۳\ ۲۴۴، رقم: ۱۷۲۹، الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۲۳. و سنن الدارمي ۱\ ۴۴۹، رقم: ۱۵۸۶.

**تشريح**: محقق علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي چي احنافو پر آخري روايت يعني د دارمي رحمة الله عليه پر نقل سوي روايت باندي عمل کړی دی د دې څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ د وترو په دريم ركعت كي قل هو الله احد وايه، حنفي حضرات د وتر په دريم ركعت كي يوائحي قل هو الله وائي د حنفي حضراتو د رايي سره سم يوازي دا روايت نه دی بلكه د بي بي عائشې رضي الله عنها يو بل روايت هم د هغه د مذهب دليل دی چي په هغه كي نقل دي چي رسول الله ﷺ به په دريم ركعت كي قل هو الله وايه او كوم چي د بي بي عائشې ﷺ د دې روايت تعلق دی چي دلته نقل سوی دی او د هغه څخه د وتر په دريم ركعت كي د قل هو الله احد څخه پرته معوذتين يعني قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ويل هم ثابت دي نو په دې

حنفیه ځکه عمل نه کوي چي اول خو د دې روایت په سند کمزورتیا ده دوهم دا چي په دې کي چي کومه طریقه ذکر سوې ده هغه د رسول الله ﷺ د عادت خلاف معلومیږي ځکه چي د رسول الله ﷺ په باره کي خو دا په صراحت سره ثابت دي چي رسول الله ﷺ به وروسته رکعت د مخکني رکعت په نسبت مختصر کوی، کله چي د دې روایت سره سم دریم رکعت د مخکني دوو رکعتو په نسبت زیات اوږدیږي نو ملا علي قاري رحمة الله علیه په دې اړه په تفصیل سره بحث کړی دی او د حنفیه له خوا یې نور دلیلونه هم وړاندي کړي دي چي اهل علم یې د هغوی په کتاب مرقاة کي کتلای سئ، دا حدیث په وضاحت سره پر دې خبري دلالت کوي چي رسول الله ﷺ به د وتر دري رکعته په یو سلام سره کول.

## دوترو دعاء

﴿۱۲۰۱﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ ابْنِ عَلِيٍّ قَالَ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حسن بن علي رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته یو څو کلمات ښوولي دي

كَلِمَاتٍ أَقُولُهُنَّ فِي الْوِتْرِ اللّٰهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ

چي زه یې د وتر په قنوت کي وایم او هغه کلمات دادي: (اې الله! ما په هغه خلکو کي ګډ کړې چا ته چي تا هدایت کړی دی او د هغو خلکو سره عافیت راکړې چي تا په عافیت کي ساتلي دي

وَتَوَلَّنِي فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَإِنَّكَ

او زما کار د هغو خلکو سره جوړ کړې چي د هغوی کار تا جوړ کړی دی او ما ته په هغه شي کي برکت راکړې چي تا ما ته راکړی دی او ما د هغه شي د شر څخه وساتې چي په هغه کي تا شر مقدر کړی دی یقینا ستا حکم

تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ وَإِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجه والدارمي

پر هر شي چلیږي او پر تا د هیچا حکم نه سي چلیدلای ته چي د چا دوست یې هغه څوک ذلیل کولای نه سي، اې زموږ پروردګاره ته د برکت خاوند او لوړ ذات یې). ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ٢\ ١٣٣، رقم: ١٤٢٥، والترمذي ٢\ ٣٢٨، رقم: ٤٦٤، والنسائي ٣\ ٢٤٨، رقم: ١٧٤٤، وابن ماجه ١\ ٣٧٢، رقم: ١١٧٨، والدارمي ١\ ٤٥٢، رقم: ١٥٩٣.

**تشريح** : د حضرت حسن ﷺ الفاظ (اقولهن في قنوت الوتر) معنى داده چي زه يې د وتر په قنوت كي وايم . د دې څخه داخبره معلوميږي چي قنوت الوتر مطلقا ذكر كول دې خبري ته اشاره ده چي دا دعاء ټول كال يعني په ټولو ورځو كي ويل ځيني مراد دي څرنګه چي د حنفيه مذهب دى، مګر شافعيان دعاء قنوت د روژې په ورځو كي په وتر سره مقيد كوي ګويا د شافعي حضراتو په نزد خو يوازي د روژې په نصف اخر ورځو كي په وتر لمانځه كي دعاء قنوت ويل كيږي .

اللهم اهدني : اې الله ماته هدايت وكړې، يعني د هدايت پر لاړ ما ثابت قدم ولرې د هدايت اسباب او ذريعې زياتي ماته راكړې چي د هغه په اختيارولو سره لوړي مرتبې او درجې ته ورسېږم .

(انه لا يذل من واليت) څوک چي ته دوست لرې هغه ذليل كيداى نسي د دې مطلب دادى چي څوک تا خپل دوست جوړ كړ په دې توګه چي هغه ته د نيكۍ پر لار د تلو او د صالح عمل اختيارولو توفيق وركړې په سعادت او خوش بختۍ ته فائز كړې هغه په اخر كي شرمنده او ذليل كېداي نسي بيا دلته مطلقا ذلت مراد دى چي الله تعالى مطيع او فرمانبرداره بنده چي هغه يې محبوب لري نه په اخرت كي پښېمان او شرمنده كېداى سي او نه په دنيا كي ذلت او رسوائي هغه ته نژدې كيداى سي كه څه هم په ښكاره د دنيا په نظر كي هغه په درد او مصيبت كي راچاپېره وي يا يو سړى هغه ذليل او خوار كړي خو په حقيقت كي هغه د الله تعالى په نزد باعظمت او باعزت وي څرنګه چي د دنيا خلكو د الله تعالى پيغمبر او نبي حضرت زكريا عليه السلام په اره سره پرې كړى او حضرت يحيي عليه السلام ذبح كړل سو نو دغه جليل القدر پيغمبرانو د ظلم او ستم د دې پړاو څخه تېرېدل چي معاذ الله هغوى د الله محبوب او دوستان نه وه بلكه په حقيقت كي هغوى يې په ازموينه او امتحان كي واچول غرض دا چي د دنيا والا په ذليل كولو سره د الله نيک او محبوب بندګان نه ذليل كيږي د الله تعالى په نزد هغوى ډير عزت والا دي .

په ځينو روايتونو كي د (انه لا يذل من واليت ) څخه وروسته ولا يعز من عاديت او د چا سره چي ستا عداوت وي هغه عزت نسي ترلاسه كولاى دا الفاظ هم نقل دي همداسي په ځيني روايتونو كي وتعاليت څخه وروسته نستغفرک ونتوب اليک اې الله موږ د خپلو ګناهونو

معافي غواړو او ستا مخ ته توبه کاږو او په ځيني روايتونو کي د دې وروسته وصلي الله عليه وسلم الفاظ ذکر دي.

په هر حال د شوافع حضراتو دعاء قنوت دادی دغه حضرات دا دعا په وتر او سهار په لمانځه کي کوي د حنفي حضراتو په نزد په لمانځه کي چي کوم دعاء قنوت ويل کيږي هغه: اللهم انا نستيعنک ........الخ او اللهم اهدني ..........الخ دواړي دعاوي ويل ہي افضل دي ځرنګه چي د دې باب په پيل کي مونږ دواړي دعاګاني نقل کړي دي.

## د دعاء قنوت په اړه د امامانو په نزد اختلافي شيان

محقق علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي چي د دعاء قنوت په اړه د امامانو په نزد دلته درې خبري مختلف فيه دي: اول خو دا چي دعاء قنوت د رکوع څخه مخکي ويل کيږي يا وروسته، دوهمه خبره دا ده چي دعاء قنوت د وتر لمانځه کي په ټولو ورځو کي ويل کيدای سي يا يوازي د روژې په اخري نيمه برخه کي، دريم شی دا چي دعاء قنوت د وتر لمانځه څخه ماسوا په نورو لمونځو کي ويل کيدای سي که يا؟

امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي دعاء قنوت د رکوع څخه وروسته ويل کيږي ليکن د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه دليل ډير زيات قوي دی په دې اړه اهل علم او محقيقينو حضراتو په مرقاة کي په ډير تفصيل سره ليکلي دي، او کوم چي د دويمي او دريمي خبري اړه ده نو موږ به انشاء الله دا دواړي مسئلې په راتلونکي باب يعني باب القنوت کي په تفصيل سره بيان کړو.

## په وتر کي د سلام وروسته تسبيح

﴿۱۲۰۲﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ فِيْ الْوِتْرِ قَالَ سُبْحَانَكَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ. رواه أبو داود والنسائي وزاد ثلاث مرات يطيل وفي رواية للنسائي عن عبدالرحمن ابن ابزى عن ابيه قال كان يقول اذا سلم سبحان الملك القدوس ثلثا ويرفع صوته بالثالثة.

د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم د وترو سلام وګرځوی نو دا کلمات به يې ويل: (پاک دی پاچاه چي ډير پاک دی). ابوداؤد، نسائي. نسائي ويلي دي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به دا الفاظ درې ځله ويل او د نسائي په يوه روايت کي دي چي عبد الرحمن بن

ابزی د خپل پلار څخه روایت کوي چي هغه به ویل : چي کله به یې سلام وګرځوی نو سبحان الملک القدوس به یې درې ځله ویل او په دریم ځل به یې په لوړ آواز سره ویل .

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\۱۳۷، رقم: ۱۴۳۰، والنسائي ۳\۲۳۵، رقم: ۱۶۹۸

**تشريح** : دار قطني رحمة الله عليه چي کوم روایت نقل کړی دی په هغه کي (رب الملائكة والروح) الفاظ هم ذکر دي ګویا پوره تسبیح دادی: سبحان الملك القدوس رب الملائكة والروح .

## په وتر کي د رسول کريم ﷺ دعاء

﴿۱۲۰۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ آخِرِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د وترو په آخر کي دا دعاء ویل :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وَاَعُوْذُ بِكَ

(اې الله ! زه ستا د رضا او خوښي په ذریعه ستا د غصې څخه او ستا د عافیت په ذریعه ستا د عذاب څخه پناه غواړم او ستا د خاص ذات په ذریعه پناه غواړم

مِنْكَ لاَ أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي وابن ماجه

ستا د غضب څخه پناه غواړم ستا تعریف د شمیر څخه وتلی دی ته هم هغسي یې څنګه چي تا خپل تعریف کړی دی ). ابوداؤد، ترمذي، نسائي ، ابن ماجه .

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\ ۱۳۴، رقم: ۱۴۲۷، والترمذي ۵\ ۵۲۴، رقم: ۳۵۶۶، والنسائي ۳\ ۲۴۷، ۲۴۹، رقم: ۱۷۴۶، وابن ماجه ۱\ ۳۷۳، رقم: ۱۱۷۹.

**تشريح** : رسول الله ﷺ به دا دعا په دریم رکعت کي د رکوع وروسته په قومه کي کول لکه څرنګه چي امام مالک رحمة الله عليه دا اختیار کړې ده، ځیني حضرات وایي چي رسول الله ﷺ به دا دعا د سلام وروسته کول او د ځینو علماؤ قول دی چي د سلام څخه مخکي په التحيات کي به بې کول همداسي د ځینو محققینو قول دی چي رسول الله ﷺ به دا دعا په سجده کي کول .
نسائي په یو بل روایت کي نقل کړی دی چي په هغه کي دا وضاحت سوی دی چي رسول الله ﷺ به کله د خپل لمانځه څخه فارغ سو او بسترې ته به بې تشریف یووړ نو دا دعا به بې کول .

## په خاصه توګه د يو خاص دعاء قنوت اختيارولو مسئله

علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي چي د علماؤ د يو بلي ډلي څخه نقل دي چي د دعاء قنوت په اړه توقيف نسي کېدلای يعني د يوې دعاء ويل په خاصه توګه نسي ټاکلای ځکه چي د دعا ټاکل او بيا هغه په خاصه توګه د ويلو مطلب دادی چي هغه دعاء په ژبه داسي وکړي چي زړه د ژبي د همنوائي څخه محروم کيږي يعني د هغه د عا ويلو په وخت کي د عادت سره سم يوازي ژبه کار کوي په زړه کي نه خو د دعاء مقصود او مطلوب وي کوم چي د هغه څخه حاصليږي ځکه دعا خو هغه کار کوي چي ژبه همنواوي، مګر ځينو علماؤ دا هم فرمايلي دي چي دا حکم د (اللهم انا نستعينک .......الخ) څخه پرته د نورو دعاګانو په باره کي دی يعني دا دعاء په خاصه توګه د ويلو لپاره ټاکل منعه نه دي البته د دې څخه پرته نوري دعاګاني په مستقله توګه اختيارول کيږي بلکه کله کله دي يوه او کله دي بله دعا کوي ځکه چي صحابه کرامو پر (اللهم انا نستعينک ....الخ باندي اتفاق کړی دی او دا دعاء به هې په خاصه توګه ويل که څه هم د دې څخه پرته د وهمه دعاء دعاء قنوت هم جائز دی همداسي په محيط کي اللهم اهدني ........الخ هم مستثنی ګرځولی دی يعني د دې دعا توقيف هم ممنوع نه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د امير معاويه يو رکعت وتر کول

﴿١٢٠٤﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قِيلَ لَهُ هَلْ لَكَ فِيْ أَمِيرِ الْمُؤْمِنِيْنَ مُعَاوِيَةَ مَا أَوْتَرَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه ته وويل سول چي د امير المؤمنين حضرت امير معاوية په اړه ستا څه خيال دی چي د وترو لمونځ

إِلاَّ بِوَاحِدَةٍ ؟ قَالَ أَصَابَ إِنَّهُ فَقِيْهٌ . وفي رواية قال ابن أبي مليكة أوتر

يوازي يو رکعت کوي، هغه وويل امير معاويه صحيح دی هغه فقيه دی، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي ابن ابی مليکه بيان کړی دی چي

معاوية بعد العشاء بركعة وعنده مولى لابن عباس فأتى ابن عباس فأخبره فقال دعه فإنه قد صحب النبي صلى الله عليه وسلم . رواه البخاري .

معاويه د ماخستن څخه وروسته يو ركعت وتر وكړل هغه وخت د ابن عباس آزاد سوى غلام هم موجود وو هغه خپل بادار ته ددې خبرې يادونه وكړه نو هغه وويل دا معامله پرېږدئ ځكه چي هغه د رسول الله ﷺ ملگرتيا كړې ده. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۰۳، رقم: ۳۷۶۴.

**تشريح:** په ځرگنده خو دا معلومېږي چي حضرت معاويه رضي الله عنه به وتر يو ركعت كوى چي په هغه سره ليدونكي ته تعجب وسو چي نور صحابه كرام وتر درې ركعته كوي نو دى يو ركعت ولي كوي؟ بيا هغه د دې تذكره ابن عباس رضي الله عنه ته وكړه مگر دا هم احتمال كېداى سي چي حضرت معاويه رضي الله عنه مخكي كړي د دوو ركعتو سره وتر يو ركعت كړى وي په دې صورت كي ليدونكي ځكه اعتراض وكړ چي حضرت معاويه رضي الله عنه پر وتر باندي اكتفاء وكړه او د ماخستن لمونځ يا د تهجد لمونځ به يې پرې ايښى وو.

## دوتر كولو ټينگار

﴿۱۲۰۵﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَّمْ يُوْتِرْ فَلَيْسَ الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَّمْ يُوْتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَّمْ يُوْتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا. رواه أبو داود

وتر حق دى او چا چي ونه كړل هغه زموږ څخه نه دى، وتر حق دى او چا چي ونه كړل هغه زموږ څخه نه دى، وتر حق دى او چا چي ونه كړل هغه زموږ څخه نه دى. ابوداؤد

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\۱۲۹-۱۳۰، رقم: ۱۴۱۹.

**تشريح:** د وتر ارزښت او د دې حقيقت په داسي انداز سره ځو ځو واره بيانول او بيا د هغه څخه د كونكي په باره كي ويل چي كوم سړى وتر نه كوي هغه زموږ د پيروانو څخه نه دى، دا پر دې خبره ښكاره دليل دى چي وتر لمونځ واجب دى لكه څرنگه چي د حنفيه مذهب دى.

## دوتر قضائي

﴿۱۲۰۶﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ نَامَ عَنِ الْوِتْرِ أَوْ

نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَهُ أَوْ إِذَا اسْتَيْقَظَ . رواه الترمذي أبو داود وابن ماجه .

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د وترو څخه بيده سي يا وتر کول ځيني هير سي نو هغه ته پکار دي چي کوم وخت ور په ياد سي هغه وخت يې وکړي يا کوم وخت چي راوېښ سي هغه وخت يې وکړي . ترمذي.ابوداؤد.ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۳۳۰، رقم: ۴۶۵، وابوداؤد: ۲\ ۱۳۷، رقم: ۱۴۳۱، وابن ماجه: ۱\ ۳۷۵، رقم: ۱۱۸۸.

**تشريح**: دا حديث پر دې خبري دلالت کوي چي وتر لمونځ واجب دی، که چيري واجب نه وای نو د قضاء کولو حکم به يې نه کېدی .

## ايا وتر واجب دي که سنت؟

﴿۱۲۰۷﴾: وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْوِتْرِ أَوَاجِبٌ هُوَ ؟

د حضرت مالک رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي د ابن عمر رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي ايا وتر واجب دي ؟

فَقَالَ عَبْدُ اللهِ قَدْ أَوْتَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُوْنَ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه ورته وويل : رسول الله ﷺ وتر کړي دي او مسلمانانو هم وتر کړي دي،

فَجَعَلَ الرَّجُلُ يُرَدِّدُ عَلَيْهِ وَعَبْدُ اللهِ يَقُوْلُ أَوْتَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُوْنَ . رواه في الموطأ .

هغه سړي به څو ځله دا پوښتنه کول او ابن عمر به په جواب کي دا ويل چي رسول الله ﷺ او اصحابو وتر کړي دي . مؤطا.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۲۴، رقم: ۱۷.

**تشريح**: د يو سوال د جواب ورکولو بليغه طريقه دا هم وي چي د يو خاص حکمت په وجه اصل جواب ذکر نه کړل سي او يوازي دليل بيان کړل سي، د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه څخه چي يو سړي د وتر لمانځه د وجوب يا سنت په باره کي پوښتنه وکړه نو هغه د مدلول پر ځای يوازي پر دليل باندي اکتفاء وکړه که څه هم د هغه مطلب دا وو چي وتر واجب دي ځکه چي د رسول الله

ﷺ په مستقله توګه د همېشتوب په وجه وتر لمونځ کول او د اهل اسلام پر دې اجماع کېدل د دې خبرې دليل دی.

پاته سو دا سوال چي کله پوښتنه کونکی د ابن عمر رضي الله عنه څخه د واضح جواب غوښتلو لپاره د هغه څخه بې په وار وار پوښتنه کول نو هغه ورته په څرګنده ولي و نه ويل چي وتر لمونځ واجب دی د دې وجه داده چي د هغه انداز بيان او د وجوب دا طريقه د احتياط په وجه اختيار کړل ځکه چي هغه په دې باره کي د رسول الله ﷺ څخه يو ښکاره خبره نه وه اورېدلې ځکه نو هغه په ښکاره جواب ورکول هم مناسب و نه ګڼل.

## په وتر کي قرائت

﴿۱۲۰۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَأُ فِيْهِنَّ بِتِسْعِ سُوَرٍ مِّنَ الْمُفَصَّلِ يَقْرَأُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ بِثَلَاثِ سُوَرٍ آخِرُهُنَّ (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ). رواه الترمذي.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به درې رکعته وتر کول چي په هغو کي به يې نهه مفصل سورتونه ويل يعني په هر رکعت کي درې درې سورتونه او آخري سورت به يې قل هو الله احد وو. ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\۳۲۳، رقم: ۴۶۰.

**تشريح**: په ځيني روايتونو کي د دې اجمال په تفصيل سره داسي بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ به په اول رکعت کي الهاكم التكاثر، انا انزلناه او اذا زلزلت الارض وايه او په دوهم رکعت کي به يې اذاجاء نصر الله او انا اعطيناک الکوثر وايه او په دريم رکعت کي به يې قل يا ايها الکافرون، تبت يدا او قل هو الله ويل.

## د ابن عمر ﷺ واقعه

﴿۱۲۰۹﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ بِمَكَّةَ وَالسَّمَاءُ مُغَيِّمَةٌ فَخَشِيَ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه په مکه کي د ابن عمر رضي الله عنه سره ملګری وم، يوه شپه پر آسمان وريځ خپره سول د هغه سره انديښنه سوه

الصُّبْحَ فَأَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ ثُمَّ انْكَشَفَ فَرَأَى أَنَّ عَلَيْهِ لَيْلاً فَشَفَعَ بِوَاحِدَةٍ ثُمَّ

د سهار کېدو نو هغه یو رکعت وتر وکړل بیا وریځ تړوله سول نو وه یې لیدل چې شپه پاته ده نو هغه یو رکعت بل ورسره یو ځای کړی بیا یې

صَلَّى رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فَلَمَّا خَشِيَ الصُّبْحَ أَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ. رواه مالك.

دوه دوه رکعته لمونځ کوی تر څو چې د سهار کېدو ویره سوه نو یو رکعت یې وکړ. مالک.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱۲۵، رقم: ۱۹.

## په ناسته د لمانځه ادا کولو یوه طریقه

﴿۱۲۱۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي جَالِسًا

د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به په ناسته لمونځ کوی

فَيَقْرَأُ وَهُوَ جَالِسٌ فَإِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَتِهِ قَدْرَ مَا يَكُونُ ثَلَاثِيْنَ أَوْ أَرْبَعِيْنَ آيَةً

او په ناسته به یې قرائت وایه هر کله چې به په قرائت کې دیرش یا څلوېښت آیاتونه پاته سول

قَامَ وَقَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ يَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ.

رواه مسلم

نو ولاړ به سو او دغه آیاتونه به یې په ولاړه وویل، بیا به رکوع ته تلی او بیا به یې سجده کول او همداسې به یې دوهم رکعت کوي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۵۰۵، رقم: ۱۱۲ - ۷۳۱.

**تشريح**: داسې لمونځ کول په اتفاق سره جائز دی مګر د دې پر خلاف جائز نه دی د دې تفصیل په باب السنن کې بیان سوی دی په ښکاره د دې خبرې سره د حدیث هیڅ تعلق نه معلومیږي هو دا ویل کېدای سي چې په دې حدیث کې شفع ذکر دی چې د وتر مقدمه ده نو د دې وجهي څخه هم دغه باب کې نقل سوی دی.

## د وتر وروسته دوه رکعته

﴿۱۲۱۱﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْوِتْرِ رَكْعَتَيْنِ. رواه الترمذي وزاد ابن ماجه خفيفتين وهو جالس.

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د وترو څخه وروسته دوه رکعته کول. ترمذي، ابن ماجه دا هم ليکلي دي چي دا رکعتونه به مختصر وه او په ناسته به يې کول. ترمذي او ابن ماجه

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\۳۳۵، رقم: ۴۷۱، وابن ماجه ۱\۳۷۷، رقم: ۱۱۹۵.

﴿۱۲۱۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُوْتِرُ بِوَاحِدَةٍ ثُمَّ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ يَقْرَأُ فِيْهِمَا وَهُوَ جَالِسٌ فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَّرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ. رواه ابن ماجه

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د وترو يو رکعت کوی او د دې وروسته به يې دوه رکعته نور په ناسته کول چي په هغو کي به يې قرآن کريم وايه کله چي به رسول الله ﷺ د رکوع اراده کول نو ولاړ به سو او رکوع به يې کول. ابن ماجه.

**تخريج:** سنن ابن ماجه ۱\ ۳۷۷ - ۳۷۸، رقم: ۱۱۹۶.

**تشريح:** علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمائي چي دا حديث د اول حديث خلاف نه دی ځکه چي کله به رسول الله ﷺ د وتر وروسته دواړه رکعته د ولاړي څخه پرته مطلقا په ناستي کول او کله به يې داسي په ناسته سره کول چي د قرائت وروسته رکوع ته به يې د تلو اراده کول نو ولاړېدی به او رکوع به يې کول.

## دوتر وروسته دوه رکعته

﴿۱۲۱۳﴾: وَعَنْ ثَوْبَانٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِنَّ هٰذَا السَّهَرَ جُهْدٌ وَثِقْلٌ فَإِذَا أَوْتَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ فَإِنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ وَإِلاَّ كَانَتَا لَهُ. رواه الترمذي

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د شپې پورته کېدل يو ستونزمن او دروند کار دی هر کله چي په تاسو کي يو څوک د شپې په پيل کي وتر وکړي نو دوه رکعته دي وکړي بيا که راوېښ سي نو غوره ده او کنه نو دا دوه رکعته بس دی. ترمذي.

**تخريج:** سنن الدارمي ۱\ ۴۵۲ - ۴۵۳، رقم: ۱۵۹۴.

**دوتر لمانځه وروسته په دوو رکعتو کي قرائت**

﴿۱۲۱۴﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْهِمَا بَعْدَ الْوِتْرِ وَهُوَ جَالِسٌ يَقْرَأُ فِيْهِمَا إِذَا زُلْزِلَتْ وَ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ. رواه أحمد.

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د وتر څخه وروسته دوه رکعته په ناسته کول او په هغو کي به يې (اذا زلزلت الارض) او (قل يا ايها الكافرون) ويل. احمد

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ۵\۲۶۰.

=============

# بَـابُ الْقُنُـوْتِ (د قنوت بيان)

د قنوت په لغت کي څو معناوي دي: اوله معنی يې اطاعت کول، دوهمه معنی يې په لمانځه کي درېدل، دريمه معنی يې ذ الله تعالی په مخکي عاجزي کول، څلورمه معنی يې همداسي دعا ته هم قنوت وائي، په اصطلاح کي قنوت خاص دعاء ته وائي کومه چي دلته مراد ده، د شوافع حضراتو په نزد دعاء قنوت اللهم اهدني ........الخ ده، او د حنفيه حضراتو په نزد دعائ قنوت: اللهم انا نستعينک ......الخ دی دا دواړي دعاګاني په مکمله توګه په مخکني باب کي نقل سوي دي چي حنفي علماء په صحيح سند او طريقې سره د طبراني وغيره څخه نقل کړي دي.

علامه ابن همام رحمة الله عليه د ابوداود څخه نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ د قبيله مضر خلکو د ظلم او ستم او د هغوی د دهشت او بربريت هغوی ته بد دعا کول چي حضرت جبرائيل علیه السلام تشريف راوړ او رسول الله ﷺ ته يې د ارام کېدو اشاره وکړه او وه يې فرمايل چي:

يا محمد ان الله لم يبعثک سبابا ولا لعانا انما بعثک رحمة

اې محمد! (ﷺ) الله پاک تاسو بد ويونکي او لعنت جوړونکي نه ياست را استولي بلکه تاسو يې د دواړو جهانو لپاره د رحمت باعث را استولي ياست. بيا جبرائيل عليه السلام دا آيت ووايه: (ليس من الامر شيء) يعني په دې شي کي تاته هيڅ دخل نسته، بيا حضرت جبرائيل علیه السلام رسول الله ﷺ ته دا دعا اللهم انا نستعينک ...الخ وروښودل. شيخ جلال الدين سيوطي رحمة الله عليه هم په خپل کتاب در المنشور کي دا دعا په بيلو الفاظو سره نقل کړې ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### نبي کريم ﷺ ته د ښيرا کولو څخه منعه

﴿۱۲۱۵﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ اراده وکړه دا چي

يَدْعُوَ عَلَى أَحَدٍ أَوْ يَدْعُوَ لِأَحَدٍ قَنَتَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ فَرُبَّمَا قَالَ إِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ

يو چا ته د بدي دعاء وکړي او يا ښه دعاء کولو اراده به يې وکړ نو (په وترکي) به يې د رکوع وروسته قنوت وايه او ځيني وخت به يې کله چي سمع الله

لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيْدَ بْنَ الْوَلِيْدِ وَسَلَمَةَ ابْنَ هِشَامٍ

لمن حمده ربنالک الحمد وويل نو دا دعاء به يې کول: (اې الله! خلاصون و رکړې وليد بن وليد، سلمه بن هشام

وَعَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيْعَةَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ وَاجْعَلْهَا سِنِيْنَ كَسِنِي

او عياش بن ربيعه ته او اې الله! پر مضر قوم خپل سخت عذاب نازل کړې او دا دعذاب د قحط په شکل پر راولې داسي قحط

يُوْسُفَ يَجْهَرُ بِذٰلِكَ وَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ بَعْضِ صَلَاتِهِ اَللّٰهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَّفُلَانًا

چي د حضرت يوسف عليه السلام د قحط په دول وي) دا دعاء به يې په لوړ آواز سره کول او که به يې بده دعاء کوله (اې الله ته پر فلاني او فلاني لعنت وکړې)

لِأَحْيَاءٍ مِّنَ الْعَرَبِ حَتّٰى أَنْزَلَ اللهُ (لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ) . متفق عليه

دا به رسول الله ﷺ د عربو د قبائلو لپاره کول تر دې چي الله پاک دا آيت نازل کړ: (ستا لپاره د حکم څخه هيڅ نسته) يعني رسول الله ﷺ د بد دعاء (ښيرا) کولو څخه منعه کړل سو. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۲۲۶، رقم: ۴۵۹۰. ومسلم ۱\۴۶۶، رقم: ۲۹۴- ۶۷۵.

**تشریح** : ځيني صحابه کرام چي د کفارو په بند کي وه د هغوی د ظلم او ستم تخت د مشق جوړ سوی وو د هغوی د آزادي او خلاصون لپاره رسول الله ﷺ د الله پاک څخه دعا وغوښتل او په عربو کي قبائل چي د مسلمانانو قافله ېي تنګه کړي وه هغوی ته به ېي ښيرا کول، وليد بن وليد قريشي مخزومي رحمة الله عليه چي د اسلام د نازولي فرزند او د اسلامي فوج د سالار حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه ورور وو د جنګ بدر په وخت د مکې کفارو لخوا څخه د حضرت عبد الله بن حجش رضي الله عنه په لاس ونيول سو د هغه وروڼه خالد او هشام د رسول الله ﷺ په دربار کي حاضر سول او د خپل بندي ورور لخوا څخه ېي څلورزره درهمه د فدېي په توګه ورکړه او هغه ېي ايله کړ او مکې ته ېي يووړ، وليد چي په ايله کېدو سره مکې ته ورسېدی نو هلته د اسلام مقدسي رڼا د هغه زړه او د ماغ منور کړ او هغه مسلمان سو خو خلکو هغه ته وويل چي کله ته د مسلمانانو سره په مدينې کي بندي وې نو هغه وخت د فديه ورکولو څخه مخکي ولي نه سوې مسلمان ځکه چي هلته د مسلمانېدو په صورت کي به زموږ څلور زره درهم چي په فديه کي مو ورکړل هغه به هم ساتل سوي واى او مسلمان سوى به هم واى.

هغه وويل چي ما ته دا خبره ښه نه معلومېدل چي خلک به وائي چي د بند د بيري څخه ېي اسلام راوړ د مکې کفارو او د قبلې خلګو دا چيري زغملاى سول چي وليد اسلام راوړی او د هغه سزا هغه ته نه ورکړل سي نو وروڼو په بند کي واچوی او ځومره ظلم چي پر هغه باندي کېداى سو ورسره وه يې کړ، رسول الله ﷺ ته چي د هغه د مظلوميت حال معلوم سو نو د پروردګار په دربار کي ېي د هغه د خلاصون لپاره دعا وغوښتل همدا سي هغه د مکې شريفي د کفارو د پنجو څخه په راوتلو سره مدينې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو، سلمه بن هشام رحمة الله عليه د ابو جهل ورور وو بالکل په اوله زمانه کي ېي اسلام راوړ د مکې کفارو هغه هم بندي کړی وو پر هغه ېي ډېر زيات ظلم وکړ دی هم د هغوی د لاسه څخه خلاص سو او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو عياش ابن ابي ربيعه هم د ابو جهل د مور لخوا اخيافي ورور چي د پلار څخه جلا وو او مور ېي يوه وي قديم الاسلام دی په ابتدائي دور کي د اسلام په دولت سره په مشرف کېدو سره په هجرت حبشه باندي تللی وو بيا مدينې ته راغلی ابو جهل د هغه سره داسي دوکه وکړه چي هغه مدينې ته راغلی نو ده ته وويل سول چي ستا مور ستا لپاره سخته بې ارامه ده او هغې قسم خوړلی دی چي تر څو پوري تا ونه ويني په سايه کي به نه کښيني، عياش د مور په مينه کي د ابو جهل په ډول ظالم سړي سره مکې ته ېي وغوښتی مکې ته په رسېدو سره ابو جهل هغه وتړی په بنديخانه کي ېي واچوی او پر هغه ېي په ظلم کولو سره د

وحشت او بربريت د جذبې تسكين پې حاصلوى تر دې چې دى هم د هغه بند څخه په تښتېدو كي كامياب سو بيا د رسول الله ﷺ په خدمت كي مدينې شريفي ته راغلى په اخر كي د معركه تبوك په وخت كي د كفارو سره په مقابله كي د شهادت جام پې نوش كړ .انا الله وانا اليه راجعون .

دا هغه خوشبخته اصحاب وه چي د هغه د خلاصون لپاره د رسول الله ﷺ ژبه مباركه په دعا كي مصروفه سوې وه گويا د حديث اوله دعاء اللهم انج ........الخ ) د دې خبري مثال دى چي رسول الله ﷺ به د مؤمنانو لپاره په دعاء قنوت كي دعا غوښتل د حديث دوهمه دعاء اللهم اشد ........الخ د دې خبري مثال دى چي رسول الله ﷺ به په قنوت كي د ظلم او ستم او د كفارو لپاره ښيرا غوښتل، د رسول الله ﷺ د ښېرا اثر دا سو چي مكې والاوو تر اووه كالو پوري په پرله پسې وچ كالى كي راچاپېره سوه تر دې چي هغوى مردار هډوكي خوړل شروع كړل .

د آيت شريف (ليس لک من الامر شيئ) مقصد دادى چي د رسول الله ﷺ د شان رحمت مناسب دا نه وو چي ښيرا وكړي ځكه د الله تعالى له لوري رسول الله ﷺ منعه كړل سو چي د چا لپاره د هغه په نامه اخيستو سره ښېرا وكړي، او د باب په پيل كي د دې تفصيل سوى دى .

## د كوم آفت او مصيبت پر وخت دعاء قنوت په فرض لمنځو كي ويل پكار دى

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمائي كه يوه پېښه ناڅاپه وړاندي سي مثلا د ښمن حمله در باندي وكړي يا وچ كالي راسي او يا ډير لوند كال راسي يا دا ډول نور صورتونه چي د هغه په وجه مسلمانان په مصيبت، درد او تكليف كي اخته سي نو بيا خلكو ته پكار دي چي په ټولو فرضو لمنځو كي د دعاء قنوت ويلو پابندي وكړي. د حنفيه حضراتو په نزد هم دلته د يو پيښي يا د يو وبا د راتلو په وخت كي په فرض لمنځو كي دعاء قنوت ويل جائز دي .

## د قنوت ويلو وخت

﴿۱۲۱۶﴾: وَعَنْ عَاصِمِ الْأَحْوَلِ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ فِي

د حضرت عاصم الاحول څخه روايت دى چي ما د حضرت انس بن مالک ﷺ څخه په لمانځه كي د قنوت پوښتنه وكړه

الصَّلَاةِ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ أَوْ بَعْدَهُ ؟ قَالَ قَبْلَهُ إِنَّمَا قَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ

يعني دا چي قنوت د ركوع څخه مخكي يا وروسته ويل كيږي، حضرت انس ﷺ وويل د ركوع څخه وړاندي دي وويل سي ځكه چي رسول الله ﷺ

بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا إِنَّهُ كَانَ بَعَثَ أُنَاسًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ سَبْعُوْنَ رَجُلاً

د ركوع وروسته يوازي يوه مياشت لوستى دى او ددې سبب دا وو چي نبي كريم ﷺ يو څو قاريان چي د هغوى شمير اويا تنه وو

فَأُصِيْبُوْا فَقَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا يَّدْعُوْ عَلَيْهِمْ . متفق عليه

دباندي ليږلي وه هغوى شهيدان سول لهٔ دې كبله د قاتلانو لپاره د ښيرا كولو په مقصد رسول الله ﷺ تريوې مياشتي پوري د ركوع وروسته قنوت وايه چي په هغه كي به رسول الله ﷺ هغه قاتلانو ته ښيرا كول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۸۹، رقم: ۱۰۰۲. ومسلم ۱\۴۶۹، رقم: ۳۰۱- ۶۷۷.

**تشريح**: دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د ركوع وروسته دعاء قنوت ويل منسوخ سوى دى د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه دا مذهب دى.

## د اويا قاريانو د شهادت پېښه

(قراء سبعون): يعني اويا قاريان د اصحاب صفه څخه وه، هغوى ته قراء ځكه ويل سوي دي چي دغه خلكو به قرآن كريم ډير زيات وايه او ډير زيات به يې يادوى حال دا چي دا حضرات ډير زيات غريبان او زاهدان وه د هغوى كار يوازي دا وو چي په صفه كي هر وخت د قرآن او علم په زده كولو كي به بوخت وه مګر د دې سربېره كله چي مسلمانان په يو پېښه كي اخته سوه نو دا حضراتو به په پوره مېړانه او بهادرۍ سره د پېښي مقابله كول او د مسلمانانو مرسته به يې كول. په دوى كي ځيني حضرات داسي وه چي ټوله ورځ به يې د ځنګل څخه لرګي راټولول او هغه به يې خرڅول او د اهل صفه لپاره به يې د خوراك سامان رانيوى، او د شپې به د قرآن كريم په تلاوت كي مصروف وه، يو ځل رسول الله ﷺ دغه صحابه كرام (اصحاب صفه) د اهل نجد خوا ته واستول چي هلته په رسېدو سره هغه خلك د اسلام خوا ته را وبولي او د هغوى مخكي قرآن كريم ووايي چي په كفر، شرك، ظلم او جهل كي له لوېدو سره د تباهۍ او بربادۍ پر لار روان وه كله چي دا خلك بير معونه چي د مكې او عسفن په مينځ كي يو كلى دى هلته ورسيده نو عامر بن طفيل، رعل ذكوان او قارپر دغه قراء صحابه كرامو باندي په ډيره بې دردۍ سره حمله وكړه او ټوله ډله يې شهيدان كړل په هغوى كي يوازي يو صحابي حضرت كعب انصاري رضي الله عنه ژوندي پاته سو هغه هم داسي چي په زخمي كېدو سره ولاړى او بدن مبارك يې زيات كمزورى سوى وو.

نو دغه بد بختو په دا ګڼلو سره چي د هغه روح به هم د بدن څخه وتللې وي د هغه څخه ليري سوه خو په خوشبختۍ سره اوس لا په هغه کي د ژوند اثار موجود. وه هغه په څه نا څه طريقې سره وساتل سو او په وتلو کي کامياب سو او الله تعالی هغه ته صحت او روغتيا ورکړل، تر دې چي په غزوه خندق کي شهيد سو.

په هر حال رسول الله ﷺ ته د دغه ستري پيښي او د ظالمانو کفارو د ظلم او ستم علم وسو نو ډير زيات غمجن سو د حضرت انس رضي الله عنه بيان دی چي مونږ رسول الله ﷺ د هيڅ چا لپاره دومره غمجن نه وو ليدلی څومره چي رسول الله ﷺ د دغه مظلومو صحابه کرامو لپاره غمجن سو نو رسول الله ﷺ پرله پسې تر يوې مياشتي پوري په دعاء قنوت کي ددغه بدبختو کفارو لپاره ښېرا کول، دغه پيښه په څلورم هجري کال کي رامنځته سوې ده.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### دعاء قنوت کله ويل کيږي

﴿۱۲۱۷﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ قنوت وايه تر يوې مياشتي پوري

مُتَتَابِعًا فِي الظُّهرِ وَالْعَصْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَصَلَاةِ الصُّبْحِ إِذَا قَالَ سَمِعَ

د پنځو لمنځو (ماپښين، مازديګر، ماښام، ماخستن او دسهار په آخري رکعت کي) د سمع

اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ الآخِرَةِ يَدْعُوْ عَلٰى أَحْيَاءٍ مِّنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ عَلٰى

الله لمن حمده څخه وروسته او په هغو کي به يې ښېرا کول د قبيله بني سليم

رِعْلٍ وَّذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ وَيُؤَمِّنُ مَنْ خَلْفَهُ. رواه أبو داود.

(رعل، ذکوان او عصيه) لپاره او مقتديانو به آمين ويل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۱۴۳، رقم: ۱۴۴۳.

**تشريح**: دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي هميشه په فرض لمنځو کي دعاء قنوت ويل نه دي پکار بلکه کله چي مسلمانانو ته يو پيښه رامنځته سي مثلا يو دښمن حمله باندي وکړي يا وچ کالي راسي او يا يو وباء خپره سي نو هغه وخت په فرض لمنځو کي دعاء قنوت ويل پکار دي.

﴿۱۲۱۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ شَهْرًا ثُمَّ تَرَكَهُ .

رواه أبو داود والنسائي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ تر يوې مياشتي پوري د ركوع وروسته قنوت وايه او بيا يې پرېښود دی . ابوداؤد او نسائي

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\ ۱۴۳، رقم: ۱۴۴۵، والنسائي: ۲\ ۲۰۴، رقم: ۱۰۷۸.

**تشريح:** ډير عالمان دا فرمائي چي دعاء قنوت نه خو د سهار په لمانځه كي مشروع دی او نه د وتر څخه پرته په بل يو لمانځه كي، دا حضرات د دې حديث څخه استدلال كوي او د دې څخه پرته نور ډير حديثونه هم سته چي په فرض لمنځو كي د قنوت په پرېښودو باندي دلالت كوي، عالمان او محقيقين ددې تفصيل په مرقاة كي كتلای سي، امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهما فرمايي چي د سهار په لمانځه كي دعاء قنوت بايد همېشه وويل سي، او په ټولو لمنځو كي د يو پېښي يا وباء پر وخت باندي ويل يې پكار دي .

﴿۱۲۱۹﴾: وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي يَا أَبَةِ إِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ

د ابو مالک اشجعي رضي الله عنه څخه روايت چي ما د خپل پلار څخه پوښتنه وكړه چي اې پلاره! تاسو

خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ وَعَلِيِّ بْنِ

په رسول الله ﷺ ، ابوبكر رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه، او عثمان رضي الله عنه پسي لمونځ كړی دی او په علي ابن

أَبِي طَالِبٍ هَا هُنَا بِالْكُوفَةِ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِينَ أَكَانُوا يَقْنُتُونَ قَالَ أَيْ بُنَيَّ

مُحْدَثٌ . رواه الترمذي والنسائي وابن ماجه .

ابي طالب رضي الله عنه پسي دي په كوفه كي پنځه كاله لمونځ كړی دی ايا دوی به قنوت وايه ؟
ابو مالک وايي د دې په جواب كي زما پلار دا وويل چي قنوت بدعت دی . ترمذي، نسائي، ابن ماجه.

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\ ۲۵۳، رقم: ۴۰۲، والنسائي ۲\ ۲۰۴، رقم: ۱۰۷۹، وابن ماجه ۱\ ۳۹۳، رقم: ۱۲۴۱.

**تشريح:** حضرت ابو مالک رحمة الله عليه د خپل پلار څخه دا معلومول غوښتل چي ايا رسول الله ﷺ او خلفاء راشدينو هم د سهار په لمانځه كي او په نورو لمنځو كي قنوت وايه لكه څرنګه

چي اوس ځيني خلک په دغه لمنځو کي قنوت وايي؟ ددې جواب د هغه پلار محترم دا ورکړ چي کوم خلک د سهار په لمانځه کي او په نورو لمنځو کي په ځانګړې توګه يعني همېشه دعاء قنوت وايي هغوی په بدعت کي اخته دي ځکه چي رسول الله ﷺ خو د وتر څخه پرته د سهار په لمانځه کي يوازي يوه مياشت قنوت ويلی وو د هغه وروسته يې پرې ايښی وو څرنګه چي اوس په مخکني حديث ذکر سول ګويا دا حديث د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه دليل دی.

شافعيان حضرات فرمايي چي په کومو حديثو د سهار په لمانځه کي دعاء قنوت ويل نه دی ذکر سوی هغه ټول ضعيف دي مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه ددې قول جواب ډير معقول او په مدللي طريقې سره ورکړی دی هغه د خلفاء اربعه څخه هم همدا اسي روايتونه نقل کړي دي د دې بحث تفصيل د هغه په شرح (مرقات) کي کتلای سئ.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قنوت مقام

﴿۱۲۲۰﴾: عَنِ الْحَسَنِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ جَمَعَ النَّاسَ عَلٰى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ

د حسن څخه روايت دی چي عمر بن خطاب رضي الله عنه به د ابی بن کعب په امامت کي خلک يو ځای کول

فَكَانَ يُصَلِّيْ لَهُمْ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَلَا يَقْنُتُ بِهِمْ إِلَّا فِي النِّصْفِ الْبَاقِيْ فَإِذَا

او ابی به تر شلو ورځو پوري (په روژه کي) تراويح ورکولې او قنوت به يې يوازي د رمضان په آخري نيمه برخه کي وايه

كَانَتِ الْعَشْرُ الْأَوَاخِرُ يَتَخَلَّفُ فَصَلّٰى فِيْ بَيْتِهٖ فَكَانُوْا يَقُوْلُوْنَ أَبَقَ أُبَيٌّ. رواه أبو

او کله چي به د رمضان آخري لسيزه سوه نو بيا به يې پرېښودل او په خپل کور کي به يې لمونځ کوی او خلکو به دا ويل چي ابی و تښتېدی. ابو داؤد،

داود. وَسُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ فَقَالَ قَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د انس بن مالک رضي الله عنه څخه د قنوت په اړه پوښتنه وسول نو هغه و فرمايل: رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ وَفِيْ رِوَايَةٍ قَبْلَ الرُّكُوْعِ وَبَعْدَهُ. رواه ابن ماجه.

د رکوع وروسته قنوت ویلی دی او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي د رکوع مخکي او د رکوع وروسته په دواړو صورتو کي رسول الله ﷺ قنوت ویلی دی . ابن ماجه .

**تخريج:** سنن ابي داؤد : ۲\۱۳۶، رقم: ۱۴۲۹، سنن ابن ماجه: ۱\ ۳۷۴، رقم: ۱۱۸۳.

**تشریح** : أبی بن کعب رضی الله عنه یو جلیل القدر او ستر صحابي وو د هغه ډیرو ځانګړتیاوو سربیره دا ځانګړتیا هم وه چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي هغه پوره قرآن کریم یاد کړی وو او دا هم چي په صحابه کرامو کي د لوړي درجې قاري منل سوی وو له دې کبله د سید القراء په لقب سره یادیږي حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د دغه ځانګړتیاوو په وجه هغه په روژه کي د تراویح د لمانځه لپاره امام وټاکی چي خلک د هغه په اقتداء کي تراویح وکړي دا دواړه حدیثونه چي د حسن بصري رحمه الله ځخه نقل دی د شوافع حضراتو مستدل دي، اول حدیث خو د دې خبري دلیل دی چي دعاء قنوت دي یوازي د روژې په اخري نیمه برخه کي وویل سي، احناف علماء فرمایي چي اول خو مطلقا په وتر کي دعاء قنوت ویل مشروع سوی دی، دوهم دا چي زیات داسي حدیثونه راغلي دي چي په هغه کي بیله خاصوالي د روژې د وتر په لمانځه کي دعاء قنوت ویل به اولی او راجح وي، دریم حدیث د شوافع حضراتو لپاره د دې خبري دلیل دی چي دعاء قنوت دي د رکوع وروسته وویل سي د دې جواب د حنفیه علماؤ لخوا دا ورکول سوی دی چي د رکوع ځخه مخکي د دعاء قنوت ویلو په اړه حدیثونه ډیر زیات نقل دي او بیا دا چي د صحابه کرامو عمل هم د هغه حدیث سره سم نقل سوی دی ځکه پر هغه حدیثو باندي عمل کول پکار دي .

او کوم چي د هغه حدیثو تعلق دی چي د هغه ځخه د رکوع وروسته دعاء قنوت ویل ثابتیږي نو د دې په باره کي ښودل سوي دي چي د هغه حدیثو تعلق یوازي د یوې میاشتي سره دی، رسول الله ﷺ د رکوع وروسته دعاء قنوت ویلی دی په مستلقه توګه د رکوع وروسته په دعاء قنوت ویلو سره د دې تعلق نسته .

ملا علي قاري رحمة الله علیه فرمایي چي حضرت أبی بن کعب رضی الله عنه د روژې په اخري نیمه برخه کي د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ د باغیانو لپاره د ښېرا کولو په وجه دعاء قنوت وایه، ځکه چي په صحیح سند سره د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ځخه نقل دي چي کله نیمه روژه تېره سي نو د روژې په اخري نیمه برخه کي په وتر کي پر کفارو باندي لعنت کول سنت دی .

د (ابق ابي) الفاظ په ویلو سره خلکو حضرت ابي ځخه د تښتېدونکي غلام سره تشبیه وکړه د دې وجه داده چي د هغه خلکو په نظر کي د حضرت أبی دا عمل چي په اخري لس ورځو کي مسجد ته نه را غلی مکروه معلوم سول حال دا چي حضرت أبی رضی الله عنه به د یو عذر په وجه د

روژې په اخري لسيزه کي مسجد ته نه وي راغلى او عذر دا كېداى سي چي هغه به په دغه ورځو کي خلوت اختيار وى چي د عبادت هغه كمال په خلوت كي حاصل سي كوم چي په جلوت كي نه حاصلېږي، د حديث الفاظ: رسول الله ﷺ دعاء قنوت ويلى دى او په دې دليل د بخاري او مسلم هغه روايت دى كوم چي د عاصم احول څخه نقل دى د دې باب په دوهم نمبر حديث كي ېې وگورى، د اخري روايت مفهوم دادى چي په وتر كي خو رسول الله ﷺ دعاء قنوت د ركوع څخه مخكي وايه او د يو ږښتي په وخت كي به يې د ركوع څخه وروسته وايه، په دې مفهوم سره په هغه ټولو شيانو كي سمون پيدا كيږي چي د هغه څخه ځيني روايتونه خو د ركوع وروسته پر ويلو باندي دلالت كوي او د ځيني روايتونو څخه ثابتيږي چي رسول الله ﷺ به د ركوع څخه مخكي دعاء قنوت وايه.

==========

# بَابُ قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

## د روژې په مياشت كي د قيام (تراويح) بيان

د روژې په مياشت كي د قيام څخه مراد ددغه بركتمني مياشتي په مقدسو شپو كي د الله پاک د عبادت يعني د تراويح د لمانځه لپاره او د قرآن كريم د تلاوت وغيره لپاره ويښ اوسېدل دي.

## د تراويح لمونځ :

په دغه باب كي د تراويح د لمانځه سره تړلي حديثونه بيانيږي او ددې لمانځه فضيلت، احكام او مسائل بيانيږي، دلته د تراويح د لمانځه يو څو احكام بيانيږي:

۱. اول په روژه كي د تراويح لمونځ د نر او ښځي دواړو لپاره سنت مؤكده دى.
۲. په كومه شپه چي د روژې مياشت وليدل سي د هغه شپې څخه دي تراويح پيل كړل سي او هر كله چي د اختر مياشت وليدل سي نو تراويح دي پرېږدي.
۳. د تراويح لمونځ د روژې تابع نه دى كوم خلک چي په يو وجه روژه نسي نيولاى د هغوى لپاره هم د تراويح لمونځ كول سنت دى كه يې ونه كړي نو د سنت پرېښودو گناه به پر وي.
۴. د تراويح لمونځ د ماخستن د لمانځه وروسته شروع كيږي، كه چيري د ماخستن د لمانځه وروسته تراويح وكړي او د هغه وروسته معلومه سي چي د ماخستن په لمانځه كي يو سهوه وسوه نو د لمانځه وروسته د تراويح دوهم وار كول پكار دي.

۵. که چیري د ماخستن لمونځ هم په جماعت سره نه وي کړی نو تراویح دي هم په جماعت سره نه کوي ځکه چي تراویح د ماخستن د لمانځه تابع دي، هو کوم خلک چي په جماعت سره د ماخستن لمونځ وکړي تراویح به په جماعت سره کوي، د هغوی سره په ګډون کولو سره هغه سړي ته هم تراویح په جماعت سره صحیح کیږي چي هغه د ماخستن لمونځ بېله جماعت څخه کړی وي ځکه چي هغه به د هغه خلکو تابع ګڼل کیږي چي د هغوی جماعت صحیح دی.

۶. که یو څوک مسجد ته داسي وخت ورسیږي چي د ماخستن لمونځ سوی وي نو هغه ته پکار ده چي مخکي د ماخستن لمونځ وکړي بیا دي په تراویح کي ګډون وکړي او که په دې مینځ کي د تراویح څو رکعته تېر سي نو هغه دي د وتر کولو وروسته وکړل سي.

۷. په میاشت کي یو وار د قرآن کریم په ترتیب سره په تراویح کي ویل سنت مؤکده دی د خلکو د سُستۍ په وجه دا پرېښول نه دی پکار، که چیري دا بېره وي چي پوره قرآن کریم وویل سي نو خلک به لمانځه ته نه راځي او جماعت به مات سي یا هغوی ته به ډېر ناخوښه وي نو غوره ده چي څومره پر خلکو باندي مشکل نه وي په هغه اندازه دي وویل سي یعني په هر رکعت کي یو سورت وویل سي او بیا هر کله چي لس رکعته پوره سي نو هغه سورتونه دي دوهم وار بیا ووایي یا نور کوم سورتونه چي غواړي وه دي هې وایي.

۸. یو قران کریم یعني تر یوه ختم زیات دي نه ویل کیږي تر څو د خلکو شوق مات نسي.

۹. په یوه شپه کي پوره قرآن کریم ویل جائز دی په شرط د دې چي خلک شوقین وي او هغوی ته ګرانه نه وي او که ورته ګرانه وي نو بیا مکروه دی.

۱۰. په تراویح کي د یوه سورت پر شروع باندي یو وار بسم الله الرحمن الرحیم په لوړ اواز سره ویل پکار ده ځکه چي بسم الله هم د قرآن کریم یو آیت دی که څه هم د یو سورت جزء نه دی، که بسم الله بالکل ونه وایي نو د مقتدیانو قرآن کریم نه دی پوره.

۱۱. تراویح د روژې په ټوله میاشتو کي کول سنت دي که قرآن کریم په یوه میاشت کي د پوره کېدو څخه مخکي ختم سي مثلا په پنځلسو ورځو کي یا په شلو ورځو کي پوره قرآن کریم وویل سي نو په پاته لس یا پنځلسو ورځو کي تراویح کول سنت مؤکده دي.

۱۲. صحیح دادی چي په تراویح کي قل هو الله درې واره ویل لکه څرنګه چي نن سبا رواج دی داسي کول مکروه دي.

۱۳. د تراویح د لمانځه نیت دي داسي وکړل سي ( نویت ان اصلي رکعتي صلوة التراویح سنة النبي صلي الله علیه وسلم و اصحابه ) یعني زه دوه رکعته د تراویح د لمانځه کولو نیت کوم، کوم چي د رسول الله ﷺ او د هغه اصحابو سنت دی .

۱۴. د تراویح د لمانځه کولو هغه طریقه ده کومه چي د نورو لمنځو ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د تراویح لمونځ په جماعت سره ادا کول سنت دي

﴿۱۲۲۱﴾ : عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ حُجْرَةً فِي

د حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه حجره جوړه کړه په

الْمَسْجِدِ مِنْ حَصِيرٍ فَصَلَّى فِيهَا لَيَالِيَ حَتَّى اجْتَمَعَ إِلَيْهِ نَاسٌ ثُمَّ فَقَدُوْا

مسجد کي د خرماوو د ښاخو څخه او څو شپې یې په هغه کي نفلونه کول هر کله چي به خلک د لمانځه لپاره یو ځای سول نو رسول الله ﷺ به د حجرې څخه راووتی او د خلکو سره به یې لمونځ کوی ، یو ځل په حجره کي خلکو د رسول الله ﷺ آواز نه واوریدی

صَوْتَهُ لَيْلَةً وَظَنُّوا أَنَّهُ قَدْ نَامَ فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يَتَنَحْنَحُ لِيَخْرُجَ إِلَيْهِمْ فَقَالَ

د شپې په وخت کي نو خیال یې وکړ چي رسول الله ﷺ بیده سوی دی د دې خیال پر بنا خلک د رسول الله ﷺ د وېښولو لپاره و ټوخېدل او غاړي یې تازه کړې چي رسول الله ﷺ د باندي تشریف راوړي او د مخکي په ډول لمونځ راکړي، رسول الله ﷺ چي دا آوازونه واوریدل نو وه یې فرمایل :

مَا زَالَ بِكُمُ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ صَنِيعِكُمْ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ يُكْتَبَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ

الله دي وکړي چي په تاسو کي دا جذبه د تراویح کولو همیشه وي کوم چي زه په دې وخت کي وینم ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : زما سره دا ډیره ویره پیدا سول چي تراویح لمونځ پر تاسو فرض نه سي که چیري

كُتِبَ عَلَيْكُمْ مَا قُمْتُمْ بِهِ فَصَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ فَإِنَّ خَيْرَ صَلَاةِ

فرض سي نو تاسو به یې ادا نه کړلای سئ ، نو اې خلکو ! تاسو دا لمونځ د نورو نفلو لمنځو سره په خپلو کورو کي کوئ ځکه چي په نفل کي غوره لمونځ هغه دی

الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلاَّ الصَّلاَةَ الْمَكْتُوبَةَ. متفق علیه

چي په کور کي وکړل سي مګر فرض په مسجد کي کول غوره دي . بخاري

**تخريج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲۱۴/۱۲، رقم: ۷۳۱، ومسلم ۵۳۹/۱، رقم: ۲۱۳- ۷۸۱.

**تشريح**: رسول الله ﷺ په مسجد نبوي کي د اعتکاف لپاره د ټاټ يوه خونه جوړه کړې وه په هغه کي به رسول الله ﷺ د روژې په برکتمنو او مقدسو ساعتونو کي د الله تعالی په عبادت او ذکر کي بوخت وو، د دې څخه معلومه سوه چي په مسجد کي د ټاټ یا دا ډول نورو شیانو څخه د اعتکاف لپاره ځای جوړول جائز دی مګر شرط دادی چي د خپل حاجت او ضرورت څخه زیات ځاي و نه نیول سي کنه نو په دې صورت کي دا به حرام وي ځکه چي په زیات ځای نیولو سره نورو لمونځ کونکو ته تکلیف وي په شرط د دې چي ځای داسي وي چي د هغه خلکو اړتیا او ضرورت ورته وي که څه هم کله کله ورته ضرورت وي هو که یو سړی په قرینه سره معلومه کړي که خلک په ډیر شمیر هم مسجد ته راسي بیا هم د معتکف لپاره په نیول سوي ځای کي به هغوی ته اړتیا نه وي نو په داسي صورت کي تر ضرورت زیات ځای نیول به حرام نه وي دا تفصیل پر دې خبره دلالت کوي چي د حج په ورځو کي په مسجد حرام کي د ننه خلک په تنګۍ کي اخته کول حرام دي .

دا حدیث چیري چي د رسول الله ﷺ د امت په حق کي د ډیر زیات رحمت ښوونه کوي چي رسول الله ﷺ پر تراویح لمانځه باندي ځکه همېشتوب نه وکړ چي دا لمونځ چیري د امت لپاره فرض ونه ګڼل سي چي په هغه سره د امت خلک په تنګي او پریشاني کي اخته سي هلته دا حدیث د دې خبري هم صراحت کوي چي تراویح لمونځ په جماعت سره کول سنت دی، فصلوا ایها الناس .......الخ : نو اې خلکو تاسو په خپلو کورونو کي لمونځ کوئ په دې کي امر استحابي دی یعني رسول الله ﷺ دا حکم د وجوب او لزوم په توګه نه دی ورکړی بلکه مقصد دادی چي د فرض لمنځو پرته نور سنتونه او نفلونه په کورونو کي کول غوره او مناسب دي او د دې وجه داده چي د عام نظر څخه د ساتلو سره په کورونو کي سنت او نوافل په لمونځ کولو کي د ریا او ځان ښوونې یو ادنا جذبه هم ښکاره نه وي چي په څرګنده د عبادت په اړه ډیر مستحسن او مطلوب شی دی ( فان افضل الصلوة ......الخ ) د انسان غوره لمونځ هغه دی چي هغه په کور کي کړی وي دا حکم د ټولو سنتو او نفلو لمنځو په باره کي دی، کوم چي سنت یا نفل وي تر ټولو غوره هغه لمونځ دی چي لمونځ کونکی د عامي لیدني څخه د ساتلو لپاره په کور کي

لمونځ وکړي خو هغه نوافل په دې حکم کي نه دي کوم چي د شعار اسلام څخه وي مثلا د لمر تندري نيولو لمونځ، د باران کېدو لپاره لمونځ، او د اخترونو لمونځ ځکه چي دا لمنځونه په مسجد کي کول افضل او غوره دي.

او د مسافرو لپاره کعبة الله او مسجد نبوي هم په دې حکم کي ګډ نه دی يعني که چيري يو خوشبخته ته د کعبة الله او مسجد نبوي د زيارت شرف حاصل سي او هغه مسافر وي نو د هغه لپاره افضل دادی چي هغه د فرض لمنځو سره سره سنتونه او نفلونه هم په مسجد حرام يا په مسجد نبوي کي وکړي ځکه چي مسافر ته دا موقع کله کله په برخه کيږي چي هغوی ته په مسجد حرام او مسجد نبوي کي د لمانځه کولو سعادت تر لاسه سي ځکه مسافر دي دا موقع غنيمت وګڼي او زيات تر زيات لمنځونه دي په مسجد حرام يا مسجد نبوي کي کوي، يعني مسجد حرام او مسجد نبوي د دغه حکم څخه مستثنی کول پر دې خبره قياس کيږي چي مشائخو فرمايلي دي: چي د مسافر لپاره د کعبة الله طواف کول تر نفل لمونځ کولو افضل دی. والله تعالی اعلم.

## دروژې په شپو کي د عبادت کولو فضيلت

﴿۱۲۲۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَغِّبُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به خلکو ته د عبادت شوق ورکوی

فِي قِيَامِ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّأْمُرَهُمْ فِيْهِ بِعَزِيْمَةٍ فَيَقُوْلُ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ

د رمضان په مياشت کي مګر په ټينګار سره يې حکم نه ورکوی، رسول الله ﷺ به دا فرمايل څوک چي د رمضان په مياشت کي قيام (تراويح) عبادت

إِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ فَتُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَالْأَمْرُ

په اعتقاد صحيح سره او د ثواب لپاره يې وکړي نو د هغه مخکي ګناه بخښل کيږي، د راوي بيان دي چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته په دې طريقه عمل وسو

عَلٰى ذٰلِكَ ثُمَّ كَانَ الْأَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ فِيْ خِلَافَةِ أَبِيْ بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ عَلٰى ذٰلِكَ. رواه مسلم

يعني چا چي غوښتل تراويح به يې يوازي کولې ، د حضرت ابوبکر صديق په خلافت کي هم پر دې طريقه عمل وو او د حضرت عمر ﷜ د خلافت په لومړۍ کي هم داسي کيدل . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۱۱/ ۵۲۳، رقم: ۱۷۴- ۷۵۹.

**تشريح** : په صحيح عقيده او د ثواب تر لاسه کولو لپاره په روژه کي د قيام کولو مطلب دا دی چي د روژې په مقدسو او برکتمنو شپو کي د الله تعالی د عبادت لپاره د شپې وېښېدل يا د دې څخه دا هم مراد دی چي کوم سړی په صحيح عقېده سره د تراويح لمونځ وکړي يعني د الله تعالی پر ذات او صفاتو باندي ايمان ولري او دا خبره حق وګڼي چي د روژې په شپو کي د الله تعالی په عبادت کي بوخت کېدل مثلاً تراويح وغيره کول د الله تعالی د قُرب او د هغه د رضا او خوښۍ سبب دی نو د هغه صغيره (کوچنۍ) ګناه کومه چي د هغه څخه سوې وي معاف کيږي .

## سنت او نفل په کور کي کول او د هغه اثر

﴿۱۲۲۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَضَى

د حضرت جابر ﷜ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي

أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ فِي مَسْجِدِهِ فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهِ نَصِيبًا مِنْ صَلَاتِهِ فَإِنَّ اللّٰهَ جَاعِلٌ فِي بَيْتِهِ مِنْ صَلَاتِهِ خَيْرًا . رواه مسلم

تاسو په مسجد کي لمونځ وکړئ نو هغه ته پکار دي چي د لمانځه څخه د کور برخه هم وکړي (يعني سنت او نفل دي په کور کي وکړي) ځکه چي الله تعالی په کور کي دلمانځه کولو له کبله خير او برکت اچوي . مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱۱/ ۵۳۹، رقم: ۲۱۰- ۷۷۸.

**تشريح** : د دې حديث په ذريعه په کورونو کي د سنتو او نفلو کولو فضيلت او په کور کي چي پر دغه لمنځو کولو باندي کوم اثرات مرتب کيږي هغوی ته ښودل سوي دي نو وه يې فرمايل چي کوم سړې فرض لمونځ په مسجد کي کوي او سنت او نفل په کور کي کوي د هغه په کور کي الله تعالی د هغه لمانځه په وجه خير پيدا کوي يعني کورنۍ ته يې نېک توفيق ورکوي او د اوسېدونکو په رزق او عمر کي برکت اچوي .

تراويح لمونځ په دې حکم کي نه دی ګډ ځکه چي په اتفاق سره دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ به تراويح لمونځ په مسجد کي کوی او د صحابه کرامو هم پر دې اجماع ده، دا حديث چي په

ښکاره د دې باب سرهٔ تړلی نه دی په دې باب کې په نقل سره ګویا دې خواته اشاره کیږي چې په روژه کې هم څه لمنځونه په کور کې کول پکار دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د روژې په آخري لسيزه کې د نبي کريم ﷺ عبادت

﴿۱۲۲۴﴾: عَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ صُمْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَقُمْ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چې موږ د رسول الله ﷺ سره روژې نيولې نو قيام (تراويح) يې ونه کړې

بِنَا شَيْئًا مِنَ الشَّهْرِ حَتَّى بَقِيَ سَبْعٌ فَقَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ فَلَمَّا

زموږ سره د مياشتې په زياتو ورځو کې کله چې اووه شپې پاته سوې نو رسول الله ﷺ زموږ سره تراويح وکړې ودرېدی تر هغه وخته چې د شپې دريمه حصه تيره سول بيا چې

كَانَتِ السَّادِسَةِ لَمْ يَقُمْ بِنَا فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةِ قَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ شَطْرُ

شپږ شپې پاته سوې نو رسول الله ﷺ تراويح ونه کړې بيا چې پنځه شپې پاته سوې نو زموږ سره يې تر نيمه شپه پورې تراويح وکړې

اللَّيْلِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ نَفَّلْتَنَا قِيَامَ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ فَقَالَ اِنَّ الرَّجُلَ اِذَا

نو ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! کاشکې په دې شپه تاسو زموږ سره زياتې تراويح کړې وای ، رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چې يو څوک

صَلَّى مَعَ الْاِمَامِ حَتَّى يَنْصَرِفَ حُسِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ لَمْ يَقُمْ

د امام سره (فرض) وکړي او بيا کور ته ولاړ سي نو د هغه لپاره د ټولې شپې عبادت ثواب ليکل کيږي ، بيا چې څلور شپې پاته سوې نو رسول الله ﷺ زموږ سره تراويح ونه کړې

بِنَا حَتَّى بَقِيَ ثُلُثُ اللَّيْلِ فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ جَمَعَ اَهْلَهُ وَنِسَاءَهُ وَالنَّاسَ فَقَامَ

تر دې چې دريمه برخه شپه پاته سوه بيا چې درې شپې تيرې سوې نو رسول الله ﷺ خپله کورنۍ

او نور خلک یو ځای کړل او زموږ سره یې تراویح وکړې

بِنَا حَتّٰى خَشِيْنَا اَنْ يَّفُوْتَنَا الْفَلَاحُ قُلْتُ وَمَا الْفَلَاحُ قَالَ السُّحُوْرُ ثُمَّ لَمْ

د شپې تر دومره وخته پورې چې زموږ سره دا اندېښنه سوه چې فلاح را څخه تیر نه سي، راوي وايي ما پوښتنه وکړه چې فلاح څه شي دی؟ ابوذر رضي الله عنه وویل: د فلاح څخه مراد پېشلمی دی،

يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي و روي ابن ماجه نحوه الا ان الترمذي لم يذكر ثم لم يقم بنا بقية الشهر

د دې وروسته ابوذر وویل بیا د میاشتې په پاته ورځو کې رسول الله ﷺ زموږ سره تراویح ونه کړې. ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه.

**تخریج:** سنن ابي داؤد: ۲\ ۱۰۵، رقم: ۱۳۷۵، والترمذي ۳\ ۱۶۹، رقم: ۸۰۶ والنسائي ۳\ ۸۳- ۸۴، رقم: ۱۳۶۳، وابن ماجه: ۱\ ۴۲۰- ۴۲۱، رقم: ۱۳۲۷.

**تشریح:** د دې حدیث څخه معلومه سوه چې رسول الله ﷺ د روژې په اولو دوو لسیزو کې د تراویح لمونځ صحابه کرامو ته نه دی ورکړی د دې سبب هغه دی کوم چې په مخکني حدیث کې تېر سوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل زما سره دا اندېښنه ده چې دا لمونځ فرض نسي

د حدیث الفاظ (حتي یقي سبع .........الخ): یعني تر دې چې اووه شپې پاته سوې، په دې اړه علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چې دا شمېر د یقین په اعتبار سره دی یعني د نهه ویشتو (۲۹) ورځو میاشت یقیني ده، لکه څرنګه چې د ترجمې په دوران کې په قوسینو کې د دې په وضاحت کولو سره دې خوا ته اشاره سوې ده.

پېشلمي کولو ته هې فلاح ځکه ویلي دي چې د دې باب په ذریعه د روژې نیولو قوت او طاقت حاصلېدل د فلاح سبب دی.

په اخري شپو کې د قیام فرق د فضیلت د فرق په اعتبار وو یعني د کومو شپو فضیلت چې کم وو په هغه شپو کې هې قیام هم کم وکړ او د کومو شپو چې فضیلت زیات وو په هغو کې یې د فضیلت د زیاتوب سره سم قیام هم زیات وکړ تر دې چې په اوویشتمه شپه کې هې د ټولو شپو قیام وکړ، ځکه د اکثرو علماؤ د قول سره سم لیلة القدر په اووه ویشتمه شپه کې وي دا وجه ده چې رسول الله ﷺ په دې شپه کې خپل کورنۍ یعني بیبیاني مبارکاني را جمع کړي او د ټولو سره د الله تعالی په عبادت کې بوخت وو.

## د شعبان د پنځلسمي شپې فضيلت

﴿۱۲۲۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ فَقَدْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً

د حضرت عائشې ﷞ څخه روايت دی چي يوه شپه ما رسول الله ﷺ و نه ليدی

فَإِذَا هُوَ بِالْبَقِيعِ فَقَالَ أَكُنْتِ تَخَافِينَ أَنْ يَحِيفَ اللّٰهُ عَلَيْكِ وَرَسُولُهُ قُلْتُ يَا

ناڅاپه ما وليدل چي رسول الله ﷺ په بقيع (هديره) کي دی کله چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ
نو وه يې فرمايل: اې عائشې! ته بيرېدې چي الله ﷻ او رسول ﷺ به پر تا ظلم وکړي؟
عائشې ﷞ عرض وکړ: اې

رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي ظَنَنْتُ أَنَّكَ أَتَيْتَ بَعْضَ نِسَائِكَ فَقَالَ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يَنْزِلُ

د الله رسوله! زما دا خيال وو چي تاسو شايد نورو ازواجو ته تشريف وړی وي، رسول الله ﷺ
وفرمايل: الله تعالی نزول کوي

لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيَغْفِرُ لِأَكْثَرَ مِنْ عَدَدِ شَعْرِ

د شعبان پر پنځلسمه شپه د دنيا آسمان ته او د قبيله بنو کلب د پسو د رمې د وړېښتانو څخه
زياته بخښنه کوي.

غَنَمِ كَلْبٍ. رواه الترمذي وابن ماجة وزاد رزين ممن استحق النار وقال الترمذي سمعت محمدا يعني البخاري يضعف هذا الحديث.

ترمذي، ابن ماجه. او رزين په دې حديث کي دا الفاظ زيات کړي دي چي الله تعالی د هغو
خلکو ګناه بخښي کوم چي د دوږخ مستحق سوي دي، امام ترمذي وفرمايل چي بخاري د دې
حديث تضعيف کړي دي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۳\۱۱۶، رقم: ۷۳۹، وابن ماجه ۱\ ۴۴۴، رقم: ۱۳۸۹.

**تشريح:** بقيع په مدينه منوره کي د يوې هديرې نوم دی او جنت البقيع هم ورته ويل کيږي، دلته دا واقعه په تفصيل سره نه ده بيان سوې په يو بل روايت کي بي بي عائشه صديقه رضي الله تعالی عنها دا واقعه په زيات تفصيل سره بيان کړې ده، چي کله ما رسول الله ﷺ د شپې په

وخت کي د خپل وار پر وخت په بستره کي نه وليدی نو ما پر خپل بدن باندي خپل جامې واچولې او د رسول الله ﷺ د پيدا کولو لپاره دباندي راووتلم نا څاپه ما وليدل چي رسول الله ﷺ په هديره بقيع کي پر سجده پروت دی او سجده ېې هم دومره اوږده وکړل چي زما سره شک پيدا سو چي خدای مه کړه رسول الله ﷺ وفات سوی دی، کله چي رسول الله ﷺ د ډير زنډ وروسته د سر په پورته کېدو سره سلام وګرځوی نو زما خوا ته متوجه سو او وه يې ويل ته بېرېدې چي الله تعالى او د هغه رسول به ستا سره د ظلم معامله وکړي يعني ايا ستا دا خيال وو چي ما ستاوار پرېښودی او بلي بي بي ته ولاړم، په دې جمله کي د الله پاک ذکر د زينت او حسن کلام لپاره دی د دې وروسته د بي بي عائشې رضي الله عنها د جواب خلاصه داده چي اې د الله رسوله ! زما دا ګمان نه وو چي نعوذ بالله، الله تعالى او د هغه رسول به زما سره د ظلم معامله وکړی بلکه زما سره دا خيال پيدا سو چي يا خو ته د الله تعالى په حکم سره يا په خپل اجتهاد سره زما څخه د پورته کېدو څخه دويمي بي بي ته تللی يې .

علامه ابن حجر رحمة الله عليه د بي بي عائشې ﷺ د دې جواب په باره کي فرمايي که بي بي عائشې ﷺ رسول الله ﷺ د ارشاد په جواب کي نعم يعني هو فرمايلي وای نو معامله دومره نازکه وه چي د بي بي عائشې رضي الله عنها دا معامله به کفر شمېرل کېده خو بي بي عائشې رضي الله تعالى عنها په خپل فراست او ذهانت سره په صورت حال پوه سول ځکه هغې په داسي ذهانت سره جواب ورکړ چي د خپل پرېشانی او حيرانی عذر يې ورته بيان کړ، بيا رسول الله ﷺ د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه د راپورته کېدو عذر بيان کړ چي د شعبان په پنځلسمه شپه کي الله تعالى د دنيا اسمان ته نزول فرمايي يعني د خپل رحمت کامله او په رحمت عامه سره په دې شپه کي چي دا مبارکه شپه ده د دنيا اسمان خوا ته متوجه کيږي او پر دنيا والاوو باندي د هغه د رحمت کامله فيضان دومره زيات وي چي د قبيله بنو کلب د بزو څومره وربښتان وي تر هغه زيات د خلکو ګناوي بخښي نو دا وخت د برکات رباني او تجليات رحماني د نازلېدو وخت وو ځکه ما وغوښتل چي په داسي برکت ناک او مقدس وخت کي د خپل امت لپار د بخښني دعا وغواړم نو زه جنت البقيع ته په رسېدو سره د خپل پروردګار مناجات او د هغه څخه په دعا غوښتلو کي بوخت سوم.

دا حديث ضعيف دی څرنګه چي په اخري روايت کي د امام ترمذي رحمة الله عليه د قول څخه معلومه سوه مګر څرنګه چي مخکي هم څو ځايه وښودل سوه چي د اعمالو د فضائلو په اړه په ضعيف حديث باندي هم عمل کول په اتفاق سره جائز دی دا حديث که څه هم ددې باب

سره ښكاره مناسبت نه لري مگر په معنوي توگه د حديث د دې باب سره مناسبت دادی چې د شعبان په پنځلسمه شپه كي د خپل فضيلت او بزرگی د زياتوب په وجه قيام د روژې د مقدمې په مثل دی. والله اعلم.

## نفل لمونځ په كور كي كول

﴿۱۲۲۶﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلاَةُ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهِ أَفْضَلُ مِّنَ صَلاَتِهِ فِيْ مَسْجِدِيْ هٰذَا إِلاَّ الْمَكْتُوْبَةَ. رواه أبو داود والترمذي.

د حضرت زيد بن ثابت ﵁ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: پرته د فرضو څخه د سړي لمونځ (نفل) تر مسجد زما په كور كي غوره دی. ابوداؤد، ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۶۳۲، رقم: ۱۰۴۴، والترمذي ۲\ ۳۱۲، رقم: ۴۵۰.

**تشريح**: د دې سربېره چې په مسجد نبوي كي د يوه لمانځه ثواب د زرو لمنځو د ثواب سره برابر دی مگر نفل لمنځونه په كورو كي كول په مسجد نبوي كي د نفل لمونځ كولو څخه افضل گرځول سوی دی ځكه چې په كورونو كي كړل سوی لمونځ د ريا او ځان ښوونې څخه بالكل خالي او پاک وي، د رسول الله ﷺ دا ارشاد د هغه وخت دی كله چې رسول الله ﷺ په روژه كي يو څو شپې قيام پرې ايښی وو او د هغه عذر په بيانولو سره په كورونو كي د لمانځه كولو فضيلت يې بيان كړ بيا يې وفرمايل ځينی لمنځونه په خپلو كورو كي وكړئ.

## د تراويح لمونځ په كور كي غوره دی كه په مسجد كي؟

د دغه حديث څخه په استنباط كولو سره امام مالک رحمة الله عليه امام ابويوسف رحمة الله عليه او ځيني شوافع حضراتو دا ويلي دي چې د تراويح د لمانځه په اړه افضل دادی چې دا لمونځ په كورو كي يوازي وكړل سي او كوم چې د رسول الله ﷺ د عمل سوال دی نو رسول الله ﷺ تراويح لمونځ په مسجد كي كړی دی په دې باره كي د دې حضراتو وينا ده چې د رسول الله ﷺ په مسجد كي تراويح لمونځ كول د بيان جواز لپاره وو د وهم دا چې رسول الله ﷺ معتكف وو.

امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه، امام شافعي رحمة الله عليه او د شوافع علماؤ اكثريت او د ځيني مالكيه حضرات په اتفاق توگه سره دا مذهب دی چې تراويح لمونځ په مسجد كي كول افضل دی ځرنگه چې اميرالمومنين حضرت عمر فاروق ﵁ او د هغوی وروسته نورو صحابه كرامو دا لمونځ په مسجد كي كول وټاكل او بيا پر دې د ټولو مسلمانانو عمل دی ځكه

چي تراویح لمونځ د دین د شعار څخه دی او د اخترو لمنځونه مشابه دي د فقي په کتابونو کي په دې مسئله کي مختار او غوره طریقه دا ښودل سوې ده که یو سړی داسي وي چي د مسلمانانو د امامت او رهبرۍ پر مرتبه باندي وي او د هغه په وجه په مسجد کي زیاتوب وي نو هغه ته پکار ده چي تراویح لمونځ په مسجد کي وکړي او که داسي نه وي نو بیا جائز ده چي په کور کي یې وکړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ　　(دریم فصل)

### د حضرت عمر رضی اللہ عنہ د تراویحو د لمانځه لپاره د جماعت مقرر کول

﴿۱۲۲۷﴾: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ الْقَارِيِّ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ

عبدالرحمن بن عبدالقاري وايي زه یو وار د عمر بن خطاب سره د رمضان په میاشت کي وو تم

لَيْلَةً إِلَى الْمَسْجِدِ فَإِذَا النَّاسُ أَوْزَاعٌ مُتَفَرِّقُوْنَ يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفْسِهِ وَيُصَلِّي

د شپې مسجد ته، ما ولیدل چي خلکو جلا جلا (تراویح) کولې، سړي به یو ازی لمونځ کوی

الرَّجُلُ فَيُصَلِّي بِصَلَاتِهِ الرَّهْطُ فَقَالَ عُمَرُ إِنِّي لَوْ جَمَعْتُ هٰؤُلَاءِ عَلٰى قَارِئٍ

او ځینو د خپلو قبیلو سره کوی، د دې په لیدو سره حضرت عمر رضی اللہ عنہ وفرمایل: که دا ټول خلک زه د یو قاري په امامت کي یو ځای کړم

وَّاحِدٍ لَكَانَ أَمْثَلَ ثُمَّ عَزَمَ فَجَمَعَهُمْ عَلٰى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ ثُمَّ خَرَجْتُ مَعَهُ

نو غوره به وي، نو ددې اراده یې وکړل او حضرت ابی بن کعب یې امام جوړ کړی، راوي وايي بیا یو ځل داسي په رمضان کي زه د حضرت عمر سره ولاړم

لَيْلَةً أُخْرٰى وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ بِصَلَاةِ قَارِئِهِمْ . قَالَ عُمَرُ نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هٰذِهِ

او وه مي لیدل چي خلک په مسجد کي په خپل امام پسې لمونځ کوي، د دې په لیدو سره حضرت عمر رضی اللہ عنہ وویل دا ډیر ښه بدعت دی

وَالَّتِيْ تَنَامُوْنَ عَنْهَا أَفْضَلُ مِنَ الَّتِيْ تَقُوْمُوْنَ . يُرِيْدُ آخِرَ اللَّيْلِ وَكَانَ النَّاسُ

يَقُوْمُوْنَ أَوَّلَهُ . رواه البخاري

او هغه (تراويح) لمونځ چي تاسو يې وکړئ او بيده سئ د هغې څخه غوره دی چي د هغه لپاره تاسو بيدار ياست يعني په آخري شپه کي او داسي تراويح به خلکو په اول وخت کي کولې . بخاري .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۵۰۱، رقم: ۲۰۱۰.

**تشريح** : (نعمت البدعة) يعني دا ښه بدعت دی ددې مطلب دادی چي دا جماعت ته اکل ښه بدعت دی نه اصل جماعت، گويا حضرت عمر رضي الله عنه جماعت ته اکلو ته ښه بدعت ووايه د ښه بدعت څخه د هغه مراد اصل جماعت نه وو، ځکه رسول الله ﷺ تراويح لمونځ په جماعت سره کړی دی ځرنگه چي په تېرو حديثو کي تير سول همداسي که حقيقت ته وکتل سي نو معلومېږي چي دا جماعت ته اکل ښه بدعت څخه د وړاندي کېدو سره د سنت په درجه کي راځي ځکه چي د خلفاء راشدينو قائم کړل سوې طريقه هم سنت ده .

په هرحال حاصل دادی چي دلته د بدعت د لغوي معنی اعتبار دی نه داچي د هغه معنی چي د فقهاؤ په اصطلاح کي مفهوم کيږي .

## د تراويح رکعتونه

﴿۱۲۲۸﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ أَمَرَ عُمَرُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ وَتَمِيْمًا الدَّارِيَّ

د حضرت سائب بن يزيد څخه روايت دی چي حضرت عمر رضي الله عنه ابی بن کعب او تميم داري ته حکم ورکړی چي

أَنْ يَقُوْمَا لِلنَّاسِ فِيْ رَمَضَانَ بِإِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً فَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ بِالْمِئِيْنَ

هغوی په رمضان کي خلکو ته يوولس رکعته ورکړي او په هغه زمانه کي به قاري په لمانځه کي هغه سورتونه ويل چي تر سلو آياتو به زيات وه

حَتّٰى كُنَّا نَعْتَمِدُ عَلَى الْعَصَا مِنْ طُوْلِ الْقِيَامِ فَمَا كُنَّا نَنْصَرِفُ إِلَّا فِيْ فُرُوْعِ الْفَجْرِ . رواه مالك

تر دې چي موږ به د ولاړي د اوږدوالي څخه مجبور سو د لکړي مرسته به مو اخيستل او موږ چي به د هغه لمانځه څخه فارغ سو نو سهار به نژدې وو . مالک .

**تخريج:** الامام مالک في الموطا ۱۱۵/۱، رقم: ۴.

**تشريح:** اُبی بن کعب رضی اللہ عنہ او تميم داري رضی اللہ عنہ دواړو ته د امامت د حکم مطلب دا وو چي کله يو امام جوړ سي کله بل، په دې کي دا احتمال هم دی چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ دواړو ته په وار وار د لمانځه ورکولو داسي حکم ورکړی وو چي يو څو رکعتونه دي ابی رضی اللہ عنہ ورکړي او يو څو دي تميم داري رضی اللہ عنہ ورکړی په دې توګه چي په څو شپو کي يو امامت کوي او په څو شپو کي بل ددغه حديثو څخه دا معلوميږي چي د تراويح يوولس رکعته دي څرنګه چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ حکم ورکړ حال دا چي علماء ليکي چي دا خبره ثبوت صحت ته رسېدلې ده چي د حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ په عهد خلافت کي تراويح لمونځ به شل رکعته وو نو د دې حديث په باره کي به دا وويل سي چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ به کله شل رکعته کول او کله پر يوولسو رکعتو باندي به يې اکتفاء کول يا دا چي د رسول الله ﷺ څخه د تراويح يوولس رکعته کول ثابت سوي دي ځکه د رسول الله ﷺ د عمل مبارک د مشابهت په قصد سره حضرت عمر رضی اللہ عنہ په ځيني شپو کي د يوولسو رکعتو کولو حکم ورکړ بيا د هغه وروسته تراويح شل رکعته په مستقله توګه وتاکل سوې لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ څخه هم په يوه روايت کي د رويشت رکعته کول نقل سوي دي چي په هغه کي درې وتر ګڼل دي.

## په نفل لمانځه کي تکيه لګول جائز دي

د حديث الفاظ (کنا نعمتد على العصا) ددې مطلب دا دی چي هغه وخت به په تراويح کي دومره اوږد قرائت ويل کيدی چي موږ به په قيام کي په ولاړه ستړي سوو چي د هغه په وجه به موږ پر خپل لکړه تکيه لګولو سره پر درېدو باندي مجبور وو، په دې اړه مسئله داده چي په نفل لمنځو کي هسي په عامه توګه سره هم مګر په خاصه توګه سره د ضعف په حالت کي تکيه لګول يا د يو شي مرسته اخيستل جائز دي.

﴿۱۲۲۹﴾: وَعَنِ الْأَعْرَجِ قَالَ مَا أَدْرَكْنَا النَّاسَ إِلاَّ وَهُمْ يَلْعَنُوْنَ الْكَفَرَةَ فِيْ

د حضرت اعرج څخه روايت دی چي د روژې په مياشت کي به خلکو پر کافرانو لعنت وايه او په

رَمَضَانَ قَالَ وَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ فِيْ ثَمَانِيْ رَكَعَاتٍ وَإِذَا قَامَ بِهَا

رمضان کي به قاري سورة بقرة په اته رکعتو کي ويل او هر کله چي به يې ختم کړل

فِيْ ثِنْتَيْ عَشَرَةَ رَكْعَةً رَأَى النَّاسُ أَنَّهُ قَدْ خَفَّفَ. رواه مالك.

په دوولس رکعتو کي نو خلک به پوه سول چي مختصر لمونځ يې وکړ. مالک

**تخریج:** الامام مالک في الموطا: ۱۱۵۱۱، رقم: ٦۰.

**تشریح:** که څه هم د دې حديث څخه په وضاحت سره دا نه معلوميږي چي پر کفارو باندي لعنت د روژې د وترو سره مخصوص وه، په داسي توګه په ټولو حديثو کي تطبيق پيدا کيږي د دا مفهوم اختيارولو وروسته دا حديث به د حضرت عمر رضي الله عنه د هغه حديث خلاف نه وي چي د هغه څخه ثابتيږي چي کله به د روژې نيمه برخه تېره سوه نو په وترو کي پر کفارو باندي لعنت استول سنت دي پر کفارو باندي د لعنت استولو سبب دا وو چي کله به کفارو د دغه بابرکتي مقدسي او باعظمتي مياشتي تعظيم نه وکړ چي د هغه عظمت او بزرګي خپله الله تعالی بيان فرمايلې ده او د هدايت چېنه او فيضان کلام الله څخه به يې ذره هدايت حاصل نه کړو چي په دې باعظمته مياشت کي نازل سوي دي نو هغوی د دې خبري مستحق سوه چي پر هغوی باندي لعنت واستول سي د تراويح لمانځه د رکعتو د شمير په باره کي مخکی ذکر سوی دی يو وار بيا هم پوه سئ چي رسول الله ﷺ د تراويح لمانځه د رکعتو شمير نه وو ټاکلی بلکه په دې اړه د رسول الله ﷺ عمل مختلف راغلی دی رسول الله ﷺ اته رکعته هم کړي دي او دا هم راځي چي رسول الله ﷺ يوولس رکعته کړي دي همداسي ديارلس او شل رکعته هم د رسول الله ﷺ څخه نقل دي خو حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي د تراويح شل رکعته وټاکل د هغه وروسته د ټولو صحابه کرامو پر دې عمل وو، حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه هم په خپل زمانه خلافت کي همداسي انتظام وساتی د رسول الله ﷺ ارشاد دی زما سنت او زما د خلفاء راشدينو سنت پر خپل ځان باندي لازم وګرځوئ هغه په خپلو غاښونو سره ټينګ ونيسئ.

نو ددې وجه که يو سړی د رسول الله ﷺ د دغه حکم په شتون کي د تراويح د شلو رکعتو ځکه نه قائل کيږي چي د دې ثبوت د رسول الله ﷺ څخه ثابت نه دی نو په دې اړه د دې څخه پرته نور څه ويل کېدای سي چي هغه د منشاء نبوت او حقيقت سنت څرګندہ مخالفت کوي.

## د تراويح اخيري وخت

﴿۱۲۳۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ سَمِعْتُ أُبَيًّا يَقُوْلُ كُنَّا نَنْصَرِفُ فِيْ

د حضرت عبدالله بن ابوبکر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د اُبی څخه اوريدلي دي چي کله به موږ په روژه کي د تراويح څخه فارغ سو نو

رَمَضَانَ مِنَ الْقِيَامِ فَنَسْتَعْجِلُ الْخَدَمَ بِالطَّعَامِ مَخَافَةَ فَوْتِ السُّحُوْرِ . وَفِيْ أُخْرٰى مَخَافَةَ الْفَجْرِ . رواه مالك .

خادمانو ته به مو ژر د ډوډۍ خوړلو لپاره ويل د دې ېيرې څخه چې د پېشلمي وخت ختم نه سي ، او په دوهم روايت کي دا الفاظ دي چې د سهار کېدو د ېيرې څخه . مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا: ۱\۱۱٦، رقم: ۷.

**د شعبان په پنځلسمه د انسان مرګ او ژوند ليکل کيږي**

《۱۲۳۱》: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَلْ تَدْرِيْنَ مَا فِيْ

د حضرت عائشي ﷞ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تا ته څرګنده ده چې په

هٰذِهِ اللَّيْلَةِ ؟ يَعْنِيْ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانٍ قَالَتْ مَا فِيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

دې شپه (د شعبان پنځلسمه) کي څه کيږي؟ بي بي عائشي ﷞ عرض وکړ : نه ، اې د الله رسوله! په دې کي څه کيږي ؟

فَقَالَ فِيْهَا أَنْ يُّكْتَبَ كُلُّ مُوْلُوْدٍ مِّنْ بَنِيْ آدَمَ فِيْ هٰذِهِ السَّنَةِ وَفِيْهَا أَنْ يُّكْتَبَ

رسول الله ﷺ وفرمايل : په دې کي دا کيږي چې په انسانانو کي هر څوک چې په دې کال پيدا کېدونکی وي ليکل کيږي او څوک چې په دې کال

كُلُّ هَالِكٍ مِنْ بَنِيْ آدَمَ فِيْ هٰذِهِ السَّنَةِ وَفِيْهَا تُرْفَعُ أَعْمَالُهُمْ وَفِيْهَا تُنْزَلُ

مړ کيږي په دې شپه ليکل کيږي او په دې شپه اعمال نامې پورته کيږي او په دې شپه نازليږي

أَرْزَاقُهُمْ . فَقَالَتْ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ مَا مِنْ أَحَدٍ يَّدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلاَّ بِرَحْمَةِ اللّٰهِ

د بندګانو رزق ، عائشي ﷞ عرض وکړ : اې د الله رسوله ! هيڅوک داسي نسته چې د الله ﷻ د رحمت پرته جنت ته داخل سي ؟

تَعَالٰى ؟ فَقَالَ مَا مِنْ أَحَدٍ يَّدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلاَّ بِرَحْمَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى ثَلاَثًا قُلْتُ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : هيڅوک د الله ﷻ د رحمت څخه پرته جنت ته نه سي داخليدلای دري ځله يې دا الفاظ وفرمايل ، بي بي عائشې رضي الله عنها عرض وکړ :

وَلاَ أَنْتَ يَارَسُوْلَ اللهِ ؟ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلٰى هَامَتِهِ فَقَالَ وَلاَ أَنَا إِلاَّ أَنْ يَّتَغَمَّدَنِيَ

اې دالله رسوله ! ايا تاسو هم نه ؟ رسول الله ﷺ پر خپل سر مبارک لاس کښېښودی او وه يې فرمايل : زه هم د الله ﷻ د رحمت څخه پرته په جنت کي نه سم داخليدلای خو دا چي الله تعالى په خپل فضل او کرم سره

اللهُ مِنْهُ بِرَحْمَتِهِ . يَقُوْلُهَا ثَلاَثَ مَرَّاتٍ . رواه البيهقي في الدعوات الكبير .

د خپل رحمت په سايه کي ما پټ کړي، رسول الله ﷺ دا الفاظ دري ځله وفرمايل . بيهقي .

**تخريج** : رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**تشريح** : په دنيا کي چي څومره انسانان پيدا کيږي يا مړه کيږي د هغوی ټولو د زېږېدني او د مرګ په باره کي ډير مخکي په عمومي توګه سره په لوح محفوظ کي ليکل کيږي د هر شعبان په پنځلسمه شپه کي بيا دوهم وار د خلکو د زېږېدني او مرګ وخت ليکل کيږي چي په هغه کال کي پيدا کېدونکی يا مړ کېدونکی دي .

اعمال پورته کيږي: د دې مطلب دادی چي په دغه کال کي د بنده څخه کوم نېک اعمال کېدونکي وي هغه په دغه شپه کي ليکل کيږي چي هر ورځ پېښېدلو څخه وروسته د الله تعالى په دربار کي حاضر کيږي .

د رزق راکښته کولو څخه مراد د رزق ليکل دي په هغه کال کي چي د کوم بنده په برخه کي څومره رزق راځي د هغه تفصيل په دغه شپه کي ليکل کيږي څرنګه چي په يوه حديث کي نقل دي چي په دغه شپه کي مرګ او رزق ليکل کيږي او په دې کال کي د حج نوم هم په دغه شپه کي ليکل کيږي .

کله چي بي بي عائشه رضي الله عنها واورېدل چي هغه اعمال چي په کال کي د بنده څخه کيږي د کولو څخه مخکي ليکل کيږي نو هغه پوه سوه چي په جنت کي د داخلېدو دار اومدار يوازي پر تقدير او د الله پاک پر فضل او کرم باندي دی ، جنت ته داخلېدل پر عمل باندي موقوف نه دي نو هغې وفرمايل (يارسول الله مامن يدخل .......الخ) د دې په جواب کي رسول الله ﷺ وفرمايل بېشکه په جنت کي داخلېدل خو يوازي د الله تعالى د رحمت او د هغه په

فضل او كرم موقوف دی هغه چي څرنگه غواړي په خپل فضل او كرم سره به يې په جنت كي داخل كړي او چا ته چي وغواړي داخل به يې نه كړي د رسول الله ﷺ دا ارشاد د قرآن كريم دا آيت دی .(تلک الجنة التي اورثتموها بما كنتم تعملون) : دا هغه جنت دی چي تاسو ته د هغه شي په بدل كي دركړل سو چي تاسو به كوی، يعني په دنيا كي چي به تاسو كوم نيک اعمال كول.
معارض خلاف نه دی ځكه چي نيک اعمال خو په جنت كي د داخليدو ښكاره سبب دی خو د دخول جنت حقيقي سبب د الله تعالى فضل او كرم او د هغه رحمت دی نه نېک اعمال بيا دا چي نېک اعمال هم د الله تعالى رحمت دی، كه د يوه بنده سره د الله تعالى توفيق نه وي او د هغه فضل او كرم او د هغه د رحمت سايه پر هغه باندي نه وي نو هغه نېک اعمال څرنگه كولای سي نيک او صالح اعمال خو بنده هلته كولای سي كله چي د الله تعالى توفيق او د هغه رحمت د بنده لارښوونه كوي نو داسي به هم وويل سي چي په جنت كي داخلېدل يوازي د پروردگار پر رحمت موقوف دی ځيني علماؤ ليكلي دي چي په جنت كي داخلېدل خو يوازي د پروردگار د رحمت سبب دی او په جنت كي د راتلو فرق د اعمالو پر فرق موقوف دی يعني بنده خو به په جنت كي داخل د الله تعالى د رحمت په جه سي هو د اعمالو كار فرمايي به د دې درجې وي د كوم بنده نېک اعمال چي د كومي درجې وي په جنت كي به د هغه سره سم درجه ترلاسه كوي.

**د برات په شپه كي كينه كوونكی او مشرک د الله ﷻ د عام رحمت څخه محروم كيږي.**

﴿۱۲۳۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ إِنَّ اللهَ تَعَالٰى لَيَطَّلِعُ فِيْ لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شُعْبَانَ فَيَغْفِرُ لِجَمِيْعِ خَلْقِهٖ

الله تعالى د شعبان په پنځلسمه شپه كي د بندگانو په لور متوجه كيږي او خپل ټول مخلوق ته بخښنه كوي

إِلاَّ لِمُشْرِكٍ أَوْ مَشَاحِنٍ . رواه ابن ماجه ورواه أحمد عن عبد الله بن عمرو بن العاص وفي روايته إلا اثنين مشاحن وقاتل نفس .

خو نه مشرک او كينه گر ته، ابن ماجه، احمد د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص د روايت

څخه داسي نقل کړې دي چي الله تعالى په دې شپه دوه خلک مشرک او قاتل د خپل ځان نه بخښي .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۴۴۵، رقم: ۱۳۹۰، الامام احمد في مسنده ۲\۱۷۶.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي الله تعالى کله په دې برکت ناکي او مقدسي شپې کي په خپل رحمت کامله سره دنيا والاوو ته متوجه کيږي نو د هغه د رحمت درياب دومره په جوش کي وي چي هغه خپل حقوق هم معاف کوي او په خپل بندګۍ، عبادت ،اطاعت او فرمانبرداري کي کړل سوي ګناوي هم ورمعافوي خو کفر او د بندګانو حقوق نه معاف کوي او په دې معامله کي دومره مهلت ورکوي که هغه توبه وکاږي نو توبه به يې قبوله سي او که توبه نه وکاږي او خپله بداعتقادي او د بدعملي څخه نسي منعه نو په عذاب کي به اخته سي .

د کينه کونکي څخه مراد هغه سړى دى چي د شرعي لوري څخه نه بلکه د نفس اماره په فريب او چمو کي په اخته کېدو سره خامخا د نورو خلکو لپاره په خپله سينه کي د بغض او حسد اور بلوي داسي بد سړى هم په دې برکت ناکه شپه کي د پروردګار د عامي بخښني څخه هيڅ برخه نه سي تر لاسه کولاى، د برات په شپه کي چي کوم بدبخت د رحمت الهي په سايه کي نه وي په دې توګه چي د هغه بخښنه نه کيږي نو د دې تفصيل په بيلو بيلو روايتونو کي ذکر دى دلته د کفر کونکي، کينه لرونکي او په ناحقه د چا قتلونکى ذکر سوى دى .

په ځيني روايتونو کي دا هم نقل دي چي الله تعالى قرابت ماتونکى هم نه بخښي همداسي په ځيني روايتونو کي پرتوګ يا لونګ د زنګنو څخه لاندي کښته کونکى، د مور او پلار نافرمان، هميشه شراب څيښونکى او په ځينو راويتونو کي زنا کونکى او په ظلم سره محصول اخيستونکى، جادو کونکى، کاهن، د غيب خبري ښودونکى او باجه وېونکى هم ذکر سوي دي يعني دا هغه بد بخته خلک دي چي په دغه مقدسه شپه کي د پروردګار د عام رحمت څخه محروم وي .

## د شعبان په پنځلسمه د روژې او عبادت حکم

﴿۱۲۳۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي د شعبان پنځلسمه شپه سي

فَقُوْمُوْا لَيْلَهَا وَصُوْمُوْا يَوْمَهَا فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَنْزِلُ فِيْهَا لِغُرُوْبِ الشَّمْسِ

نو تاسو د شپې عبادت کوئ او د ورځې روژه نيسئ ځکه چې الله تعالى په دې شپه کې د لمر لوېدو وروسته نزول فرمايي

إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيَقُوْلُ أَلَا مِنْ مُسْتَغْفِرٍ فَأَغْفِرَ لَهُ؟ أَلَا مُسْتَرْزِقٍ فَأَرْزُقَهُ

د دينا آسمان ته ، او فرمايي څوک بخښنه غوښتونکی سته چې زه يې و بخښم، څوک رزق غوښتونکی سته چې زه رزق ورکړم ،

؟ أَلَا مُبْتَلًى فَأُعَافِيَهِ؟ أَلَا كَذَا أَلَا كَذَا حَتَّى يَطْلُعَ الْفَجْرَ . رواه ابن ماجه .

څوک په مصيبت اخته سته چې سلامتي ورکړم او داسي فرمايي تر څو چې د سهار رڼا سي . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه: ۱\ ۴۴۴، رقم: ۱۳۸۸.

**تشريح** : د برات د شپې د عظمتونو او فضيلتونو حد په څومره وي، دا هغه مقدسه شپه ده چې د پرودرګار عالم خپل رحمت کامله او رحمت عامه سره د دنيا خواته متوجه کيږي دنياوالا خپل رحمت ته رابولي د هغوی لمن د رحمت ، بخښني او د ورکړي د خزانو څخه ډکوي .

زيری دي وي هغه پاکو نفسو ته او هغه خوشبختو ته چې په دغه مقدسه شپه کې د خپل پروردګار د رحمت سايه پيدا کوي عبادت او بندګي کوي د خپل مولی په دربار کي د خپلو اړتياوو او حاجتونو خواست وړاندي کوي او مولی کريم د هغوی خواستونه په خپل رحمت کامله سره قبلوي، افسوس پر هغو بدنصيبو چې د دغه برکتناکي او باعظمتي شپې د تقدس استقبال په لهو او لعب سره کوي د آتش بازي په ډول بد کار کي په اخته کېدو سره خپل نيک بختي او سعادت بربادوي، د بازيو په بوختيا سره د رحمت خداوندي څخه ليري والی اختياروي، الله تعالى دي مونږ ته توفيق راکړي چې موږ د برات د شپې د عظمت او فضيلت احساس وکړو او د دغه شپې د تقدس احترام وکړو او د عبادت او بندګي مخلصانه نذرانه د پروردګار په دربار کي په وړاندي کولو سره د هغه د رحمت څخه د خپل دين او دنيا سعادتونه او بريالیتوب ترلاسه کړو .

زياتو صحابه کرامو مثلا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او د داسي نورو څخه نقل دي چې هغوی به د شپې دا دعا کول :

اللهم ان کنت کتبنا اشقياء فامحه واکتبنا سعداء وان کنت کتبنا سعداء فاثبتنا فانک تمحوا من تشاء و تثبت عندک ام الکتاب .

ژباړه : اې الله ! كه تا (په لوح محفوظ كې) موږ بدبخته ليكلي يو نو هغه خراب كړې او موږ نيكبخته وليكې او كه تا موږ سعيد او نيک بخته ليكلي يو نو هغه قائم ولرې بيشكه ته چې چا ته غواړې ختموې يې او چا ته چې وغواړې قائم يې لرې او ستا سره ام الكتاب دى.

د پنځلسم شعبان په شپه كې د دغه دعا ويل په حديث كې نقل دي مگر هغه حديث قوي نه دى د دې دعا الفاظ :ان كنت كتبنا اشقياء كې د كتابت څخه مراد كتاب معلقه دي او په هغه كې تغير او تبدل ممكن دى دلته كتاب محكمه مراد نه دى ځكه چې په لوح محفوظ كې په اخرې توگه چې كومه خبره محكمه ليكل سوې ده په هغه كې تغير او تبديل ممكن نه دى .

## د پنځلسم شعبان په شپه د صلوة الفيه كولو حقيقت

په كتاب الالى كې ليكلي دي چې په دغه شپه كې صلوة الفيه يعني سل ركعته نفل لمونځ داسي دي وكړل سي چې په هر ركعت كې لس لس د قل قرائت وي لكه څرنگه چې ديلمي وغيره روايت كړي دي مگر دا روايت موضوع دى پهٔ دې اړه په ځينو رسالو كې ليكلي دي، علي بن ابراهيم رحمة الله عليه فرمائي: دا كومه طريقه چې رواج كړل سوې ده چې د پنځلسم شعبان په شپه كې صلوة الفيه كيږي يعني سل ركعته دي داسي وكړي چې په هر ركعت كې لس لس قل قرائت وسي او هغه په جماعت سره ادا كوي بيا دا چې په هغه كې د جمعې د اخترونود لمنځو هم زيات اهتمام كيږي په دې باره كې نه څه صحيح حديث ثابت دى نه د يو صحابي او تابعي يو قوي ارشاد نقل دى خو دا چې په دې اړه ضعيف او موضوع روايتونه ضرور نقل كيږي نو هيڅ سړى دي د صاحب قوت القلوب او صاحب اخبار وغيره نقلولو څخه دي په دې اړه په غلط فهمي كې نه اخته كيږي يعني دا لمونځ دي نه كوي ځكه چې عوام د دې لمانځه په وجه په ډېرو زياتو فتنو كې اخته سوى دى تر دې چې د دې لمانځه د اداء كولو په وخت رڼا ضروري گرځول سوې ده چې د هغه په وجه اكثر د فسق او فجور كارونه صادرېدل شروع سول ډېر اولياء الله د دغه كارونو د وجې څخه بېرېدل چې د الله ﷻ ادبار او عذاب نازل نسي نو هغوى دومره خوف زده او پرېشانه سوه چې هغوى په ابادي پرېښودو سره او د الله تعالى عبادت په رڼا كې كېدونكى فسق او د فجور څخه په مخ اړولو سره ځنگل ته ولاړل .

د دې لمانځه د ابتداء په باره كې ليكلي دي چې اول دا لمونځ په بيت المقدس كې په څلورسوه اته څلوېښت كې شروع سو او د دې طريقې د رواج كېدو وجه دا وه چې د هغه زمانې جاهل او اقتدار طلب امامان مساجد د خپل جذبه اقتدار و جاه طلبي د تسكين لپاره او د عوامو څخه زيات تعداد ځان ته راچاپېره د جمع كولو لپاره دا طريقه راوښودل همداسي هغوى ډيري

فائدې هم حاصلي کړي دي تر دې چي الله تعالى نيک او صالح امامان پيدا کړل هغوی د دغه بدعت په مينځ کي هيڅ کمي نه وکړل د الله پاک د دغه نيکو بندګانو په سعي او هڅه سره دا طريقه ختمه سوه تر دې چي د اته سوه هجري په شروع کي د مصر او شام په ښارونو کي دا بدعت بالکل ختم سو .

ملا علي قاري رحمة الله عليه د پورتني مضمون نقل کولو وروسته ليکي دي چي په دې اړه زه دا وايم چي دومره خبره خو فيصله سوې ده چي د صلوة الفيه په اړه ضعيف حديث نقل دی او د نفل د اعمالو په اړه په ضعيف حديث باندي عمل کول جائز دی، علماء چي د دغه لمانځه کولو څخه منعه فرمايلې ده نو هغه ځکه چي د دې سره دېر زيات منکرات کېده نو که يو سړی يوازي د پورتنيو منکراتو څخه پرته دا لمونځ کول وغواړي نو جائز دی، کېدای سي چي ددغه لمانځه وخت د څراغو په شروع کي او د هغه د وجهي په باره کي نقل وي چي اول د څراغو رواج په برالکه قوم کي وسو ځکه چي دا قوم مخکي آتش پرستان وه کوم وخت چي دا خلک مسلمانان سوه نو د هغوی د زړه ژروالی ايمان او اسلام په پوره توګه نه وو قبول کړی او د هغوی په زړه کي د خپل قديم مذهب په څه نا څه حيثيت کي محبت پاته وو هغوی يو داسي شی په اسلام کي داخل کړ چي په دې وهم کي بې اخته کړه چي دا د سنت او شعار دين څخه نه دی يعني د دې لمانځه په وخت بې څراغونه بلول چي د هغه څخه په اصل کي د هغوی مقصد د زور عبادت کول وو ځکه چي هغوی به د عامو مسلمانانو سره د دې څراغ په شکل کي د اور خوا ته رکوع کول او سجده به بې کول .

## د هيڅ عمل په وخت څراغ لګول مستحب نه دي :

د يو بل ضرورت او حاجت په وخت په هيڅ ځای کي هم څراغ لګول په شريعت کي مستحب نه دي ځيني حاجيان چي ناپوهه وي په جبل عرفات مشعر حرام او منی کي څراغ وغيره بلوي د دې هم څه حقيقت نسته بلکه دا يو اختراع ده چي پرهيز بې لازم دی .

## د تراويح د ختم په شپه کي اجتماع بدعت دی

د علامه طرطوسي رحمة الله عليه تحقيق دادی چي په کومه شپه تراويح ختميږي په هغه ورځ يوازي په ختم کي د ګډون لپاره د عوامو اجتماع يا منبر وغيره نصب کول يا څراغونه وغيره بلول بدعت دی .

ملا علي قاري رحمة الله عليه د علامه طرطوسي رحمة الله عليه د دې تحقيق په باره کي ليکلي دي چي الله تعالى دي پر د غه طرطوسي رحمة الله عليه خپل رحمت نازل کړي ځکه چي

ډېر ښه تحقیق يې کړی دی او لوی تعجب دادی چي دا غلطه طریقه اهل حرمین شریفین اختیارکړې ده هلته چي په کومه شپه تراویح ختمېږي نو هغه وخت د خلکو، ښځو، هلکانو او غلامانو دومره په پابندي سره اجتماع کیږي چي د اخترونو لمنځونه، د جمعې لمونځ او د لمر تندري نیولو په لمانځه کي دومره خلک نه جمع کیږي د دې اجتماع پر کېدو ډېر زیات نوي نوي منکرات او غلط او فاسد اعمال او افعال کیږي خلک د څراغونو خوا ته مخ کوي او د بیت الله خوا ته شا کوي او د مطاف په مینځ کي بالکل د آتش پرستانو په ډول دومره په ګڼه ګوڼه سره درېږي چي هلته د طواف کونکو لپاره ځای تنګ او پرېشان سي چي د هغه په وجه طواف کونکي د الله تعالی په ذکر کي مصروفه کېدونکي لمونځ کونکي او د قرآن کریم تلاوت کونکي په زیات تکلیف او پرېشانۍ کي اخته کیږي، فسال الله العفو والعافیه والغفران والرضوان والله المستعان.

=========

# بَابُ صَلٰوةِ الضُحٰی

## د څاښت د لمانځه بیان

ضحیٰ مشتق دی د(الضحوا والضحوة) څخه، ددې معنی ده د لمر لوړېدل د ورځي راختل، د څاښت وخت، د لمر لوړېدو او پورته کېدو وروسته لمونځ کولو ته د ضحی لمونځ وایي.

### د ضحیٰ دوه لمنځونه دي د اشراق لمونځ او د څاښت لمونځ:

اول لمانځه ته اشراق او دوهم ته د څاښت لمونځ وایي یعني په اندازه د یوې نېزې یا دوو نېزو د لمر لوړېدو وروسته کله چي مکروه وخت ختم سي او د لمانځه کولو وخت شروع سي نو په اول کوم لمونځ کیږي هغه ته په اصطلاح کي د اشراق لمونځ وایي او کله چي لمر ښه پورته سي او ګرمي دومره زیاته سي چي دوهمه غرمه شروع سي نو د زوال څخه مخکي د ضحی لمونځ کیږي دې ته په اصطلاح کي د څاښت لمونځ وایي او په عربي کي دغه دواړو لمنځو ته ضحوة صغری او ضحوة کبرای وایي.

نسائي یو بل روایت نقل کړی دی چي د هغه مفهوم دادی چي کله لمر د مشرق خوا ته داسي وي لکه څرنګه چي د مازدیګر وخت د مغرب خوا ته وي نو رسول الله ﷺ به دوه رکعته کول او کله چي لمر د مشرق خوا ته داسي وي لکه څرنګه چي د ماپښین وخت د مغرب خوا ته

وي نو رسول الله ﷺ به څلور ركعته لمونځ كوی د دې حديث څخه معلومه سوه چي د ضحى دوه لمنځونه دي.

د اشراق د لمانځه كم شمېر دوه ركعته دي او زيات شمېر يې شپږ ركعته دی، همداسي د څاښت د لمانځه كم شمېر دوه ركعته او زيات شمېر يې دوولس ركعته دي مګر د علماؤ په نزد مختار څلور ركعته كول دي د كومو حديثو څخه چي د رسول الله ﷺ څلور ركعته كول ثابت دي هغه حديثونه زيات صحيح دي بيا دا چي زيات حديثونه او اثار د څلورو ركعتو په باره كي نقل دي، د ضحىٰ د لمانځه ډير زيات فضيلت نقل دی دا لمونځ د اكثرو علماؤ په نزد مستحب دی، دا لمونځ دي په دې نيت سره كوي:

نويت ان اصلي اربع ركعات صلوة الضحى سنة النبي صلى الله عليه وسلم

ژباړه: ما دا اراده وكړه چي څلور ركعته د ضحى لمونځ چي د رسول الله ﷺ سنت دی ادا كړم. شيخ ولي الدين ابن عراقي رحمة الله عليه فرمايي چي د صلوة الضحى په باره كي صحيح او مشهور حديثونه ډير زيات نقل دي تر دې چي محمد ابن جرير طبراني رحمة الله عليه ويلي دي چي په دې اړه كوم حديثونه نقل دي هغه د تواتر درجې ته رسېدلي دي، قاضي ابوبكر رحمة الله عليه فرمايي چي دا لمونځ د مخكنيو انبياؤ او رسولانو لمونځ دی، علامه سيوطي رحمة الله عليه د ديلمي رحمة الله عليه څخه د حضرت ابوهريره رضی الله عنه دا حديث نقل كړی دی چي ضحى لمونځ د حضرت داود عليه السلام لمونځ دی، ابن نجار رحمة الله عليه د حضرت ثوبان رضی الله عنه دا حديث نقل كړی دی چي ضحى لمونځ هغه لمونځ دی چي حضرت آدم عليه السلام ،حضرت نوح عليه السلام ،حضرت ابراهيم عليه السلام ،حضرت موسى عليه السلام او حضرت عيسى عليه السلام به تل كوی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د څاښت د لمانځه اته ركعته

﴿۱۲۳۴﴾: عَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ بَيْتَهَا يَوْمَ

د حضرت ام هاني رضی الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د هغې كور ته تشريف راوړ

فَتْحِ مَكَّةَ فَاغْتَسَلَ وَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ فَلَمْ أَرَ صَلَاةً قَطُّ أَخَفَّ مِنْهَا غَيْرَ أَنَّهُ

د مکې د فتح په ورځ غسل يې وکړ او اته رکعته يې وکړل، ما هيڅ يو لمونځ تر دې لنډ نه دی ليدی مګر

يُتِمُّ الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ. وَقَالَتْ فِيْ رِوَايَةٍ أُخْرٰى وَذٰلِكَ ضُحًى. متفق عليه

رسول الله ﷺ به رکوع او سجده پوره کول، په يو بل روايت کي يې دا هم ويلي دي چي دا د څاښت لمونځ وو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٤٦٩، رقم: ٣٥٧ ومسلم: ١١\٤٩٨، رقم: ٨٢- ٣٣٦.

**تشريح**: حضرت ام هاني ﷺ د حضرت علي کرم الله وجهه خور ده د هغې نوم فاخته وه د لوئ عظمت او فضيلت خاونده او صحابيه وه، په مکه مکرمه کي د رسول الله ﷺ د تبليغ او دعوت د هڅو لوی مرکز ددې مبارکي کور وو، د څاښت لمونځ به رسول الله ﷺ اته رکعته يا په دوه سلامه سره يعني څلور څلور رکعته کول يا دا هم احتمال دی چي په څلورو سلامو سره يعني دوه دوه رکعته به يې کول.

په هرحال د مختصر لمونځ کولو مطلب دادی چي هغه وخت رسول الله ﷺ د زياتو اوږدو سورتونو قرائت نه کوی، همداسي تسبيحات وغيره يې هم زيات نه ويل.

### د څاښت د لمانځه رکعتونه

﴿١٢٣٥﴾: وَعَنْ مُعَاذَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ عَائِشَةَ كَمْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّي صَلَاةَ الضُّحٰى قَالَتْ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَيَزِيْدُ مَا شَاءَ اللهُ. رواه مسلم

د حضرت معاذة څخه روايت دی چي ما د بي بي عائشې ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ به د څاښت لمونځ څو رکعته کوی؟ هغې جواب راکړ څلور رکعته او ددې څخه هم زيات څومره چي الله ﷻ ته منظوره وه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١١\٤٩٧، رقم: ٧٨- ٧١٩.

**تشريح**: د حديث اخري الفاظ (ويزيد ماشاء الله) په باره کي علماء ليکي چي ضحی لمونځ به رسول الله ﷺ زيات تر زيات دوولس رکعته کول تر دوولسو زيات په هيڅ حديث کي نه دي نقل سوی، دا حديث د دواړو وختو لمانځه ته محتمل دی يعني کېدای سي چي په حديث کي د پورتني سوال او جواب اړه د اشراق دلمانځه سره وي او دا هم ممکنه ده چي د څاښت د لمانځه

سره وي، په كتاب احبار كي ليكلي دي چي غوره داده چي په دغه لمنځو كي سورة والشمس، سورة والليل، سورة والضحى او سورة الم نشرح وويل سي.

## د څابنت د لمانځه فضيلت

﴿۱۲۳۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصْبِحُ عَلَى

د حضرت ابوذر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د سهار كېدو سره

كُلِّ سُلاَمَى مِنْ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ فَكُلُّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَحْمِيدَةٍ صَدَقَةٌ

ستاسو پر هر هډوكي صدقهٔ لازميږي ، ستاسو هر تسبيح صدقه ده او الحمد لله ويل صدقه ده

وَكُلُّ تَهْلِيلَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةٌ وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنْ

او هر تهليل صدقه ده او هر تكبير صدقه ده، د نيک كار حكم كول صدقه ده او منعه كول

اِلْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ وَيُجْزِئُ مِنْ ذٰلِكَ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحَى . رواه مسلم

بدي خبري څخه صدقه ده او ددې ټولو په مقابله كي دوه ركعته د څابنت لمونځ بس كيږي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۱ ۴۹۸- ۴۹۹، رقم: ۸۴- ۷۲۰.

**تشريح** : مطلب دادی چي كله پر انسان باندي سهار سي او د هغه د بدن يو يو هډوكی او يو يو بند د افت او بلا څخه سلامت كيږي نو له دې كبله هغه د كاروبار او د دنيا په نورو بوختياوو كي د بوخت كېدو قابل وي نو پر دې عظيم نعمت باندي د شكر د ادايني لپاره د يوه هډوكي په عوض كي پر هغه باندي صدقه كول لازمه ده او دا صدقه يو څو كلمې دي چي د هغه په ويلو سره د يوه هډوكي او بند له خوا صدقه ادا كيږي او هغه كلمات ډير سخت او ګران هم نه دي بلكه ډير اسانه او بېله تكلفه ادا كېدونكي دي هغه دا دي: سبحان الله الحمد لله او الله اكبر.

د (ويجزي من ذٰلک) مطلب دادی چي د دغه كلمو ويلو پر ځای كه د ضحی دوه ركعته وكړل سي نو شكرانه ادا كيږي او د دغه كلمو ويلو ضرورت نه پاته كيږي ځكه چي لمونځ خو د ټول بدن او ټولو اندامو عمل دی چي د هغه په ذريعه د بدن يو يو اندام په عبادت كي په بوخت كېدو سره خپل شكرانه ادا كوي نو مناسب او غوره داده چي دا لمونځ دي همېشه وكړل سي.

## د څاښت د لمانځه غوره وخت

﴿۱۲۳۷﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنَ أَرْقَمَ اَنَّهُ رَأَى قَوْمًا يُصَلُّونَ مِنْ الضُّحَى فَقَالَ لَقَدْ

د حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه څخه روایت دی چي هغه یو قوم د څاښت پر لمانځه کولو ولیدی نو هغه وویل

عَلِمُوا أَنَّ الصَّلَاةَ فِي غَيْرِ هَذِهِ السَّاعَةِ أَفْضَلُ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

دا خلک پوهیږي چي ددې وخت څخه پرته په بل وخت کي لمونځ تر دې غوره دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم

وَسَلَّمَ قَالَ صَلَاةُ الْأَوَّابِينَ حِينَ تَرْمَضُ الْفِصَالُ . رواه مسلم

فرمایلي دي د پوره توجه کونکو د لمانځه وخت هغه دی کله چي د اوښانو بچي ګرم سي .مسلم.

**تخریج**: صحيح مسلم ۱\ ۵۱۵، رقم: ۱۴۳- ۷۴۸.

**د لغاتو حل**: (ترمض): تحترق، والمراد : حين يجد الفصيل حر الشمس ، فيبرک من حدة حرها واحراقها اخفافها. مرقات.

**تشریح**: حضرت زید رضي الله عنه یو څو خلک ولیدل چي هغوی د څاښت د لمانځه د مختار او غوره وخت انتظار نه وکړ بلکه په اول وخت کي یې لمونځ شروع کړ نو هغه ته ډیر تعجب وسو او د هغوی په باره کي یې وفرمایل که څه هم دغه خلکو د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي او دوی ته علم دی چي دا وخت د څاښت د لمانځه افضل وخت نه دی مګر افضل او بهتر وخت خو د دې وروسته شروع کیږي د دې سربېره دا خلکوته دا وخت نه دی معلوم چي ولي لمونځ کوي نو هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ارشاد په رڼا کي وښودل چي د څاښت غوره او افضل وخت هغه دی چي کله د اوښانو بچیان ګرمېدل شروع سي یعني لمر پورته سي او ګرمي دومره خپره سي چي د ګرمۍ د سختي څخه مځکه ګرمه سي چي د هغه په وجه د اوښانو پښې سوزي او په ګرمي کي دومره سخت والی تر یوې نیمي برخي تېرېدو وروسته راځي .

په هرحال د دې حدیث څخه په صحیح توګه معلومه سوه چي د څاښت وخت دا دی چي لمر ښه لوړ او خپور سي او د اولي برخي په ختمېدو سره دوهمه برخه شروع سي همداسي د دې لمانځه اخري وخت تکنده غرمه یعني د زوال څخه مخکي وخت دی .

د څاښت د لمانځه پورتنۍ وخت افضل ځکه دی چي په دې وخت کي په عامه توګه په طبیعت کي سستي پیدا کیږي او زړه غواړي چي ارام وکړي نو په داسي وخت کي د ارام او

طبيعت غوښتنه شا ته غورځولو سره د الله بندګان د لمانځه کولو لپاره ودريږي چي د الله تعالی د دربار خواته پوره رجوع او توجه ولري.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د څاښت د لمانځه برکت

﴿۱۲۳۸﴾: عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ وَاَبِيْ ذَرٍ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابودرداء ﷺاو ابوذر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَنْ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ اَنَّهُ قَالَ يَا ابْنَ آدَمَ ارْكَعْ لِي مِنْ اَوَّلِ النَّهَارِ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ

الله جل جلاله فرمائي : اې د آدم زويه ! ته د ورځي په اول کي زما لپاره څلور رکعته وکړه

اَكْفِكَ آخِرَهُ. رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي عن نعيم بن همار الغطفاني واحمد عنهم.

زه به ستا د ورځي تر اخيره کفايت کوم. ترمذي، ابوداؤد، دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۳۴۰، رقم: ۴۷۵. والامام احمد في مسنده ۵\۲۸۶، رقم: ۱۲۸۹، والدارمي ۱\۴۰۱، رقم: ۱۴۵۱.

**تشريح** : د الله تعالی د ارشاد مطلب دادی چي اې بنده! ته د ورځي په لومړنۍ برخه کي يوازي زما د رضا او خوښۍ لپاره څلور رکعته لمونځ کوه چي د هغه په بدله کي به زه د ورځي په اخري برخه کي يعني تر ماښامه پوري ستا ضرورتونه پوره کوم او ستا په زړه کي چي څه خرابي يعني پرېشاني او تنګي ده هغه به ختمه کړم ګويا د ورځي په لومړنۍ برخه کي زما د عبادت لپاره خپل زړه فارغ کړه زه به د ورځي تر آخري برخي پوري ستا حاجتونه او ضرورتونه پوره کولو سره ستا زړه ته اطمينان او فراغت بخښم، من کان لله کان الله له کوم سړی چي د الله سي نو الله د هغه سي، د ورځي په شروع کي څلور رکعته لمانځه څخه هم دا مراد اخيستل کيږي او د څاښت لمونځ هم ځني مراد اخيستل کيږي .والله اعلم

## د اشراق د لمانځه فضیلت

﴿۱۲۳۹﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي

د حضرت بریدة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې:

الْإِنْسَانِ ثَلَاثُمِائَةٍ وَّسِتُّونَ مَفْصِلاً فَعَلَيْهِ أَنْ يَّتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مَفْصِلٍ مِّنْهُ

د انسان په بدن کي درې سوه شپیته بندونه دي له دې کبله پر انسان لازم ده چي د هر بند په بدله کي

بِصَدَقَةٍ قَالُوْا وَمَنْ يُّطِيْقُ ذٰلِكَ يَا نَبِيَّ اللهِ؟ قَالَ النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ تَدْفَنُهَا

صدقه ورکړي، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! څوک د دې توان لري؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: په مسجد کي پرتې نارې په خاورو کي ښخول صدقه ده

وَالشَّيْءُ تُنَحِّيْهِ عَنِ الطَّرِيْقِ فَإِنْ لَّمْ تَجِدْ فَرَكْعَتَا الضُّحٰى تُجْزِئُكَ . رواه أبو داود

او مضر شی د لاري څخه ایسته کول هم صدقه ده او که ته په دې شیانو کي یو شی تر لاسه نه کړې نو د څاښت دوه رکعته ستا لپاره بس دي . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۵\۴۰۶، رقم: ۵۲۴۲.

**تشریح**: د لازم څخه مراد وجوب شرعي نه دی چي د هغه پر نه پرېښوونکی ګناه کاره کیږي مګر تاکید مراد دی ځکه چي نه خو د ضحی دوه رکعته که هغه د اشراق لمونځ وي یا د څاښت لمونځ هیڅ امام یا عالم ورته واجب نه دي ویلي او نه د چا په نزد پورتنی ذکر سوي دوارې صدقې واجب دي که څه هم یو ازي دا چي د شریعت له نظره بلکه عقلاً هم که وکتل سي نو فیصله دا کول پکاریږي چي د الله تعالی پر دغه عظیم نعمت باندي اجمالي او تفصیلي په دواړو طریقو سره شکر اداء کول پر هر انسان باندي واجب دی.

﴿۱۲۴۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى الضُّحٰى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د څاښت په وخت کي

ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً بَنَى اللهُ لَهٗ قَصْرًا مِنْ ذَهَبٍ فِي الْجَنَّةِ . رواه الترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث غريب لا نعرفه الا من هذا الوجه .

دوولس رکعته وکړي الله تعالی به د هغه لپاره په جنت کي د سروزرو مانۍ جوړه کړي. ترمذي، ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۳۳۷، رقم: ۴۷۳، وابن ماجه ۱\۴۳۹، رقم: ۱۳۸۰.

﴿۱۲۴۱﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسِ الْجُهَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَعَدَ فِيْ

د معاذ بن انس الجهني ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي کښېني

مُصَلَّاهُ حِيْنَ يَنْصَرِفُ مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتّٰى يُسَبِّحُ رَكْعَتَيِ الضُّحٰى لَا يَقُوْلُ

د سهار د لمانځه څخه وروسته په مسجد کي پر خپل ځای تر څو چي لمر راخيژي او د اشراق دوه رکعته وکړي او په منځ کي

إِلاَّ خَيْرًا غُفِرَ لَهُ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ أَكْثَرَ مِنْ زَبَدِ الْبَحْرِ. رواه أبو داود.

د خير د خبرو پرته بل څه ونه وايي نو د هغه ګناهونه بخښل کيږي که څه هم د درياب تر ځګ زيات وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۶۲، رقم: ۱۲۸۷.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي: من قعد ..........الخ، په تشريح کي ملا علي قاري رحمة الله عليه چي څه ليکلي دي د هغه څخه دا معلوميږي چي دلته مراد دادی که يو سړی د سهار په لمانځه کولو سره په ذکر او فکر کي مشغول او په نيکو کارونو کي مثلا علم زده کولو، ښودلو، وعظ او نصيحت، او د بيت الله شريفي په طواف کي مصروف وي او کله چي لمر پورته سي هغه که په کور کي وي که په مسجد کي د ضحی د لمانځه دوه رکعته دي وکړي اول دا چي د سهار لمونځ او د ضحی لمونځ په مينځ کي د نېک او صالح کلام څخه پرته بل څه کلام نه وکړل سي نو د هغه صغيره ګناه وربخښل کيږي او دا هم احتمال دی چي الله تعالی د خپل فضل او کرم په صدقه کي کبيره ګناه هم وربخښي.

د ملا علي قاري رحمة الله عليه د دغه تقرير څخه معلومه سوه چي نبوي ارشاد: من قعد کم يعني سړی چي ناست وي د تمثيل په توګه فرمايل سوي دي کنه دلته ذکر الله په نيکو کارونو کي بوخت کېدل ځيني مراد دي.

شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمة الله عليه د دغه حديث په تشريح کي فرمايي چي دلته

د ضحی د لمانځه څخه د اشراق لمونځ مراد دی او حال دا چي په نورو حدیثو کي د ضحی څخه د اشراق او څاښت دواړه لمنځونه مراد دي او په ښکاره د حدیث څخه دا معلومیږي چي دا ثواب هغه سړي ته حاصلیږي چي د سهار د لمانځه څخه د فارغېدو سره پر هغه ځای ناست وي کوم ځای چي يې لمونځ کړی وي او که يو سړی د هغه ځای څخه په پورته کېدو سره ولاړ سي او په خلوت کي کښېنستی او هلته په ذکر الله او عبادت کي مصروف سو نو هغه ته پورتنی ثواب نه حاصلیږي که څه هم ځینو علماؤ لیکلي دي که چیري د يو پرېشانی ښېره وي يا دا چي د ريا او ځان ښوونې د وسوسې پیدا کېدو ګمان وي نو په داسي صورت کي خلوت ته په تلو سره په عبادت او ذکر الله کي بوخت کېدل دي اختیار کړل سي علماؤ دا هم لیکلي دي چي پر داسي وخت باندي مخ پر قبله ناسته دي ضروري وګڼل سي که چیري د خوب غلبه وي نو هغه دي پورته کړل سي . شیخ الاسلام شهاب الدین سهرودي رحمة الله علیه ويلي دي چي داسي کار چي د هغه اجزاء په دنیا کي في الوقت د باطن د نورانیت په شکل کي حاصلیږي دا عمل دی .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

﴿۱۲۴۲﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَافَظَ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي پابندي وکړي

عَلَى شُفْعَةِ الضُّحَى غُفِرَ لَهُ ذُنُوْبُهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ . رواه احمد والترمذي وابن ماجة .

د څاښت د دوو رکعتو نو د هغه ګناه بخښل کیږي که څه هم هغه د دریاب د ځګ برابر وي .
احمد، ترمذي، ابن ماجه.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۴۹۹، والترمذي ۲\۴۳۱، رقم: ۴۷۶، وابن ماجه ۱\۴۴۰، رقم: ۱۳۸۲.

### حضرت عائشه رضي الله عنها او د څاښت لمونځ

﴿۱۲۴۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا كَانَتْ تُصَلِّي الضُّحَى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ تَقُوْلُ لَوْ نُشِرَ لِيْ أَبَوَايَ مَا تَرَكْتُهَا . رواه مالك .

د حضرت عائشې ﷞ څخه روايت دی چې هغې به د ځابنت لمونځ اته رکعته کوی او ويل به يې که زما مور او پلار ژوندي سي نو هم زه دا نه پرېږدم . مالک

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ١\١٥٣، رقم: ٣٠.

**تشريح** : د حضرت عائشې ﷞ دا ارشاد د مبالغې لپاره تعليق بالمحال دی يعني ددې مطلب دادی چې زه په دا لمونځ کولو سره دومره خوند حاصلوم او دومره خوشحاله کېږم که زما مور او پلار هم را ژوندي سي سره ددې چې د هغوی ژوندي کېدل محال دي نو د هغوی سره د ملاقات خوشحالي هم ما د دې لمانځه څخه منعه کولای نسي ګويا بي بي عائشې ﷞ د دې په ذريعه خلکو ته شوق ورکړی دی چې دا لمونځ دي هميشه په پابندي سره وکړي .

## د رسول الله ﷺ د ځابنت لمونځ

﴿١٢٤٤﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ كَانَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى حَتَّى نَقُوْلَ لَا يَدَعُ وَيَدَعُهَا حَتَّى نَقُوْلَ لَا يُصَلِّيْهَا. رواه الترمذي

د حضرت ابوسعيد ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به د ځابنت لمونځ کوی تر دې چې موږ به ويل اوس به يې هيڅکله نه پرېږدي او کله به يې پرېښودل نو موږ به ويل چې اوس به يې بيا نه کوي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ٢\٣٤٢، رقم: ٤٧٧.

**تشريح** : څرنګه چې د نفلي اعمالو په اړه د رسول الله ﷺ عادت مبارک وو چې هيڅ نفلي عمل به يې همېشه نه کوی ددې لپاره چې د هغه د التزام په وجه هغه عمل فرض نسي همداسي د ضحی د لمانځه په باره کي هم د رسول الله ﷺ دا معمول وو چې د امت په حق کي به يې زيات شفقت فرمايه دا لمونځ به يې کله کله پرېښودی هم ددې لپاره چې د التزام په توګه د دغه لمانځه په کولو سره د فرضيت حکم نازل نسي چې په هغه سره به د امت خلک په تنګۍ کي اخته سي .

دلته په دې خبره هم پوه سئ چې دا د رسول الله ﷺ ځانګړتيا وه چې يو کار به پر رسول الله ﷺ د التزام په وجه فرض کېدی که چيري د امت خلک يو کار په التزام سره کوي نو هغه نه فرض کيږي که اوس ټول مسلمانان د ځابنت لمونځ په التزام سره کوي نو دا لمونځ فرض کيږي نه بلکه مستحب به وي .

﴿۱۲۴۵﴾: وَعَنْ مُوَرِّقٍ الْعِجْلِيِّ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ تُصَلِّي الضُّحٰى ؟ قَالَ لاَ

د حضرت مورق العجلي رحمه الله څخه روايت دى چي ما د ابن عمر رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه چي ته د څاښت لمونځ كوې؟ هغه وويل :يا،

قُلْتُ فَعُمَرُ ؟ قَالَ لاَ . قُلْتُ فَأَبُو بَكْرٍ ؟ قَالَ لاَ . قُلْتُ فَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قَالَ لاَ اَخَالُهُ . رواه البخاري .

ما بيا پوښتنه وكړه عمر رضي الله عنه به كوى؟ هغه وويل :يا، ما بيا پوښتنه وكړه چي ايا ابوبكر رضي الله عنه به كوى ؟ هغه وويل :يا، ما بيا پوښتنه وكړه نبي كريم ﷺ به كوى ؟ هغه وويل زما خيال دى چي هغه به هم نه كوى . بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۱\۳، رقم ۱۱۷۵.

**تشريح** : حضرت ابن عمر رضي الله عنه چي د رسول الله ﷺ په اړه د ضحى د لمانځه كولو څخه كومه نفي فرمايلې ده د هغه تاويل دا كيږي چي د ابن عمر رضي الله عنه دا انكار پر دې خبره مبني دى چي رسول الله ﷺ به همېشه په مسجد كي د ضحى لمونځ نه كوى، يا دا چي ابن عمر رضي الله عنه به د رسول الله ﷺ په عمل مبارك او د دې لمونځ كولو په باره كي د رسول الله ﷺ په ارشاد خبر سوى نه وي يا دا چي ابن عمر رضي الله عنه مطلقا نفي ونه فرمايل بلكه د هغه مطلب داوو چي رسول الله ﷺ به دا لمونځ په ځانګړې توګه همېشه نه كوى ددې لپاره چي دا لمونځ فرض ونه ګرځول سي . په هرحال د رسول الله ﷺ د دغه لمانځه نه كول او نورو ته يې په كولو تاكيد كول د ډېرو روايتونو څخه ثابت دى ځكه د دې لمانځه په اثبات كي په دې روايت سره په يو غلط فهمي كي اخته كېدل نه دي پكار . ملا حنفي رحمة الله عليه فرمايي چي د رسول الله ﷺ وروسته د دغه لمانځه د فرض كېدو هيڅ اندېښنه پاته نه سوه ځكه دا ويل زيات مناسب او غوره دي چي ټولو مسلمانانو ته دا لمونځ همېشه او په پابندي سره كول مستحب دى د اكثرو علماؤ په نزد او د مشائخو مذهب هم دادى .

=========

# بَابُ التَّطَوّعِ

## (د نفلي لمنځو بيان)

لفظ د تطوع د طوع او طاعت څخه اخيستل سوی دی، د دې معنی ده انقياد او فرمانبرداري کول، نفلي عبادت ته تطوع او نفل کونکي ته متوطع وايي په دغه باب کي د هغه لمنځو په اړه حديثونه نقل کيږي کوم چي نفل دي هسي خو د فرض او واجب څخه پرته هر لمانځه ته نفل وايي که هغه سنت وي که مستحب. د تطوع اطلاق اکثر پر هغو لمنځو باندي کيږي کوم چي غير رواتب يعني غير سنت مؤکده دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د تحية الوضوء فضيلت

﴿۱۲۴۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبِلاَلٍ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ بلال ته وفرمايل

عِنْدَ صَلاَةِ الْفَجْرِ يَا بِلاَلُ حَدِّثْنِي بِأَرْجَى عَمَلٍ عَمِلْتَهُ فِي الْإِسْلاَمِ فَإِنِّي

د سهار د لمانځه پر وخت: اې بلاله! ته خپل هغه عمل بيان کړه چي تر ټولو زيات اميد لرونکی وي او تا د اسلام په حالت کي په هغه عمل کړی وی ځکه چي ما

سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ قَالَ مَا عَمِلْتُ عَمَلاً أَرْجٰى عِنْدِي أَنِّي

په جنت کي تر خپل ځان مخکي ستا د څپليو آواز اوريدلی دی، حضرت بلال رضي الله عنه عرض وکړ ما هيڅ يو اميد لرونکی عمل د دې څخه زيات نه دی کړی

لَمْ أَتَطَهَّرْ طُهُورًا تَامًّا فِي سَاعَةٍ مِنْ لَيْلٍ وَلاَ نَهَارٍ إِلاَّ صَلَّيْتُ بِذٰلِكَ الطُّهُورِ مَا

مګر کله چي زه پاکي تر لاسه کړم (يعني اودس يا غسل وکړم) نو ما په هغه پاکۍ سره لمونځ کړی دی

كَتَبَ اللّٰهُ لِي أَنْ أُصَلِّيَ. متفق عليه

ځو مره چي الله ته منظوره وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۴، رقم: ۱۱۴۹، ومسلم: ۴\۱۹۱۰، رقم: ۱۰۸– ۲۴۵۸.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ په جنت کي خپل وړاندي د بلال رضي الله عنه د قدمونو اواز اورېدل د مكاشفې په ذريعه وو چي عالم غيب ته پر رسول الله ﷺ د خوب په حالت کي يا د بيداري په حالت کي دا ځرګنده سوه يا دا چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه په جنت کي خپل مخکي د حضرت بلال رضي الله عنه د څپليو آواز اورېدلی وو د حضرت بلال رضي الله عنه د رسول الله ﷺ مخکي تلل ځرنګه چي رسول الله ﷺ د هغه د څپليو آواز واورېدی دا په هغه درجه کي وو په کومه درجه کي چي د خادمانو د مخدوم وړاندي تلل وي.

د پاكي څخه مراد اودس هم کېدای سي او غسل او تيمم هم همداسي دا درې سره هم مراد ځيني اخستل کېدای سي په دې حديث کي چي د كوم لمانځه فضيلت بيان سوی دی هغه لمونځ دی چي د اوداسه وروسته كول کيږي دې لمانځه ته په اصطلاح کي تحية الوضوء يا د اوداسه شکر ويل کيږي.

## د استخارې لمونځ او دعاء

﴿۱۲۴۷﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

يُعَلِّمُنَا الْاِسْتِخَارَةَ فِي الْأُمُوْرِ كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْآنِ يَقُوْلُ إِذَا هَمَّ

په ټولو کارو کي موږ ته د استخارې کول داسي راښودل لکه د قرآن کريم يو سورت، رسول الله ﷺ به فرمايل هر کله چي اراده وکړي

أَحَدُكُمْ بِالْأَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيْضَةِ ثُمَّ لِيَقُلِ اللّٰهُمَّ إِنِّيْ

په تاسو کي يو څوک د يو كار نو هغه ته پكار دي چي د فرض لمانځه څخه پرته دوه ركعته لمونځ وكړي او بيا دا دعاء وغواړي (اللهم اني استخيرک......) (اې الله جل جلاله

أَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَإِنَّكَ

زه ستا څخه ستا د علم په مرسته خير غواړم او ستا په قدرت سره د عمل قدرت غواړم او ستا

ځخه لوی فضل غواړم ته

تَقْدِرُ وَلاَ أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلاَ أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوبِ اَللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ

پر هر شی واکدار یې او زه په هیڅ شي واک نه لرم ته په هر شي پوهېدونکی یې او زه په هیڅ شي نه پوهېږم او ته په غیب پوهېدونکی یې ، اې الله ﷻ! که ستا په علم کي

أَنَّ هٰذَا الأَمْرَ خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ أَمْرِيْ أَوْقَالَ فِيْ عَاجِلِ أَمْرِيْ

دا كار چي زه يې كول غواړم زما لپاره د دين معاش او انجام په اعتبار غوره وي (يا دا الفاظ) اې الله ! كه ستا په علم كي هغه كار چي زه يې كول غواړم زما لپاره په دنيا

وَآجِلِهِ فَاقْدِرْهُ لِيْ وَيَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيهِ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الأَمْرَ

او آخرت كي غوره وي نو هغه زما مقدر جوړ كړې او زما لپاره يې آسان كړې بيا زما لپاره په دې كي بركت راكړې او كه ستا په علم كي زما لپاره دا كار

شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ أَمْرِيْ أَوْ قَالَ فِيْ عَاجِلِ أَمْرِيْ وَآجِلِهِ فَاصْرِفْهُ

زما د دين ،ژوند او انجام د لحاظه خراب وي (يا دا الفاظ) په دې دنيا كي او په آخرت كي نو زما تو جه د دې لوري ځخه واړوې

عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَاقْدِرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ أَرْضِنِيْ بِهِ . قَالَ وَيُسَمِّيْ حَاجَتَهُ . رواه البخاري

او دې خيال زما د زړه ځخه ليري كړې او زما لپاره غوره انتظام وكړې كوم ځای چي هغه وي او بيا ما پر هغه راضي كړې ) د دې وروسته دي خپل حاجت بيان كړي .بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۴۸، رقم: ۱۱۶۲.

**تشريح** : كه د يو داسي كار اراده وكړل سي چي مباح وي او د هغه په كاميابي او خيړ كي شك وي مثلا د سفر اراده كوي د تجارت شروع كولو خيال يې وي نكاح كول غواړي يا د دې ډول بل مباح كار كوي نو پر داسي وخت باندي مناسب او غوره داده چي استخاره خپل رهبر او مشوره جوړه سي، .خوراک، چيښاک يا دا ډول د نورو ټاكلو او متعينو كارونو لپاره استخاره

كول نه ده ښكار، كه يو كار خير محض وي نو په هغه كي به استخاره د تعين وخت او حالت مخصوص په اعتبار وي، د واجب او مستحب كارو د اداينې يا د حرام او مكروه شيانو د پرهېزولو په اړه استخاره كول نه ده ښكار، د استخارې بركت دادى چي د كار شروع كونكي په حق كي چي كومه خبره غوره وي هغه بې په زړه كي ځاى ونيسي او زړه په خپل حق كي د غوره خبري فيصله كوي

د استخارې طريقه داده چي په اوداسه سره يو وخت د مكروه وختونو څخه پرته د استخارې په نيت دوه ركعته لمونځ وكړي او د هغه وروسته دي دا دعا وكړي، كه چيري د تحية المسجد يا تحية الوضوء دوه ركعته كولو وروسته د استخارې دعا وكړي نو دا هم جائز دي، مگر غوره داد چي بيل دوه ركعته په خاصه توگه سره د استخارې په نيت سره وكړل سي ، په دغه لمانځه كي چي كوم سورت غواړي ويلاى بې سي د يو خاص سورت تاكل نسته بيا هم په ځيني روايتونو كي راغلي دي چي قل يا ايها الكافرون او قل هو الله ويل غوره دي .

د دعا په الفاظو (او عاجل امري) كي د راوي شک ښكاره دى، يعني راوي ته شک واقع دى چي رسول الله ﷺ في ديني ومعاشي وعاقبة امري الفاظ فرمايلي دي يا ددغه الفاظو پر ځاى بې (عاجل امري و آجله) فرمايلي دي .

په هرحال غوره داده چي په دغه دعاء كي دا دواړي جملې وويل سي، د حديث د اخري الفاظو (ويسمى حاجته) مطلب دادى چي په دعا كي لفظ د (هذا الامر) عام راغلى دى، استخاره كونكى دي په خپله دعاء كي خپل مقصد او خپل مراد څرگند كړي د مثال په توگه د هذا الامر پر ځاى دي داسي ووايي هذا السفر يا هذا الاقامة يا كوم مقصد چي بې وي هغه دي ذكر كړي، او دا هم جائز ده چي په هذا الامر ويلو سره د هغه وروسته خپل مقصد او خپل مراد ذكر كړي .

په يو بل روايت كي دا لنډه استخاره هم نقل ده كه د يو سړي تلوار وي او يو ناڅاپه او تلواري كار كوي نو هغه ته ښكار ده چي هغه يوازي دا دعا وغواړي :

اللهم اخزلي واخترلي ولاتكلني الى اختياري .

ژباړه: اې الله! زما په حق كي ستا په نزد چي كوم بهتر او مناسب وي هغه زما دپاره خوښ او هغه زما لپاره اختيار كړې او ما د خپل اختيار پابند مه جوړوې .

حضرت انس ﷺ په يو بل روايت كي فرمايي چي رسول الله ﷺ ماته وفرمايل: اې انس! هر كله چي ته د يو كار اراده وكړې نو د هغه په باره كي د الله تعالى څخه اووه واره استخاره كوه

بیا د هغه وروسته د هغه نتیجه وګوره او ستا په زړه کي چي څه واچول سي یعني د استخارې په نتیجه کي د الله تعالی له خوا چي کوم شی القاء کړل سي هغه اختیار کړه چي ستا لپاره هغه غوره دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د توبې لمونځ

﴿۱۲۴۸﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْبَكْرٍ وَّ صَدَّقَ اَبُوْبَكْرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ما ته حدیث بیان کړی او رېښتیا یې وویل چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دا اورېدلي دي

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا مِنْ رَجُلٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا ثُمَّ يَقُومُ فَيَتَطَهَّرُ

چي فرمایل یې: څوک ګناه وکړي بیا ودرېږي اودس وکړي

ثُمَّ يُصَلِّي ثُمَّ يَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ إِلاَّ غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ ثُمَّ قَرَأَ هٰذِهِ الْآيَةَ وَالَّذِينَ إِذَا

او د هغه وروسته د الله جل جلاله څخه بخښنه و غواړي نو الله تعالی هغه بخښي، بیا رسول الله صلى الله عليه وسلم دا آیت تلاوت کړ: (هغه خلک چي

فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ. رواه الترمذي و ابن ماجة الا ان ابن ماجة لم يذكر الاية.

د بې حیایي ګناه کوي یا پر خپلو ځانو ظلم کوي بیا الله یادوي او د خپلو ګناهو بخښنه غواړي). ترمذي، ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۱۲- ۲۱۳، رقم: ۳۰۰۶، وابن ماجه ۱\۴۴۶، رقم: ۱۳۹۵.

**تشريح**: (صدق ابوبکر) یعني حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه بالکل ریښتیا وفرمایل، دا معترضیه جمله ده چي د هغه په ذریعه حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د بزرګی، د هغه د عظمت او د هغه د ډیر زیات رېښتنتوب پې ښکاره کړی دی چي د هغه رشتیا او صداقت د دې درجې وو چي خپله رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه د صدیق په لقب سره نازولی وو.

د حضرت علي ﷺ په باره كي نقل دي چي هغه به د هيڅ راوي نقل سوى حديث تر هغه وخته پوري نه قبلوى تر څو پوري چي به راوي قسم نه وو خوړلى، كله چي به راوي هغه ته وويل چي زه قسم خورم چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا حديث داسي اورېدلى دى نو امير المومنين به هغه قبلوى مگر كله چي به يې د صديق اكبر ﷺ څخه يو حديث واورېدى نو بېله قسمه به يې قبلوى.

د لفظ (فيتهر) مطلب دادى چي گناه كونكى دي په اوداسه سره لمونځ وكړي مگر غوره غسل كول دي نه يوازي دا بلكه په يخو اوبو سره غسل كول تر ټولو زيات غوره دى.

د (يصلي) مطلب دادى چي دوه ركعته لمونځ وكړي چي په هغه كي په يوه ركعت كي سورة قل يا ايهاالكافرون ووايا ست او په دوهم ركعت كي د سورة فاتحې سره قل ياايها الكافرون ووايا ست او په دريم ركعت كي قل هوالله ووايا ست او دغه لمانځه ته د توبې لمونځ وايي.

د حديث الفاظ (ثم يستغفرالله) يعني بيا د پروردگار په دربار كي توبه وكاږئ، نه يوازي دا چي هغه گناه پرېږدي بلكه په راتلونكي كي هيڅ كله په گناه كي د نه اخته كېدو پخه اراده وكړي او پر هغه ثابت قدمه سي او بيا داچي كه چيري د چا پر ذمه د چا څه حق وي نو د هغه ادا ينه كوئ، رسول الله ﷺ د خپل ارشاد وروسته د دليل په توگه دا آيت تلاوت كړ چي زه څه وايم دا الله تعالى هم وايي، د (لذبونهم) وروسته د آيت پاته برخه داده:

وَمَن يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ اللّهُ وَلَمْ يُصِرُّواْ عَلَى مَا فَعَلُواْ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ١٣٥ أُوْلَئِكَ جَزَآؤُهُم مَّغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَجَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ١٣٦

ژباړه: او څوک دى چي گناهونه بخښي بيله الله څخه، او دا خلک چي پر خپل فعل (گناه) باندي اصرار نه كوي او پوهيږي نو ددغه خلكو جزا بخښنه ده د هغوى د رب دلوري او داسي باغونه دي چي ويالي يې لاندي بهيږي چي هميشه به پكښي وي او د نيک كار كونكي بدله ډيره ښه ده.

د دغه آيت كريمه شان نزول د ځينو مفسرينو د روايت سره سم يوه واقعه ده چي د يوه صحابي څخه يو د بشريت د غوښتني سره سم يوه خطا وسوه او هغه سمدستي خبردار سو او ډير زيات پښېمانه او شرمنده سو د هغه د شرمندگى او د پښېماني او د الله تعالى په دربار كي هغه د ښوئېدلو څخه د هغه د زړه په صدق سره د توبې او استغفار په خاطر دا آيت نازل سو، دا سورة اووه اياتونه دي چي په اول آيت كي لفظ د (والذين) مبتداء ده او په دوهم آيت كي اولائک خبر

دی، يعني د اول آيت مطلب دادی چي مؤمنان د الله ﷻ څخه بېرېدونکی او د هغه پر ثواب او عذاب باندي يقين لرونکی چي د بشريت په غوښتنه په يو خطاء او گناه کي اخته سي نو د ايمان او يقين څخه ډک د هغوی ضمير سمدستي خبردار کوي هغوی پر داسي وخت باندي د خپل الله ﷻ خوا ته رجوع کوي د هغه عبادت او په شرمندگۍ کولو سره د هغه څخه د خپل خطا معافي غواړي پر خپل خطا او گناه باندي د شرمندگۍ په اظهار کولو سره توبه کوي نه يوازي دا چي هغوی پر يو گناه باندي عمل کونکي نه يي بلکه د راتلونکي لپاره په يو گناه کي د نه اخته کېدو پخه اراده کوي او پر هغه قائم او دائم اوسي.

په دوهم آيت کي د داسي خلکو جزاء بيانيږي چي الله تعالی د خپل رحمت په صدقه کي د دغه خلکو توبه قبلوي غلطي يې ورمعاف کوي او د هغوی د گناهونو څخه د زړه په صدق سره د معافي غوښتونکي کيږي د هغوی بخښنه فرمايي چي د هغه په نتيجه کي هغوی د جنت او د جنت د نعمتونو وړ وگرځوي.

## د يو مصيبت پر وخت لمونځ

﴿۱۲۴۹﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ صَلّٰى. رواه أبو داود.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ ته غم يا ستونزه ځرگند سوه نو لمونځ به يې کوی. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۸، رقم: ۱۳۱۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ ته يو تکليف او غم ورسېدی يا يو مصيبت به ښکاره سو نو رسول الله ﷺ به د هغه غم او مصيبت څخه د خلاصون لپاره دالله تعالی د فرمانبرداری په توگه لمونځ کوی لکه ځرنگه چي د الله تعالی فرمان دی:

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ

ژباړه: اي مؤمنانو! د الله تعالی څخه په صبر او لمانځه سره مرسته غواړئ.

علماء ليکلي چي د يو غم او مصيبت پر وخت د نفل لمانځه کولو حکمت دادی چي کله انسان په لمانځه کي مصروف سي نو د هغه په وړاندي عالم ربوبيت خلاص سي او کله چي پر هغه عالم ربوبيت منکشف سي نو دنيا خپله د هغه په نظر کي حقيره او هيڅ سي نو د هغه نتيجه

دا سي چي د هغه په زړه کي د دنيا کېدو يعني د دنيا راحت او اسانتياوي او د دنيا کېدو تکليف او مصيبت هيڅ احساس هم نه پاته کيږي که دنيا هغه ته نه تر لاسه کيږي، په دې توګه چي هغه د دنيا غم، تکليف او مصيبت کي اخته وي نو پرېشانه نه وي او که دنيا ورته حاصليږي په دې توګه چي د دنيا راحت، ارام او اسانتياوي هغه ته حاصليږي نو هغه خوشحاله نه وي ځرنګه چي دا عارفانه مقوله ويل سوې ده که وي نو خوشحالي نسته او که نه وي نو غم نسته.

## د تحية الوضو فضيلت

﴿۱۲۵۰﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ أَصْبَحَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دی چي د سهار د لمانځه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت بلال رضي الله عنه

بِلَالاً فَقَالَ بِمَا سَبَقْتَنِيْ إِلَى الْجَنَّةِ مَا دَخَلْتُ الْجَنَّةَ قَطُّ إِلاَّ سَمِعْتُ خَشْخَشَتَكَ

را وغوښتی او ورته وه يې فرمايل: ته کوم شي زما څخه مخکي جنت ته ورسولې ځکه چي زه کله هم په جنت کي داخل سوی يم نو خپل ترمخه مي ستا د څپليو آواز اوريدلی دی،

أَمَامِي قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَذَّنْتُ قَطُّ إِلاَّ صَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ وَمَا أَصَابَنِي حَدَثٌ

بلال رضي الله عنه عرض وکړ اې دالله رسوله! ما د آذان کولو څخه وروسته هميشه دوه رکعته لمونځ کړی او کله چي زما اودس مات سوی دی

قَطُّ إِلاَّ تَوَضَّأْتُ عِنْدَهَا وَرَأَيْتُ أَنَّ لِلّٰهِ عَلَيَّ رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِمَا. رواه الترمذي

او بيا مي اودس کړی دی نو دا کار مي پر ځان لازم کړی دی چي د الله جل جلاله لپاره پر ما دوه رکعته ضروري دي، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د دې دوو شيانو له کبله. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۹، رقم: ۳۶۸۹.

**تشريح**: په حديث کي د پورتني مضمون وضاحت د دې باب په پيل کي د اول حديث په تشريح کي سوی دی هلته دا ښودل سوي دي چي په جنت کي د حضرت بلال رضي الله عنه تر رسول الله صلى الله عليه وسلم مخکي کېدل د خادم په حيثيت سره وه چي خپله د يوې ډېري غټي درجې او فضيلت خبره ده، په دې وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه څخه پوښتنه وکړه چي ته هغه کوم کار کوې چي د هغه په وجه تا ته

د خاص خدمت دا ستره درجه حاصله سوه، دا د حديث حقيقي معنی ده ددې په ښکاره معنی او مفهوم اخيستو سره په يو غلط فهمۍ کي اخته کېدل نه دي پکار چي د دې حديث څخه خو دا ثابتيږي چي نعوذ بالله حضرت بلال ﷺ ته پر رسول الله ﷺ په دې وخت کي فضيلت حاصل وو چي هغه د رسول الله ﷺ مخکي په جنت کي داخل سو ځکه چي دا مرتبه خو هيڅ نبي او پېغمبر ته هم نه وه حاصله چي د رسول الله ﷺ مخکي دي جنت ته ولاړ سي نو څه چي د رسول الله ﷺ د امت يو بنده ته دا امتياز حاصل سي چي د دغه دواړو شيانو يعني همېشه په اوداسه سره اوسېدل او د تحية الوضوء لمونځ کولو په وجه د رسول الله ﷺ مخکي هغه په جنت کي داخل سي.

## د حاجت لمونځ

﴿۱۲۵۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن ابي اوفی ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ كَانَتْ لَهُ إِلَى اللهِ حَاجَةٌ أَوْ إِلَى أَحَدٍ مِنْ بَنِي آدَمَ فَلْيَتَوَضَّأْ فَلْيُحْسِنْ

څوک چي د الله ﷻ څخه يو حاجت لري يا د يو چا ديني يا دنياوي حاجت وي نو هغه ته پکار دي چي اودس وکړي او په ښه ډول اودس وکړي

الْوُضُوءَ ثُمَّ لِيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ لِيُثْنِ عَلَى اللهِ وَلْيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

بيا دوه رکعته لمونځ وکړي بيا د الله ﷻ تعريف وکړي او پر نبي ﷺ درود وليږي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لِيَقُلْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ

او بيا دا دعاء وکړي (لااله الاالله الحليم .....)، (د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته دا سي معبود چي بردبار او بخښونکی دی الله پاک دی د عرش عظيم خاوند دی

الْعَظِيمِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ أَسْأَلُكَ مُوجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ

او ټول تعريفونه هغه الله لره دي چي د ټولو کائناتو پروردګار دی، اې الله! زه ستا څخه د داسي عمل توفيق غواړم چي د هغه په سبب ستا د رحمت د نزول وړ وګرځم او هغه عمل غواړم چي ستا د بخښني سبب وي

وَالْغَنِيمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ لَا تَدَعْ لِي ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا

او د هري نيکۍ څخه ګټه غواړم او د هري ګناه څخه سلامتي غواړم زما هيڅ يو ګناه بې بخښي پرې نه ږدې او نه يو فکر

إِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ . رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب .

مګر خلاص يې کړې او نه زما يو مشکل پاته کړې او زما هيڅ حاجت بند نه کړې چې ستا په نزد غوره وي ، اې د ټولو رحم کونکو څخه زيات رحم کونکې ) . ابن ماجه ، ترمذي .

**تخريج** : سنن الترمذي ۲\ ۳۴۴ ، رقم: ۴۷۹ ، وابن ماجه ۱\ ۴۴۱ ، رقم: ۱۳۸۴ .

**تشريح** : که چيري يو چا ته يو اړتيا را منځته سي که څه هم هغه اړتيا بيله واسطې د الله تعالی سره وي يا بالواسطه د يوه بنده سره اړوند وي مثلاً د يو د مزدورۍ خواهش وي يا د يو چا سره نکاح کول غواړي يا يو بل ضرورت وي چې د يوه سړي څخه پوره کول يې مقصد وي نو د هغه لپاره مستحب داده چې هغه په ښه طريقه په اوداسه کولو سره دوه رکعته لمونځ وکړي بيا د الله تعالی تعريف وکړي او درود شريف ووايي کوم چې په لمانځه کي د التحيات وروسته ويل کيږي د هغه وروسته دي په حديث کي ذکر سوې دعا ووايي، د دعا وروسته چې د هغه څه حاجت او ضرورت وي هغه دي د الله تعالی په دربار کي وړاندي کړي يعني د الله تعالی څخه دي د خپل مقصد تر سره کېدل وغواړي، دا لمونځ چې په اصطلاح کي صلوة الحاجة (د حاجت تر سره کولو لمونځ) ورته وايي ډېر تجربه سوی دی، د ځينو بزرګانو په باره کي نقل سوي دي دي چې هغوی په خپلو اړتياوو کي په دغه طريقه لمونځ کولو سره الله تعالی ته خپل حاجت بيانوی او الله تعالی به د هغوی مقصد او حاجت پوره کوی. (علم الفقه)..

علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چې حاجتمند ته د خپل حاجت تر سره کولو او د دغه لمانځه او دعا کولو لپاره د شنبې سهار اختيارول پکار دي ځکه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دی کوم سړی چې د شنبې په ورځ د سهار په وخت کي د حاجت په لمانځه او دعاء کولو سره خپل حلال او جائز حاجت وغواړي نو د هغه د حاجت تر سره کېدو ضامن زه يم . (ملا علي قاري رحمة الله عليه)

هسي خو دا لمونځ او دعا د ټولو حاجتونو او ضرورتونو لپاره ده مګر چيري د ڤوت حافظې حاجت وي نو د هغه لپاره په خاصه توګه بيل لمونځ دی چي هغه ته صلوة الحافظه وايي چي په حسن حسين کي ذکر دی د هغه په اردو تشريح کي د دغه لمانځه روايت په تفصيل سره ليکل سوی دی هلته يې کتلای سئ .

===========

# صَلٰوةُ التَّسْبِيْحِ

## د تسبيح د لمانځه بيان

صلوة التسبيح (د تسبيح لمونځ) مستحب دی چي بې شمېره اجر او ثواب لري، دغه لمونځ ځلور رکعته کول د رسول الله ﷺ څخه نقل دي، غوره داده چي ځلور سره رکعته په يوه سلام سره وکړل سي که په دوو سلامو سره يې وکړي نو هم صحيح دی په هر رکعت کي پنځه اويا واره تسبيح ويل پکار دي او په پوره لمانځه کي درې سوه واره ويل پکار دي .

## د تسبيح د لمانځه کولو طريقه

د تسبيح د لمانځه نيت دي داسي وکړل سي (نويت ان اصلي اربع رکعت صلوة التسبيح) ما د ځلورو رکعتو تسبيح کولو اراده وکړه، د نيت وروسته د تکبير تحريمې په ويلو سره دي لاس وتړي او په سبحانک اللهم ويلو سره دي پنځلس واره دا تسبيح ووايي (سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر) بيا په اعوذ بالله او بسم الله ويلو سره دي الحمد لله او سورت ووايي د دې وروسته دي لس واره دا تسبيح ووايي بيا د رکوع څخه د راپورته کېدو په وخت کي په سمع الله لمن حمده او ربنا لک الحمد ويلو سره دي لس واره دا تسبيح ووايي بيا سجدې ته په تلو سره او د داوړو سجدو په مينځ کي د سبحان ربي الاعلی وروسته او د دواړو سجدو په مينځ کي دي لس واره دا تسبيح ووايي بيا په دوهم رکعت کي د الحمد لله مخکي دي پنځلس واره دغه تسبيح او په دوهم رکعت کي د سورت وروسته لس واره د رکوع، قومې او دواړو سجدو په مينځ کي لس لس واره دي دا تسبيح ووايي همداسي دريم او ځلورم رکعت دي وکړي او په هغه کي دي دا تسبيح په دغه شمېر ووايي .

## د تسبيح د لمانځه کولو فضيلت

﴿۱۲۵۲﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْعَبَّاسِ بْنِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ حضرت عباس ﷺ ته وويل:

عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَا عَبَّاسُ يَا عَمَّاهُ أَلاَ أُعْطِيكَ أَلاَ أَمْنَحُكَ أَلاَ أُخْبِرُكَ أَلاَ أَفْعَلُ

اې عباسه! اې اکا! ايا زه تا ته ونه بښيم، ايا زه تا ته يو تحفه درنه کړم ، ايا زه تا خبر نه کړم

بِكَ عَشْرَ خِصَالٍ إِذَا أَنْتَ فَعَلْتَ ذٰلِكَ غَفَرَ اللهُ لَكَ ذَنْبَكَ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ قَدِيمَهُ

د لس داسي خصلتو څخه که عمل په وکړې نو الله تعالى به ستا ټول مخکني ، وروستني، زاړه ،

وَحَدِيثَهُ خَطَأَهُ وَعَمَدَهُ صَغِيرَهُ وَكَبِيرَهُ سِرَّهُ وَعَلاَنِيَتَهُ أَنْ تُصَلِّيَ أَرْبَعَ

نوي ، په قصد سره، په هيره سره، کوچني ، لوی، او څرګند ټول ګناهونه و بخښي، ته څلور
رکعته لمونځ کوه

رَكَعَاتٍ تَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً . فَإِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي

په هر يوه رکعت کي الحمدلله او يو سورت وايه کله چي د قرائت څخه فارغ سې

أَوَّلِ رَكْعَةٍ وَأَنْتَ قَائِمٌ قُلْتَ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ

په اول رکعت کي نو په ولاړه دا کلمات ووايه : (سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ)

خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً ثُمَّ تَرْكَعُ فَتَقُولُهَا وَأَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ

پنځلس واره بيا رکوع وکړه او په رکوع کي هم لس واره دا کلمات ووايه بيا د رکوع څخه سر
پورته کړه

الرُّكُوعِ فَتَقُولُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَهْوِي سَاجِدًا فَتَقُولُهَا وَأَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا ثُمَّ

او لس واره دغه کلمات ووايه بيا سجده وکړه او د سبحان ربي الاعلى وروسته لس واره دغه
کلمات ووايه بيا

تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ السُّجُودِ فَتَقُولُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَسْجُدُ فَتَقُولُهَا عَشْرًا ثُمَّ

د سجدې څخه سر پورته کړه او لس واره دا کلمات ووايه بيا دوهمه سجده وکړه او د سبحان

ربي الاعلى وروسته لس واره بيا دا كلمات ووايه بيا

تَرْفَعُ رَأْسَكَ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا فَذٰلِكَ خَمْسٌ وَسَبْعُوْنَ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ تَفْعَلُ ذٰلِكَ

د سجدې څخه سر پورته کړه او لس واره دا كلمات ووايه دا ټول په هر رکعت کي پنځه اويا واره سول، په څلورو رکعتو کي داسي وکړه

فِيْ أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُصَلِّيَهَا فِيْ كُلِّ يَوْمٍ مَرَّةً فَافْعَلْ فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ

او که ستا په وسه وي نو هره ورځ يو وار دا لمونځ کوه او که ممکن نه وي

فَفِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ

نو بيا د هري جمعې په ورځ دا لمونځ کوه که دا هم ممکن نه وي نو په مياشت کي يو وار يې کوه او که دا هم ممکن نه وي نو په

سَنَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ عُمُرِكَ مَرَّةً . رواه أبو داود وابن ماجه والبيهقي في الدعوات الكبير، وروى الترمذي عن أبي رافع نحوه .

کال کي يو وار يې کوه او که دا هم ممکن نه وي نو په ټول عمر کي دا لمونځ يو وار وکړه . ابوداؤد، ابن ماجه، بيقهي او ترمذي د ابو رافع څخه هم داسي روايت کړی دی . او که ستا په وسه وي نو هره ورځ يو وار دا لمونځ کوه او که ممکن نه وي نو بيا د هري جمعې په ورځ دا لمونځ کوه که دا هم ممکن نه وي نو په مياشت کي يو وار يې کوه او که دا هم ممکن نه وي نو په کال کي يو وار يې کوه او که دا هم ممکن نه وي نو په ټول عمر کي دا لمونځ يو وار وکړه . ابوداؤد، ابن ماجه، بيقهي او ترمذي د ابو رافع څخه هم داسي روايت کړی دی .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۶۷ - ۶۸، رقم: ۱۲۹۷، وابن ماجه ۱\۴۴۲، رقم: ۱۳۸۶.

**تشريح** : ايا تا د لسو عادتونو خاوند جوړ کړم ؟: د دې مطلب دادی چي تاته به داسي شيان در وښيم که ته هغه غوره کړې نو ستا لس ډوله ګناوي به و بخښل سي کومي چي په حديث کي ذکر سوي دي، د ځينو حضراتو قول دادی چي د لسو عادتونو څخه مراد په دغه لمانځه کي د قيام (ولاړي) پنځلس واره تسبيح ويلو څخه پرته په نورو حالتو کي لس لس واره ويل پکار دي .

په حديث كي د لفظ علانيه څخه وروسته عشر خصال الفاظ په مشكوة كي ذكر سوي نه دي مگر په اصول كي موجود دي په حسن حسين كي هم دا الفاظ نقل سوي دي ځكه طيبي رحمة الله عليه ليكلي دي چي د سياق حديث له كبله دا ويل زيات مناسب دي چي د لسو عادتونو څخه مراد دا شيان دي :

اول : څلور ركعته لمونځ كول، دويم: په هر ركعت كي سورة فاتحه ويل، دريم: د سورة فاتحې سره يو بل سورة ويل، څلورم: د قيام په حالت كي پنځلس واره تسبيحات ويل، پنځم: دا تسبيحات په ركوع كي لس واره ويل، شپږم: دا تسبيحات په قومه كي لس واره ويل، اووم: دا تسبيحات په سجده كي لس لس واره ويل، اتم: د دې تسبيحاتو لس واره په ناسته كي ويل، نهم: د دغه تسبيحاتو لس واره په سجده كي ويل، لسم : ددغه تسبيحاتو لس واره په جلسله استراحت كي ويل .

د دې روايت څخه خو دا معلوميږي چي په قيام كي د قرائت وروسته پنځلس واره دي دا تسبيح وويل سي همداسي د دې روايت څخه دا هم معلوميږي چي د دويمي سجدې څخه په راپورته كېدو سره دي هم دا تسبيح وويل سي، كله چي موږ په ابتدايي باب كي دا طريقه نقل كړې ده چي د قيام په حالت كي د سبحانك اللهم وروسته پنځلس واره دي وويل سي بيا د قرائت وروسته دي لس وراه تسبيح وويل سي او د دويمي سجدې څخه د راپورته كېدو وروسته د تسبيح د ويلو ذكر نه دى كړى نو دا دواړې طريقې په بيلو بيلو روايتونو كي ذكر دي بيا دا چي په دواړو طريقو كي د تسبيح په شمېر كي څه فرق نسته يوازي د ويلو په وخت كي فرق ځكه اختيار كړل سوى دى چي په دغه دواړو طريقو كي چي كومه طريقه غواړي هغه دي اختياره كړل سي او غوره داده چي كله د يوې كله د بلي طريقې سره سم تسبيحات وويل سي چي په قعدو كي دا تسبيحات بخلاف د نورو اركانو د التحيات مخكي ويل كيږي .

د ابن عباس رضي الله عنهما څخه نقل دي چي په لمانځه كي دي دا سورتونه وويل سي الهاكم التكاثر، والعصر، قل يا ايها الكافرون ، قل هو الله احد،په ځيني روايتونو كي اذا زلزلت الارض، والعاديات ، اذا جاء نصر الله الفتح او سورة اخلاص ويل هم نقل دي .

جلال الدين سيوطي رحمة الله عليه د امام احمد رحمة الله عليه څخه دا نقل كړى دى چي د تسبيح په لمانځه كي د سلام گرځولو څخه مخكي دادعا كول هم پكار ده :

اللهم اني اسئلك التوفيق اهل الهدى واعمال اهل اليقين و من اصحة اهل التوبة وعزم اهل الصبر

وجد اهل الخشية وطلب اهل الرغبة وتعبد اهل الورع و عرفان اهل العلم حتى اكفاك، اللهم اني اسئلك مخافة تحجزني عن معاصيك و حتى اعمل بطاعتك عملا استحق به رضاءك و حتى اناصحك بالتوبة خوفا منك و حتى اخلص لك النصيحة حياء منك و حتى اتوكل عليك في الامور كلها و حسن ظن بك سبحان خالق النور .

ژباړه : اې الله ! زه ستا څخه غواړم د اهل هدايت په ډول توفيق د اهل يقين په ډول اعمال د اهل توبه په ډول خالص توبه ، د اهل صبر په ډول پوخوالی، د اهل حيثيت په ډول سخت محنت، د طالبين حق په ډول طلب، د پرهيزګار په ډول عبادت او د اهل په ډول معرفت ، تر دې چې زه ستا د ذات څخه بيره پيبل کړم ، اې الله ! زه ستا څخه د خوف غوښتونکی يم چې ما ستا د نافرمانو څخه منعه کړي تر دې چې زه ستا د فرمانبرداری او رضا هغه عمل پيبل کړم کوم چې ما ستا د رضا مستحق وګرځوي او ستا د خوف څخخه ريښتوني توبه وباسم تر دې چې ستاپر ذات باندي په ښه ګمان لرلو سره په ټولو کارونو کي ستا پر ذات باندي باور کول پيبل کړم او اې نور پيداکونکې ! ته د هر عيب څخه پاک يې ،

د دغه لمانځه د فضيلت په باره کي عبدالعزيز (ابن داؤد) رحمة الله عليه ليکي چې کوم سړی په جنت کي داخلېدل غواړي نو هغه دي د تسبيح لمونځ پر ځان باندي لازم وګرځوي ·

ابوعثمان زاهد رحمة الله عليه فرمايلي دي چې د مصيبت ، پرېشانی، غم او حزن ليري کولو لپاره د دغه لمانځه څخه پرته هيڅ شی نه دی ترلاسه سوی يعني د تسبيح د لمونځ په کولو سره دا ټولي پرېشانئ او غمونه وغيره ختميږي د دغه لمانځه د ستر فضيلتونو سره سم اکثرو امامانو او بزرګانو دا لمونځ کوئ، د جمعې په ورځ د زوال وروسته د دغه لمانځه کول مستحب دي که په دغه لمانځه کي د سجده سهو ضرورت پېښ سي نو په سجده سهو کي دننه دي دا تسبيحات نه وايي ځکه چې بيا د تسبيحاتو مقدار تر درو سوو زياتيږي کومو مسلمانانو ته چې الله تعالی د خپل عبادت او اطاعت توفيق ورکړی دی او هغوی د خير د عمل کولو په سعادت سره نازول سوي دي د هغوی لپاره د دې لمانځه کولو په اړه د اعتدال درجه داده چې دا لمونځ هره جمعه کوي د حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ پر دې عمل وو چې هغه به هره جمعه د زوال وروسته دا لمونځ کوی او هغه سورتونه به يې به پکښي ويل کوم چې مخکي نقل سوي دي ·

## د قيامت په ورځ د لمانځه پوښتنه

﴿۱۲۵۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي

إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسِبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهِ صَلَاتُهُ فَإِنْ صَلُحَتْ

د قيامت په ورځ په اعمالو كي تر ټولو ترمخه چي د كوم عمل سوال كيږي هغه لمونځ دی كه لمونځ سم ادا سوی وي

فَقَدْ أَفْلَحَ وَأَنْجَحَ وَإِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ فَإِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيْضَتِهِ

نو خلاصون به تر لاسه كړي او نجات به پيدا كړي او كه سم نه وي لمونځ دده نو نا اميدي ده بيا كه چيري په فرض لمانځه كي څه كمي وي

شَيْءٌ قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى انْظُرُوْا هَلْ لِعَبْدِيْ مِنْ تَطَوُّعٍ؟ فَيُكَمَّلُ بِهَا مَا

نو الله تعالى ملائكو ته حكم وركړي چي زما د بنده په سنت او نفلو كي وګورئ او

انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيْضَةِ ثُمَّ يَكُوْنُ سَائِرُ عَمَلِهِ عَلٰى ذٰلِكَ. وفي رواية ثُمَّ الزَّكَاةُ

په فرضو كي چي څومره كمي ده هغه په پوره كړئ بيا داسي نور اعمال حسابيږي. او په يوه روايت كي دي چي بيا زكوة

مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ تُؤْخَذُ الْأَعْمَالُ عَلٰى حَسَبِ ذٰلِكَ. رواه أبو داود، ورواه أحمد عن رجل

همدارنګه بيا نور اعمال همدارنګه حسابيږي. ابوداؤد، امام احمد دا حديث د غير معروف سړي څخه روايت كړی دی.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۵۴۰، رقم: ۸۶۴ و ۸۶۶.

**تشريح**: په يو بل روايت كي ښودل سوې ده چي د قيامت په ورځ به د بنده څخه تر ټولو وړاندي چي د كوم شي په باره كي پوښتنه كيږي هغه به وينه وي او دلته فرمايل سوي دي تر ټولو مخكي به د لمانځه حساب كيږي نو په دغه دواړو اياتو كي تطبيق پيدا كيږي چي د الله تعالى په حقوقو كي تر ټولو مخكي دويني حساب اخيستل كيږي.